Scanned by CamScanner

بسم الله الرحمن الرحیم

| آیاتها (٤٣) | (۱۳) سورة الرعد مکیة (۹٦) | رکوعاتها (٦) |
|---|---|---|

سورة الرعد مکي دے، پدے کښې درے څلویښت آیتونه او شپږ رکوع دي.

## تفسیر سورة الرعد

**نوم**: ددے نوم د آیت (۱۳) ﴿وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ وَالْمَلَائِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِ﴾ نه اخستے شویدے چه پدے کښې د الله تعالیٰ د قدرت او معرفت ذکر دے.

### دا سورت مدني دے که مکي ؟

پدے کښې درے اقوال دي. (۱) نحاسؒ په خپل کتاب «الناسخ» کښې د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کړیدے چه دا سورت په مکه کښې نازل شوے وو. د سعید بن جبیرؒ، حسنؒ، عکرمةؒ او عطاءؒ وغیره همدا رائے ده. (۲) او د عبد الله بن زبیرؓ، کلبيؒ او مقاتلؒ رائے دا ده چه دا سورت په مدینه کښې نازل شوے وو. (۳) دریم قول دا دے چه دا سورت مدني دے، صرف آیت (۳۱) مکه کښې نازل شوے وو. (فتح البیان وابن عاشور) راجح دا ده چه دا سورت مکي دے ځکه چه انداز او موضوع ئے د مکي سورتونو په شان ده.

### فضیلت

ددے سورت په فضیلت کښې ابن ابی شیبهؒ او مروزيؒ په «کتاب الجنائز» کښې د جابر بن زیدؒ (تابعي) نه روایت کړیدے چه هغه به د یو شخص د مرګ کیدو په وخت کښې د سورة الرعد لوستل غوره ګڼړل او وئیل به ئے چه دا سورت د مرګ کیدونکي تکلیف کموي او د روح قبض کول آسانوي. (مصنف ابن ابی شیبة (۱۰۹۹۷) وسنده صحیح- روضة المحدثین: ۱/ ۲٦٦ رقم: ٤٦۹۱)

### مناسبتونه

۱- مخکښې سورت کښې الله تعالیٰ د علم غیب خبره بیان کړه چه انبیاء علیهم السلام په غیبو نهٔ پوهیږی نو دلته وائی چه غیر الله ته آواز نهٔ دے پکار.
﴿وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ﴾
۲- موضوعاتی مناسبت دا دے چه مخکښې شان د رسالت وو نو دلته بیان د عظمة الوحی ده یعنی د وحی تعظیم.

## موضوع او مقصد

ددے سورت د موضوع په باره کښې بعض اهل علمو حیرانتیا ښکاره کړیده لکه صاحب د «فی ظلال القرآن» وئیلی دی چه دا ډیر عجیب سورت دے چه د نورو تولو سورتونو نه ئے نسق او ترتیب او د حروفو او کلماتو او ایقاعاتو انداز جدا دے، پدے کښې د مکی سورتونو روح روان دے چه هغه د توحید الوهیت، توحید ربوبیة، او بیا د وحی او بعث بعد الموت او ددے په شان نورے خبرے ذکر دی لیکن دا تولے په بیل انداز سره ذکر دی چه بندګان د هغے د کامل تعبیر نه ناقص دی.
۲- زمونږ بعض مشائخ وائی چه پدے سورت کښې نفی د شرك فی الدعاء ده لکه په ﴿لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ﴾ آیت (۱۴) کښې راغلے ده.
۳- خینی مشائخ فرمائی چه ددے سورت دوه موضوعات دی (۱) اثبات د توحید په پنځو طریقو سره، اول په رد د څلورو اقسامو د شرك سره چه هغه شرك په علم کښې، په تصرف کښې او په عبادت او په دعاء کښې دے.
دویمه طریقه: دیارلس تفصیلی عقلی دلیلونه ئے ذکر کړیدی. دریمه طریقه: پنځه مثالونه.
څلورمه طریقه: مقابله ده په مابین د صفاتو د موحد او د مشرك کښې، چه لس صفات د موحد او درے صفات د مشرك ئے ذکر کړیدی، دا هم دیارلس دی.
(۲) دویمه دعوه: اثبات د رسالت د رسول الله ﷺ دے. په جواب د شپږو شبهاتو او په شهادت د الله تعالیٰ او د اهل کتابو سره. (احسن الکلام)
٤- ظاهر دا ده چه په دے سورت کښې د سورة الشوریٰ په شان موضوع ده یعنی: بَيَانُ عَظَمَةِ الْوَحْيِ (چه وحی ډیر لوی شے دے) چه دا په عام سورت کښې ذکر ده، اول نه ئے ﴿وَالَّذِيٓ أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ﴾ بیان کړیدے، بیا ئے بَيَانُ عَظَمَةِ الْمُوحِىْ کړیدے چه وحی

خکه عظیم شے دے چه ددے رالیږونکے لوی ذات دے، نو د مُوْجی د عظمت دپاره ئے ډیر دلائل عقلیه ذکر کړیدی، بیا د قرآن طریقه دا وی چه یوه خبره شروع کړی نو په هغے کښې دننه نورے خبرے راوباسی نو ویه وائی چه دا وحی د څه دپاره راغلے ده ؟

نو ﴿ لَعَلَّكُمْ بِلِقَاءِ رَبِّكُمْ تُوْقِنُوْنَ ﴾ دا ددے دپاره راغلے ده چه بندګان د آخرت دپاره تیارے وکړی۔ دا د وحی مقصد او فائده شوه۔ ددے وجه نه روستو به په منکرینو د آخرت رد وکړی۔ بیا به د الله تعالیٰ د معرفت دلیلونه بیان کړیدی۔

او بیا د قرآن بل عادت دا دے چه کله د الله تعالیٰ تعارف بیانوی نو د هغے سره په شرك رد کوی چه هرکله الله تعالیٰ دومره لوی ذات دے نو د هغه سره شریکان جوړول ډیر لوی ظلم دے، نو په مشرکانو به رد وکړی۔ بیا الله تعالیٰ د خپل وحی مثال راوړیدے په ډیر ښه انداز سره په ﴿ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ﴾ سره۔

بیا (۱۸) آیت نه روستو دا خبره بیانوی چه وحی په انسان کښې څومره فرق راولی، یو تن دے چه په وحی ئے ایمان راوړو او د هغے نه ئے اثر واخستو، او بل یو تن دے چه په وحی ئے ایمان رانهٔ وړو د دواړو فرق وپیژنئ، چا چه د وحی نه اثر واخستو نو د هغه فائدو او خیرونو او میوو ته وګوره چه په دهٔ کښې به لس صفات پیدا شی او څوك چه د وحی منکر شو نو هغه کښې به درے بد صفات پیدا شی۔

نو د وحی په مقابله کښې بعض خلك دنیا غوره کوی نو الله سبحانه به د هغے تردید وکړی په ﴿ اَللهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَاءُ وَيَقْدِرُ ﴾ سره۔

بیا ئے د کافرانو اعتراض ذکر کړیدے چه وائی : بله معجزه راوړه دا وحی مونږ نهٔ منو۔

نو د هغے جواب ﴿ قُلْ اِنَّ اللهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَاءُ ﴾ سره ذکر دے، او ﴿ تَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللهِ ﴾ ددے نه مراد وحی ده او ﴿ لِتَتْلُوَا عَلَيْهِمُ الَّذِیْ اَوْحَيْنَا اِلَيْكَ ﴾ او بیا روستو په آخر د سورت کښې راځی۔ ﴿ وَالَّذِيْنَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَفْرَحُوْنَ بِمَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ ﴾ او بیا په آخری آیت کښې فرمائی : ﴿ وَمَنْ عِنْدَهٗ عِلْمُ الْكِتَابِ ﴾ چه پدے وحی باندے الله او پخوانی اهل کتاب ګواه دی۔

حاصل دا شو چه وحی عظیم شے وګنړه څکه چه دا یو عام بادشاه نهٔ ده رالیږلے بلکه عظیم رب العالمین رالیږلے ده، هغه الله وپیژنه، دا ئے صفات دی، هغه سره شریکان مهٔ جوړوه، دا وحی ئے څه دپاره رالیږلے ؟ دے دپاره چه د بندګانو رهنمائی وشی، رهنمائی چه وشی څه به وشی؟ څکه چه د قیامت ورځ راروانه ده، بندګانو سره به حساب کیږی۔ دا ددے سورت د دعوت طرز دے۔

| الٓمّٓرٰ تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ وَالَّذِيٓ |
|---|
| ددے حروفو په مطلب الله پوهیږی، دا آیتونه د کامل کتاب دی، او هغه شے |
| أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱﴾ |
| چه نازل کړے شویدے تا ته د طرف د رب ستا نه حق دے لیکن اکثر خلق ایمان نهٔ راوړی۔ |

**تفسیر** : الٓمّٓرٰ : دلته د حروفو زیادت دلالت کوی چه دلته د وحی متعلق خبره زیاته ده۔ لکه څنګه نے چه په سورة الشوریٰ کښې هم (حٰمٓ عٓسٓقٓ) زیات حروف راوړیدی۔

تِلْكَ : سره اشاره ددے سورت آیتونو ته ده۔ او د «کتاب» نه مراد قرآن کریم دے۔ او د کتاب لفظ کښې هم یو عظمت پروت دے چه دا کامل کتاب دے۔

او د «اَلَّذِیٓ اُنْزِلَ اِلَیْكَ» نه مراد هم قرآن کریم دے۔ او رسول الله ﷺ نے مخاطب کړو پدے کښې زیات تاکید ته اشاره ده چه تا ته کومه وحی د خپل رب د طرفنه نازلیږی نو دا یقینی او رشتینی ده، پدے کښې هیڅ له شك نهٔ دی کول پکار۔

نو هرکله چه دا وحی حقه ده نو څه کول پکار دی؟ نو د روستو نه معلومیږی چه دا وحی به منے، او پدے به ایمان راوړے او پدے کښې چه کوم اوامر او نواهی راغلی دی هغه به منلے شی او عمل بـه پرے کولے شی دے دپاره چه بنده خپل دنیا او آخرت بنائسته کړی لیکن اکثر خلك د کفر او نفاق او ضد په وجه سره پدے حق کتاب باندے ایمان نهٔ راوړی۔

| اَللّٰهُ الَّذِيْ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ثُمَّ |
|---|
| الله هغه ذات دے چه پورته کړی نے دی آسمانونه بے د ستنو نه چه تاسو نے وینئ بیا |
| اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَّجْرِيْ |
| برابر شویدے په عرش باندے او تابع کړی نے دی نمر او سپوږمۍ؛ ټول روان دی |
| لِأَجَلٍ مُّسَمًّى يُدَبِّرُ الْأَمْرَ يُفَصِّلُ الْآيَاتِ |
| دپاره د نیټے مقررے، تدبیر کوی د ټولو کارونو، په ډیر وضاحت سره بیانوی دلیلونه |
| لَعَلَّكُمْ بِلِقَآءِ رَبِّكُمْ تُوْقِنُوْنَ ﴿۲﴾ وَهُوَ الَّذِيْ |
| دے دپاره چه تاسو په ملاقات د رب خپل یقین اوکړئ۔ او الله هغه ذات دے |

| مَدَّ الْأَرْضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْهَارًا وَمِنْ |
|---|
| چه خوره کړے ئے ده زمکه او کرخولی ئے دی پدے کښ مضبوط غرونه او نهرونه او د |
| كُلِّ الثَّمَرَاتِ جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ إِنَّ |
| هر قسم میوو نه پیدا کړے ئے دی پدے کښ جوړئ دوه، وراغوندوی شپه ورځے ته یقیناً |
| فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿۳﴾ |
| پدے کښ خامخا دلیلونه دی دپاره د هغه قوم چه فکر کوی۔ |

**تفسیر :** مناسبت :

۱- كَيْفَ لَا يُؤْمِنُونَ مَعَ وُجُودِ هٰذِهِ الدَّلَائِلِ۔ دا خلك به څنګه ایمان نهٔ راوړی سره ددے نه چه د الله تعالیٰ د قدرت او د هغهٔ د خالقیت څومره ډیر دلائل موجود دی۔

۲- دارنګه دا وئیل هم مقصود دی چه کوم الله تعالیٰ د ستنو نه بغیر په آسمانونو ودرولو قادر دے او چه هغه نمر او سپوږمئ او نور ستوری د خپل علم او قدرت مطابق تابع کړیدی، هغه ذات دا قرآن کریم په خپل بنده او رسول محمد ﷺ باندے نازل کړیدے۔

۳- پدے آیت کښ عِظَمَةُ الْمُوْحِیْ بِهٰذَا الْكِتَابِ دے۔ (یعنی : الله تعالیٰ د عظمت بیان دے چه پدے کتاب سره ئے وحی کړیده)۔ نو پدے سره د وحی عظمت هم ثابتیږی۔

بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا : دے کښ دوه تفسیره دی (۱) تَرَوْنَهَا ضمیر آسمانونو ته راجع دے او معنیٰ دا ده : آسمان ئے اوچت کړیدے بغیر د ستنو نه، وینئ تاسو آسمانونه چه ستنے ورته نشته۔ یا ضمیر عَمَد ته راجع دے یعنی نهٔ ستنے شته او نهٔ د ستنو لیدل۔

(۲) دویم تفسیر دا دے چه تَرَوْنَهَا جمله صفت دے د عَمَد دپاره او هَا ضمیر عَمَد ته راجع دے۔ معنیٰ دا ده : اوچت کړی ئے دی آسمانونه بغیر د داسے ستنو نه چه تاسو ئے وینئ یعنی ستنے شته لیکن تاسو ئے نهٔ وینئ۔ دا تفسیر د مجاهدؒ او عکرمهؒ او صاحب د فتح البیان ابن عباسؓ ته منسوب کړیدے۔ لیکن اول قول غوره دے۔

ایاس بن معاویهؒ وائی چه آسمان په زمکه باندے د قبے (ګنبد) په شان دے، زمکه او ددے تمام څیزونه ئے په خپله احاطه کښ نیولی دی۔

ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ : د استواء علی العرش تفسیر په سورة الاعراف کښ تیر شویدے۔ او پدے باره کښ د سلف صالحینو عقیده دا ده چه کله الله تعالیٰ په قرآن کریم

کښې ځان دپاره استواء علی العرش ثابت کړیدے، نو په هغې باندے ایمان به ایمان لرلے شی، نهٔ به د هغې کوم کیفیت بیانولے شی او نهٔ به د چا سره ددے تشبیه ورکولے شی او نهٔ به پدے کښې تاویل کولے شی۔

کُلٌّ یَّجۡرِیۡ لِاَجَلٍ مُّسَمًّی : ددے نه مراد د دنیا د ختمیدو او د قیامت د راتللو نیټه ده۔

یُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ : الامر کښې الف لام استغراقی دی۔ یعنی الله تعالیٰ د آسمانونو او زمکے په ټولو کارونو کښې د خپلے خوښے او منشاء مطابق تصرف کوی۔ هغه د خپل کامل قدرت او ربوبیت او خالقیت نخښے په قرآن کریم کښې په تفصیل سره بیان کړیدی، دے دپاره چه خلك د خپل رب په ملاقات یقین ولری چه هغه به ئے محشر ته راجمع کوی او بیا به د هغوی سره د هغوی د اعمالو حساب کتاب کوی۔

بِلِقَآءِ رَبِّکُمۡ تُوۡقِنُوۡنَ : یعنی قرآن دے دپاره الله تعالیٰ رالیږلے دے چه خلك د الله تعالیٰ په ملاقات او قیامت باندے یقین ولری ځکه چه ایمان په آخرت ټول نظام جوړوی او کفر په آخرت ټول نظام خرابوی، کله چه بنده آخرت ته متوجه شی نو د الله تعالیٰ بندګی به کوی او آخرت له به تیاری کوی نو د عالَم د پیدائش مقصد به حاصلیږی۔ او کله چه بنده آخرت نهٔ منی نو بندګی به څه وکړی نو د عالَم د پیدائش مقصد ضائع کیږی۔

وَهُوَ الَّذِیۡ: دا انعامات هم دی او دلیلونه هم۔ مخکښې د الله تعالیٰ د قدرت او خالقیت او علم او حکمت آسمانی دلیلونه بیان شو اُوس پدے آیت کریمه کښې پدے حقائقو باندے د زمکے او پدے کښې د موجوده څیزونو په ذریعه ئے دلیل نیولے دے۔

الله تعالیٰ زمکه په طول او عرض (په اوږدوالی او پلنوالی) کښې دومره خوره کړیده چه د سړی نظر ددے انتهاء ته نشی رسیدلے، دے دپاره چه د انسانانو قدم پدے باندے مضبوط شی او حیوانات پدے باندے په آسانئ سره مزل وکړے شی۔

او دا د زمکے د ګُرَوِئ کیدو سره منافی نهٔ ده ځکه چه زمکه لویه ده او اطراف ئے دیو بل نه وراندے دی، نو ګُرَوِی شکل والا هم ده او مینځ کښې ئے خوره کړیده۔

وَجَعَلَ فِیۡهَا رَوَاسِیَ : په زمکه باندے ئے لوی غرونه ودرولی دی دے دپاره چه زمکه په خپل ځای ثابته (کلکه) پاتے شی۔ او پدے کښې ئے نهرونه روان کړی چه په هغې کښې د مخلوق قسما قسم فائدے دی، او څومره میوے چه په زمکه موجودیږی، الله تعالیٰ ددے ټولو دوه دوه قسمه جوړ کړیدی، د رنګ او د مزے په اعتبار سره، یا د حجم یا د کیفیت په اعتبار سره۔ په هر قسم کښې جدا جدا فائدے وی۔ دغه شان هر قسم یو مستقل نعمت

وی۔ او چونکه د انسانانو طبیعتونه مختلف وو نو الله تعالیٰ ورله میوه جات هم مختلف پیدا کړل۔ د قرآن وینا ده چه ددې نه مراد د هرې میوې مذکر او مؤنث دې۔ آه۔ یا خوږه او ترخه، ګرمه او یخه، لمده او وچه، سره او شنه، توره او سپینه، وړه او غټه، باغ والا او غرونو والا۔

وَأَنْهٰرًا : **فائده** : امام رازیؒ لیکی چه د غرونو په احوالو ئې دلیل ونیولو څکه چه د غرونو په وجه د زمکې په مخ باندې نهرونه راپیدا کیږی، او دا څکه چه کانړې یو سخت جسم لری نو کله چه د زمکې د بیخ نه بخارات راپورته شی او غرۀ ته راورسی نو هلته ایسار شی نو همداسې رفته رفته پوره کیږی تردې چه د غرونو نه لاندې ډیرې اُوبه جمع شی بیا هغه د ډیر والی او د قوت په وجه سورې وکړی او راوځی او د زمکې په مخ وبهیږی نو د غرونو فائده د نهرونو په راپیدا کیدو کښې په همدې طریقه ده او ددې وجه نه اکثر اوقاتو کښې چه الله تعالیٰ غرونه ذکر کوی نو نهرونه ورسره پیوست ذکر کوی لکه پدې آیت کښې واخله۔ (مفاتیح الغیب والقاسمی)

يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ : إِغْشَاء پرده اغوستول او پټولو ته وئیلې شی۔

یعنی الله تعالیٰ د ورځې نه روستو شپه راولی، او د ورځې رڼا او د سپینوالی نه روستو د شپې سختې تیارې راځی۔ او کله چه شپه اُوږدیږی نو د یخنئ زمانه وی او چه کله ورځ اُوږدیږی نو د ګرمئ زمانه راځی۔ او د ورځې او د شپې دواړو نه د یو په معتدل کیدو سره د خزان (منی) موسم راځی او د بل په معتدل کیدو سره د سپرلی موسم راځی۔ بیشکه د زمکې فراخی او پدې باندې په موجود ذکر شوی څیزونو کښې فکر او سوچ کونکو دپاره ښکاره نخې دی چه یقیناً ددې پیدا کونکې د الله ذات دې چه د قدرت او عظمت او علم او حکمت والا دې، او د بندګانو د طرف نه د محبت او بندګئ مستحق دې۔

او په آیتِ کریمه کښې دې طرف ته هم اشاره ده چه کوم یو ذات چه د خپل مخلوق دپاره دومره ګڼر نعمتونه پیدا کړیدی د هغه یو عظیم نعمت دا هم دې چه هغه د خپلو بندګانو د دنیاوی او اُخروی سعادت او نیك بختئ دپاره انبیاء او رسولان علیهم السلام رالیږلی او کتابونه ئې نازل کړی۔ (القاسمیؒ)

لَأٰيٰتٍ : عَلٰى وُجُوْدِهٖ وَكَمَالِهٖ وَعَظَمَتِهٖ وَحِكْمَتِهٖ وَرَحْمَتِهٖ . د الله تعالیٰ په وجود، او د هغه په کمال او عظمت او حکمت او رحمت باندې دلیلونه دی۔

يَّتَفَكَّرُوْنَ : دلته ئې تفکر راوړو څکه چه زوجیت د ثمراتو او انقلابات د شپې او د ورځو

فکر ته محتاج دی، او فکر هم دے ته وائی چه د محسوساتو نه معقولات راویستلے شی۔

| |
|---|
| وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجَاوِرَاتٌ وَجَنَّاتٌ مِّنْ أَعْنَابٍ وَزَرْعٌ |
| او په زمکه کښې ټکړے دی یو بل ته نزدے او باغونه دی د انګورونه او فصلونه |
| وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ يُسْقَىٰ بِمَاءٍ وَاحِدٍ وَنُفَضِّلُ |
| او کجورے څانګو والا او بے څانګو، خړوبه کولے شی په یو اوبو سره او غوره کوو |
| بَعْضَهَا عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ |
| بعضو لره په بعضو باندے په خوند کښې یقیناً پدے کښې خامخا نخے دی (په قدرت د الله) |
| لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٤﴾ |
| هغه قوم لره چه عقل نه کار اخلی۔ |

**تفسیر** : دا دریم دلیل عقلی دے او پدے کښې هم د الله تعالیٰ د قدرت او حکمت پنځه امور ذکر دی۔

قِطَعٌ مُّتَجَاوِرَاتٌ : اَیْ بِقَاعٌ مُخْتَلِفَةٌ ۔ یعنی په زمکه کښې ډیرے ټکړے دی چه یو بل ته نزدے دی لیکن د دوی په طبیعتونو کښې اختلاف وی لکه آبادے زمکے چه زرخیزے وی او څه خوره ناکے۔ څه مزیدارے خوږے او نرمے او څه بیکاره سختے او شاړے زمکے، چه د یو بل سره انښتی وی۔

یا مطلب دا دے چه د زمکے ټکړے یو بل ته نزدے وی۔ خاوره یوه وی، اوبه یو وی، لیکن پدے کښې پیدا کیدونکے دانے او میوے مختلفے وی، څه خوږے وی نو څه ترخے، څه غوره او خوندورے وی نو څه بد مزه۔ او په بعض زمکو کښې یوه میوه کیږی، بله پکښې نه کیږی۔ (فتح البیان)

وَزَرْعٌ : دا ئے مفرد راوړو ځکه چه زرع (یعنی فصل) په اصل کښې مصدر دے چه د ډیر او لږ ټولو دپاره استعمالیږی۔

صِنْوَانٌ : دا جمع د صِنْوٌ ده په وزن د تشنیه دے۔ دا هغه کجورو ونو ته وائی چه بیخ ئے یو وی او د هغے نه څانګے خورے شوی وی۔ او غیر صنوان هغه دی چه د بیخ نه یوه تنه ئے څانګو وی. او صنو کله مثل او مشابه ته هم وائی لکه حدیث کښې دی [ عَمُّ الرَّجُلِ صِنْوُ

أَبِيْهِ] (مسلم فی الزکاة حدیث: ۱۱)
نـو مـعـنـیٰ د آیـت دا ده چـه د کجورو ونـے کله د یو بل سره مشابه او مماثلے وی او کله نهٔ وی. (یعنی د کجورو ونـے هم د یو بل سره کله یو شان وی او کله د یو بل نه په تنو او څانګو او قدونو کښې مختلفے وی). (فتح)
یا صنوان د مخکنو تولو څیزونو سره لګی لکه باغونه، فصلونه، او کجورے.
دا ټولے نـخے د الله تـعـالیٰ د وحـدانـیت او د هـغـه پـه کامل قدرت دلالت کوی چـه کوم عـقلمند هم پدے کښې سوچ او فکر وکړی نو ایمان به راوړی چه کوم یو ذات چه پدے ټولو بانـدے قـادر دے هـغـه یـقـیناً انـسانانو لره په دوباره راژوندی کولو قادر دے بلکه دوباره پیدا کول د هغه دپاره زیات آسان دی. (القاسمیؒ)
وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلٰى بَعْضٍ :اُکُل په اصل کښې ماکول (خوړلے شوی څیز) ته وئیلے شی دلتـه تـرے مراد خوند او مزه ده. یعنی زمکه یوه ده او اُوبه هم یو قسم دی او حال دا دے چه میـوے مـخـتـلـفے او فصلونه مختلف راوځی چه د هر یو خوند او رنګ او طاقت او فائدے جـدا جدا دی، دا فرقونه چا پیدا کړل؟ آیا ماده او طبیعت به داسے وکړی؟ هیڅ کله نهٔ، بلکه دا کار صرف د رب العالمین دے.
او د حـسـن بـصـریؒ نـه نـقـل دی چه دا مثال دے چه الله تـعـالیٰ د آسمان نه د باران اُوبه راولیـږی او مختلفے میوے پیدا شی نو دغه شان الله تعالیٰ قرآن کریم راولیږلو نو د هغے په وجه [فَتَكُوْنُ الْقُلُوْبُ مُتَفَاوِتَةٌ] زړونو کښې تفاوت او فرق راغلو چا ډیر قبول کړو او چا ډیر او چـا تـرے انـکـار وکـړو، او چـا کـښې ډیره خوشبوئی پیدا شی او چا کښې لږه. لکه روستو دا مثال ښکاره الفاظو سره راغلے دے.
يَعْقِلُوْنَ : دا مـخـکـنـی کارونه معقولی وو چه عقل ته ئے ضرورت لرلو نو ځکه ئے دلته يَعْقِلُوْنَ ووئیل.

| وَاِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ |
| --- |
| او که تعجب کوے ته (حیرانیږے د دوی د انکار نه) نو ډیره ناشنا ده (حیرانتیا والا ده) |
| قَوْلُهُمْ ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا ءَاِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۬ اُولٰٓئِكَ |
| دا وینا د دوی چه آیا کله چه شو مونږ خاورے آیا مونږ به شو په پیدائش نوی کښې، دا |

| الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ وَاُولٰٓئِكَ الْاَغْلٰلُ فِيْٓ |
|---|
| هغه کسان دي چه کفرئے کړیدے په رب خپل او دا کسان طوقونه به وي په |
| اَعْنَاقِهِمْ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٥﴾ |
| څټونو د دوی کښې، او دا کسان اُور والا دي دوی به په هغے کښې همیشه وي۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې زجر دے منکرینو د بعث بعد الموت ته او هغوی باندے درے قسمونه ردونه ذکر کیږی۔

ربط

دا متعلق دے د ﴿لَعَلَّكُمْ بِلِقَاءِ رَبِّكُمْ تُوْقِنُوْنَ﴾ چه قرآن او دلائل ددے دپاره راغلی دی چه خلك قیامت ومنی، نو بعض خلك وائی چه قیامت نشی راتلے نو پدے خبره الله تعالیٰ سخت ناراضه کیږی او داسے بندگانو ته سزا ورکوی۔

وَاِنْ تَعْجَبْ اَیْ مِنْ اِنْکَارِهِمْ : نبی کریم ﷺ ته خطاب دے چه که تهٔ پدے خبره تعجب کوے او حیرانیږے چه د مکے کافران ستا تکذیب کوی حال دا چه د وړوکوالی نه دوی تا ته د صادق او امین په نوم سره آوازونه کول، او که دوی دا قرآن نهٔ منی او تهٔ پدے خبره تعجب کوے، نو ددے نه هم زیاته د تعجب خبره د دوی دا ده چه دوی د مرگ نه روستو د دویم ځلی ژوندی کیدو نه انکار کوی۔ او دا خبره د تعجب ځکه ده چه د قیامت په راتللو انتهائی ډیر دلیلونه موجود دی کوم چه مخکښې بیان شو نو کوم یو ذات چه ددغه عظیم قدرتونو مالك دے، د هغه دپاره د انسان دویم ځلی پیدا کول ډیر آسان دی، او دوی هغه نهٔ منی پدے وجه د بعث بعد الموت نه انکار ډیره عجیبه خبره ده۔ که د قرآن نه انکار وکړی نو دا دومره د تعجب خبره نهٔ ده ځکه چه دا د دوی د حال نه لرے بعیده ده، او قیامت خو ضروری او مهمه خبره ده، ددے نه څنګه انکار وکړے شی، آیا دا دنیا الله تعالیٰ عبث پیدا کړیده، هیڅ حساب کتاب به نهٔ وی؟!۔

فَعَجَبٌ: اَیْ فَذُوْ عَجَبٍ۔ یعنی تعجب والا دے۔

ءَ اِذَا كُنَّا تُرٰبًا : دا استفهام انکاری د دوی په قرآن کریم کښې یولس کرته ذکر دے۔ بار بار ئے د قیامت نه انکار کړیدے۔ نو الله تعالیٰ پرے درے ردونه کوی۔

كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ : دا اول رد دے۔ یعنی دا خلك پدے کار سره د خپل رب نه منکر دی ځکه

چه رب العالمين وائي چه زۀ به قيامت راولم او دوی ئے نۀ مني، نو د دوی د رب نه منکر دی د هغه قدرت نۀ مني۔ معلومه شوه چه څوك آخرت راتلل نۀ مني نو اګرکه هغه د الله تعالىٰ د وجود اقرار کوی مګر هغه به د الله تعالىٰ نه منکر حسابيږی۔
وَاُولٰٓئِكَ الْاَغْلَالُ: دا دویم رد دے چه دوی ته به د قيامت په ورځ په څټونو کښې رسئ او طوقونه واچولے شي۔ اغلال: جمع د غُلٌّ ده د وسپنے طوق (کړئ، پَل) ته وئیلے شي چه په څټ کښې اچولے شي، یا پړے لاسونه د څټ سره تړلے کیږی۔ یعني دوی به ذليله وتړلے شي لکه څنګه چه قيدي ذليله رابنکلے شي۔ ځيني وائي: د اغلال نه مراد د دوی بد عملونه دي چه دوی سره به انښتي وی لکه چه طوق د څټ سره انښتے وی۔
وَاُولٰٓئِكَ: دا دریمه سزا ده۔ چه دوی به په اُور کښې همیشه پراتۀ وی۔

| وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ وَقَدْ |
|---|
| او په جلتي سره غواړی دوی ستا نه عذاب مخکښې د نيکئ (ایمان راوړو) نه او حال دا چه |
| خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ |
| تير شويدي مخکښې د دوی نه عذابونه شرمونکي او يقيناً رب ستا خامخا خاوند |
| مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ وَاِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٦﴾ |
| د بخنے دے خلقو ته سره د ظلم د دوی نه او يقيناً رب ستا خامخا سخت عذاب والا دے۔ |

**تفسير**: پدے آيت کښې د ايمان راوړو نه مخکښې عذاب په جلتئ سره غوښتو باندے زجر ورکوی۔ د نبی کریم ﷺ او د قرآن کريم تکذيب کونکو به د هغۀ پورے توقے کولے او وئيل به ئے چه که تۀ رشتينی ئے نو د کوم عذاب خبره چه کوے هغه ولے نۀ راځي، يعني په ځای ددے چه دوی د الله تعالىٰ نه د عافيت او د سلامتيا سوال کړے وے، د عذاب مطالبه کوی، حال دا چه د دوی نه مخکښې داسے قومونه تير شويدي چه هغوی رسولان دروغجن کړل نو الله تعالىٰ په هغوی عذاب نازل کړو، نو بيا دا خلق د هغوی د انجام نه عبرت ولے نۀ حاصلوی او يريږی ولے نۀ چه چرته دوی هم د الله په عذاب کښې راګير نشي۔
قَبْلَ الْحَسَنَةِ: د حسنے نه مراد ايمان راوړل او د شرك نه توبه کول دی۔
الْمَثُلٰتُ: اَيِ الْعُقُوْبَاتُ الْفَاضِحَةُ فِی الْاَقْوَامِ الْمُكَذِّبَةِ۔ (يعني شرمونکے سزاګانے په تير

شوی قومونو کښې). جمع د مَثُلَة ده، یا د مُثْلَة. شرمونکے سزا ته وائی او دے ته مثله ځکه وائی چه ددے سزا او د دغه جرم (گناه) ترمینځ په ناکاره کیدو کښې مماثلت (یو شان والے) دے. ابن الانباریؒ وائی : مثله هغه سزا ته وئیلے شی چه په هغے کښې د سزا ورکړے شوی شخص شکل بدل شی لکه پوزه او لاسونه وغیره پریکړے شی او خیټه څیری کړے شی.

خیښی وائی : مثله هغه سزا ته وائی چه په انسان نازله شی نو هغه د خلکو دپاره مثال وګرځی چه نور خلك په هغے سره منع شی. (فتح البیان وابن عاشورؒ)

**لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰی ظُلْمِهِمْ:** دلته مفسرینو دا اشکال لیکلے دے چه الله تعالیٰ مشرکانو ته څنګه بخنه وکړی سره د شرك او کفر نه؟ حال دا چه دا خو د اصولو د اسلام خلاف ده؟ ۱ – نو بیا ئے جواب دا کړیدے چه دلته ورسره توبه مراد ده. (اَیْ بِشَرْطِ التَّوْبَةِ) یعنی اګرکه مخکښې ئے کفر او شرك کړے وی لیکن کله ئے چه توبه ویستله نو الله تعالیٰ ورته تیر شوے کفر او شرك معاف کوی. (۲) لیکن ظاهر دا ده چه مغفرت دوه قسمه دے. ❀ یو ګناه ختمول او په هغے سزا نه ورکول دی. ❀ او دویم : تاخیر العذاب (د عذاب روستو کولو) او مهلت ته وائی. نو هر کافر ددے لائق دے چه الله تعالیٰ ورله سمدست عذاب ورکړی او ختم ئے کړی لیکن رب العالمین بندګانو ته تاخیر کوی او دا د الله تعالیٰ احسان دے بندګانو سره او په دوی باندے ډیر شفقت دے. (ابن عاشورؒ)

نو بے تفسیر دا شو چه د مغفرت نه مراد عذاب روستو کول دی او د ظلم نه مراد شرك دے. ❀ ب : د ظلم نه مراد د شرك او کفر نه ماسویٰ نور ګناهونه دی او د ((الناس)) نه مراد مؤمنان دی، معنیٰ دا ده : چه یقیناً رب ستا بخنه کوی مؤمنانو ته سره د ګناهونو د هغوی نه کله چه وغواړی او که وغواړی نو عذاب به څه وخته پورے ورکړی.

| وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ |
|---|
| او وائی هغه کسان چه کفرئے کړیدے ولے نهٔ شی نازلیدے په دهٔ باندے معجزه د طرف |
| رَّبِّهٖ ۭ اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ﴿۷﴾ |
| د رب ددهٔ نه یقیناً تهٔ خو یره ورکونکے ئے، او د هر قوم دپاره دعوت ورکونکے ئے. |

**تفسیر** : پدے ایت کښې زجر دے منکرینو ته په طلب کولو د معجزاتو. د مکے کافرانو په سترګو باندے د کفر او عناد داسے پټئ تړلے شوے وے چه د الله تعالیٰ د وحدانیت او د

هغهٔ د قدرت او خالقیت تولے نخے لیدلو سره سره په هغوی کښ هیڅ تبدیلی نهٔ راتله او په هغه نخو سره دوی ته هیڅ ایمانی فائده نهٔ رسیدله، او وئیل به ئے چه که محمد (ﷺ) د الله پیغمبر وی نو د موسیٰ او عیسیٰ (علیهما السلام) په شان نخے ولے نهٔ پیش کوی، یا مونږ چه د کومو نخو مطالبه کوو، هغه ولے نهٔ راوړی؟۔

مشرکانو به کله وئیل چه اے محمد ! که تهٔ د الله نبی ئے نو د صفا غونډئ نه سرهٔ زر جوړ کړه، یا غرونه لرے کړه او ددے په ځای نهرونه روان کړه۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته وفرمایل چه ستا کار صرف پیغام رسول دی، د کافرانو د خوښے مطابق نخے پیش کول نهٔ دی۔ او دا کار نبی ﷺ په پوره طریقه سره کړے، خپل تول ژوند ئے لګولے او هیڅ نقصان ئے نهٔ دے پریخے۔ الله تعالیٰ دِے هغه ته د امتِ اسلامیه د طرف نه جزائے خیر ورکړی۔

وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ : (۱) اَیْ اَنْتَ لِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ۔ یعنی تهٔ د هر قوم دپاره هدایت کونکے ئے۔

(۲) یا لِكُلِّ قَوْمٍ خبر مقدم او (هَادٍ) مبتداء موخره ده۔

معنیٰ دا ده چه د هر قوم دپاره یو هدایت کونکے وی، دا د الله تعالیٰ طریقه ده چه هر قوم ته خامخا هدایت کونکے نبی رالیږی لکه څنګه ئے چه تهٔ رالیږلے ئے نو مخکښی امتونه ئے هم همداسے نهٔ دی پریښی بلکه هغوی ته ئے هم انبیاء علیهم السلام رالیږلی دی۔ او هغوی ته ئے د حالاتو او د زمانے مطابق مختلفے نخے ورکړی چه د هغوی په نبی کیدو باندے دلیل وو۔ (ابن عاشورؒ)

(۳) خینو دا تفسیر بیان کړیدے چه (لِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ هُوَ اللّٰهُ سُبْحَانَهٗ) ستا کار خو صرف یرول دی او قومونو ته هدایت کول او هغوی نیغے لارے ته راوستل د الله تعالیٰ کار دے۔

هَادٍ : د ابن عباسؓ نه نقل دی چه د هادی نه مراد داعی دے۔ (فتح البیان)

| اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا |
|---|
| الله پوهیږی په هغه څه چه پورته کوی ئے هره زنانه (په خیټه کښ) او په هغه څه |
| تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ ﴿۸﴾ |
| چه کموی ئے رَحمونه او هغه چه زیاتوی ئے، او هر شے د الله سره په خاص اندازه سره دے۔ |
| عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ ﴿۹﴾ سَوَآءٌ |
| پوهه دے په هر پټ او ښکاره، ډیر لوئی دے، پورته دے۔ برابر دی (د الله په علم کښ) |

| مِّنكُم مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَن جَهَرَ بِهِ وَمَنْ |
| --- |
| ستاسو نه هغه څوك په پټوى خبره او هغه څوك چه ښكاره هغے لره او هغه څوك |
| هُوَ مُسْتَخْفٍ بِاللَّيْلِ وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ ﴿١٠﴾ |
| چه هغه پټيدونكے وى د شپے او گرځيدونكے وى د ورځے۔ |

**تفسیر:** ربط :

١- مخكښى د الله تعالىٰ تعارف وو په قدرتونو ذكر كولو سره، اُوس تعارف دے په علم د الله تعالىٰ سره۔

٢-دا متعلق دے د (لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ) سره يعنى د مكے د مشركانو د خوښے مطابق بدے وجه نخے نهٔ دى راليږلے شوى چه د ټولو كارونو حكمتونه صرف الله ته معلوم دى، د هغهٔ په علم كښى دى چه كوم شے په دنيا كښى كله واقع كيدل پكار دى، هغه د كافرانو د جاهلانه افكارو او خيالاتو پابند نهٔ دے۔ (ابن عاشورؒ)

اَللهُ يَعْلَمُ : يعنى صرف هغه الله پوهيږى چه د هرے مادے په خيټه كښى څه شے دے، مذكر دے كه مؤنث، ښائسته دے كه بد رنگ، نيك بخت دے كه بدبخت، او په هغه كښى د كوم اندام كمے دے كه زياتے۔ يا به ماشوم نهه مياشتے روستو پيدا كيږى او كه ددے نه مخكښى يا ددے نه روستو۔

وَمَا تَغِيضُ الْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ : رَحِمونه چه څه كموى يا ئے زياتوى په هغے هم الله تعالىٰ پوهه دے، ١- د كمولو او زياتولو نه مراد دا دے چه كله وينه د حيض وځى نو كمه شى او كله چه بنده شى نو زياته شى۔ ٢- يا د ماشوم بعض اندامونه كم پيدا شى او د بعضو زيات۔ ٣- يا د يوے نطفے نه يو بچے پيدا شى او كله ترے دوه او درے پيدا شى۔

٤- او كله يو ماشوم د مودے نه مخكښى پيدا شى او كله روستو شى۔

٥- ابن عاشورؒ وائى : چه ظاهر دا ده چه د رحم كمول كنايه ده د حمل اخستو نه څكه چه كله حمل واخستے شى نو وينه د حيض بنده شى، او د رَحِم نه وينه بهيدل د رحم زياتوالے دے۔

وَكُلُّ شَيْءٍ عِندَهُ بِمِقْدَارٍ : ١- يعنى هر شے د الله تعالىٰ سره په اندازه دے، يعنى الله تعالىٰ چه هر شے پيدا كړيدے نو په اندازے سره۔ د زنانه په رَحِم كښى بچے نهه مياشتے

ساتي نهٔ لس کاله، ځکه چه پدے کښې زنانه ته ضرر وي، دغه شان اُوبه، هواګانې، خوراکونه الله تعالیٰ په اندازه سره نازلوي. نو د مقدار نه مراد تقدیر دے. یعني ټول ځیزونه د الله په نیز د اندازے مطابق روان دي.

۲- یا د عِندَهٗ نه مراد د الله تعالیٰ علم دے. یعني الله تعالیٰ د هرشي کیفیت او کمیت په تفصیلي طریقه سره پیژني چه هیڅ ابهام پکښې نهٔ وي. او پدے کښې رد دے په هغه فلاسفو چه وائي چه الله تعالیٰ په کلیاتو پوهیږي نهٔ په جزئیاتو (العیاذ بالله) دے دپاره چه تعلق د علم په حوادثو پورے لازم نشي. (ابن عاشور)

۳- یا دا دے عِندَهٗ نه مراد دا دے چه الله تعالیٰ د هرشي د واقع کیدو دپاره یو معین وقت او خاص حالت مقرر کړیدے په خپل ازلي مشیئت سره. (فتح البیان)

دے نه روستو ئے وفرمایل چه هغه د هرشي یو معین حد مقرر کړیدے چه د هغے نه هغه نشي وتلے.

عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيرُ الْمُتَعَالِ: هغه په هر غائب او حاضر او هر نشت او موجود شي خبر لري، هغه عظیم ذات دے، هرشے د هغهٔ په لاس کښې دے، او هغه د خپل قدرت او عظمت په ذریعه په هرشي باندے غالب دے.

الْمُتَعَالِ : ۱- اَلْمُتَعَالِيْ عَمَّا يَقُوْلُهُ الْمُشْرِكُوْنَ. الله تعالیٰ پورته دے د هغه خبرو نه چه مشرکان ئے وریسے وائي. ۲- اَلْمُسْتَعْلِيْ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ بِقُدْرَتِهٖ وَعَظْمَتِهٖ وَقَهْرِهٖ. یعني د خپل قدرت او عظمت او غلبے په وجه په هرشي باندے غالب دے.

۳- اَلْمُتَعَالِيْ عَنِ الْخَلْقِ بِاسْتِوَائِهٖ عَلٰى عَرْشِهٖ وَمُبَايَنَتِهٖ عَنْ خَلْقِهٖ. پورته دے د مخلوقاتو نه ځکه چه په عرش باندے برابر دے او د مخلوق نه جدا دے. او همدا قول غوره دے.

سَوَآءٌ مِّنْكُمْ : اَيْ فِيْ عِلْمِهٖ. یعني د الله په علم کښې برابر دي ښکاره او پټه خبره او برابره ده چه څوک د شپے په تیاره کښې پټیدو سره یو کار وکړي یا د ورځے په رڼرا کښې ئے خلکو ته وربنائي.

وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ : ۱- کرځیدونکے. ۲- ښکاره کیدونکے. دویمه معنیٰ ظاهره ده.

| لَهٗ مُعَقِّبَاتٌ مِّنْ بَيْنِ يَدَيْهِ |
| --- |
| د الله په اختیار کښې دي وار په وار راتلونکي ملائك مخکښې د انسان نه |

| وَمِنْ خَلْفِهٖ يَحْفَظُوْنَهٗ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا |
|---|
| او روستو د هغه نه، چه حفاظت کوی ددهٔ په حکم د الله يقيناً الله نهٔ بدلوی هغه نعمت |
| بِقَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ |
| چه کړے وی په يو قوم تردے چه دوی بدل کړی هغه نعمت چه د دوی په ځانونو شوے وی |
| وَاِذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ سُوْٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ |
| او کله چه اراده اُوکړی الله په يو قوم باندے د تکليف نو نشته واپس کونکے د هغے |
| وَمَا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّالٍ ﴿۱۱﴾ |
| او نشته د دوی دپاره سوئ د الله نه څوك بچ کونکے۔ |

**تفسير** : دا هم د الله تعالیٰ په تصرف او علم باندے عقلی دليل دے۔

**لَهٗ** : دا ضمير يا الله ته راجع دے يعنی د الله په اختيار کښ دی۔

(۲) يا ضمير انسان ته راجع دے۔

**مُعَقِّبٰتٌ**: نه مراد هغه ملائك دی چه نمبر په نمبر د انسانانو د حفاظت دپاره راځی، او دا غير دی د کراما کاتبين نه لکه الله تعالیٰ په سورة الانعام آيت (۶۱) کښ فرمائی : ﴿ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ﴾ (چه الله تعالیٰ په تاسو باندے رالیږی حفاظت کونکی ملائك)۔ چه دا مخکښ روستو او ښی او ګس طرفته وی او د هر طرفنه ئے احاطه کړی وی او ددے بندګانو حفاظت کوی ځکه چه انسانانو ته ډير دشمنان متوجه دی، پيريان، شيطانان، ماران لړمانان، نور حشرات او حيوانات د زمکے۔ نو په انسان باندے ډيره خواری کيږی، تو له بادشاهی ددهٔ دپاره روانه ده ځکه چه د انسان عمل الله تعالیٰ ته ډير محبوب دے چه هغه ته سجده ولګوی، او د هغهٔ سره تعلق جوړ کړی۔ او کله چه بنده دا مقصد نهٔ پوره کوی نو الله تعالیٰ پرے دغه مخلوق مسلط کړی او د الله تعالیٰ مدد ترے کټ شی۔

**مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ** : مِنْ په معنیٰ د باء سره دے۔ اَیْ بِاَمْرِ اللّٰهِ يعنی د الله په حکم سره ئے حفاظت کوی۔ يا مِنْ اجليه دے يعنی د وجه د حکم د الله تعالیٰ نه دوی ته۔

بخاریؒ او مسلمؒ د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت کړيدے چه نبی کريم ﷺ وفرمايل :

((د الله ملائك تاسو سره وی، څه ملائك د شپے وی او څه د ورځے، او د سهار او د مازيګر

په مانځه کښې جمع کیږي، د شپې ملائك چه کله بره لاړ شي نو الله د دوی نه تپوس کوي چه تاسو زما بندګان په کوم حال کښې وموندل (حال دا چه هغه ته بهتره معلومه وي) نو ملائك وائي چه مونږ چه کله د هغوی خوا ته ورغلي وو نو هغوی مونځونه کول او کله چه د هغوی نه رخصت شو نو هم مونځ ئې کولو))۔

(بخاري: ٥٥٥ ومسلم: ١٤٦)

إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ : دا جواب د سوال دے چه هر کله الله تعالیٰ د ملائکو په ذریعه ددے بندګانو حفاظت کوي نو بیا په دوی باندے مصیبتونه او عذابونه ولے راځي؟ نو جواب کوي چه بنده چه کله ګناه وکړي، شرك او کفر وکړي نو ملائك ددۀ نه جدا شي، نو مصیبت او عذاب پرے راشي۔ لکه حدیث کښې دي چه کله بنده دروغ ووائي نو د هغه نه ملائك یو میل وړاندے لاړ شي ځکه چه د هغه د خولے نه سخته بدبوئي لاړه شي،آه۔

دغه شان نور ګناهونه واخله۔ (الترمذی (١٩٧٢) وحسنه ولکن اسناده ضعیف جدا سلیمان النهدی متروك وعبد الرحیم بن هارون کذبه الدارقطنی(البانی)

یعنی الله تعالیٰ د هیڅ یو قوم نه خپل نعمتونه تر هغه وخت پورے نۀ زائل کوي ترڅو چه هغوی خپل حالت بدل کړے نۀ وي، یعني د خیر او صلاح او د توحید او د ایمان د لارے نه منحرف او جدا شي او معاصي او ګناهونه شروع کړي۔ او بنده کله د نورو خلقو د ګناهونو په وجه سره په عذاب او مصیبت کښې اخته کیږي، لکه چه بخاريؒ او مسلمؒ د زینب بنت جحش رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه یو شخص د رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو چه [أَنُهْلَكُ وَفِينَا الصَّالِحُونَ ؟] آیا په مونږ کښې د نیکانو خلقو د موجودیدو سره به هم مونږ هلاك کړے شو؟۔ نبي ﷺ وفرمایل [نَعَمْ إِذَا كَثُرَ الْخَبَثُ] آو، کله چه ګناهونه زیات شي۔ (بخاری: ٣٣٤٦ ومسلم: ٧٤١٦)

حَتَّى يُغَيِّرُوا مَا بِأَنْفُسِهِمْ : یعنی ترڅو چه دوی بدل کړي هغه حالت چه د دوی په نفسونو باندے وي۔ یعني د دوی ګناهونه د حالت د بدلولو سبب جوړ شي۔

وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِقَوْمٍ : (١) دا هم جواب د سوال دے چه کله یو انسان یو عمل نۀ وي کړے او حال دا چه په هغه باندے مصائب راځي نو ملائك څنګه حفاظت کوي؟

حاصل د جواب دا دے چه هر مصیبت د الله تعالیٰ په اراده سره راځي، نو اراده د الله تعالیٰ لره ملائك نشي واپس کولے او نور مخلوق هم مدد نشي کولے۔

سیدنا علي ﷺ فرمائي کله چه تقدیر راشي نو بیا ملائك هم حفاظت پریدي۔ (فتح البیان)

(۲) یا دا د مخکښ ﴿حَتّٰی یُغَیِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ﴾ سره متعلق دے او پدے کښ تاکید دے په یره ورکولو کښ۔ او مطلب دا دے چه کله الله تعالیٰ اراده وکړی چه د یو قوم نه نعمت واخلی کله چه هغوی په خان باندے د دغه نعمت حالت بدل کړی په گناهونو سره نو د هغه اراده هیڅوك نشی واپس کولے۔ (ابن عاشور)

فَلَا مَرَدَّ لَهٗ : مرد مصدر میمی دے، یعنی نشته واپس کیدل د هغے۔ یا مصدر په معنیٰ د اسم فاعل دے ای فَلَا رَادَّ لَهٗ. نشته هیڅوك واپس کونکے د هغے۔

وَّالٍ: اَیْ وَّالٍ یَلِیْ اَمْرَهُمْ وَیَلْتَجِئُوْنَ اِلَیْهِ فَیَدْفَعُ عَنْهُمُ الْعُقُوْبَةَ ۔ یعنی داسے تصرف کونکے به نه وی چه د دوی د کار واکداری وکړی او دوی هغه ته توجه وکړی او هغه ترے عذاب لرے کړی۔ (فتح البیان) او حاصل معنیٰ د والی ده: بچ کونکے۔

| هُوَ الَّذِیْ یُرِیْکُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّیُنْشِئُ |
|---|
| الله هغه ذات دے چه دربنائی تاسو ته بریښنا دپاره د یرے او دپاره د طمع او پیدا کوی هغه |
| السَّحَابَ الثِّقَالَ ﴿۱۲﴾ وَیُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِکَةُ |
| وریځو درنو لره۔ او پاکی بیانوی رعد ملائك سره د صفتونو د الله نه او ملائك هم |
| مِنْ خِیْفَتِهٖ وَیُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَیُصِیْبُ بِهَا مَنْ یَّشَآءُ |
| د وجے د یرے د الله تعالیٰ نه او رالیږی تندرونه نو رسوی هغے لره هغه چا ته چه اُوغواړی |
| وَهُمْ یُجَادِلُوْنَ فِی اللّٰهِ وَهُوَ شَدِیْدُ الْمِحَالِ ﴿۱۳﴾ |
| او دوی جګړه کوی په باره د الله کښ او هغه سخت نیونکے دے۔ |

**تفسیر** : دا بل عقلی دلیل دے چه پدے کښ د الله تعالیٰ نور تصرفات ذکر دی۔ د خپل کامل قدرت او عظمت او جلال او جبروت ښکاره کولو دپاره ئے د بریخنا او د تندر یعنی آسمان نه راپرېوتونکی اُور تفصیلات بیان کړیدی۔

خَوْفًا وَّطَمَعًا ۱- بعض بندگان ویریږی چه باران به وشی، تکلیف به جوړ شی، یا د تندر نه ویریږی، او بعض طمع لری چه باران به وشی، فصلونه به تازه شی، او فائدے او اُوبه به حاصلے شی ۲- خَوْفًا مِنَ اللّٰهِ وَطَمَعًا مِنَ اللّٰهِ ۔ یعنی کله چه وریځے او د بریخنا پرق راشی نو بعض بندگان ویریږی چه چرته د الله عذاب رانشی لکه رسول الله ﷺ به دا احساس

زیات کولو او کامل مؤمنان نے هم کوي، رسول الله ﷺ به چه کله وریځ ولیدله نو فرمایل به ئے: [اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا اُرْسِلَ بِهٖ]
اے الله ! زهٔ په تا پورے ددے وریځے د شر نه پناه غواړم).
(ابن ماجه : ۳۸۸۹ واسناده صحیح، الصحیحه رقم : ۲۷۵۷)
او چه کله باران شروع شي نو بندګان د الله نه د خیر طمع لري.
**وَيُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ:** یعنی الله تعالیٰ راپیدا کوی درنے وریځے چه په تهونو اوبه پکښې پرتے وی

## رعد څه شے دے؟

**وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ:** ۱- په حدیث د احمدؒ او ترمذیؒ کښې دی چه رعد یو ملائك دے چه په وریځو مقرر دے او د هغه سره د اور ډبلئ وي چه په هغے سره وریځے شړی کوم ځای ته چه الله تعالیٰ وغواړی او هغه چه کله وریځے شړی نو د هغے نه یو آواز پیدا کیږی.
(ترمذی ۳۱۱۷ واحمد : ۲٤۸۳) وسندهما حسن).
او دا ملائك هر وخت تسبیح او حمد لولی خاصکر په وخت د باران وریدلو کښې. او کله الله تعالیٰ انسانانو ته د هغه آواز واوروی او کله نهٔ. او دا ئے د نورو ملائکو نه جدا ذکر کړو ځکه چه پدے تسبیح وئیلو باندے ددهٔ زیات خصوصیت او زیات اهتمام دے. مونږ ته صرف د هغه آواز رارسیږی نهٔ تسبیحات. (فتح البیان)
۲- دویم قول دا دے چه د رعد نه مراد آواز د دغه ملائك دے او دے ته ئے نسبت د تسبیح وئیلو کړیدے پدے کښې څه استبعاد نشته ځکه چه الله تعالیٰ قادر دے چه د دغه ګړه زاری نه هم د تسبیح آواز راوباسی. ﴿وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ﴾ (اسراء : ٤٤) (هر شے د الله تسبیحات وائی لیکن تاسو پرے نهٔ پو هیږئ).
۳- ځینی وائی : دلته مضاف پټ دے [ اَیْ وَيُسَبِّحُ سَامِعُوا الرَّعْدِ] پاکی بیانوی هغه خلك چه ګړه زارے واوری. مګر اولنی قول نه غوره دی.
ابن عاشورؒ لیکی : دا جمله ئے د نصیحتونو په مینځ کښې په مشرکانو باندے د تعریض دپاره ذکر کړه. یعنی د الله تعالیٰ تسبیحات او پاکیانے ملائك بیانوی نو الله تعالیٰ ستاسو د پاکی بیانولو نه مستغنی دے، د هغه نور مخلوق شته چه صحیح عبادت ئے کوی او د هغه پاکی بیانوی. (التحریر)

الصَّوَاعِقَ : تندرونه۔ جمع د صَاعِقَةٌ ده، هغه عذاب ته وئیلے شی چه د بریخنا نه نازلیږی، ځینی وائی : دا هغه سخت آواز ته وائی چه د فضاء نه خکته راشی بیا پدے کښں کله اُور وی او کله عذاب او کله مرګ۔

کرخیؔ وائی : د صاعقے حال ډیر ناشنا دے څکه چه دا یو اُور وی چه په وریځو کښں پیدا شی او کله چه د وریځے نه راپریوزی نو ډیر کرته په دریاب کښں ننوزی او مهیان وسیزی۔

امام محمد بن علی الباقرؒ ته منسوب دی چه صاعقه مسلمان او غیر مسلم تولو ته رسیږی مګر ذاکر (ذکر کونکی) ته نهٔ رسیږی۔ (فتح البیان)

وَهُمْ يُجَادِلُوْنَ : یعنی سره ددے طاقتونو نه بیا هم کافران د الله په باره کښں د رسول الله ﷺ سره جګړے کوی، د بعث بعد الموت نه انکار کوی، د کبر او عناد په وجه سره د عذاب په راتللو جلتی کوی، د قرآن کریم او رسول پورے توقے کوی، او د خپلے خوښے مطابق د نخو مطالبه کوی، او ددے خبرے نه قطعاً غافل وی چه د الله تعالیٰ تدبیر او د هغهٔ رانیول ډیر سخت وی۔ کله چه د هغهٔ په نیولو کښں راشی نو هیڅ طاقت هغوی ته نجات نشی ورکولے۔

فِي اللّٰهِ : اَیْ فِیْ ذَاتِهٖ وَتَوْحِیْدِهٖ وَفِیْ اَمْرِهٖ۔ یعنی دوی جګړے کوی په باره د ذات د الله تعالیٰ کښں چه هغه نهٔ منی، او د هغهٔ په توحید کښں او د هغهٔ د امر په باره کښں چه هغه وائی قیامت به راځی دوی ئے نهٔ منی۔

الْمِحَالِ: ۱- محال یوه معنیٰ د قوّت ده (مجاهدؒ) ۲- شَدِیْدُ الْاَخْذِ ۔ سخت رانیونکے دے۔ (علی بن ابی طالبؓ) ۳- شَدِیْدُ الْغَضَبِ۔ (وهب بن منبهٔؒ) سخت غضب والا دے۔

٤-شَدِیْدُ الْهَلَاكِ بِالْمَحْلِ وَهُوَ الْقَحْطُ۔ (حسن بصریؒ) سخت هلاکونکے په قحط سره۔

٥- شَدِیْدُ الْعُقُوْبَةِ وَالْمَكْرُوْهِ۔ سختے سزا او مصیبت والا۔ (ابوعبیدةؒ) (القرطبیؒ وفتح البیان)

ابن عاشورؒ لیکی : که میم اصلی وی نو بیا دا د مَحْلٌ نه دے په معنیٰ د کید او مکر جوړولو سره۔ او که میم پکښں زائد وی نو بیا د حَوْلٌ نه دے په معنیٰ د قوت او طاقت سره،آه۔ نو اولنی دوه تفسیرونه پکښں غوره شو۔ او دا باقی تفسیر باللوازم دے۔

| لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ |
|---|
| خاص د الله بلنه حقه ده او هغه کسان چه دوی رابلی سویٰ د الله نه، نشی قبلولے دوی لره |

| بِشَیۡءٍ اِلَّا کَبَاسِطِ کَفَّیۡهِ اِلَی الۡمَآءِ |
|---|
| هیڅ شے (نۀ دے د دوی مثال) مګر په شان د اوږده ونکی د ورغوو دے اوبو ته |
| لِیَبۡلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ وَمَا دُعَآءُ الۡکٰفِرِیۡنَ |
| دے دپاره چه اورسی خولے ددۀ ته او نۀ دی هغه رسیدونکی دۀ ته او نۀ ده دعا د کافرانو |
| اِلَّا فِیۡ ضَلٰلٍ ﴿۱۴﴾ |
| مګر په بربادئ کښ ده۔ |

**تفسیر**: دا آیت نتیجه ده د مخکنو دلیلونو۔

لَهٗ دَعۡوَةُ الۡحَقِّ ۱– اَیِ الَّتِیۡ لَهَا اسۡتِجَابَةٌ ۔ خاص د الله دپاره ده دعاء (بلنه)حقه چه د هغے قبلیدل کیدے شی او که د نور چا نه دعا وغوبتے شی نو د هغے قبلولے نشی کیدے۔ لکه د روستو نه معلومیږی۔ نو پدے کښ دعوت دے بندګانو ته چه الله تعالیٰ هغه ذات دے چه ستاسو دعاګانے قبلوی او بتان او باطل آلهه ستاسو دعاګانے قبولی کړی؟! هیڅکله ئے نشی نو بس صرف د الله تعالیٰ نه دعا غواړئ۔

۲– یا مطلب دا دے چه (لَهٗ) خبر مقدم او (دَعۡوَةُ الۡحَقِّ) کښ اضافت د موصوف دے صفت ته دا مبتداء موخره ده۔ معنیٰ دا ده چه حقه بلنه خاص الله تعالیٰ لره ده او د غیر الله بلنه باطله ده۔ ۳– د دعوة الحق نه مراد کلمه د توحید او اخلاص ده۔

[اَیۡ لِلّٰهِ مِنۡ خَلۡقِهٖ اَنۡ یُّوَحِّدُوۡهُ وَیُخۡلِصُوۡا لَهٗ] د الله دپاره د هغۀ په مخلوق دا لازمه ده چه د هغۀ توحید به منی او د هغۀ دپاره به په عبادت کښ اخلاص کوی۔

٤– یا د دعوة نه مراد عبادت دے، یعنی د الله تعالیٰ عبادت همدغه حق او رشتینی دے۔ او که د بل چا عبادت وکړے شی نو هغه به باطل او دروغجن وی۔

اولنے او دویم تفسیر غوره دے د روستو سره بنه لګی۔ داسے نور تفسیرونه هم صاحب د فتح البیان وغیره ذکر کړیدی۔

وَالَّذِیۡنَ : ددے نه مراد باطل معبودان دی۔ یَدۡعُوۡنَ په اصل کښ یَدۡعُوۡنَهُمۡ دے یعنی چه دا مشرکان ئے رابللی او رامدد شه ورته وائی۔ هغوی ورله هیڅ حاجت نشی پوره کولے۔

اِلَّا کَبَاسِطِ : اَیۡ لَیۡسَ حَالُ مَنۡ یَّدۡعُوۡ غَیۡرَ اللّٰهِ اِلَّا کَبَاسِطِ کَفَّیۡهِ ۔ یعنی څوک چه غیر الله رابلی د هغۀ حال نۀ دے مګر د هغه چا په شان دے چه هغه اوبو ته دواړه لاسونه اوږده کړی

وی پدې مقصد چه اُوبه ددهٔ خولې ته راورسي او اُوبو ته آواز کوی چه زما خولې ته راشي، لیکن هغه اُوبه ددهٔ خولې ته هیڅکله نشي رسیدې. نو دغه شان که څوك باباګانو او غیر الله ته آواز کوی چه یا علي مدد، یا رسول الله! ای پیره بابا! راممدد شه نو هغه ددهٔ آواز نهٔ آوري، او نهٔ ترې خبر وی او ددهٔ حاجت نشي معلومولې. ددهٔ نه لرې وی، یا مړ وی نو ددهٔ حاجت هیڅکله نشي پوره کولې، نو د باطلو معبودانو تشبیه ئې ورکړیده د اُوبو سره چه نهٔ وینې او نهٔ آوري او نهٔ چا ته پخپله رسیدلې شي.

كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ: بل مطلب دا دې چه اُوبو کښې ئې دننه لاسونه کولاؤ کړی وی نو بیا هم ددهٔ خولې ته اُوبه نشي راتللې ترڅو پورې ئې چه لاس ترې ډك کړې نهٔ وی. لیکن دا مطلب دومره غوره نهٔ دې. ځکه چه (إلی الماء) ورسره صحیح نهٔ لګي.

وَمَا دُعَآءُ الْكَافِرِيْنَ: اَیْ غَیْرَ اللّٰہِ. یعنې دعا د کافرانو د غیر الله ته نهٔ ده مګر په بربادئ کښې.

فِيْ ضَلَالٍ: اَیْ فِیْ ضِیَاعٍ وَبُطْلَانٍ. یعنې په ضائع کیدو او بربادیدو کښې.

سورة المؤمن (٥٠) آیت کښې دی چه جهنمیان به جهنم کښې الله تعالیٰ نه دعا غواړی لیکن هغه به هم برباده وی ﴿وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِيْنَ إِلَّا فِيْ ضَلَالٍ﴾ اَیْ فِی الْآخِرَۃِ.

یعنې د کافرانو دعا په آخرت کښې که د الله تعالیٰ نه کوی هم برباده ده، هیڅ فائده نهٔ ورکوی او هرچه په دنیا کښې د الله تعالیٰ نه دعا غواړی نو هغه صحیح ده.

او دلته د غیر الله نه د دعا غوښتلو بربادی ذکر ده. یا دعاء الکافرین عام دې نو مطلب دا دې چه په دنیا کښې کافران د الله تعالیٰ نه دعا غواړی نو هغه هم برباده ده، یعنې په هغې اجر او ثواب نشته اګرکه کله ناکله به ئې پرې حاجت پوره شي.

| وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| --- |
| او خاص الله لره سجده کوی هغه څوك چه په آسمانونو او زمکه کښې دی |
| طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلَالُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ ﴿١٥﴾ (س) |
| (څوك) په خوښه او (څوك) په زوره او سوری د دوی په صبا او بیګاه. |

**تفسیر**: بیا د الله تعالیٰ عظمت بیانیږی. ١ - د سجدې نه تذلل، عاجزی او تابع کیدل مراد دی. یعنې په آسمانونو او زمکه کښې چه څومره څیزونه دی، ټول د الله تعالیٰ د ارادې

او مشيت او د هغهٔ د حکم تابع دی. هيڅ شے هم د هغهٔ د حکم نه د يوے ذرے برابر سر نشي تاوولے.

۲- څيني وائي چه دلته د سجدے نه مراد حقيقي سجده ده، يعني د الله د تعظيم دپاره په زمکه باندے تندے لګول. نو ايمان والا انسانان او پيريان او ملائك په واقع کښې صبا او بيګاه يعني هميشه الله تعالیٰ ته سجدے لګوی، او کافران په حالت د اضطرار او مجبورتيا کښې الله تعالیٰ ته سجده کوی، لکه چه الله په سورة عنکبوت آيت (٦٥) کښې فرمايلی دی: ﴿ فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ﴾ چه (کله دوی په کشتئ کښې سوريږی نو الله لره په پوره اخلاص سره رابلی). دغه شان د انسانانو او د نورو تمامو مخلوقاتو سوری هم الله تعالیٰ ته سجدے کوی. کله چه څوك الله تعالیٰ ته سجده کوی، نو د هغه سورے هم د هغه سره د الله مخے ته خکته کيږی.

ابن الانباريؒ وائی: دا بعيده نهٔ ده چه الله تعالیٰ سورو لره فهم ورکړی لکه غرونو له ئے ورکړيدے چه هغوی د الله تعالیٰ په تسبيحاتو مشغول کيږی نو سورے د مؤمن الله تعالیٰ ته په خوشحالئ سره سجده کوی او سورے د کافر الله تعالیٰ ته په زوره سجده کوی.

الله تعالیٰ په سورة النحل آيت (٤٨) کښې فرمائيلی دی:

﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِّلَّهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ ﴾ يعني (آيا دوی ليدلی نهٔ دی چه الله تعالیٰ څومره څيزونه پيدا کړيدی، د دوی سوری ښي او ګس طرف ته الله تعالیٰ ته سجده کولو سره خکته کيږی، او هغوی د الله دپاره عاجزی او انکساری اختياروی).

يا مطلب دادے چه ايمان والا د الله تعالیٰ مخے ته په مينه او رضا سره سر خکته کوی او کافران د الله تعالیٰ په اوامرو قبلولو باندے مجبوره دی. يعني د الله حق دے په دوی باندے چه دوی به هغه ته سجده لګوی نو اُوس که هغوی سجده نهٔ لګوی نو دا به د هغوی د الله تعالیٰ حق ضائع کول وی. (فتح البيان)

وَظِلَالُهُم: ددے نه معلومه شوه چه ذوات او اعراض ټول د الله تعالیٰ د حکم تابع دی.

بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ: ددے نه صرف صبا او بيګاه مراد دی، يا ټول اوقات دی ځکه چه غدو د زوال نه مخکښې وخت دے او اصال د زوال نه روستو دے، نو ټول اوقات پکښې داخل شو.

ددے آيت د لوستلو نه روستو سجده کول مسنون دی. او دا ضروری سجده ده.

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ قُلِ اللّٰهُ قُلْ

اُووایه څوك دے پالونکے د آسمانونو او د زمکے، اُووایه الله دے، اُووایه

اَفَاتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ لَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا

آیا نو نیولی دی تاسو سوئ د الله نه نور دوستان، اختیار نهٔ لري د ځانونو دپاره د فائدے

وَّلَا ضَرًّا قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ اَمْ هَلْ تَسْتَوِى الظُّلُمٰتُ

او نهٔ د ضرر دفع کولو اُووایه آیا برابر دے ړوند او لیدونکے یا آیا برابر دي تیارے

وَالنُّوْرُ اَمْ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوْا

او رڼا یا گرځولی دی دوی الله لره برخه داران (په بندګئ کښې) چه پیدائش کړیدے هغوی

كَخَلْقِهٖ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ

په شان د پیدائش د الله نو ګډوډ شویدے پدائش په دوی باندے اُووایه الله پیدا کونکے

كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۱۶﴾

د هر شی دے او هغه یو دے، بے زوروړ دے۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې لسم دلیل عقلی دے او بیان د فرقونو دے۔

**قُلِ اللّٰهُ**: یعنی هرکله چه مشرکان چپ شول ځکه چه هغوی د الله تعالیٰ نه سوئ د آسمانونو او زمکے بل رب نهٔ ګڼړلو نو نبی ﷺ ته حکم وشو چه ته نهٔ جواب ورکړه۔

**قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ**: یعنی هرکله چه تاسو منئ چه الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے خالق او مالك دے، نو بیا د هغه نه سوئ نور خلق خپل حاجت روا او مشکل کشا او د عبادت مستحق ولے منئ، حال دا چه هغوی خپله خپل ځانونو ته نهٔ نفع رسولے شي او نهٔ څه نقصان زائله کولے شي، هغه به ستاسو حاجت روا او مشکل کشا څنګه جوړ شي؟۔

(فتح البيان)

**قُلْ هَلْ يَسْتَوِى**: اُوس د يو مثال په ذريعه د موحد مسلمان او د كافر ترمينځ فرق ښكاره كوي چه كافر د خپل دين په معامله كښې د ړوند په شان دے، او موحد مسلمان د سترګو والا په شان۔ كافر د خپل كفر په تياره كښې پريشانه وسيرږي، او موحد د ايمان او د

توحید مشعل اخستے خپل منزل طرف تہ روان دے۔ پدے وجہ اللہ تعالیٰ مخکښ وفرمایل چہ د کفر تیارے او د ایمان رنړا دواړه برابرېدے نشي۔
او دا د ابن عباسؓ تفسیر دے چہ ھغہ وائي چہ اعمیٰ او بصیر مثال د مشرك او مؤمن دے۔ او ځیني وائي: اعمیٰ نہ مراد معبودِ باطل دے او بصیر نہ معبودِ حق دے۔
الظُّلُمَاتُ وَالنُّورُ: تیارے د شرك او کفر او نور د توحید او ایمان۔ او نور ئے مفرد راوړو ځکہ چہ د حق یوه لاره ده او د باطل ډیرے لارے وي۔
أَمْ جَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ: ام منقطعہ دے پہ معنیٰ د "بَلْ" سره۔ پدے کښ د کافرانو او مشرکانو د کم عقلئ او ناپو ھئ زیات راښکاره کولو دپاره فرمائي چہ کوم باطل معبودان دوی د اللہ تعالیٰ سره شریکان گنړي، آیا دوی د اللہ پہ شان آسمان او زمکہ او نمر او سپوږمئ او غرونہ او دریابونہ او پیریان او انسانان پیدا کړیدي، چہ د ھغے پہ لیدلو سره مشرکانو تہ شبہہ شویده چہ ھغہ شرکاء ھم معبودان دي۔ ځکہ چہ بعض ځیزونہ خو دوی ھم پیدا کړیدي نو پتہ نہ لگي چہ دا مخلوق د اللہ تعالیٰ دے او کہ ددے معبودانو دے، اشاره ده دے تہ چہ دوی بہ د خپلو معبودانو طاقت معلوم کړي چہ دومره طاقت خو لري چہ غرونہ ئے پیدا کړي، یا ئے بعض انسانان پیدا کړیدي، کہ داسے وي نو بیا خو بہ دوی معذوره وي، نو پدے تپوس کښ مقصد د دوی غلي کول دي چہ اے مشرکہ! تہ بہ پدے پوھہ ئے چہ د اللہ نہ سویٰ بل خالق نشتہ نو بیا ولے د اللہ تعالیٰ سره نور برخہ داران جوړوے، پیدا کونکے اللہ تعالیٰ منے او عبادت د غیر اللہ کوے، تا بہ عبادت د غیر اللہ ھلہ کولے چہ بل خالق ھم موجود وے، او ھغہ ھم د اللہ تعالیٰ پہ شان پیدا کول کولے شوے او تا باندے اشتباه راتللے چہ دا ځیزونہ بہ اللہ تعالیٰ پیدا کړي وي او کہ فلاني بابا۔ اُوس خو اشتباه نشتہ نو بیا ولے د غیر اللہ عبادت کوے۔
معلومہ شوه چہ دوی د خپل جھالت او ناپو ھئ پہ وجہ دا ځیزونہ خپل معبودان جوړ کړیدي۔ دا پہ شرك او مشرکانو باندے ډیر بلیغ (کامل) رد دے۔
فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ: اَیْ خَلْقُ الشُّرَكَاءِ بِخَلْقِ اللّٰهِ عِنْدَهُمْ۔ یعني گډوډ شویدے پیدائش د معبودانو د پیدائش د اللہ تعالیٰ سره د دوی پہ نیز۔
خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ: اللہ تعالیٰ نبي کریم ﷺ تہ حکم وکړو چہ حق خبره بیان کړي، او اُووائي چہ د ھر شي خالق اللہ دے، پدے وجہ د عبادت ھم مستحق صرف د ھغہٗ ذات دے۔

| |
|---|
| أَنزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا فَاحْتَمَلَ |
| نازل کړے ئے دی د آسمان نه اُوبه نو اُوبهیږی کندے په اندازه خپله نو راپورته کړی |
| السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ |
| سیلاب زګونه اُوچت او د هغے نه چه بلوی دوی په هغے باندے په اُور کښې |
| ابْتِغَآءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهُ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ |
| دپاره د طلب کولو د ګاڼړے یا د سامان زګونه دی په شان ددے، دغه شان بیانوی الله تعالیٰ |
| الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَآءً وَأَمَّا مَا |
| حق او باطل لره پس هرچه زګ دے نو لاړ شی بیکاره او هرچه هغه شے |
| يَنفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْأَمْثَالَ ﴿١٧﴾ |
| چه فائده ورکوی خلقو ته نو باقی پاتے شی په زمکه کښې، دغه شان بیانوی الله مثالونه۔ |

**تفسیر** : ددے آیت تعلق د اول د سورت سره دے چه پدے کښې د وحی مثال بیانیږی کومه چه د آسمان نه نازله شویده او بیانے د وحی اهل او نا اهله بیان کړیدی ﴿ لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ ﴾ دا اهل د وحی دی چه استجابت (قبولوالے) ئے کړیدے، د دوی جزاء ئے بیان کړیده او ﴿ وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا ﴾ سره د نا اهلو بیان دے او د دوی سزا ئے بیان کړیده۔ تر رکوع پورے دوه غټے بیانیږی۔

ددے مثال مصداق څه دے او د آیت اشارات څه دی؟ دلته بیانیږی۔

پدے آیت کښې دوه مثالونه یو ځای کړے شویدی، یو د باران او بل د اُور۔ د سیلاب دپاسه زګ وی او دغه شان د سرو زرو د ویلی کولو په وخت د زرو دپاسه هم زګ وی۔

نو دا دوه مثالونه دی۔ اُوبه او سرهٔ زر مثال د حق او د اهل حقو دے او دواړه ځای کښې زګونه مثال د باطل او باطل پرستو دے۔ زګ بیکاره وی چه څوک ترے فائده نهٔ اخلی او زر ختمیږی نو دغه شان به دا باطل او باطل والا هم بیکاره وی او زر به ختم شی۔

## دا د څه مثال دے؟

۱- مِثَالٌ لِبَقَاءِ الْحَقِّ وَاضْمِحْلَالِ الْبَاطِلِ. نو دا مثال دے د حق د باقی پاتے کیدو او د باطل د

زر ختمیدو۔ اګرکه باطل په اول کښې هرڅو مره قوی او تیز وی۔ او دا د الله تعالیٰ اصول دی چه اول کښې حق کمزورے وی او بیا آخری غلبه حق لره وی، تاریخ د اسلام همداسے راروان دے۔ نو د زګ نه یریدل نهٔ دی پکار۔

بیا د حق او د باطل نه څه مراد دے ؟ ۱ - حق اسلام او باطل کفر ته وائی۔ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د اسلام او د کفر مقابله وه نو اسلام غالب او باقی پاتے شو او کفر ختم شو۔

۲ - د حق نه مراد قرآن دے او د قرآن په مقابله کښې صد عن سبیل الله (خلك د نیغې لارے نه منع کول، غلط دعوت کول) باطل دے۔

۳ - دریم مصداق : حق دعوت او باطل دعوت۔ حق دعوت هغه دے چه الله تعالیٰ طرفته وی او باطل دعوت هغه دے چه غیر الله ته وی۔

٤ - حق احکامو او مسائلو د اسلام ته وئیلے شی او باطل د هغې مخالفت دے۔ یو تن به یو ځای کښې د اسلام یو حکم بیان کړی څه خلك به د هغې مخالفت وکړی، باطل کښې به واقع شی۔ او دا ټولے خبرے د یو بل سره منافات نهٔ لری، نو دا مثال ددے ټولو خبرو دے۔ چه حاصل ئے دا دے چه یو ځای کښې قرآن بیان شو او اسلام بیان شو او د دین صحیح دعوت وشو او چا د هغې مخالفت وکړو نو دا قرآن او حق به باقی پاتے کیږی او ددے مخالفین به ختمیږی، سنت طریقے به باقی پاتے شی او د مخالفینو زګونه او شبهات او بدنامے به ختمے شی۔ اول کښې به داعی یریږی ځکه چه دا زګ به د اُوبو دپاسه وی لیکن لږه زمانه روستو به یو یو غاړے پورے انبنلی، آخر به صفا اُوبه پاتے شی او زګ به ختم شی، ځکه چه دا قانون دے چه هر هغه شے چه د الله تعالیٰ دپاره نهٔ وی هغه ضرور ختمیږی۔ او په هره زمانه کښې دا قانون جاری دے او جاری به وی۔ د مکے مشرکان زګونو والا او رسول الله ﷺ او د هغه ملګری پاکو اُوبو والا وو او په مدینه کښې یهود زګونو والا وو او رسول الله ﷺ او د هغهٔ ملګری پاکو اُوبو والا وو نو زګونه رفته رفته ختم شو او صفا اُوبه پاتے شوے۔

## د اول مثال (۱) تطبیق

د اول مثال تطبیق په تفصیلی تعبیر سره دا دے چه چه دا مثال د حق او د باطل د مقابلے دے، یعنی باران ووریږی نو په کندو کښې سیلابونه راشی په اندازه د هرے کندے، او ددے سیلاب دپاسه زګونه وی بیا څه موده روستو زګ اُوچ شی او صفا اُوبه د خلکو د فائدے دپاره پاتے شی، نو دغه شان الله تعالیٰ قرآن کریم د بره نه نازل کړو په هغې کښې ئے توحید او

ټول دین بیان کړو. بعض خلك د قرآن او د سنت او د توحید صفا علم حاصل کړي او هر یو تن د خپل محنت او د خپل استعداد او اهلیت مطابق عالم شي، بیا دوی د سیلاب په شان د دعوت دپاره په مختلفو اطرافو کښ خوارهٔ شي نو د دوی په مقابله کښ باطل پرست خلك راوچت شي چه هغوی د حق والو په دعوت کښ د عوامو په زړونو کښ شبهات پیدا کوي او په اول کښ دوی غالب ښکاره کیږي، بیا څه وخت روستو دغه باطل پرست مغلوب او بیکاره شي او حق دین په دنیا کښ پاتے شي او خلك د هغے نه فائدے اخلي. (احسن الکلام)

**(۲) دویمه طریقه :**

د آسمان نه اُوبه نازلے شوے چه په هغے کښ نفع او حیاة (ژوند) دے نو دغه شان قرآن کریم د آسمان نه نازل شو چه پدے کښ هدایت دے د خلکو دپاره، بیا باران په اُوچتو ډیرکو او غرونو باندے او دارنګه په ښکته خایونو کیږي لیکن سیلاب په کندو او ښکته زمکو کښ راځي نو هره کنده د خپلے فراخئ په اندازه اُوبه ځای کوي، او دغه سیلاب په وخت د نازلیدو د باران کښ ځان سره زګونه راپورته کړي نو لږ وخت روستو زګ بے فائدے لاړ شي او خالصے صفا اُوبه پاتے شي چه خلك ترے د څکلو او خروبه ولو فائده واخلي. نو دغه شان قرآن کریم په ټولو انسانانو نازل شو د خلکو غوږونه ئے وټنګول او ددے د وعیدونو او مقاصدو نه ئے خبر کړل مګر فائده ترے هغه زړونو واخسته چه هغوی کښ عاجزي او انابت وو، چا ډیره فائده واخسته او چا کمه، په اندازه د خپلے خوارئ او محنت سره، او دا قرآن او ددے آیتونه په داسے خلکو هم راتیر شو چه هغوی پرے هیڅ پوهه نشو چه هغوی منکرین او معرضین دي، او بعض داسے زړونو سره یو ځای شو چه هغوی په کښ سوچ وکړو نو هغوی ترے هغه خبرے راواخستے چه د هغوی په زړونو کښ ئے شبهات پیدا کړل او په قرآن ئے اعتراضونه وکړل لکه داسے ئے وویل ﴿هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمْ اِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ اِنَّكُمْ لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ﴾ (آیا نهٔ ښایم تاسو ته داسے سړے چه تاسو ته دا خبر درکوي چه کله تاسو پوره ذره ذره شئ نو تاسو به دوباره په نوي ژوند سره ژوندي کیږئ) او ﴿فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَاْوِيْلِهٖ﴾ (ال عمران : ۷) (هرچه هغه کسان دي چه په زړونو کښ ئے کوږوالے دے، نو دوی روانیږي د هغے آیتونو پسے چه متشابه دي د قرآن نه دپاره د لټولو د فتنے او دپاره د لټولو د حقیقت د هغے) نو دا خلك د زګ

والا وو۔ لیکن دغه زګونو والا خلك به سیلاب او صفا اُوبو ته هیڅ ضرر ورنکړي بلکه خپله به ختم شي۔ (التحریر لابن عاشورؒ بتصرف منا)

## فوائد الآیة

۱ – الله تعالیٰ تشبیه د قرآن د نازلیدو د باران سره ورکړه چه دواړه د بره نه نازلیږي، د باران اُوبه د خیرو او ګندونو نه صفا وي نو دغه شان قرآن د افراط او تفریط د ګندونو نه صفا دے، باران کښې عموم وي، بُخل پکښې نهٔ وي نو دغه شان قرآن د عامو انسانانو کتاب دے، د عرب او عجم، مالدار او غریب فرق پکښې نشته۔ د باران اُوبه ډیرے وي، د هر چا حاجت پرے پوره کیږي نو دغه شان قرآن په خپله معنیٰ کښې پوره دے، عقیده او عمل هرڅه پکښې شته۔ ۲ – فَسَالَتْ اَوْدِيَةٌ : ددے کندو نه مراد د بندګانو زړونه دي، بعض کندے ژورے وي ډیرے فائدے د اُوبو نه واخلي او خلکو ته ئے هم ورکړي نو دغه شان بعض زړونه ژور وي چه د الله د کتاب نه ډیرے فائدے واخلي، او بعض کمے فائدے والا وي۔

۳ – باران ته چه چا لوښے اپوته (الټه) ایښے وي نو هیڅ پکښې نهٔ راګیرېږي نو دغه شان قرآن ته چه چا خپل زړه اپوته کړے وي او ضد کښې راغلے وي او اعراض ئے کړے وي نو هغه د قرآن نه هیڅ فائده نشي اخستے۔ ﴿وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ إِلَّا خَسَارًا﴾ (الاسراء: ۸۲)

(او ظالمانو لره قرآن نهٔ زیاتوي مګر تاوان)

او چا چه باران ته لوښے صحیح ایښے وي نو هغے کښې به صفا اُوبه جمع کیږي نو دغه شان د مؤمن زړه چه صفا وي او قرآن ته کیني نو ډیر خیرونه پکښې راجمع شي۔

٤ – فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ : اشاره ده چه قرآن د سیلاب په شان دے، او د چا په زړونو کښې چه کوم شبهات او شهوات دي هغه د زګونو په شان دي۔ (د شبهاتو نه مراد د عقیدے خرابوالے دے او د شهواتو نه مراد دنیاوي خواهشات دي) نو دغه شان قرآن کریم د انسان د نفس نه دغه ګندونه صفا کوي۔ قرآن چه نهٔ وي بیان شوے نو د خلکو پته نهٔ لګي خو چه کله قرآن صحیح بیان شي نو په دغه وخت کښې د زګونو والا پته ولګي، نو دغه شان د نفس د انسان نه ګندونه نهٔ وځي مګر په کتاب د الله تعالیٰ سره۔

دا د آیت اشارات دي تطبیق نهٔ دے۔

## د دوه مثالونو راړو ناشنا حکمتونه

وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ : دا دویم مثال دے چه دا ناري مثال دے او قرآن کښې مائي او

ناری مثالونه جمع کیږی خکه چه اُوبه سبب د ژوند دے او اُور سبب د نُور دے، او حیاتِ قلبی او د وحی نُور راجمع کیدل کمال دے نو په مثالونو د قرآن باندے انسان ته الله تعالیٰ ته دغه دوه مقصدونه ورکوی. دا د دوه مثالونو د بیانولو حکمة شو.

❁ بل حکمة دا دے چه دُعاة الی الله (یعنی الله تعالیٰ ته دعوت ورکونکی مؤمنان) په دوه قسمه دی، یو هغه دی چه سرهٔ او سپین تیاروی په ځای ناست وی لکه زرگران چه د هغے په ذریعه خلك ښائسته کیږی، زنانه ډولی کیږی. نو دا مثال د هغه علماؤ دے چه دعاة الی الله وی، د قرآن او حدیث په ذریعه طالب العلمان تیروی، چه بیا داعی دلته ناست وی او د دین دغه طالبان په علاقو کښ خوارهٔ شی چه ملك پرے ښائسته ښکاره کیږی.

❁ علماء فرمائی : ستوری د آسمان ښائست دے او علماء د زمکے ښائست دے. مجالس پرے ښائسته ښکاره کیږی. او سیلاب د هغه دُعاتو مثال دے چه گرځیدو والا وی، یو ځای بل ځای وعظ او نصیحت او بیانونه کوی چه د عوامو اصلاح پرے کیږی، او هغوی د خلکو زګونه یعنی شبهات او شکوك ختموی. پدے کښ اشاره ده چه مؤمن به هر ځای دعوت کوی چه د خلکو پرے اصلاح وشی. او ناست دعوت (درس او تدریس) به هم کوی. نو کوم خلك چه د اهل عِلمو پورے توقے کوی چه دوی الله تعالیٰ ته دعوت نهٔ کوی او دا وائی چه دوی کوهی کښ ناست دی، نو دوی د الله تعالیٰ د کتاب بی ادبه دی. آو، د آیت نه معلومه شوه چه بغیر د وحی د علم نه دعوت نشی کیدے.

زَبَدًا رَّابِيًا : أَيْ عَالِيًا مُرْتَفِعًا. پورته، اُوچت.

## د دویم مثال تطبیق

(۱) زرگران سرهٔ زر او سپین زر تانبه او قلعی وغیره په اُور سره ویلی کوی نو د بعضو نه کالی جوړ کړی صرف د زینت دپاره، او د بعضو نه نور سامانونه جوړ کړی چه د هغے نه څه فائده اخستے کیږی لیکن د دغے څیزونو د ویلی کولو په وخت کښ په هغے باندے هم زګ او زنګ راخی بیا څه وخت هغه زګ او زنګ ختم شی او سو چه زُر پاتے شی چه د هغے نه دوی د زینت دپاره کالی او نور سامان جوړوی لکه لوخی وغیره، او خلك ترینه فائده اخلی، نو دا مثال د هغه علماؤ او حق پرستو دے چه د قرآن او د سنت علم ئے د خپل استعداد او قابلیت مطابق حاصل کړو او بیا د هغے په دعوت کښ په درس او تدریس او وعظ او نصیحت سره محنت کوی، او غلط مسائل د شرك او د بدعاتو د حق نه جدا کوی،

او پدې ذریعې سره نور اهل علم پیدا کوی چه هغه دوه قسمه خلك وی، اول هغه خلك چه د کار او فائدې والا وی چه نورو ته فائده ورکوی او خلك بنانسته کوی، او دویم داسې خلك چه په خپله د علم او د دین نه ځان دپاره فائده اخلی لیکن د دوی په مقابله کښې باطل پرست ملیان او عوام وی، هغوی راپورته شی چه څه وخت پس هغه باطل پرست کمزوری شی او حق پرستو ته فائدې رسی۔

(۲) تطبیق :

حافظ ابن کثیرؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړیدی چه دا مثال د عمل صالح دې چه د خپل اهل دپاره باقی پاتې کیږی او بد عمل به ختمیږی لکه د زګ په شان، نو دغه شان حق او هدایت دواړه د الله تعالیٰ د طرفنه راغلل نو چا چه په حق عمل وکړو نو هغه ته به فائده ورکړی او داسې به باقی پاتې شی لکه هغه شې چه خلکو ته په زمکه کښې فائده ورکړی او دغه شان د وسپنې نه چاړه او توره نه جوړیږی تردې چه په اُور کښې واچولے شی، او ددې زنګ زائله شی او کره شې ئې باقی پاتې شی، نو خلك د هغې نه فائده اخلی، نو دغه شان به باطل د قیامت په ورځ ختم شی او اهل حق به د حق نه فائدې واخلی (او جنت ته به پرې داخل شی)۔ (ابن کثیرؒ)

مَا يَنفَعُ النَّاسَ : ددې نه مراد اُوبه، سرهٔ او سپین او نور ذهاتو نه دی۔

كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ : ۱- یا دا ترغیب دې مثال طرفته او د مثال حکمة او ددې نه د عبرت او نصیحت اخستو طرفته. اَیْ كَمَا بَيَّنَ هٰذَا الْمِثَالَ الْبَدِيْعَ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لَعَلَّهُمْ يَنْتَفِعُوْنَ وَيَتَذَكَّرُوْنَ ۔ یعنی لکه څنګه ئې چه دا ناشنا مثال بیان کړو، نو دغه شان الله تعالیٰ مثالونه بیانوی دې دپاره چه خلك ترې فائده او نصیحت واخلی۔

| |
|---|
| لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنَىٰ وَالَّذِينَ |
| دپاره د هغه کسانو چه قبول والې ئې وکړو د رب خپل ښه حالت دې او هغه کسان |
| لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا |
| چه قبول والې ئې ونکړو د هغهٔ، که چرته شی دوی لره هغه څه چه په زمکه کښې دی تول |
| وَمِثْلَهُ مَعَهُ لَافْتَدَوْا بِهِ أُولَٰئِكَ لَهُمْ |
| او په مثل د هغې نور هم نو خامخا بدله کښې به ورکوی هغې لره، دا کسان دوی لره |

سُوْٓءُ الْحِسَابِ وَمَاْوٰهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۸﴾

بد حساب دے او ځائے د دوی جهنم دے او بد ځائے تیار کړے شویدے (دا جهنم).

**تفسیر**: پدے آیت کښې د مخکنو دواړو ډلو انجام خودلے شویدے یعنی کومو اهل حقو چه د الله تعالیٰ دعوت قبول کړو، هغه ئے یو وګنړلو، د انبیاء کرامو علیهم السلام تصدیق ئے وکړو او د هغه په نازل کړی شریعت باندے ئے عمل وکړو د هغوی ځای به جنت وی، او کومو خلقو چه د هغه دعوت قبول نکړو، د قیامت په ورځ به په هیڅ طریقه ځان خلاص نکړے شی او جهنم ته به دیکه کړے شی.

ابن عاشورؒ وائی چه (لِلَّذِیْنَ اسْتَجَابُوْا) دا استیناف بیانی دے یعنی جواب د سوال دے چه هغه راپیدا شویدے د (کَذٰلِكَ یَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ) نه یعنی ددے مثالونه بیانولو څه فائده ده؟ نو جواب وشو چه فائده ئے دا ده چه دپاره د هغه کسانو چه د خپل رب خبره ئے منلے ده کله چه ورته هغه مثالونه بیانوی د هغوی دپاره جنت دے. نو ددے مناسبت د مخکنو دواړو مثالونو سره دے چه پدے کښې د مسلمانانو او د مشرکانو احوال بیانیږی.

او پدے جملہ ذکر کولو کښې زیاته تنبیه ده په مثال بیانولو او په غرض د هغے. او پدے کښې د دواړو ډلو جزاء ذکر ده، مؤمنانو ددے مثالونو نه فائده واخسته، خبره ئے ومنله نو الله تعالیٰ ورته بدله په حسنیٰ سره ورکړه او مشرکانو اعراض وکړو او مثالونو کښې ئے سوچ ونکړو نو د دوی سزا لوی عذاب جوړ شو چه هغه بد حساب دے چه په انجام کښې جهنم ته تلل دی. نو د (اِسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ) معنیٰ ده اِسْتَجَابُوْا لِدَعْوَتِهٖ.

یعنی د الله تعالیٰ د هغه دعوت قبولوالے ئے کړیدے کوم چه په مخکنی مثال کښې ذکر دے. (التحریر والتنویر ۱۲/۱۷۰)

**اَلْحُسْنیٰ**: یوه جامعه کلمه ده چه ډیر مطلبونه لری: ۱- اول جنت ته شامل دے.

۲- مَعِیْشَةٌ حُسْنیٰ. یعنی ښائسته ژوند لکه روستو سورة النحل کښې ورته حیاتِ طیبه وئیلے شویدے. او دا یوه نکته ده چه د قرآن سره الله تعالیٰ د ښائسته ژوند تذکره کړیده لکه روستو به سورة النحل آیت (۹۷) کښې د قرآن سره د حیاتِ طیبه تذکره کړیده او په سورة طه آیت (۱۲۶) کښې دی: ﴿وَمَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِیْ فَاِنَّ لَهٗ مَعِیْشَةً ضَنْكًا﴾ (څوك چه زما د ذکر (قرآن) نه اعراض وکړی نو د هغه دپاره به تنګ ژوند وی).

او پدے سورة کښې روستو آیت (۲۸) راځی ﴿اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ﴾ (خاص د الله په

ذکر سره مطمئن کیږی زړونه) ددے نه معلومه شوه چه د قرآن والو (عمل کونکو او لوستونکو) ډیر ښائسته ژوند دے، چه ددے نه بله مزیداره زندگی نشته.

لِلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا : دا مبتداء ده او خبرئے روستو جمله شرطیه ده (لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَا فِي الْاَرْضِ) او دویم خبرئے (اُولٰٓئِكَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْحِسَابِ) دے. یعنی چا چه استجابت ونکړو نو دغه کسانو دپاره بد حساب دے. او پدے کښې اشاره ده چه دے دواړو ډلو ته نیکه او بده بدله د دوی د استجابت او نهٔ استجابت په وجه ملاؤ شوه. (ابن عاشور وفتح البیان)

لَافْتَدَوْا بِهٖ : په سورة المائده (۳٦) آیت کښې ذکر شوی وو چه ﴿ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ﴾ د دوی نه به نهٔ قبلیږی. او د روستو بد حساب نه هم معلومیږی چه فدیه ترے نهٔ قبلیږی.

سُوْٓءُ الْحِسَابِ : حساب مناقشے ته وئیلے شی چه د هرے ذرے ذرے تپوس ترے وشی چه دا کار دِے ولے کړے او څنګه دِے کړے، او هیڅ جرم به ورته نهٔ معاف کوی. او هر چا سره به د هغوی د اعمالو مطابق حساب کیږی.

الْمِهَادُ: ۱- یعنی بد ځای د وسیدو دے چه دوی به پکښې وسیږی.

۲- یا بده بستره ده چه دوی ته به په جهنم کښې خورولے شی. (فتح البیان)

| اَفَمَنْ يَّعْلَمُ اَنَّمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ |
|---|
| آیا پس هغه څوك چه پو هیږی چه بیشکه هغه کتاب چه نازل کړے شویدے تا ته |
| مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ اَعْمٰى |
| د رب ستا نه حق دے په شان د هغه چا (کیدے شی) چه هغه ړوند دے، |
| اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۱۹﴾ |
| یقیناً نصیحت اخلی عقلونو والا. |

**تفسیر** : دا د مخکښې مثالونو بله نتیجه ده او د وحی عظمت پکښې ذکر دے، او د وحی د منلو او نهٔ منلو اثر بیانیږی چه وحی دومره عظیم شے دے چه څوك ئے ومنی، داسے ښکلے صفات پکښې پیدا کیږی، او چه څوك ئے ونهٔ منی نو دومره بد صفات پکښې پیدا کیږی.

او دا د (لِلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا) پورے هم متعلق دے چه استجابت والا څوك دی؟ هسے منل نهٔ دی مراد بلکه استجابت دادے چه بنده کښې دا ښائسته صفات پیدا شی. او عدم

استجابت سره بد صفات پیدا کیږي.

نو پدے رکوع کښې هم عِظْمَةُ الْوَحی دے، چه د وحی د منلو په وجه بنده کښې څومره ښائسته صفات پیدا کیږي، د صحابه کرامو حال ته وګورئ چه کله ئې وحی ومنله، نو څومره ښائسته صفات پکښې پیدا شول، او د الله تعالیٰ اولیاء ترے جوړ شول. نو قرآن ورله څومره فائده ورکړه.

نو کوم شخص چه قرآن مني او پدے یقین کوي او بیا ددے تابعداري کوي، آیا دا د هغه چا پشان کیدے شي چه د الله تعالیٰ وحی نهٔ مني، او د هغې مخالفت کوي. آیا دا دواړه برابر کیدے شي؟ هیڅکله نهٔ، او بیا د دوی دواړو دپاره جدا جدا بدلے بیانیږي.

اشاره ده چه دا خبره مهٔ کوه چه که چا کښې ښه یا بد صفات پیدا شو نو څه به وشي؟ نو الله فرمائي چه په ښه صفاتو سره جنت ملاویږي او په بدو صفاتو سره بد انجام او جهنم ملاویږي. نو انسانانو کښې د الله تعالیٰ په نیز فرق چه راځي نو دا پدے صفاتو سره.

**أَفَمَنْ يَعْلَمُ** : همزه د انکار دپاره ده او پدے کښې انکار دے په هغه چا چه د دواړو کسانو په مینځ کښې د مساوات ګمان کوي. (فتح البیان)

**يَعْلَمُ** : علم په معنیٰ د یقین سره دے. د (مَنْ يَعْلَمُ) او اعمیٰ نه ځینو مفسرینو حمزه ﷛ او ابوجهل مراد کړیدی مګر غوره دا ده چه آیت په عموم حمل شي اګرکه سبب به ئې خاص وي.

**أَعْمىٰ**: څوک چه پدے خبره نهٔ پوهیږي چه قرآن حق دے نو دهٔ ته ئې ړوند وویلو ځکه چه ددے شخص په ښکاره شي باندے علم نشته نو د ړوند سره مشابه شو. (ابن عاشور)

| |
|---|
| الَّذِيْنَ يُوْفُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَلَا يَنْقُضُوْنَ الْمِيْثَاقَ ﴿٢٠﴾ |
| (دا) هغه کسان دي چه پوره کوي لوظ د الله تعالیٰ او نهٔ ماتوي دوی لوظ لره. |
| وَالَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ مَا أَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ أَنْ يُّوْصَلَ |
| او هغه کسان چه یوځائے کوي هغه څه چه حکم کړیدے الله په هغې چه یوځائے دے کړے شي |
| وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُوْنَ سُوْءَ الْحِسَابِ ﴿٢١﴾ وَالَّذِيْنَ صَبَرُوا |
| او یریږي د رب خپل نه او یریږي د بد حساب نه. او هغه کسان دي چه صبر کوي |

| ابۡتِغَآءَ وَجۡهِ رَبِّهِمۡ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنۡفَقُوۡا مِمَّا |
|---|
| دپاره د طلب کولو د مخ د رب خپل او پابندي کوي د مانځه او خرچ کوي د هغې مال نه |
| رَزَقۡنٰهُمۡ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً وَّيَدۡرَءُوۡنَ بِالۡحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ |
| چه ورکړيدے مونږ دوی ته په پټه او په ښکاره او دفعه کوي په نيکۍ سره بدۍ لره |
| اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عُقۡبَى الدَّارِ ﴿۲۲﴾ جَنّٰتُ عَدۡنٍ |
| دا کسان دوی لره ښه انجام د کور د آخرت دے۔ چه جنتونه د هميشوالي دي، |
| يَّدۡخُلُوۡنَهَا وَمَنۡ صَلَحَ مِنۡ اٰبَآئِهِمۡ وَاَزۡوَاجِهِمۡ |
| داخليږي به هغې ته او هغه څوك چه ملګرتيا ئے کړيوي د دوی د پلارانو نه او د بيبيانو نه |
| وَذُرِّيّٰتِهِمۡ وَالۡمَلٰٓئِكَةُ يَدۡخُلُوۡنَ عَلَيۡهِمۡ مِّنۡ كُلِّ بَابٍ ﴿۲۳﴾ |
| او د بچو د دوی نه او ملائك به داخليږي په دوی باندے د هرے دروازے نه۔ (وائي به) |
| سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ بِمَا صَبَرۡتُمۡ فَنِعۡمَ عُقۡبَى الدَّارِ ﴿۲٤﴾ |
| سلام دے وی په تاسو په سبب د هغې چه صبر کړے تاسو پس ښه دے انجام د کور روستنی۔ |

**تفسير** : اُوس د قرآن والو او استجابت والو لس صفات راوړی يو (اولو الالباب) شو۔ او بيا د هغوی انجام بيانيږی۔

۳/۲ – عهد الله : ددے نه مراد د الله تعالیٰ سره کړے وعدے دي په توحيد او ايمان سره۔ او ټول اوامر او نواهي ترے مراد دي۔ او دا په عقلي او نقلي دليلونو مضبوط کړے شويدے پدے وجه ورته ميثاق هم وائي نو عهد او ميثاق يو شے دے خو يو ثبوتي صفت شو او بل سلبي۔ يا د عهد الله نه مراد عهودِ الٰهيه دي او د اَلۡمِيۡثَاق نه مراد د بندګانو عُهود دي۔ او ددے آيت تشريح په سورة البقره (۲۷) آيت لاندے تيره شويده۔

٤ – يَصِلُوۡنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ : پدے کښ تمام حقوق الله او حقوق العباد داخل دي چه دوی هغے حفاظت کوي۔ په تمامو انبياءِ کرامو عليهم السلام او په آسماني کتابونو باندے ايمان لري، صله رحمي کوي، او د رسول الله ﷺ او د مسلمانانو سره ئے د ايمان په سبب چه کوم تعلق قائم دے د هغے هم لحاظ ساتي لکه چه الله تعالیٰ فرمايلي دي : ﴿اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ اِخۡوَةٌ﴾ چه

(مسلمانان خپل مینځ کښې ورونه دي)۔ او د خپلو دوستانو، خادمانو، ګاوندیانو او د سفر ملګرو دلجوئي کوي۔

٥- وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ : یعنی په دین باندې عمل د خپل سرې توب دپاره نۀ کوي بلکه د الله خشيت په دوی باندې غالب وي، پدې وجه د الله تعالیٰ اوامرو باندې عمل کوي او د محرماتو او نواهيو نه ځان ساتي۔

که څوك په دې عمل کوي هسې د مُرُوّت (سړيتوب) په وجه نو هغې له اعتبار نشته۔ ځکه چه خشية هغه خوف دې چه د تعظیم او معرفت سره وي۔

٦- د قیامت په ورځ د حساب نه یریږي، پدې وجه د خپل نفس سره محاسبه او حساب کوي۔ ځکه چه څوك د بد حساب نه یریږي هغه ډیر احتیاط کوي۔

٧- وَالَّذِينَ صَبَرُوا : د الله تعالیٰ په دین باندې عمل کولو کښې چه دوی ته کوم تکلیف رسیږي په هغې باندې صبر کوي، په دردونو او مصیبتونو باندې هم صبر کوي۔

صَبَرُوا : دا ماضي ده په معنیٰ د مضارع ده ځکه چه الذین موصول دې متضمن دې معنیٰ د شرط لره او شرط که په ماضي هم داخل شي معنیٰ ئې د مضارع وي۔

ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ : دا په عرف کښې استعمالیږي چه «ما ستا د مخ د خاطره دا کار وکړو» مراد ترې نه رضا وي۔ او وجه د الله تعالیٰ حقیقي صفت دې۔ او دا که په ظاهر پریښودې شي هم اشکال نشته، وجه دا ده چه دوی صبر کړیدې دپاره د طلب د مخ د الله تعالیٰ چه د الله تعالیٰ مخ دوی ته حاصل شي او د هغه دیدار وکړي او هغه ويني۔ او د الله تعالیٰ مخ هغه چا ته حاصلیږي چه الله تعالیٰ ترې راضي شي۔ او (ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ) ئې ولې ووئیلو؟ وجه دا ده چه صبر ډاکوان او غلۀ هم کوي لیکن د دنیا د حاصلولو دپاره، او د دنیا کاروکسب والائې هم کوي لیکن د مال د ګټلو دپاره، بعض خلك صبر د خپل سړيتوب دپاره کوي، یا د خلکو نه یریږي۔ ډیر انسانان خپل وقار نۀ خرابوي غلط کار نکوي، یریږي چه خلك راپسې خبرې ونکړي۔ یا دشمنان راباندې خوشحاله نشي، یا خلك ئې صفت وکړي، نو دې کښې هم اجر نشته، نو په صبر کښې هم اخلاص ضروري دې۔

٨- وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ: پنځه وخته د مانځه په خپل وخت کښې د خشوع او خضوع سره او د سنت مطابق ادا کوي۔

٩ - وَأَنْفَقُوا: د الله تعالیٰ د ورکړې مال نه د هغه په لاره کښې په پټه او په ښکاره خرچ کوي، کله چه پټې ته ضرورت وي نو په پټه ئې ورکوي او که ښکاره ورکولو کښې فائده وي

بیا ئے ښکاره ورکوی، او نفلي او فرضي دواړه ورکوی۔
۱۰- وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ: د بدئ جواب په نیکئ سره ورکوی، د جاهلانو بد اخلاق په نیکو اخلاقو دفع کوی۔ ❁ د گناه نه روستو نیکی کوی۔ ❁ څوك چه ورسره ظلم کوی نو معاف کوی ئے۔ ❁ څوك چه تعلق کټ کوی، د هغهٔ سره تعلق قائموی۔ ❁ د حسنه نه مراد توبه ده او د سیئه نه مراد گناه ده۔
او پدے جمله کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ اولیاء دے ته نهٔ وائی چه د هغوی نه به هیڅ گناه نهٔ کیږی بلکه دوی نه به گناه هم کیږی خو کمال ئے دا وی چه په دغه گناه باندے همیشوالے نهٔ کوی بلکه دا په نیکئ باندے بدله کړی۔
رسول الله ﷺ به چه چا ته یوه تیزه خبره وکړه نو بیا به ئے د هغهٔ سره احسان کولو۔ دوه صحابه کرامو ته یو کرت غصه شو بیا ئے ورله هدیه ورکړه۔ اگرکه د رسول الله ﷺ غصه هم د دین د خاطره وه۔ او د رسول الله ﷺ حدیث هم ددے نه اخستے شویدے چه هغه فرمائی: [اِتَّقِ اللّٰهَ حَيْثُمَا كُنْتَ وَاَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا] د الله نه هر ځای یره کوه او د بدئ پسے روستو نیکی کوه نو هغه به ختموی۔
عُقْبَى الدَّار: یعنی نیك انجام د کور دے چه هغه جنتونه دی۔ (جَنّٰتُ عَدْنٍ) بدل دے د عُقْبَى الدَّار نه۔
وَمَنْ: یعنی (يُدْخِلُ مَنْ صَلَحَ): یعنی د دوی سره به د دوی پلاران نیکونه، ښځے او اولادو جنت ته داخلیږی کومو چه په دنیا کښې د دوی موافقت کړیدے په نیکئ او تقویٰ او صحیح عقیده کښې۔ یعنی دا خبره ورسره ښځے او بچو منلے ده۔
ددے جملے دوه فائدے دی (۱) اوله فائده دا ده چه پدے کښې بشارت دے په اجتماعیت سره یعنی ته به یواځے نهٔ ځے بلکه تا سره به پلاران او بچی هم جنت ته داخلیږی لکه انسان په دے خلکو باندے زیات خوشحالیږی۔
(۲) فائده: که یو پلار یا ښځه یا بچے د نیك عمل په لحاظ کمزورے دے او توحید او ایمان پکښې شته نو الله تعالیٰ به ددهٔ د نیك عملئ او د اکرام د وجه نه هغه هم ددهٔ سره په جنت کښې یو ځای کوی۔ لکه دا معنیٰ د سورة الطور آیت (۲۱) نه معلومیږی
﴿ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا اَلَتْنٰهُمْ مِنْ عَمَلِهِمْ مِنْ شَيْءٍ ﴾۔
(پیوسته به کړو د دوی سره بچی د دوی او کم به نکړو د دوی د عملونو نه هیڅ شے)۔
او دا تفسیر د ابن عباس ؓ نه نقل دے۔ او واحدیؒ هم همدے رائے ته ترجیح ورکړیده۔

مِنْ آبَائِهِمْ : ددے درے قسمه كسانو تخصيص ئے ولے وكړو؟ نو وجه دا ده چه انسان ته پدے حسد ورځي چه نور كسان ددهٔ سره په يو نعمت كښ شريك شي، مگر پلار او خوى او ښځه يا خاوند ته حسد نهٔ ورځي.

وَالْمَلٰٓئِكَةُ : يعني كله چه جنت ته داخل شي نو ملائك به د دوى خواته راځي او دوى ته به سلام كوى او وائي به چه دا هميشه سلامتي الله تعالىٰ تاسو ته پدے بدله كښ دركړيده چه تاسو په دنيا كښ د صبر او استقامت سره د هغه په دين باندے عمل كولو.

صَبَرْتُمْ : دا ټول مخكني كارونه ډير صبر ته ضرورت لري نو صبر د هر عمل دپاره پنډئ ده چه هيڅ عمل بغير د صبر نه نهٔ شي حاصليدے. او صبر نيماتي ايمان دے، او ايمان د هرے خبرے بنياد دے.

او دے خلكو كښ دا كمالات د الله تعالىٰ كتاب راپيدا كړل.

| |
|---|
| وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ وَيَقْطَعُوْنَ |
| او هغه كسان چه ماتوى لوظ د الله تعالىٰ روستو د مضبوط والي د هغے نه او پريكوى |
| مَا أَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ أَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِي |
| هغه چه حكم كړيدے الله په هغے سره چه پيوسته دے كړے شي او فساد كوى په |
| الْأَرْضِ أُولٰٓئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ ﴿٢٥﴾ اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ |
| زمكه كښ، دا كسان دوى لره لعنت دے او دوى لره بد كور دے. الله فراخوى رزق چا لره |
| يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا |
| چه اُوغواړي او كموى ئے، او خوشحاله دي دوى په ژوند دنيوى او نهٔ دے ژوند دنيوى |
| فِي الْآخِرَةِ إِلَّا مَتَاعٌ ﴿٢٦﴾ |
| په مقابله د آخرت كښ مگر لږه فائده. |

**تفسير** : اُوس د (كَمَنْ هُوَ اَعْمٰى) تفصيل دے او دا هغه زګ والا خلك دے، يعني پدے آيت كښ د بې ايمانه خلكو صفات او د هغوى انجام بيانيږي چه كوم خلق د الله سره د كړو وعدو او لوظو نو خيال نهٔ ساتي، او د كومو اوامرو او نواهيو چه دوى ته حكم شويدے په هغے باندے عمل نهٔ كوى، او د كومو تعلقاتو او رشتو او د قرابتونو د يو ځاى والي چه دوى

ته نصیحت شویدې د هغې خیال نهٔ ساتي، او د کفر او ګناهونو په ذریعه په زمکه کښې فساد خوروي داسې خلق د الله تعالیٰ د لعنت مستحق ګرځي، او د قیامت په ورځ به د دوی ځای جهنم وي.

وَالَّذِيْنَ يَنقُضُوْنَ : پدې کښې هغه خلك داخل دي چه په عالَم الذرّ کښې د کړې وعدې خلاف ئې کړیدې، او یهود پکښې داخل دي چه وعده ئې ماته کړې وه او هر کافر پکښې داخل دې چه میثاق الفطرة ئې مات کړیدې.

او د قرآن نازلول د الله تعالیٰ وعده ده چه د دوی نه اخستې شویده لیکن ډیرو ماته کړیده.

او ددې آیت تفصیل په سورة البقره آیت (۲۷) کښې وګوره.

اَنْ يُّوْصَلَ : دې کښې ټول حقوق الله او حقوق العباد داخل دي، د الله بندګي، صله رحمي قطع کول او د مور او پلار حق پریکول.

وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ: ١- یعني فساد کوي په زمکه کښې په دعوت سره غیر الله ته

٢- او په ګناهونو کولو سره.

اللَّعْنَةُ : دا لعنت په دنیا او آخرت دواړو کښې مراد دې.

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ : پدې آیت کښې د دنیا بې رغبتي او د دنیا په محبت زجر ورکوي.

مناسبت ئې واضح دې چه الله تعالیٰ قرآن راولیږلو مؤمنانو وومنو نو کافرانو وویل چه تاسو څنګه مونږ نه غوره یئ؛ حال دا چه مونږ ته دنیا راکړې شویده. ﴿ اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ اَحْسَنُ مَقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا﴾ (مریم :۷۳) دې خلکو معنویاتو لره اعتبار نهٔ ورکولو بلکه ظاهربین وو د دنیا مزو په دهوکه کښې راوستي وو، نو الله تعالیٰ پدې آیت کښې په هغوی باندې رد کوي، چه دنیاوي رزق تقسیم دې، الله تعالیٰ د کافر په رزق کښې فراخي پیدا کوي، ګویا که د هغه رسئ سستولې شي دې دپاره چه په کفر او ګناهونو کښې نور هم مخکښې لاړ شي او د مؤمن بنده په رزق کښې تنګي پیدا کوي، او مقصد پدې سره د هغهٔ ازمیښت وي، په رزق کښې فراخي د الله د طرف نه د کافر د اعزاز او اکرام دلیل نهٔ وي. او نهٔ تنګي د رزق د مؤمن د تذلیل او اهانت دلیل دې.

او پدې کښې دا خبره هم په ذهن کښې کینول مقصد دې چه که کافرانو ته ټوله دنیا ورکړې شوه څه به وشي؟ هغه خو فاني کیدونکې ده، (او رزق هم د الله په مشیت سره حاصلیږي که د چا رزق فراخه شي یا تنګ شي د تاوان او د کامیابئ خبره نهٔ ده، او د انسان کمال او نقصان ته پکښې څه دخل نشته بلکه دا د الله د طرفنه ورکړې کیږي، غیر اختیاري

شے دے، د الله په حکمت بناء دے) او یو مومن ته د ایمان او ښائسته صفاتو په وجه چه کوم جنت ورکړے شو نو دا همیشه کامیاب شو۔

نو پدے آیت کښې فرق بیانوی د قرآن او د دنیا ترمینځ۔

وَفَرِحُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا : دلته د خوشحالئ نه مراد د تکبر او ناز په طریقه خوشحالی ده چه دا ناروا ده، او هسے طبعي طور سره په دنیا باندے بغیر د تکبر کولو نه خوشحالی ناروا نۀ ده۔

وَفَرِحُوا اَیْ وَجَهِلُوْا مَا عِنْدَ اللّٰهِ ۔ یعنی دوی په دنیا خوشحاله دی او د الله تعالیٰ سره چه په آخرت کښې کوم نعمتونه دی د هغے نه ناخبره دی۔ حال دا چه دآخرت کامیابی او د جنت د حاصلولو په مقابله کښې د دنیا د خوندونو هیڅ حیثیت نشته دے۔

مفسرینو ددے نه دلیل نیولے دے چه په دنیاوی کامیابو باندے تکبر او مستی کول حرام دی۔ ترمذیؒ د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت کړیدے چه یوه ورځ رسول الله ﷺ په چټائی (بوزکی) باندے اُوده شو نو د هغۀ په اړخ باندے د هغے نخه پریوته۔ صحابه کرامؓ عرض وکړو، مونږ ستا دپاره نرمه بستره خوروړل غواړو۔ نبی ﷺ وفرمایل :

[مَا لِیْ وَلِلدُّنْیَا، مَا اَنَا وَالدُّنْیَا، اِنَّمَا مَثَلِیْ وَمَثَلُ الدُّنْیَا کَرَاکِبٍ اسْتَظَلَّ تَحْتَ شَجَرَةٍ ثُمَّ رَاحَ وَتَرَکَهَا] (الترمذی واحمد۹ ۳۷۰ واسناده صحیح)

((زما د دنیا سره څه مطلب، په دنیا کښې زما مثال د هغه سور مسافر دے چه یو ساعت د یوے ونے سورې لاندے ایسارېږی بیا روانیږی))۔

او مسلمؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ او ابن ماجهؒ د مستورد ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : [وَاللّٰهِ مَا الدُّنْیَا فِی الآخِرَةِ اِلَّا مِثْلُ مَا یَجْعَلُ اَحَدُکُمْ اُصْبُعَهٗ هٰذِهٖ -وَاَشَارَ یَحْیٰی بِالسَّبَّابَةِ- فِی الْیَمِّ فَلْیَنْظُرْ بِمَ یَرْجِعُ]

((د دنیا مثال د آخرت په مقابله کښې داسے دے لکه څوک چه خپله ګوته په دریاب کښې ډوبه کړی بیا ئے راوباسی، د هغه په ګوته پورے به څومره حصه اُوبه راشی او نبی ﷺ په خپله مسواکئ ګوتے سره اشاره وکړه))۔ (مسلم : ۷۳۷۶)

| وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَا اُنْزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ |
| --- |
| او وائی هغه کسان چه کفرئے کړیدے ولے نشی نازلیدے په دۀ باندے معجزه |

| مِنۡ رَّبِّهٖ قُلۡ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنۡ يَّشَآءُ |
|---|
| د رب د طرف نه، اُووايه يقيناً الله گمراه کوي چا لره چه اُوغواړي |
| وَيَهۡدِيۡۤ اِلَيۡهِ مَنۡ اَنَابَ ﴿۲۷﴾ |
| او هدايت کوي ځان طرفته د هغه چا چه ورګرځي الله ته. |

**تفسير**: د وحي خبره شروع ده نو اُوس بيا د مکې کافرانو خبره رانقل کيږي او هغوی ته د معجزاتو په طلب کولو زجر ورکوي. دوی به وئيل چه که ته د الله نبي ئې نو د موسیٰ او عيسیٰ (عليهما السلام) په شان معجزات ولې نۀ راوړې، يا هغه څيزونه ولې نۀ راوړې کوم چه مونږ غواړو. (د حکمة خلاف معجزات ئې غوښتل) او د دوی مقصد خالص تکبر او عناد وو، د دوی نيت دا نۀ وو چه د هغې په ليدو سره به دوی ايمان راوړي.

بلکه مقصد ئې دا وو چه قرآن مۀ بيانوه.

الله تعالیٰ دوی ته جواب ورکوي چه د قرآن په شان معجزه موجوده ده نو بلې معجزې طلب کولو ته څه ضرورت دے، که تاسو کښې انابت وي نو دا يو دليل هم کافي دے، او که ضد درکښې وي نو ډير دليلونه به راشي خو وبه ئې نۀ منئ، او مقصد دا دے چه تاسو ځان کښې انابت پيدا کړئ نو پدے قرآن درته هدايت کيږي، دا کافي معجزه ده او تاسو چه کله ضد کوئ نو ضديان الله تعالیٰ گمراه کوي اګرکه هرڅومره معجزات ئې مخې ته راشي، يعني ضدي ته په نخو راوړو هدايت نۀ کيږي او انابت والا دپاره دا قرآن کافي دے.

مَنۡ اَنَابَ: يعني څوك چه الله ته راګرځي هغه ته الله تعالیٰ هدايت کوي نو ددے برعکس دا دے چه ضدي انسان ته هدايت نۀ کوي. معلوميږي چه د دوی دا اعتراض په عناد باندے بناء دے، ورنه دوی به دا قرآن منلے وے او ددے په ځاي به ئې د نورو نښو مطالبه نۀ کولے.

## منيب چا ته وائي؟

منيب: ۱- اَلَّذِيۡ يَدُوۡرُ مَعَ الۡحَقِّ حَيۡثُ دَارَ. د حق سره ګرځي چرته چه حق وي.

۲- انابة: كَيۡفِيَّةٌ قَلۡبِيَّةٌ فِيۡهَا الرُّجُوۡعُ اِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَالۡعُكُوۡفُ عَلَيۡهِ.

انابت د زړه يو کيفيت دے چه په هغې کښې الله تعالیٰ ته رجوع وي او په الله باندے زړه راجمع شي. لکه سورة الروم آيت (۳۳) کښې به راشي. ﴿وَاِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوۡا رَبَّهُمۡ

مُنِيبِيْنَ اِلَيْهِ﴾
(او کله چه ورسیرې انسانانو ته تکلیف، رابلی رب خپل انابت کونکی وی هغهٔ ته)۔
لکه په تکلیف کښ د انسان زړهٔ الله تعالیٰ ته څنګه متوجه وی دغه د انابت حالت دے۔
دلته د منیب نه مراد د حق طلبګار دے۔

| اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ |
|---|
| (دا) هغه کسان دی چه ایمان ئے راوړیدے او اطمینان نیسی (تسلی اخلی) زړونه د دوی |
| بِذِكْرِ اللهِ اَلَا بِذِكْرِ اللهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ﴿٢٨﴾ اَلَّذِيْنَ |
| په ذکر د الله تعالیٰ خبردار په ذکر د الله سره اطمینان نیسی زړونه۔ هغه کسان |
| آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى |
| چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه کوی نیك، خوشحالی ده (ښائسته حالت دے) |
| لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ﴿٢٩﴾ |
| دوی لره او ښائسته ځای د واپسئ دے۔ |

**تفسیر** : دے ځای نه د منیبینو (الله طرفته رجوع کونکو) صفات راوړی۔
اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا : ۱- دا بدل دے د (مَنْ اَنَابَ) نه نو د يَهْدِئ د لاندے دے۔ یعنی الله تعالیٰ هدایت کوی منیبینو ته یعنی هغه خلکو ته چه ایمان راوړی او تصدیق کوی۔ او دا ظاهر ترکیب دے۔ ۲- ځینی وائی چه اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا خبر د مبتداء محذوف دے اَیْ هُمُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا۔ دا منیبین هغه خلك دی چه ایمان راوړی۔
تَطْمَئِنُّ : اطمینان د زړهٔ یقین او سکون ته وائی چه د پریشانئ نه په آرام شی۔
تَطْمَئِنُّ ئے مضارع راوړه اشاره ده استمرار تجددی ته یعنی د ایمان نه روستو وخت په وخت د دوی په زړونو کښ اطمینان راځی۔
کرخیؒ وئیلی دی چه په مضارع کښ کله د یوے مُعَیّنے زمانے لحاظ نهٔ وی لکه د حال یا د استقبال، نو په دغه وخت کښ به په استمرار باندے دلالت کوی لکه پدے آیت کښ شو۔
سیوطیؒ وائی چه دا خبره په ډیرو ځایونو کښ فائده ورکوی۔ (فتح البیان)

## د ذکر الله مطلبونه

۱- بعید مطلب دا دے چه د ذکر الله نه مراد قسم دے۔ یعنی کله چه یو مؤمن ته قسم وشی چه قسم په الله ما دا کار نهٔ دے کړے نو د هغهٔ اطمینان راشی۔ او دا به د مؤمن صفت وی چه د الله په نوم به یقین لری اگر که ددهٔ مخالف قسم خور به دروغجن وی، دے به د الله نوم ته گوری، نهٔ دنیا او مال وغیره ته۔ عیسیٰ ﷺ یو تن ولیدو چه غلا ئے کوله نو هغهٔ ورته وویل چه اے فلانیه غلا دِے وکړه۔ نو هغهٔ وویل : [وَاللّٰهِ الَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ مَا سَرَقْتُ] قسم په هغه الله چه د هغهٔ نه سوئ بل حقدار د عبادت نشته، ما غلا نهٔ ده کړے۔ عیسیٰ ﷺ وفرمایل: [آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَ کَذَّبْتُ بَصَرِیْ] ما د الله نوم ومنلو او خپلے سترگے مے دروغجنے کړے۔ (احمد : ۸۹۶۱) والنسائی (۵۴۲۷ وسنده صحیح- البانی) او دغه شان واقعه د رسول الله ﷺ سره هم راغلے وه۔ (المطالب العالیه : ۱۷۷۶) او په حدیث د ابن ماجه کښ دی :

[وَمَنْ حُلِفَ لَهٗ بِاللّٰهِ فَلْيَرْضَ وَمَنْ لَّمْ يَرْضَ بِاللّٰهِ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ]

او چا ته چه په الله باندے قسم وکړے شو نو هغه دِے راضی شی او څوک چه په الله باندے راضی نشی نو هغه د الله (د صحیح بندگانو) نه نهٔ دے۔ (ابن ماجه :۲۱۰۱ وسنده صحیح)

۲- اَیْ ذِکْرُ رَحْمَتِهٖ ۔ذکر نه مراد د الله تعالیٰ رحمتونه یادول دی، د الله تعالیٰ د رحمتونو تذکرے چه کله کیږی نو مؤمن بنده طمع پیدا شی چه الله تعالیٰ به په مونږ باندے رحم کوی او بخښنه به کوی۔ او پدے طریقه ئے زړهٔ ته اطمینان راشی۔ یعنی که څوک ورته د الله تعالیٰ نعمتونه یاد کړی یا ئے خپل ځان ته رایاد کړی۔ دا مطلب د مخکښ نه غوره دے۔

۳- د ذکر نه مراد تسبیحات او شرعی اذکار دی چه مؤمن کله دا وائی نو پدے ئے یقین وی چه دغه شان به کیږی او زړهٔ ئے پدے مطمئن وی چه الله تعالیٰ به مو ددے اذکارو په وجه د مصیبتونو نه ساتی۔

٤- یا دژبے او د زړه او د عباداتو ټولے طریقے مراد دی چه پدے سره انسان ته سکون حاصلیږی۔ چونکه الله تعالیٰ انسان لره د خپل عبادت دپاره پیدا کړیدے، پدے وجه د هغهٔ زړهٔ ته صرف د هغهٔ په یاد سره سکون ملاویدے شی۔

۵- اعلیٰ دا ده چه د ذکر نه مراد قرآن کریم دے۔ لکه الله تعالیٰ قرآن کریم ته په ډیرو ځایونو کښ ذکر وئیلے دے۔ ﴿وَهٰذَا ذِكْرٌ مُّبَارَكٌ اَنْزَلْنَاهُ﴾ (انبیاء : ۵۰) ﴿اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ﴾ (الحجر: ۹) نو مؤمن بنده ته چه کله په یوه مسئله کښ وویل شی چه دا خبره فلانی کړیده

نـو دومره اطمینان ئے نهٔ کیږي خو کله چه ورته وویل شي چه دا خبره په قرآن کریم کښې راغلې ده نو بس د هغهٔ زړه اطمینان وکړي.

او دا دلیل دے چه څوك د الله تعالیٰ په کتاب او سنتِ رسول باندے اطمینان کوي هغه به مؤمن وي، او ددے په خلاف که د چا په قرآن او سنت باندے تسلي نهٔ کیږي، او د بعض علماؤ په بې دلیله خبره ئے تسلي کیږي نو ددهٔ په ایمان کښې نقصان دے.

پدے وجه علماؤ لیکلي دي چه د قرآن کریم تلاوت، د هغے آوریدل، او په هغے کښې سوچ او فکر کول، دا د ذکر الهي ډیرے مفیدے طریقے دي.

**أَلَا**: دا حرف د زیات متوجه کولو دپاره په اول د کلام کښې راځي یعني اے خلکو! ویښ شئ او خبرے ته متوجه شئ.

**بِذِكْرِ اللهِ**: دا جار مجرور ئے مخکښې راوړو پدے کښې اشاره ده حصر ته. یعني صرف او صرف د الله په ذکر زړونو ته اطمینان رسي نهٔ په بل شي سره.

د ذکر دپاره ئے اطمینان ذکر کړو ځکه چه زړهٔ الله تعالیٰ محتاج اندام پیدا کړیدے ظاهراً او باطناً، ظاهراً احتیاج ئے دا دے چه زړهٔ ته دوه پنکهے لګیدلي دي یو ورته یخه هوا دننه ننباسي او بله ګرمه هوا راوباسي. که دا بند شي نو دوه درے مینټه کښې انسان مري. او زړهٔ کښې باطني احتیاج دادے چه زړه همیشه بې چینه، بې اطمینانه، پریشانه وي مګر هله چه دا څه ته تکیه ولګوي نو د انسانانو طریقه دا ده چه زړهٔ ته د مال په ذریعه تکیه طلب کوي، حال دا چه په هغے سره اطمینان نهٔ راځي اګرکه هسے پرے نشه شي. ځوان وائي چه په ښځے سره به اطمینان راشي، اګرکه پدے سره معمولي غوندے سکون حاصلیږي مګر پوره نهٔ حاصلیږي. بعض خلك اطمینان په حکومتونو او بادشاهیانو کښې ګوري، او بعض ئے په چکرو او سیالونو کښې، لیکن د هغے سره پریشانئ ملګرې دي، د زړهٔ د سکون صرف یوه ذریعه ده چه هغه د الله تعالیٰ ذکر دے. یعني د چا چه د دین سره تعلق وي د هغه زړهٔ کښې اطمینان وي او په هغے کښې چه بیا څوك څومره زیات تعلق د ذکر او عباداتو سره لري اطمینان به ئے زیات وي.

حافظ ابن القیمؒ هم دا معنیٰ ادا کړیده.

| | | |
|---|---|---|
| نَقِّلْ فُؤَادَكَ حَيْثُ شِئْتَ مِنَ الْهَوٰى | ❁ | وَاخْتَرْ لِنَفْسِكَ أَحْسَنَ الْإِنْسَانِ |
| فَالْقَلْبُ مُضْطَرٌّ إِلٰى مَحْبُوْبِهِ الْأَ | ❁ | عَلٰى فَلَا يُغْنِيْهِ حُبٌّ ثَانِ |

| | | |
|---|---|---|
| وَصَلَاحُــهُ وَفَلَاحُـــهُ وَنَـعِيمُــهُ | ۞ | تَـحُـرِيـدُ هـذَا الْـحُـبِّ لِلرَّحْـمٰنِ |
| فَـاِذَا تَـخَـلّٰى مِنْـهُ اَصْبَحَ حَائِرًا | ۞ | وَيَـعُـوْدُ فِـي ذَا الْـكَوْنِ ذَا هَيَمَـانِ |

زړه دے چه کوم ځای خوښ وی هلته نقل کړه، او ځان دپاره ښکلے انسان منتخب کړه، ۞ ځکه چه زړه اعلیٰ محبوب طلب کولو ته محتاج دے، هغهٔ له بل محبت فائده نشي ورکولے۔

۞ او د انسان جوړوالے (نیکی) او کامیابي او نعمتونه دا دي چه دا محبت د رحمٰن دپاره خالص کړي۔ ۞ نو کله چه ددهٔ زړهٔ د الله د مینے نه خالي شي نو حیران به وګرځي او پدے عالَم کښې به پریشانه وي۔

اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا : یعني کله چه زړونو ته اطمینان ورسیږي نو بیا نیک عملونو ته متوجه شي او په هغے کښې مصروف شي او د الله بندګیانے ورله خوند ورکوي او ددے نه بغیر ئے هیڅ وخت نهٔ تیریږي او دا به څه ایمان وي چه د ډانګي په زور عباداتو ته راځي۔

طُوْبٰى لَهُمْ : ١- دا په جنت کښې یوه ونه ده چه الله تعالیٰ په خپل لاس ناله کړیده نو ددے وجه نه ددے مبتداء جوړیدل صحیح دي، علمیت پکښې دے۔ بیا ئے حاصل معنیٰ د جنت ده لکه حُسْنُ مَآبٍ ئے تفسیر دے۔ ٢- ظاهر دا ده چه دوه جزاګانے دي په دنیا کښې طوبیٰ او په آخرت کښې حُسْنُ مَآب دے۔ نو د طوبیٰ نه مراد (عَيْشَةٌ طَيِّبَةٌ وَحَالَةٌ مُسْتَطَابَةٌ) دے، (ابن الانباري) یعني مزیدار ژوند او ښه حالت۔ لکه سورة النحل کښې فرمائي :

﴿فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً﴾ (النحل:٩٧) او طوبیٰ ټولو نعمتونو ته شامل دے۔

ځینې مفسرینو ئے لاندینۍ معاني کړیدي : ۞ (خَيْرٌ لَّهُمْ) (غوره والے دے دوی لره)

۞ او ځینو په (كَرَامَةٌ لَّهُمْ) (عزتونه به وي دوي لره) ۞ او ځینو په [غِبْطَةٌ لَّهُمْ] (دوی ته پسخیدل کیږي) سره معنیٰ کړیده۔ ۞ ابن عباسؓ ئے معنیٰ کوي : [فَرَحٌ لَّهُمْ وَقُرَّةُ أَعْيُنٍ] (خوشحالي ده دوی لره او د سترګو یخوالے دے)۔ (فتح البیان)

مَآبٍ : (اَيْ مَرْجِعٌ) ښائسته ځای د واپس کیدو۔

| |
|---|
| كَذٰلِكَ أَرْسَلْنَاكَ فِيْ أُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَا أُمَمٌ |
| دغه شان لیږلے ئے مونږ ته پداسے امت کښې چه تیر شویدي مخکښې ددے نه امتونه |
| لِّتَتْلُوَ عَلَيْهِمُ الَّذِيْ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَهُمْ |
| دے دپاره چه تهٔ اُولولے په دوی باندے هغه کتاب چه وحي کړیده مونږ تا ته او دوی |

| يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ قُلْ هُوَ رَبِّيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا |
| --- |
| انکار کوی د رحمٰن (د بندګئ) نه، اُووایه الله رب زما دے نشته حقدار د بندګئ سوئ |
| هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ مَتَابِ ﴿۳۰﴾ |
| د هغهٔ نه خاص په هغه باندے ما ځان سپارلے دے او خاص هغهٔ ته واپس کیدل دی زما۔ |

**تفسیر** : كَذٰلِكَ اَرْسَلْنَاكَ: ۱- دا تشبیه ده، مشبه ئے پټه ده، [اَیْ كَمَا اَنَّ اللّٰهَ يَهْدِیْ وَيُضِلُّ كَذٰلِكَ اَرْسَلْنَاكَ تَهْدِیْ بِكَ مَنْ نَشَاءُ وَنُضِلُّ بِكَ مَنْ نَشَاءُ] لکه ځنګه چه الله تعالیٰ هدایت کوی او څوك ګمراه کوی نو ته ئے هم راولیږلے ستا په وجه به چا ته هدایت وکړی او څوك به ګمراه کړی۔ ۲- صاحب د فتح البیان لیکی چه کله تشبیه د تعظیم او کمال دپاره وی، [اَیْ مِثْلَ ذٰلِكَ الْاِرْسَالِ الْعَظِيْمِ الشَّاْنِ الْمُشْتَمِلِ عَلَى الْمُعْجِزَةِ الْبَاهِرَةِ اَرْسَلْنَاكَ اِرْسَالًا لَهٗ شَاْنٌ] یعنی د دغه لوی شان او مرتبے والا رالیږلو په شان چه په قوی معجزه باندے مشتمل دے مونږ ته راولیږلے په داسے رالیږلو سره چه ډیر لوی شان لری۔

۳- یا مطلب دا دے چه لکه ځنګه چه پخوانو خلکو باندے انعام شوے وو په رالیږلو د رسولانو نو دغه شان مونږ په موجوده خلکو انعام وکړو په رالیږلو ستا سره۔

(القرطبیؔ وفتح البیان)

٤- یا کاف اجلیه دے او معنیٰ دا ده چه هرکله چه د زړونو د اطمینان ذریعه د الله تعالیٰ ذکر یعنی وحی ده نو مونږ ته د وحی د بیانولو دپاره راولیږلے۔ (احسن الکلام)

نو په دے آیت کښې د رسول الله ﷺ صدق او د هغه د رالیږلو حکمت ذکر دے، او د وحی خلاصه پکښې ذکر ده چه هغه توحید دے۔ مطلب د آیت دا دے : لکه ځنګه چه مونږ مخکښې ډیر انبیاء لیږلی دی، اُوس مونږ ته رالیږلے ئے، دے دپاره چه ته قریش کافرانو او نورو خلقو ته هغه قرآن ولولے چه ستا دپاره د الله تعالیٰ د تولو نه لویه معجزه او د انسانانو دپاره د الله رحمت دے۔ لیکن کافران د هغه ذات باری تعالیٰ نه انکار کوی چه د هغه یو صفت ((رحمٰن)) هم دے او هغه ذات چه د خپل دے صفت د رحمت د تقاضے مطابق ئے د انسانانو د هدایت دپاره قرآن کریم نازل کړیدے، او نبی ﷺ ئے رحمة للعالمین جوړولو سره رالیږلے دے۔ لکه چه الله تعالیٰ په سورة الانبیاء آیت (۱۰۷) کښې فرمایلی دی : ﴿وَمَا اَرْسَلْنَاكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِيْنَ﴾ چه (مونږ تا لره د تول جهان دپاره رحمت رالیږلے دے)۔ په آیت

کښې دي ته اشاره ده چه د قریشو کافرانو د وحی نعمت شکر ادا نکړو۔
قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَا : یعنی مخکنو امتونو د پیغمبرانو تکذیب کړې وو او ستا دې قوم د هغوی نه ستا زیات تکذیب وکړو نو هغوی ته مونږ سزا ورکړه نو ستا قوم ته به هم سزا ورکړو۔ (ابن کثیرؒ)
وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِالرَّحْمٰنِ : مشرکانو د رحمٰن نه درې قسمه انکار کولو (۱) یو ئې د رحمٰن د نوم نه انکار کولو او دا به ئې ویل چه [لَا نَعْرِفُ الرَّحْمٰنَ إِلَّا رَحْمٰنَ الْيَمَامَةِ] مونږ د یمامې د رحمٰن نه علاوه بل رحمٰن نهٔ پیژنو۔ (یعنی مسیلمة الکذاب ته به ئې رحمٰن وئیلو) او مشرکانو ته به وویل شو : ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمٰنُ﴾ (الفرقان : ٦٠) (کله چه وویل شی دوی ته چه سجده وکړئ رحمٰن ته نو دوی وائی چه رحمٰن څوک دې؟) د رحمٰن د نوم نه به ئې نفرت کولو او حال دا چه رحمٰن د الله تعالیٰ ډیر خوږ نوم او عظیم صفت دې، پدې وجه ددې نه انکار کول په الله تعالیٰ باندې ډیر بد لګی نو ځکه ئې په قرآن کریم کښې بار بار په مشرکانو ردونه کړیدی۔
او دا معلومه شوه چه د الله تعالیٰ د یو صفت نه هم انکار کفر دې۔ الله تعالیٰ ورته کافر وویل۔ اګرکه دې خلکو الله تعالیٰ منلو مګر ددې یو صفت نه ئې منکر وو۔
د صلح حُدیبیه په موقع ئې وئیلی وو چه مونږ ((رحمٰن)) نهٔ پیژنو، نو رسول الله ﷺ د هغې په ځای ((الله)) لیکلو باندې اکتفاء وکړه۔ (بخاری) ۔ په صحیح مسلم کښې د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت شویدې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : ((د الله په نیز د ټولو نه ښهٔ نوم عبد الله او عبد الرحمٰن دی))۔ (ابن کثیرؒ والقرطبیؒ والبغویؒ وابن عاشورؒ) (مسلم : ۵۷۰۹)
نو پدې کښې رد دې په هغه خلکو باندې چه د الله تعالیٰ ددې صفت نه انکار کوی قصداً یا په طریقه د تاویل سره۔
(۲) دویم کفر د دوی په طریقه د شرك کولو سره وو چه د الله تعالیٰ سره به ئې برخه داران جوړول او شرك هم کفر دې۔ نو دوی د الله تعالیٰ حقیقت ونهٔ منلو۔
(۳) دریم کفر : (اَلْإِنْكَارُ مِنْ آيَاتِ اللهِ) په طریقه د انکار د آیتونو د الله تعالیٰ نه کول، نو د الله تعالیٰ د یو آیت نه انکار کول کفر دې، لکه عادیانو صرف د هود علیه السلام نه انکار کړې وو الله تعالیٰ وفرمایل: ﴿أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ﴾ عادیانو د خپل رب نه انکار کړې وو۔ اګرکه دوی الله تعالیٰ منلو لیکن د هغهٔ رسول ئې نهٔ منلو، نو دوی په الله باندې کفر کونکی حساب شو۔

قُلْ هُوَ : یعنی دغه رحمٰن چه تاسو ترے انکار کوئ دغه زما رب دے نو د انکار هیڅ وجه نشته.

لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ : دا وربسے ځکه ووېل چه رسول الله ﷺ به کله الله او رحمٰن ته آواز کولو نو دوی به وېل چه دا خو دوه آلهه شول او دے وائی چه الله یو ذات دے، نو الله تعالیٰ جواب وکړو چه رحمٰن او الله یو ذات دے، د هغهٔ نه سوئ بل لائق د عبادت نشته. نو په کثرت د صفاتو سره تعدد په آلهو کښې نهٔ راځی.

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ: توکل ته پدے مقام کښې ځکه ضرورت دے چه دا متعلق دے د (لِتَتْلُوَا) سره، یعنی ځوك چه قرآن بیانوی نو د هغهٔ توکل ته سخت ضرورت وی. بله دا چه مخالفین منکرین وو او د منکر په مقابله کښې هم توکل کول پکار وی ځکه چه منکر مقابله کوی او بنده ته لارے نیسی.

وَإِلَيْهِ مَتَابِ : متاب مصدر دے په معنیٰ د توبه سره. دلته ئے هم د توکل سره توبه ذکر کړه ځکه چه توکل بغیر د عمل نه نهٔ کیږی. او پدے کښې کافرانو باندے تعریض دے او هغوی ته تیزی ورکول دی چه د کفر نه توبه وباسئ او اسلام ته راداخل شئ، د توکل او توبے مستحق صرف همدغه یو الله دے. (فتح البیان)

| وَلَوْ أَنَّ قُرْآنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ أَوْ قُطِّعَتْ |
|---|
| او که چرے وے یو قرآن چه روانیدے شوے په هغے سره غرونه یا پریکیدے شوے |
| بِهِ الْأَرْضُ أَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى |
| په هغے سره زمکه یا خبرے کیدے شوے د هغے په سبب د مړو سره (نو دا قرآن به هم |
| بَلْ لِلّٰهِ الْأَمْرُ جَمِيعًا ۗ أَفَلَمْ يَيْأَسِ الَّذِينَ |
| دغسے وی) بلکه الله لره اختیار دے ټول، آیا پس نهٔ پو هیږی هغه کسان |
| آمَنُوا أَنْ لَوْ يَشَاءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ |
| چه ایمان ئے راوړیدے که چرے غوختلے الله تعالیٰ خامخا هدایت به ئے کړے وے خلقو |
| جَمِيعًا ۗ وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا تُصِيبُهُمْ بِمَا صَنَعُوا |
| تولو ته او همیشه به وی کافران چه رسیږی به دوی ته په وجه د هغے چه کړیدی دوی |

قَارِعَةٌ أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ حَتَّىٰ يَأْتِيَ وَعْدُ اللَّهِ

مصیبت، یا به نازل شي (مصیبت) نزدې د دوی کورونو ته تردې چه راشي وعده د الله.

إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ﴿٣١﴾

یقیناً الله خلاف نهٔ کوی د وعدې خپلې نه.

**تفسیر** : پدې آیت کښې زجر دې په اعراض کولو د الله تعالیٰ د کتاب نه، او جواب د سوال دې چه دوی وئیلي وو چه مونږ به دا قرآن هله منو چه د مکې نه غرونه لرې کړې، یا زمکه سورې کړې او چینې ترې راوباسی، یا مړی راژوندی کړې (قصی بن کلاب دې راژوندې کړې شي چه هغه ووائي چه آؤ دا قرآن حق دې) مونږ به ئې هله منو.

نو پدې کښې د بعض مؤمنانو په زړونو کښې راغلل چه الله تعالیٰ دې دا کار وکړی (هغه ته دا هیڅ یو کار گران نهٔ دې) کیدې شي چه دا خلك به ایمان راوړی، مونږ به هم د لانجو نه خلاص شو او دوی به هم حق ته راشي لکه د هر مؤمن دا تمنا وی چه یو ناشنا کار وشي چه دا خلك ایمان ته مجبوره شي.

نو الله تعالیٰ مؤمنانو ته تعلیم ورکوی په (أَفَلَمْ يَيْأَسِ الَّذِينَ آمَنُوا) کښې چه داسې سوالونه مهٔ کوئ او د الله تعالیٰ نه خانونه مهٔ مخکښې کوئ، تاسو داسې د مجبورتیا معجزې مهٔ غواړئ چه دوی مجبوره کړی. نو پدې صورت کښې به معنی داسې وی چه :

(۱) د قرآن نه به دا قرآن مراد واخستې شي، نکره به په معنیٰ د معرفې سره وی، ځکه چه دا عَلَم دې، ظاهره کښې نکره ده مگر حقیقت کښې معرفه ده. او ددې جزاء به محذوف وی [لَمَا آمَنُوا] یعنې که دا کارونه وکړې شي هم دا خلك ایمان نهٔ راوړی، ضدیان دی. او دا ظاهر تفسیر دې لکه داسې آیت په سورة الانعام (۱۱۱) آیت کښې تیر شویدې : ﴿وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتَىٰ وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾ . (که مونږ دوی ته ملائك راولیږو، یا مړی دوی سره خبرې وکړی او دوی باندې هر شے مخامخ راجمع کړو نو بیا هم دوی ایمان نهٔ راوړی مگر که الله تعالیٰ وغواړی)

بَل لِّلَّهِ الْأَمْرُ جَمِيعًا : سورتِ انعام کښې ئې (إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ) وویل او دلته ئې (بَل لِّلَّهِ الْأَمْرُ) وویل، د دواړو حاصل یو دې، او دا ورسره ددې دپاره وائي چه څوك به دا گمان وکړی چه الله تعالیٰ به گنې د دوی په ایمان قادر نهٔ وی؟ نو وې فرمایل : چه واك تول د الله تعالیٰ دې هغه

کولے شي چه دے تولو ته د ایمان توفیق ورکړي، لیکن د هغهٔ طریقه دا ده چه هغه په زوره په چا ایمان نهٔ راوړي بلکه بندګانو ته اختیار ورکوي.

۲- دویم تفسیر: د قرآن نه مراد لوستلے شوے کتاب دے چه ددے اطلاق په هر کتاب کیږي، لکه د داود ﷺ په زبور باندے ئے اطلاق شویدے [خُفِّفَ عَلٰى دَاوُدَ الْقُرْآنُ] په داود ﷺ باندے زبور کتاب آسان کړے شوے وو. (بخاري: ۳٤۱۷) ورقم (۳۲۳۵) واحمد: ۸۱٤۵)

او مطلب د آیت دا دے چه که په پخوا زمانه کښې په یو کتاب باندے دا کارونه کړے شوي وي نو ددے جزا پټه ده [لَكَانَ هٰذَا الْقُرْآنُ] نو پدے قرآن به هم دغه شان کارونه کیدلے. لیکن په پخوانو کتابونو الله تعالیٰ دا کارونه نهٔ دي کړي نو پدے قرآن ئے هم نهٔ کوي ځکه چه دا کتابونه ددے دپاره نهٔ دي راغلي دي چه د الله تعالیٰ نظام به خرابوي او دا سوالونه خو د الله تعالیٰ نظام خرابول دي.

سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ: ۱- ددے یوه معنیٰ دا ده چه غرونه پرے د مکے نه لرے کړے شي دے دپاره چه مکه فراخه شي، او دوي پکښې کرونده وکړي، (قاله عطية العوفيّ)

او د زمکے قطع کولو نه مراد دا چه د زمکے نه چینے او نهرونه راوځي لکه په سورة اسراء (۹۱) آیت کښې راغلي دي.

۲- او ځینې مفسرین وائي چه سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ کښې د داود ﷺ معجزے ته اشاره ده چه د هغهٔ سره به غرونه روان وو او د هغهٔ تابع وو. او په (قُطِّعَتْ بِهِ الْأَرْضُ) کښې د سلیمان ﷺ معجزے ته اشاره ده چه په لږ وخت کښې به ئے ډیره مسافه وهله، او تخت به ئے په هوا باندے الوتلو. (اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى) کښې د عیسی ﷺ معجزے ته اشاره ده چه مړي به ئے راژوندي کول. (القرطبي ۹/۳۱۹ وفتح البيان)

أَفَلَمْ يَيْأَسِ: اوس د مؤمنانو په تمنا باندے رد کیږي او د هغوي اصلاح کولے شي.

زجاج وائي: يَيْئَس (يأس) نا امیدئ ته وئیلے شي او کله چه یو انسان د یو شي نه نا امیده شي نو هغه ته علم راشي چه دا کار نهٔ کیدونکے دے. نو پدے وجه يَيْئَسْ په معنیٰ د يَعْلَمْ سره دے. (یعنی آیا نهٔ پوهیږي مؤمنان).

او کلبيّ وئیلي دي چه دا لغت د نخع قبیلے دے او جوهريّ په «الصحاح» کښې لیکلي چه دا لغت د هوازن دے چه يَأْس په معنیٰ د عِلم سره استعمالوي. او دا د سلفو د یوے ډلے وینا ده. او د صحابه کرامو او د تابعینو یوے ډلے ددے تفسیر په (أَفَلَمْ يَتَبَيَّنْ) سره کړیدے. (فتح البيان) یعنی آیا نهٔ دے ښکاره شوے مؤمنانو ته دا خبره الخ.

أَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا : مِنْ غَيْرِ اَنْ يُّشَاهِدُوا الآيَاتِ :
آیا مؤمنانو ته ددے خبرے علم نشته چه که الله تعالیٰ وغواړی نو ټولو خلکو ته هدایت کولے شی په غیر ددے نه چه هغوی معجزات او ننیے ووینی لیکن الله تعالیٰ دا کار نۀ کوی ځکه چه الله تعالیٰ د دوی د هدایت اراده نۀ ده کړے۔ (فتح)
د الله تعالیٰ طریقه دا ده چه هغه په چا باندے په ایمان کښې زور نکوی نو تاسو هم داسے معجزات مۀ غواړئ چه هغه د زور سره مشابه وی چه د هغے نه روستو خلك مجبوراً ایمان ته راځي۔
وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : اُوس الله تعالیٰ کافرانو ته وائی چه زۀ به دوی ته وخت په وخت سزا ورکوم دے دپاره چه دوی ایمان ته متوجه شی، بیا ئے خوښه ده چه ایمان راوړی او که نۀ۔
په بل تعبیر سره پدے جمله کښې کافرانو دپاره بالعموم او د مکے کافرانو دپاره بالخصوص ډیر غټ وعید دے چه د دوی د کفر او د رسولانو د تکذیب په نتیجه کښې به دوی ته همیشه یو نه یو مصیبت رسیږی۔ قتلیږی به، یا به قید کولے شی، یا به قحط سالی کښې اخته کیږی، یا به ئے بل کوم عذاب رانیسی۔
أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّنْ دَارِهِمْ : ۱- تَحُلُّ صیغه د مؤنث ده ضمیر پکښې قارعه ته راجع دے یعنی دا قارعه (عذاب) به د دوی کورونو ته نزدے نازلیږی یعنی یا به دوی ته نزدے وسیدونکو باندے یو عذاب نازلیږی چه د هغے په لیدلو سره به د دوی زړونه خوزیږی او د دوی سکون به اخستے کیږی۔ مطلب دا دے چه که په دوی عذاب نازل نۀ شی نو دوی ته نزدے قوم باندے به عذاب راشی چه د دوی سکون به پرے ختم شی۔ لکه مشرکانو باندے به وخت په وخت عذاب راتللو، په مکه کښې به یریدل۔
۲- یا تَحُلُّ صیغه د مخاطب ده، نبی کریم ﷺ ته خطاب دے، یعنی یا به تۀ نازل شے نزدے د دوی کورونو ته یعنی د دوی په خواؤ شا باندے به غلبه وکړے لکه چه رسول الله ﷺ د مکے سره نزدے نورو کلو باندے غلبه حاصله کړه چه مکے والا هم ترے ویریدل۔ او طائف والا رسول الله ﷺ محاصره کړل او د هغوی همدغه کیفیت جوړ شو۔ (فتح)
حَتّٰى يَأْتِيَ وَعْدُ اللّٰهِ : ۱- یعنی په دنیا کښې د فتح وعده ده چه رشتینی شوه چه مکه فتح شوه۔ ۲- یا د مرګ۔ ۳- یا د آخرت د راتللو وعده ده۔

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَأَمْلَيْتُ

او یقیناً توقے کړے شویدی په رسولانو پورے مخکښې ستا نه نو مهلت مے ورکړو

لِلَّذِينَ كَفَرُوا ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴿۳۲﴾

هغه کسانو ته چه کافران وو بیا مے اُونیول دوی نو څنګه وو عذاب زما دوی لره۔

أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ

آیا پس هغه ذات چه ولاړ دے په هر نفس باندے په هغه عمل چه کړے ئے دے

وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ قُلْ سَمُّوهُمْ أَمْ

او جوړ کړیدی دوی الله لره برخه داران اُووایه! صفتونه د دوی بیان کړئ بلکه

تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْأَرْضِ أَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ

خبر ورکوئ تاسو الله ته د هغه څه چه نۀ ئے پیژنی هغه په زمکه کښې بلکه په سرسری وینا سره

بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ

بلکه خائسته کړے شویدی کافرانو ته مکرونه د دوی او اړولے شویدی د سمے لارے نه

وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴿۳۳﴾

او هغه څوک چه الله ئے ګمراه کړی نو نشته هغه لره هیڅوک لارخودونکے۔

**تفسير** : نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړے شویده او پدے تسلئ کښې تهدید (دهمکی) هم ده چه ستا نه مخکښې هم زما د ډیرو رسولانو پورے توقے شویدی، نو ما هغه کافرانو ته څه ورځے مهلت ورکړو، بنه په آرام او سکون سره وسیدل، بیا ناڅاپی ما هغوی راونیول او زما عذاب ډیر سخت وو۔

فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ: (اَیْ اَلَمْ یَکُنْ وَقَعَ مَوْقِعَهٗ / اَلَمْ یَکُنْ شَدِیْدًا)۔

یعنی څنګه شو زما عذاب هغوی لره آیا هغه په خای واقع نشو څه؟ آیا هغه ګنے سخت نۀ وو؟۔ نو دغه شان به دا خلك هم رانیسم۔

أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ : پدے آیت کښې د الله سبحانه وتعالیٰ د علم او د قدرت بیان دے۔

## مناسبت

کافرو ته چه الله تعالیٰ مهلت ورکړیدے نو د دوی عملونو نه بنهٔ خبردار دے، داسے نه نهٔ ده چه ګنے الله تعالیٰ پرے خبر نهٔ دے بلکه په خپل تهیم به ورله عذاب ورکوی ځکه چه الله تعالیٰ په هر نفس باندے قادر او عالم دے۔ نو هرکله چه الله تعالیٰ په هر شی قادر او عالِم دے، بیا هم مشرکان ظالمان رالګیږی او د داسے لوی ذات سره نور شریکان جوړوی۔

(۲) دویم تفسیر: اَفَمَنْ: ددے استفهام نه مقصود د کافرانو زجر او توبیخ دے چه آیا هغه حق معبود چه د یو یو انسان نګرانی کوی چه د هغهٔ نه د دوی هیڅ عمل پټ نهٔ دے. آیا د هغه بتانو په شان دے د کومو چه دوی عبادت کوی، کوم چه نهٔ آوری او نهٔ ګوری او نهٔ پوهیږی او نهٔ چا ته د نفع او نقصان ورکولو قدرت لری؟۔

قَائِمٌ: نه مراد عالم دے، ۲- او مُراقِب (نګهبان) هم دے۔

۳-اَیِ الْحَفِیْظُ الْمُتَوَلِّیْ لِلْاُمُوْرِ۔ (د هر نفس ساتونکے او د هغوی د کارونو سنبالونکے)۔

(اَفَمَنْ) ددے جزا پټه ده اَیْ کَمَنْ هُوَ لَیْسَ کَذٰلِكَ۔ دا په شان د هغه چا کیدے شی چه داسے حالت ئے نهٔ وی یعنی مخلوق عاجز دے، نهٔ عالم دے، نهٔ قادر دے او نهٔ مراقب دے او الله تعالیٰ کښې دا درے واړه صفات شته نو اُوس یواځے د هغه بندګی پکار ده لیکن بیا هم مشرکان د الله سره برخه داران جوړوی۔

عَلٰی کُلِّ نَفْسٍ بِمَا کَسَبَتْ: یعنی د نفس په ذات او د هغه په کسب دواړو باندے عالم دے۔

قُلْ سَمُّوْهُمْ: اَیْ صِفُوْهُمْ وَبَیِّنُوْا اَوْصَافَهُمْ بِمَا یَسْتَحِقُّوْنَ۔ یعنی ددے خپلو معبودانو صفات راوښایئ چه دوی مخلوق پیدا کړیدے او کوم کمال ئے کړیدے چه د هغے په وجه دوی د عبادت مستحق شی؟۔ او لږ سوچ خو وکړئ چه آیا دوی ستاسو د عبادت مستحق دی، او آیا دوی لائق دی ددے چه دوی د الله شریکان جوړ شی؟!۔ (فتح)

❁ یا د سَمُّوْهُمْ معنیٰ دا ده چه دوی ته د شریکانو نومونه ورکړئ ځکه چه د دوی هیڅ برخه نشته سویٰ د نوم نه، یعنی په حقیقت کښې خو د الله تعالیٰ شریك نشته خو هسے تاسو ورله نومونه ورکړیدی چه دا بابا د فلانی مرض ذمه وار دے، او فلانے بابا د اولادو ورکولو ذمه وار دے، نو دے له هیڅ اعتبار نشته، نو دا امر مستعمل دے په معنیٰ د اباحت کښې نو دا کنایه ده ددے نه چه دوی چه دا دعوه کوی چه دا شریکان دی نو ددے هیڅ پرواه نشته، بی حقیقته خبره ده۔ او دا داسے دے لکه ﴿اِنْ هِیَ اِلَّا اَسْمَاءٌ سَمَّیْتُمُوْهَا﴾ (النجم: ۲۳)

یعنی دا تش نومونه دي چه هیڅ مسمیات (حقیقت) نې نشته چه په هغې کښې صفت د الوهیت راشي. نو پدې کښې د دوي د عقلونو بې وقوفتیا ته اشاره ده چه دوي هغه څیزونه ته آلهه وائي چه د هغې هیڅ حقیقت نشته. (ابن عاشور ۱۹۲/۱۲)

أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ: ام منقطعه دې په معنیٰ د بَلْ سره. یعنی بلکه تاسو الله تعالیٰ ته خبر ورکوئ په هغه څه چه الله تعالیٰ ته نهٔ دي معلوم په زمکه کښې. یعنی موجود نهٔ دې څکه که دا موجود وې نو ضرور به الله تعالیٰ ته معلوم وې. نو نفي د علم نه مراد نفي د وجود دې.

فِي الْأَرْضِ: د زمکې تخصیص ئې وکړو څکه چه دلته په هغه چارد کول مقصود دې چه په زمکه کښې الله تعالیٰ لره شریك جوړوي او په سورة یونس (۱۸) آیت کښې د عامو مشرکانو رد دې نو څکه ئې هلته د آسمانونو او د زمکې دواړو ذکر کړیدې. (احسن الکلام)

أَمْ بِظَاهِرٍ مِنَ الْقَوْلِ: بلکه دا سرسري خبره ده چه هیڅ حقیقت ئې نشته، او ظاهري خبرې دا دي چه خلکو ویلي دي چه فلانې بابا ددې بیمارئ ذمه وار دې، او فلانې حاجت پوره کونکې دې، هیڅ دلیل پرې نشته.

علامه قاسميؒ ددې مثال داسې ورکړیدې كَتَسْمِيَةِ الزَّنْجِيِّ كَافُورًا. لکه یو تن حبشي ته د کافور نوم کیږدي. نو پدې نوم سره خو هغه نهٔ سپینیږي. نو پدې خبرې سره خو د غه بابا په رشتیا حاجتونه پوره کونکې نشو، هسې هوائي ډکوسلې دي.

أَمْ بِظَاهِرٍ: تقدیر داسې دې: (بَلْ أَتُنَبِّئُونَهُ بِظَاهِرٍ مِنَ الْقَوْلِ) بلکه تاسو خبر ورکوئ الله ته په سرسري خبره). (ابن عاشورؒ)

ابن عاشورؒ دا هم وائي چه ظاهر د ظهور نه دې په معنیٰ د زوال سره، نهٔ د ظهور نه په معنیٰ د ښکاره والي سره. او ددې دپاره ئې د عربو د لغت نه دلیلونه پیش کړیدي. او معنیٰ دا ده چه تاسو الله ته په پریوتې خبرې سره خبر ورکوئ.

بَلْ زُيِّنَ: یعنی دلیل نشته خو کافرانو ته د دوي مکر یعنی کفر ښائسته کړې شویدې، دلته ئې کفر ته مکر وویلو څکه چه د دوي کفر کښې مقصد دا دې چه د حق په خلاف تدبیرونه جوړ کړي او د حق او د توحید نه انکار وکړي نو د دوي دلیل او کفر د مکر په درجه کښې دې.

وَصُدُّوا: یعنی ددې مکرونو په وجه الله تعالیٰ د حق نه واړول څکه چه دا قانون دې چه څوك د حق په مقابله کښې ودریدو او غلط دعوت ئې شروع کړو نو بیا ورته الله تعالیٰ

هدایت نکوی۔ ﴿فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا﴾۔ (الاسراء: ٤٨)

(نو گمراه شو چه طاقت نهٔ لری د نیغې لارې)

السَّبِيلِ: اَیْ سَبِيلِ الْهِدَايَةِ۔ یعنی د لارې د هدایت نه منع کړې شو۔

| |
|---|
| لَهُمْ عَذَابٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَقُّ |
| دوی لره عذاب دې په ژوند دنیوی کښې او خامخا عذاب د آخرت ډیر سخت دې |
| وَمَا لَهُمْ مِنَ اللهِ مِنْ وَاقٍ ﴿٣٤﴾ مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي |
| او نشته دوی لره د الله تعالیٰ نه هیڅوك بچ کونکے۔ صفت د هغه جنت |
| وُعِدَ الْمُتَّقُونَ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ أُكُلُهَا |
| چه وعده ئې کړې شویده د متقیانو سره، بهیږی به لاندې د هغې نه نهرونه میوې د هغې |
| دَائِمٌ وَظِلُّهَا تِلْكَ عُقْبَى الَّذِينَ اتَّقَوْا وَعُقْبَى الْكَافِرِينَ النَّارُ ﴿٣٥﴾ |
| همیشه دی او سوری د هغې (هم)۔ دا انجام د متقیانو دې او انجام د کافرانو اُور دې۔ |

**تفسیر**: د کومو کافرانو حال چه پورته بیان شویدے، هغوی ته تخویف دنیوی او اُخروی بیانیږی۔ ۱- چه دوی ته به په دنیا کښې د مسلمانانو په لاس عذاب ورکولے شی، په قتل او قید وغیره سره۔

۲- یا به پرې قحطونه او طوفانونه او مرضونه وغیره نازلیږی۔

۳- یا مطلب دا دې چه کافرته به د کفر په وجه سره هیڅ کله سکون نهٔ حاصلیږی، ځکه چه د سکون ذریعه صرف ایمان دې۔ (لکه چه مخکښې ذکر شو۔ او الله فرمائی:

﴿بَلِ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلَالِ الْبَعِيدِ﴾ (سبا: ٨)

(کافران به همیشه په عذاب او په گمراهئ لرې کښې وی)

(محاسن التاویل وتفسیر مقاتل والقرطبی وغیره)

أَشَقُّ: اشق هغه عذاب ته وائی چه انسان ډیر په مشقت کښې اچوی او دا عذاب د (اَکْبَر او اَغْلَظ) نه په معنیٰ کښې زیات دې۔ یعنی پدې کښې به د غتوالی او لوی والی سره سره سختی هم زیاته وی۔ ځکه اشق د شق نه دې په معنیٰ د صدع (چاودلو) سره دې چه انسان زړهٔ چوی۔ (فتح)

مِّنَ اللّٰهِ: یعنی د عذاب د الله تعالیٰ نه۔ یا د جانبه د الله نه۔
وَّاقٍ: د وقایة نه دے حفاظت ته وائی، یعنی ساتونکے او حفاظت کونکے۔
او پدے کښې مِنْ د تاکید دپاره زیات شوید ے۔ یعنی هیڅ ساتونکے۔
مَثَلُ الْجَنَّةِ: د قرآن عادت دے چه بشارت د تخویف سره ملگرے کوی۔
د کافرانو انجام بیان شو اوس د مومنانو په باره کښې وئیلی کیږی چه الله تعالیٰ به دوی ته جنت ورکوی چه د هغې نه لاندے به نهرونه روان وی، په هغې کښې به د خوراك څکاك بیشماره نعمتونه او د ونو همیشه سوری وی۔
مَثَلُ: مثال نه مراد صفت دے، نهٔ مثال بیانول۔ او مَثَل عجیبه شان والا صفت ته وائی چه هغه په ناشنا والی کښې د مثال په شان دے۔
او (تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا) داسے دے لکه تفسیر د مَثَل۔ یعنی د هغه جنت صفت دا دے چه لاندے به ترے نهرونه روان وی۔ (فتح البیان)
اُكُلُهَا: اُكُل په معنیٰ د خوراکونو او میوه جاتو سره دے۔

| وَالَّذِیْنَ آتَیْنَاهُمُ الْکِتَابَ یَفْرَحُوْنَ بِمَا |
| --- |
| او هغه کسان چه ورکړیدے مونږ هغوی ته کتاب خوشحالیږی په هغه څه |
| اُنْزِلَ اِلَیْكَ وَمِنَ الْاَحْزَابِ مَنْ یُّنْکِرُ |
| چه نازل کړے شویدے تا ته او بعض د ډلو نه هغه څوك دی چه انکار کوی |
| بَعْضَهٗ قُلْ اِنَّمَا اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ |
| د بعضے حصے د قرآن نه، اُووایه یقیناً حکم کړے شویدے ما ته چه بندگی اُوکړم |
| اللّٰهَ وَلَا اُشْرِكَ بِهٖ اِلَیْهِ اَدْعُوْ وَاِلَیْهِ |
| د الله تعالیٰ او شرك اُونکړم د هغهٔ سره، خاص هغهٔ ته رابلم خلق او خاص هغهٔ ته |
| مَاٰبِ ﴿۳۶﴾ وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِیًّا |
| ورگرځیدل دی زما۔ او دغسے نازل کړیدے مونږ دا قرآن فیصله په واضحه ژبه |
| وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ |
| او که تابعداری اُوکړه تا د خواهشاتو د دوی روستو د هغې نه چه راغله تا ته پوهه، |

| مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ ﴿۳۷﴾ |
| --- |
| نۀ به وي تاله د الله نه څوك دوست او نۀ بچ كونكے۔ |

**تفسير**: پدے آيت كښې دليل نقلي د اهل كتابو نه پيش كوي په حقانيت د وحي رسول الله ﷺ ته۔ ځكه چه پخواني اهل كتاب ئے تصديق كوي او هغوي پرے خوشحاله دي۔

(۱) ددے آيت په تفسير كښې يو قول دا دے چه د كتاب نه مراد تورات او انجيل، او د خوشحاليدونكو نه مراد هغه يهود او نصارىٰ دي چه مسلمانان شوي وو۔ ددے قول مطابق به د ((احزاب)) نه مراد هغه يهود او نصارىٰ وي چه هغوي اسلام قبول كړے نۀ وو۔

(۲) دويم قول دا دے چه عام يهود او نصارىٰ مراد دي چه د قرآن كريم د هغۀ آيتونو په اوريدو سره به خوشحاليدل چه په هغے سره به د تورات او انجيل د احكامو تائيد كيدو۔ ددے قول مطابق به د ((احزاب)) نه مراد د مكے مشركان او نور كافران وي چه دوي د بعض قرآن نه انكار كولو كوم كښې چه مسئله د توحيد او د آخرت اثبات وو او نورو نه به ئے انكار نۀ كولو كوم كښې چه به اخلاق بيان شوي وو۔ يا بعض يهود او نصارىٰ چه د قرآن انكار به ئے پدے وجه كولو چه ددے په ذريعه د هغوي شريعتونه منسوخ شوي وو۔

(۳) ځينې وائي چه د كتاب نه مراد قرآن كريم دے يعني مسلمانان ددے قرآن په نازليدو خوشحاليږي او د ((احزاب)) نه مراد هغه خلك دي چه د رسول الله ﷺ په مخالفت كښې ئے ډله بازي كوله چه هغه مشركان، يهود او نصارىٰ وو، او په دوي كښې د بعضو انكار كولو نه مطلب دا دے چه د كومے ډلے د عقيدے خلاف خبره به قرآن كريم كښې نازليده نو هغوي به انكار كولو او د نورو نه به ئے انكار نكولو۔

**سوال**: مسلمانان خو هسے هم د قرآن په نازليدو خوشحاله وو نو بيا ددے په ذكر كولو كښې څه فائده ده؟ جواب دا دے چه مقصد پدے كښې زياته خوشحالي ده چه دوي ته د احكامو او د توحيد او نبوت او د حشر په بيان سره حاصليږي۔

او ډيرو مفسرينو ليكلي دي چه عبد الله بن سلام ﷺ او د هغه نور ملګري اهل كتاب پدے خفه وو چه په تورات كښې د رحمٰن نوم زيات استعمال دے او په قرآن كريم كښې كم نو الله تعالىٰ دا آيت ﴿قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ﴾ (الاسراء: ۱۱۰) نازل كړو نو دوي په هغے سره خوشحاله شو۔ (فتح البيان)۔

دارنګه پدے اهل كتابو كښې مؤمنان اهل كتاب مراد دي چه څه د حبشو نه مكے ته

راغلي وو او څه د يهودو نه وو او څه د نجران نه راغلي وو، مکے والو ته ئے خبر ورکړے وو لکه سورة القصص کښې د هغے تفصيل راځي ان شاء الله تعالىٰ۔

قُلْ إِنَّمَا أُمِرْتُ : دا د (يُنْكِرُ بَعْضَهُ) تشريح ده چه دوی به د توحيد او د الله تعالىٰ د يواځے بندگۍ کولو نه منکر وو نو ځکه ورته د توحيد اهميت بيانوی چه پدے باندے ما ته حکم کړے شوے دے۔ او دا بنيادی عقيده ده چه پدے باندے د ټولو آسمانی دينونو اتفاق دے۔

إِلَيْهِ أَدْعُوْ : يعنی زما کار دا دے چه زۀ به يواځے الله تعالىٰ او د هغۀ توحيد او عبادت ته دعوت ورکوم ځکه چه خاص په قيامت کښې زما رجوع صرف الله تعالىٰ ته ده، هغه به راسره بيا حساب کوی۔

مَآبِ : ياء پټه ده يعنی مَآبِيْ۔ اَیْ مَرْجِعِيْ۔ زما رجوع ده۔ قتادۀ وائی چه (إِلَيْهِ مَصِيْرُ كُلِّ عَبْدٍ) خاص دے الله تعالىٰ ته ورګرځيدل د هر بنده دی۔ (فتح)

وَكَذٰلِكَ أَنْزَلْنَاهُ : ترغيب دے قرآن کريم ته او ددے نه په اعراض باندے دهمکی ورکړے کيږی۔ او منع ده د اتباع د خواهشاتو (بې دليله خبرو) د کافرانو نه۔

## مناسبت

مخکښې د اهل کتابو حال بيان شو چه قرآن په ښائسته شان قبلوی او پدے خوشحالی کوی، نو اوس د عربو حال بيانوی په طريقه د تعريض سره چه دوی ته قرآن راغلو ليکن دوی هغه په ښۀ شان قبول نکړو سره ددے نه چه دوی د نورو خلکو نه ددے په قبلولو ډير لائق وو ځکه چه قرآن د دوی په ژبه نازل شوے دے او د دوی په کښې فائده ده او د دوی عقلونه پرے روښانه کيږی۔ (ابن عاشورؒ)

وَكَذٰلِكَ : يعنی پدے ناشنا نازلولو سره مونږ دا کتاب نازل کړو۔ يا لکه پخوانی کتابونه مے راليږلی وو نو دغه شان مے دا کتاب هم راوليږلو۔

حُكْمًا : ١- فيصله۔ قرآن توله فيصله ده چه هر شے ئے فيصله کړيدے، او ددے حکم نه مراد هغه مخکښے حکم دے چه (إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللهَ) کښې ذکر شو۔

٢- حکم کلمه په معنیٰ د حکمة سره هم راځی، يعنی ما دا کتاب حکمة راوليږلو په عربی ژبه کښې چه عربو ته ددے پوهه او يادول آسان شی او بيا پرے هغوی د خلکو ترمينځ فيصله وکړی۔ (فتح)

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ : نبی کريم ﷺ ته خطاب دے اولًا بيا خطاب دے هر مخاطب ته چه که تا

تـه د قـرآن پـه شـان کتـاب راتـلـلو نه روستو (چه د علمونو او معارفو خزانه ده) بیا هم تهٔ د یهود او نصاراؤ د خواهشاتو تابعداری کوے نو د الله تعالیٰ نه سویٔ به ستا څوك مددګار نهٔ وي او د هغهٔ د رانیولو نه به تا هیڅوك نشي بچ کولے۔

اَهْوَاۗءَهُمْ : د خـواهشـاتـو نـه مـراد د هغوی بې دلیله خبرے دی، یا هغه خواهشات چه دوی پـکښې ستـا مـوافـقـت غـواړی لـکـه د توحید عقیده او بیان پریخودل، یا د قرآن بیان پریخودل، یا د دوی د قبلے پسے روانیدل او د دوی د عقیدے خلاف نهٔ کول۔ (فتح البیان)

مِنَ الْعِلْمِ : د علم نه مراد علم د وحی (قرآن او حدیث) دے۔

وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ : ولـی هغـه دوسـت تـه وائـی چـه عـذاب د راتللو نه مخکښې لرے کړی او واقی هغه ته وائی چه عذاب د راتللو نه روستو لرے کړی۔

او مـقـصـد پـه آیت کـښې د رسـول الله ﷺ نه ماسویٰ نور خلك دی ځکه چه د رسول الله ﷺ شان ددے نه ډیر اُوچت دے چه هغه د مشرکانو د خواهشاتو ادنیٰ تابعداری وکړی۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ |
| او یقیناً رالیږلی دی مونږ رسولان مخکښې ستا نه او ګرځولی وو مونږ هغوی لره |
| اَزْوَاجًا وَّذُرِّيَّةً ۭ وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ |
| بیبیانے او اولاد او نشی کیدے یو رسول لره چه راوړی یوه معجزه مګر په حکم |
| اللّٰهِ ۭ لِكُلِّ اَجَلٍ كِتَابٌ ﴿۳۸﴾ |
| د الله تعالیٰ سره، هرے نیتے لره لیکل دی۔ |

**تفسیر** : پـدے آیت کښې د درے سوالونو جوابونه دی (۱) اول سوال : دا څنګه رسول دے چه بشر دے او ددهٔ ښځه او اولاد شتـه، او رسول خو دے ته وائی چه هغه به د الله تعالیٰ په مینه پانې، خوراك، څکاك او خواهشاتو ته به ئې ضرورت نهٔ وی؟ نو جواب وشو چه داسے مخکښې رسولان هم وو۔ نو ښځه او اولاد د نبوت منافی نهٔ دی۔

د سلیمان علیه السلام درے سـوه بیبیانے او اوه سوه وینځے وے، او دا کار د هغهٔ په نبوت کښې هیڅ عیب نهٔ وو او د هغه د پلار داود علیه السلام سـل بیبیانے وے نو دغه شان ودونه کول ستا په نبوت کښې هم څه عیب نهٔ راولی۔ (فتح البیان)

او پدے کښې ضمناً رد دے چه تاسو بیا څنګه ځان ته د ابراهیم علیه السلام اولاد وایئ، هغه هم رسول وو او ښځه او اولاد ئې لرل۔ که هغه بشر نهٔ وے نو تاسو ترینه څنګه پیدا شوئ۔

وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ: دویم سوال: هرکله چه دا رسول رشتینی دے نو مونږ له ډیر معجزے راوړی؟۔ جواب وشو: چه معجزات د پیغمبرانو په اختیار کښې نهٔ دی، هغه د الله تعالیٰ په اجازت سره راځی۔ او الله تعالیٰ حکیم او علیم دے د خپل حکمة مطابق معجزے نازلوی۔

لِكُلِّ اَجَلٍ كِتَابٌ: دریم سوال: که دا رسول حق وی او مونږ انکار کوو نو په مونږ عذاب ولے نهٔ راځی؟

جواب دا دے: د هرے نیتے دپاره لیکل وی۔ نو پدے جمله کښې ترغیب او دهمکی دواړه پراته دی، رسول الله ﷺ ته فرمائی چه د هرشی دپاره یوه نیټه وی یو وخت راروان دے چه الله تعالیٰ به تا ته فتح او غلبه درکوی، هغه لیکلی دی۔

او کافرانو ته دهمکی ده چه ستاسو د هلاکت وخت هم الله تعالیٰ لیکلے دے په خپل وخت به راځی، نو مخکښې غوښتلو ته ئې ضرورت نشته۔ که فی الحال عذاب نهٔ راځی نو دا ستاسو د حقانیت دلیل نهٔ دے۔

لِكُلِّ اَجَلٍ: یعنی د هر کار دپاره چه الله تعالیٰ ئې په یوه نیټه کښې کوی لیکل دی۔

| يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ |
| --- |
| محوه کوی (ورانوی) الله هغه څه چه اُوغواړی او باقی پریږدی (څه چه اُوغواړی) |
| وَعِنْدَهٗۤ اُمُّ الْكِتٰبِ ﴿۳۹﴾ |
| او د هغهٔ سره اصل کتاب دے۔ |

**تفسیر**: دا جواب د بل سوال دے په دوه طریقو: ۱- دا څنګه پیغمبر دے چه نن یوه خبره کوی صبا بله کوی، معلومیږی چه دا د ځان نه جوړوی۔ لکه سورة النحل آیت (۱۰۱) کښې هم ذکر دی ﴿وَاِذَا بَدَّلْنَاۤ اٰيَةً مَّكَانَ اٰيَةٍ وَّاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ قَالُوْۤا اِنَّمَاۤ اَنْتَ مُفْتَرٍ﴾ نو الله تعالیٰ ورته جواب کوی چه الله تعالیٰ چه کومه وحی وغواړی محوه کوی (منسوخ کوی) او بعض ثابته پریدی، پدے کښې د هیڅ اشکال خبره نشته، بلکه دا په حکمة بناء دے۔ دویمه طریقه د سوال دا ده چه که تهٔ د الله رسول ځان ته وائے نو مونږ له هغه معجزے راوړه چه موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام راوړیدی؟

نو د هغې جواب ورکوي چه الله تعالیٰ محوه کوي هغه معجزې چه کومې غواړي، هغه معجزې د هغې زمانې سره متعلق وې نو اوس ئې منسوخ کړې او اوسنۍ معجزې ددې زمانې سره برابرې دي نو ځکه هغه باقي پريدي. ددې زمانې سره قرآن مناسب دې نو ځکه دا باقي پريدي، کـه رسول الله ﷺ د يَدِ بَيۡضَاء (سپين لاس) او د امسا او د مړي ژوندي کولو، يا مرزادي بنه کولو معجزه ورکړې شوې وې نو دا به صرف د هغه د زمانې خلکو ته فائده ورکولې روستو امت دپاره به پکښې هيڅ فائده نهٔ وې، نو پدې وجه الله تعالیٰ قرآن عالَمي کتاب راوليږلو چه د هر چا فائده پکښې شته.

## د محو او اثبات مطلبونه

پدې آيت کښې د عموم د الفاظو د وجه نه ډير مصداقات او مطلبونه کيدې شي

۱- اول مطلب دا چه دا د نسخ سره لګي. ۲- دويم د معجزو سره لګي.

۳- دريم : د ارواحو سره. ٤- د شقاوت او سعادت سره.

٥- د ګناهونو او د نيکو سره. يعني الله تعالیٰ منسوخ کوي هغه شريعت چه وغواړي يعني د وحي نه څه حصه لرې کړي

وَيُثۡبِتُ : او باقي پريدي کوم چه الله وغواړي. کومه کښې چه فائده وي. دا معنیٰ ددې سورت د موضوع سره ښه لګي.

۲- محوه کوي الله تعالیٰ هغه معجزات کوم چه غواړي لکه د پخوانو انبياء عليهم السلام معجزې شوې او وَيُثۡبِتُ : بعض باقي پريدي لکه قرآن ئې پريخې دې.

۳- محوه کوي الله تعالیٰ بعض روحونه په خوب کښې (يعني وفات ئې کړي) او بعض باقي پريدي، بيرته ئې راواپس کړي. لکه د ﴿اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الۡاَنۡفُسَ﴾ (الزمر: ٤٢) آيت په شان آيت دې.

٤- الله تعالیٰ بعض کسان د بد بختۍ نه محوه کوي او په نيک بختو کښې ئې ليکي او بعض په بد بختۍ کښې ثابت پريدي خو دا په تقدير مُعَلَّق کښې نهٔ په تقدير مُبۡرَم کښې. لکه دا د عمر فاروق ؓ نه نقل دي چه هغه به داسې دعا کوله : اَللّٰهُمَّ اِنۡ كُنۡتَ كَتَبۡتَنِيۡ فِي الۡاَشۡقِيَاءِ فَامۡحُنِيۡ مِنۡهَا وَاكۡتُبۡنِيۡ فِي السُّعَدَاءِ فَاِنَّكَ تَمۡحُوۡ مَا تَشَاءُ وَتُثۡبِتُ وَعِنۡدَكَ اُمُّ الۡكِتَابِ)

(اللالکائی فی السنة والتاريخ الكبير للبخاری ٤/٦٣) فی ترجمة ابی عصمة وقد قال فيه ابن ابی حاتم (٣/٢/٢٠) عن ابيه محله الصدق وذكره ابن حبان فی الثقات)

او داسې د عـاء د ابن مسعودٌ نه طبراني په معجم کبیر (۸۸٤۷) کښې او ابن جریرٌ په تفسیر کښې نقل کړیده شیخ البانيٌ وائی : (اسناد ئې صحیح دې) (الضعیفة ١١/٤٧٧) رقم (٥٤٤٨)

اې الله ! که تا زما نوم په بد بختانو کښې لیکلې وی نو ما ترې وران کړه او ما په نیک بختو کښې ولیکـه ځکه ته چه څه چه غواړې محوه کوې او څه چه وغواړې باقي پریدې او تاسره اصل د کتاب (یعني لوح محفوظ) دې.

ددې نـه مـعلـومه شوه چه تقدیر په دوه قسمه دې (١) تقدیر مُبْرَم چه دا د الله تعالیٰ عِلم ته وائی دا نـهٔ بدلیږی چه الله تعالیٰ په کوم شی باندې عالم دې نو د هغه په علم کښې تبدیلی نهٔ راځی. (٢) او دویم تقدیر مُعَلَّق دې چه الله تعالیٰ زوړند لیکل کوی په اسبابو سره چه که دې شخص فلانیٔ لاره اختیار کړه هدایت ورته کوم، او دغه ئې اختیار نکړه نو هدایت ورتـه نـهٔ کوم. که د مور او پلار خدمت ئې وکړو نو پنځوس کاله عمر به ئې وی او که وې نکړو نو څلویښت کاله به وی، بیا الله تعالیٰ ته پته وی چه دا به کوم یو کوی.

دا هـم الله تـعالیٰ په تقدیر کښې لیکلی وی، که دوائی ئې وخوړه نو لس ورځې به ناجوړه وی او کـه وې نـهٔ خـوړه نـو شـل ورځې بـه ناجوړه وی. نو ددې وجـه نـه شریعت د اسبابو پـه استعمالولو امر کړیدې ځکه چه دا اسباب هم الله تعالیٰ په تقدیر کښې لیکلی دی.

٤- يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَاءُ مِنَ الذُّنُوْبِ وَيُثْبِتُ مَوْضِعَهَا الْحَسَنَاتِ) الله تـعالیٰ محوه کوی کوم گناهونه چه وغواړی او د هغې په ځای نیکیٔ ولیکی.

٥- پـدې کـښې د چا ذلیـلـه کـول او عزت ورکـول هم داخل دی. ٦- رزقونو ورکولو او اخستو سره هم لگی. ٧- بعض گناهونه بغیر د توبې نه معاف کوی او بعض باقي پریدی یعنی بغیر د توبې نه ئې نهٔ معاف کوی. (فتح البیان وغیره)

لیکن د سیاق سره زیات مناسب اولنی دوه مطلبونه دی.

**أُمُّ الْكِتَابِ** : اصـل د کتـاب نـه مـراد لـوح مـحفوظ دې. او کعبٌ وائی چه دا د الله تعالیٰ علم ته وائی. خو دغه علم لیکلې شویدې نو ځکه ورته ام الکتاب وائی.

او حاکمٌ د ابن عباس ﷺ نـه روایت کړیدې او دې ته ئې صحیح وئیلې دې. (ووافقه الذهبيٌ والالبانيٌ) [لَا يَنْفَعُ الْحَذَرُ مِنَ الْقَدَرِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمْحُوْ بِالدُّعَاءِ مَا يَشَاءُ مِنَ الْقَدَرِ]

چه احتیـاط د تـقدیر پـه مقابله کښې نفع نشی رسولې لیکن الله تعالیٰ د دعا په ذریعه د تقدیر کومه خبره چه غواړی ختموی. (حاکم ٢/٣٥٠)

| وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ |
|---|
| او که چرے اُوښایو مونږ تا ته بعض هغه عذاب چه مونږه ئے وعده کوو د دوی سره |
| أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ﴿٤٠﴾ |
| یا وفات کړو تا لره نو یقیناً په تا باندے رَسُول دی او په مونږ باندے حساب کول دی۔ |
| أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا وَاللَّهُ |
| آیا دوی نۀ گوری چه بیشکه مونږه راځو زمکے ته، کموو دے لره د اطرافو نه او الله |
| يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِ وَهُوَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٤١﴾ |
| فیصله کوی، نشته روستو کونکے د فیصلے د هغهٔ، او هغه زر حساب کونکے دے۔ |
| وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلَّهِ |
| او یقیناً مکرونه کړی وو هغه کسانو چه مخکښں وو د دوی نه نو د الله په اختیار کښں دی |
| الْمَكْرُ جَمِيعًا يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ وَسَيَعْلَمُ |
| مکرونه د دوی ټول، پو هیږی الله په هغه څه چه کوی ئے هر نفس او زردے چه پو هه به شی |
| الْكُفَّارُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٤٢﴾ وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا |
| کافران چه د چا دپاره دے انجام د کور (آخرۍ)۔ او وائی هغه کسان چه کفر ئے کړیدے |
| لَسْتَ مُرْسَلًا قُلْ كَفَى بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ |
| نۀ ئے تۀ رسول، اُووایه کافی دے الله گواه په مینځ زما او په مینځ ستاسو کښں |
| وَمَنْ عِنْدَهُ عِلْمُ الْكِتَابِ ﴿٤٣﴾ |
| او هغه څوک چه د هغهٔ سره پو هه د کتاب ده۔ |

**تفسیر**: مخکښں ئے شبهات دفع کړل نو اُوس پدے آیت کښں نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړے کیږی چه تا خپله ذمه واری پوره کړه، اُوس که څوک ستا دعوت نۀ قبلوی نو الله تعالیٰ به د هغهٔ سره حساب کوی۔ او په دنیا کښں ستا دشمنان کیدے شی چه الله تعالیٰ ستا په ژوند کښں ذلیله او رسوا کړی، یا کیدے شی چه ستا د وفات نه روستو دوی سره

داسې وشي. یعنی عذابونه به په خپل وخت راځي، د هغې پرواه مه کوه، او د هغې په انتظار مه کېنه، هغه د الله تعالیٰ خوښه ده چه څه وخت ئې پرې راولي. خو ته خپله ذمه واري جاري ساته.

اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ : اَیْ قَبْلَ اَنْ نُرِیَكَ. یعنی یا به تا وفات کړو مخکښې د دوی د عذاب در خودلو نه. او دا اما جزاء پټه ده. [فَسَتَرَاهُ فِي الْآخِرَةِ] نو ته به ئې په آخرت کښې وینې.

یا جزاء داسې ده: [فَلَا تَقْصِيْرَ عَلَيْكَ وَلَا لَوْمَ عَلَيْكَ] ستا هیڅ کوتاهي نشته، او نه په تا باندې ملامتیا شته. (فتح البیان)

او دا دلیل دې چه رسول الله ﷺ د وفات نه روستو د دنیا حالات نشي لیدلې.

اَوَلَمْ يَرَوْا : دا بله دهمکي ده، یعنی د مکې کافرانو ته پدې باره کښې ولې شبهه ده چه دوی وائي چه الله تعالیٰ مونږ ته عذاب ولې نه راکوي او په ذلت او رسوائي کښې مو نه اخته کوي، آیا دوی نه ګوري چه دوی د مکې د زمکې څلور وارو طرفونو نه تنګولې شي او هر کال مسلمانان څه علاقې فتح کوي او مکې طرف ته په مخه روان دي، او د مکې کافرانو دپاره زمکه تنګیږي. الله تعالیٰ چه څه غواړي فیصله کوي، څوك پورته کوي او څوك غورزوي، څوك وژني نو څوك ژوندي کوي. د هغهٔ په فیصلو کښې هیڅوك مداخلت نشي کولې. او هغه خو ډیر په جلتئ سره انتقام اخستونکې دې. په دنیا کښې خو په قید او بند او د قتل په سخت امتحان کښې ګرفتار دي، نزدې ده چه په آخرت کښې هم الله تعالیٰ د دوی نه حساب واخلي او د دوی د بدو عملونو دوی ته بدله اُوځکوي.

## د الله تعالیٰ زمکې ته راتلل او د زمکې د کموالي څه مطلب دې؟

۱ - نو ددې آسان مطلب دا دې چه ددې نه مراد د مؤمنانو ډیر والې او د کافرانو کموالې دې نَأْتِي الْاَرْضَ : اَیْ بِزِيَادَةِ اَهْلِ الْإِيْمَانِ. یعنی زمکې ته راځو په زیاتوالي د مؤمنانو سره. او نَنْقُصُهَا مِنْ اَطْرَافِهَا : اَیْ بِتَقْلِيْلِ الْكَافِرِيْنَ. او زمکه کموو د اطرافو نه، یعنی په کمولو د کافرانو سره. نو د کافرانو زمکه کمیدله او د مؤمنانو ډیریدله. او مطلب دا دې چه د حق غلبه به خامخا راځي نو راشئ زر ایمان راوړئ کنې ذلیله به شئ. ﴿فَاَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاءً وَاَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْاَرْضِ﴾. (الرعد:۱۷) دا هله چه دا آیت مکي شي.

۲ - او که دا آیت مدني شي نو بیا به ئې اول مصداق وي کوم چه مخکښې تشریح کښې

ذکر شو. چه رسول الله ﷺ او د هغه ملګري وخت په وخت علاقې نیولې، عُسفان ته راورسیدل بیا طائف ته بیا مکې ته. لکه دا تفسیر د قتادة او د یو جماعة د مفسرینو دے.

۳- یا مراد دا دے چه د زمکې نه برکات او میوے وغیره کموو او عذابونه، سیلابونه او طوفانونه راولو په سبب د شرك او د ګناهونو د خلکو سره. (ابن عباسؓ)

٤- پدے کښې یو مجازي تفسیر د ابن عباسؓ او مجاهدؒ نه دا هم نقل دے چه د نقصان الارض نه (مَوْتُ عُلَمَائِهَا وَفُقَهَائِهَا وَذَهَابِ خِيَارِ اَهْلِهَا) مراد دے. یعنی د زمکې کموالے دا دے چه علماء او د دین ماهرین او نیکان خلك وفات شي. او دا هم په عموم د آیت کښې داخلیدلے شي. (فتح البیان) لکه اُوس همدا زمانه شروع ده.

وَاللهُ يَحْكُمُ : که څوك ووائي چه مونږ به سره ددے طاقتونو نه څنګه مغلوبه شو؟ نو الله تعالیٰ فرمائي چه الله تعالیٰ فیصله کړیده او د هغهٔ فیصله هیڅوك نشي روستو کولے چه کافران به مغلوبه کیږي.

لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ : مُعَقِّب هغه شي ته وائي چه د یو شي پسے روستو نه راشي او هغه باطل کړي او ختم ئې کړي. اَىْ لَا رَادَّ لِحُكْمِهٖ وَقَضَائِهٖ. (فراء)

نشته واپس کونکے د فیصلے او د تقدیر د الله تعالیٰ.

وَقَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ : دا د (لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ) تشریح ده.

پدے آیت کښې هم نبي کریم ﷺ ته تسلي ورکړے کیږي چه د مکې کافرانو نه مخکښې هم چه کوم کافران په دنیا کښې تیر شویدي هغوی د خپلو انبیاؤ (علیهم السلام) او د حق په مخالفت کښې سازشونه وکړل، لیکن هغه سازشونه د هغوی په کار رانغلل بلکه د هغوی دپاره وبال وګرځیدل، ځکه چه کامیاب تدبیر خو صرف د الله تعالیٰ تدبیر وي. او د دوی تدبیرونه ټول د الله په اختیار کښې دي نو کله چه د یو دشمن واك د الله په اختیار کښې شو نو د هغهٔ مکر بیا هیڅ کار نشي ورکولے.

يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ : پدے کښې ددے مکر تشریح کوي چه الله تعالیٰ خپل سرکش او نافرمانه بندګان کله چه هغوی د غفلت په خوب اُوده وي ناځاپي رانیسي، هغه د هر فرد د ښهٔ او بدو اعمالو نه خبردار دے، او د کافرانو د هغهٔ چلونو نه هم خبردار دے کوم چه د انبیاؤ مخالف روان وي. نو د دوی چلونه د هغه په لاس کښې دي.

وَسَيَعْلَمُ الْكُفَّارُ : پدے کښې کافرانو ته دهمکي ورکړے شویده چه نزدے ده چه دوی ته به پته ولګي چه په دنیا یا آخرت کښې یا دواړو ځایونو کښې به ښهٔ انجام چا ته نصیب

کیږي.

نو پدې آیتونو کښې اول مشرکانو ته او بیا ټولو کافرانو ته دهمکي ورکړې شوه چه ستاسو که هرڅو مره چلونه او مکرونه راشي خو تاسو به ضرور مغلوبه کیږئ او حق له به الله تعالیٰ غلبه ورکوي.

﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾: پدې کښې بیا په مشرکانو رد دے چه دوی سره ددے دومره ډیرو دلیلونو او معجزونه بیا هم د رسول الله ﷺ رسالت نهٔ مني. او دا د ابتداء د سورت سره لګي یعنی د ﴿وَالَّذِيْ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ﴾ سره. نو الله تعالیٰ د نبي په ژبه جواب کوي: زما او ستاسو ترمینځ الله تعالیٰ کافي ګواه دے، هغه زما د نبي کیدو رشتینوالے او ستاسو دروغ ښهٔ پیژني او هغه یهود او نصاریٰ ئے هم ښهٔ پیژني چه هغوی ته مخکښې آسماني کتابونه ورکړے شوي دي.

د عربو مشرکانو به د یهودو او نصاراؤ نه د رسول الله ﷺ په باره کښې تپوس کولو، پدے وجه دلته د هغوی حواله هم ورکړے شویده چه هغوی هم د خپلو کتابونو په ذریعه پوهیږي چه محمد (ﷺ) د الله رسول دے. لکه چه عبد الله بن سلام، سلمان فارسي او تمیم داري (رضی الله عنهم) او کعب الاحبارؒ وغیره د اسلام راوړو نه روستو به ددے شهادت ورکولو چه په تورات او انجیل کښې د رسول الله ﷺ د خاتم النبیین کیدو صراحت موجود دے. لکه چه په سورة الاعراف آیت (۱۵۷) کښې راغلي دي: ﴿اَلَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ﴾ چه (دوی د نبي کریم ﷺ ښائسته ذکر په تورات او انجیل کښې په صراحت سره مونده کوي). او په سورة الشعراء آیت (۱۹۷) کښې دي: ﴿اَوَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ اٰيَةً اَنْ يَّعْلَمَهٗ عُلَمٰٓؤُا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ یعنی آیا دوی دپاره دا نخه کافي نهٔ ده چه د بني اسرائیلو علماء ښه پوهیږي چه محمد (ﷺ) د الله نبي دے.

او سعید بن جبیرؒ وائي چه دا سورت مکي دے نو د ﴿مَنْ عِنْدَهٗ عِلْمُ الْكِتٰبِ﴾ نه مراد جبریل ؑ دے. لیکن اول قول ظاهر دے چه عام اهل کتاب چه د هغوی سره د تورات او انجیل علم وو، یعنی شام او نجران او حبشو کښې اهل کتاب وو، او عرب به د هغوی علاقو ته د تجارتونو دپاره ورتلل، نو د هغوی نه تپوس وکړئ هغوی به درته خبر درکړي چه په مکه کښې یو رسول پیدا کیدو والا دے. او که خپله جاهل ئے نو بیا د الله تعالیٰ قدرت ته وګوره چه ددے رسول تائید او نصرت کوي.

او که خپله نهٔ پوهیږے د پخوانو علماؤ نه تپوس وکړه. د الله تعالیٰ د شهادت بیان په

سورة النساء کښې ذکر شوی دے چه دا شهادت په بیان سره دے او دلیلونو قائمولو سره په صدق د رسول الله ﷺ باندے، او په تائید او په نصرت سره چه الله تعالیٰ وخت په وخت غلبه ورکوی۔

او دا تفسیر اَبعَد (ډیر بعید) دے چه وائی چه واو قسمیه دے او ﴿مَنْ عِنْدَهٗ عِلْمُ الْكِتَابِ﴾ نه مراد الله تعالیٰ دے۔ وبالله التوفیق، والله اعلم بدقائق کتابه الحکیم۔

## امتیازات او خصوصیات د سورت رعد

۱- پدے سورت کښې عظمة الوحی په ناشنا انداز کښې ذکر دے۔

۲- پدے کښې کثرة الامثله (ډیر مثالونه) دی۔

۳- او فرقونه د څیزونو ترمینځ زیات دی لکه د مؤمن او مشرك، د معبود حق او معبود باطل۔ د مؤمن د صفاتو او د کافر د صفاتو فرقونه۔

٤- د مشرکانو په رسالت باندے د زیاتو اعتراضونو جوابونه شویدی۔

ختم شو تفسیر د سورة الرعد بحمد الله وحسن توفیقه په تاریخ ۱۰ جمادی الاولیٰ یوم الاثنین الموافق ۲/۳/۲۰۱۵ وقت: ۱۲:۵۰ ظهر۔ فی یوم مطیر۔

بسم الله الرحمن الرحیم

| آیاتها (٥٢) | (١٤) سورة ابراهیم مکیة (٧٢) | رکوعاتها (٧) |
| --- | --- | --- |

سورة ابراهیم مکی دے، پدے کښې دوه پنځوس آیتونه او اُوه رکوع دی۔

## تفسیر د سورة ابراهیم

**نوم** : ابراهیم علیه السلام د خانه کعبے جوړولو نه روستو د خپل رب نه څه دعاگانے کړے وے چه د امت اسلامیه د راښکاره کیدو نه روستو پوره شوے، لکه د بیت الله حج او د کعبے د مسلمانانو دپاره قبله جوړیدل۔ د ابراهیم علیه السلام او د هغهٔ د دغه دعاگانو په مناسبت سره ددے سورت نوم «ابراهیم» کیخودلے شویدے، او پدے کښې رددے په مشرکانو۔

**د نزول زمانه** : د ابن عباسؓ، عکرمهٌ، حسنؒ، جابر بن زیدؒ او قتادهٌ وغیره په نیز د دوه یا درے آیتونو (٢٨/٢٩/٣٠) نه سوئ ټول سورت مکی دے۔

مناسبت

١- مخکښې سورت کښې رد د شرك وشو چه غیر الله ته آواز کول ضائع دی (کَبَاسِطِ كَفَّيۡهِ) نو دلته بَيَانُ الْعُقُوْبَةِ عَلٰى مَنْ يَفْعَلُ ذٰلِكَ۔ د هغه چا سزا بیانوی چه څوك دا کار کوی لکه پخوانی قومونه ئے په شرك سره هلاك کړل۔ ﴿وَذَكِّرۡهُمۡ بِاَيّٰمِ اللّٰهِ﴾۔

٢- مناسبتِ لفظی : مخکښې ذکر شو چه مشرکانو ویل : لَسۡتَ مُرۡسَلًا۔ تهٔ د الله رسول نهٔ ئے نو دلته وائی چه ﴿لِتُخۡرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ﴾ یعنی تهٔ زما رسول ئے او ما د یو لوی مقصد دپاره رالیږلے ئے چه خلك به د تیارو نه رڼا ته راوباسے۔

٣- موضوعاتی مناسبت : مخکښې عظمة الوحی بیان شوه، نو پدے سورت کښې اَلشُّكۡرُ عَلٰى نِعۡمَةِ الرِّسَالَةِ بیانیږی۔ یعنی هرکله چه وحی عظیم شے دے نو پدے نعمت به شکر کوئ۔

٤- مخکښې سورت کښې د قرآن کریم او د رسول الله ﷺ رشتینوالے بیان شو نو پدے سورت کښې ددے دواړو مقصد ذکر کوی چه هغه ﴿لِتُخۡرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوۡرِ﴾

دے۔ (احسن الکلام)

## موضوع د سورت

۱- زمونږ مشائخ وائی : چه ددے سورت موضوع ده اَلتَّذْکِیْرُ بِاَیَّامِ اللّٰہِ۔

یعنی خلك راویستل د تیارو نه رنړا ته په کتاب الله سره، او په تَذْکِیْر بِاَیَّامِ الله سره یعنی په دنیوی او اخروی واقعاتو ذکر کولو سره۔ لیکن دے موضوع سره ټول سورت په ډیر ښهٔ شان سره نهٔ لګی۔

❁ ظاهر دا ده چه پدے سورت کښې دوه موضوع دی (۱) اَلرِّسَالَةُ نِعْمَةٌ ۔ پیغمبر رالیږل د الله د طرفنه لوی نعمت دے۔ نو پدے سورت کښې به په رسالت ډیر بحث کیږی۔

(۲) دویم شُکْرُ النِّعَمِ کُلِّهَا خُصُوْصًا نِعْمَةُ الرِّسَالَةِ ۔ د ټولو نعمتونو شکر پکار دے خاصکر د رسالت نعمت چه الله تعالیٰ محمد رسول الله ﷺ راولیږلو (اے قریشو! او بیا عام امت ته وائی) ددهٔ خو شکر پکار وو چه دا ومنلے شی، او تابعداری ئے وکړے شی، او تاسو دے نعمت له دیکه ورکوئ ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَی الَّذِیْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَةَ اللّٰہِ کُفْرًا وَّاَحَلُّوْا﴾ د الله تعالیٰ نعمة ئے په ناشکرئ بدل کړو۔ (په یو قوم کښې چه نبی یا یو عالِم راشی پکار ده چه دا ټول قوم پرے فخر وکړی او د هغه شکر ادا کړی چه دوی جنت ته راکاږی)

لیکن بعض خلك خپل خیرخواهان نهٔ پیژنی، بلکه نعمت له دیکے ورکوی۔

د ابراهیم ؑ په واقعه کښې هم راځی۔ (لَعَلَّهُمْ یَشْکُرُوْنَ) (اَلْحَمْدُ لِلّٰہِ الَّذِیْ) د ابراهیم ؑ شکرګزاری به بیانیږی، د هغه اقتداء وکړئ۔

نو د رسالت متعلق خبره به زیاته بیانیږی چه رسولان چه راځی نو دا لوی نعمت دے ځکه چه دوی خلك د تیارو نه رنړا ته راوباسی، د رسولانو په وجه انسانانو ته الله تعالیٰ هدایت کوی او د عذابونو نه ئے بچ کوی، بیا د رسولانو په خلاف کښې چه څوك ودریدلی دی هغه هلاك شویدی، هغوی د زمکے نه شړلے شویدی، جهنم ئے ځای دے۔

ورسره دا خبره به ملګرے کوی (لکه دا د قرآن طریقه ده) چه څوك رسول نهٔ منی بیا به د بل لیډر پسے روانیږے چه هغه شیطان دے۔ (وَقَالَ الشَّیْطَانُ) (۲۲ آیت) بعض خلك د نورو لیډرانو پسے روان شو چه یو په هغے کښې شیطان دے۔ ﴿فَقَالَ الضُّعَفَاءُ لِلَّذِیْنَ اسْتَکْبَرُوْا﴾ (آیت: ۲۱) کښې به د نورو لیډرانو تذکره کیږی۔ چه غلط مشران به د کشرانو نه بیزاری کوی، او بیا به د ټولو مشر لیډر (شیطان) له ورشی، هغه به ورته وائی چه ما مهٔ ملامته

کوئ خپل ځانونه ملامته کړئ، دا موضوع ئې هم پدې سورت کښې پدې وجه راوړیده چه یا به د رسول تابعداري کوي، یا به د بل ګمراه پسې روانیږي۔ نو آیا دا ښه نۀ ده چه یو تن د رسول الله ﷺ پسې روان شي۔
نو دا ډیر عجیب دعوت دے۔ ددے وجه نه چه چا د رسول الله ﷺ طاعت او اتباع پریښے ده، الله تعالیٰ د شیطان په لاره روان کړیدے۔ اګرکه هغه به ګمان کوي چه زۀ د پیر یا ملا پسې روان یم مګر هغه به په حقیقت کښې د شیطان تابع وي ځکه چه د رسول الله مخالفت د شیطان دعوت دے۔

## د سورت اجمالي خلاصه

د سورت د ابتداء نه قرآن ته ترغیب دے او د رسول الله ﷺ شان ئې پکښې بیان کړیدے، پداسے طریقه چه د رسول الله ﷺ عزت پکښې راځي۔ بیا ئې کافرانو ته تخویف ورکړیدے (۳) آیت کښې، بیا ئې د رسالت بیان کړیدے چه الله تعالیٰ هر رسول په ژبه د خپل قوم رالیږلے دے د بیان دپاره، او د رسالت نه بعد خلك دوه ډله شویدي ګمراهان او هدایت والا، د هغې مثال ئې د موسیٰ علیه السلام په واقعه راوړیدے تر (۸) آیت پورے، بیا تخویف دنیوي ذکر دے چه قوم نوح وغیره هلاك شو د دوي نه عبرت واخلئ۔
د هغه اقوام مکذبه ؤ کار څه وو؟ د پیغمبرانو مقابله کښې ودریدل او په هغوي باندے درے قسمه اعتراضات کول او د انبیاء علیهم السلام د هغوي په مقابله کښې صبر او توکل کول، بیا ئې ورسره د آخرت عذاب ملګرے کړیدے تر (۱۸) آیت پورے، بیا ئې د غلطو مشرانو او کشرانو بیزاري ذکر کړیده، ورسره د شیطان بیزاري تر (۲۲) آیت پورے، بیا ئې د هغوي په مقابله کښې بشارت ذکر کړیدے او دوه مثالونه د مؤمن د ایمان او د مشرك د شرك مثال، او دا مثال په اتباع د رسول الله ﷺ کښې دے، او د هغۀ د مخالف په باره کښې۔
او بیا زجر دے په ناشکرئ د نعمت باندے، چه په هغه آیت کښې به دوه قسمه نعمتونه بیان کړي دیني او دنیوي،
بیا ئې په یوه رکوع کښې د ابراهیم علیه السلام واقعه د شکر او ناشکرئ دپاره ذکر کړیده، او په آخري رکوع کښې ټول تخویف دے مجرمانو ته او نبي کریم ﷺ ته زیرے ورکوي چه پیغمبرانو ته به الله تعالیٰ غلبه ورکوي او آخر کښې ئې د قرآن کریم د نازلولو حکمة ذکر کړیدے۔ او په اول کښې هم حکمة ذکر دے۔ (لِتُخْرِجَ النَّاسَ)۔

حاصل دا چه پدے سورت کښې هم د عامو مکی سورتونو په شان د نبی کریم ﷺ په نبوت باندے دلیل نیولے شویدے۔ او قریش کافرانو ته په قرآن او د رسول الله ﷺ په نبوت باندے د ایمان راوړو دعوت ورکړے شویدے، او د دوی د کفر او عناد په نتیجه کښې د مختلف قسم دنیوی او اُخروی سزاګانو دهمکی ورکړے شویده۔

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ۔

| |
|---|
| الٓرٰ كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ إِلَيْكَ |
| الله تعالیٰ پوهه دے په مطلب ددے۔ دا کتاب دے چه نازل کړیدے مونږ تا ته |
| لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّوْرِ بِإِذْنِ رَبِّهِمْ إِلٰى صِرَاطِ |
| دے دپاره چه ته اُوباسے خلقو لره د تیارو نه رڼا ته په حکم د رب د دوی لارے |
| الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ﴿١﴾ |
| د هغه ذات ته چه زورور ستائیلے شویدے۔ |

**تفسیر**: الٓرٰ، دا حروف مقطعات دی، ددے په معنیٰ الله پوهیږی۔ پدے کښې د قرآن کریم شان او حکمتونو ته اشاره ده۔

**كِتَابٌ**: دا خبر د مبتداء دے (أَیْ هٰذَا كِتَابٌ) دا لوی کتاب دے، تنوین د تعظیم دپاره دے، نو پدے کښې د قرآن کریم تعظیم کول مقصد دے۔

**أَنْزَلْنَاهُ**: (مونږ نازل کړیدے) الله تعالیٰ ځان ته نسبت وکړو اشاره ده چه دا د لوی الله خبرے دی، د انسان خبرے نهٔ دی، نو ډیر عظمت ته اشاره ده۔ او اشاره ده چه دغه عظیم ذات به ددے په باره کښې د بندګانو نه تپوس کوی۔

**إِلَيْكَ** او **تُخْرِجَ** کښې (انت) ضمیر ډیر مقصود دے چه اے نبی! تا ته مے دا کتاب راولیږلو نو تهٔ د الله رسول ئے، ځکه چه چا ته د الله کتاب راځی هغه رسول وی۔

**لِتُخْرِجَ النَّاسَ**: دا د قرآن کریم د نازلیدو حکمة بیانیږی چه خلک پرے د تیارو نه راوباسے۔ او تُخْرِجَ ځکه وائی چه کله قرآن خپله په طاقچه کښې پروت وی نو هغه راویستل نشی کولے، او خلك د منکراتو نه نشی منع کولے بلکه محمد رسول الله ﷺ به هغه بیانوی نو د هغے په وجه به بندګان د تیارو نه راوځی۔ پدے وجه الله تعالیٰ کتاب الله او

رسول الله ﷺ دواړه رالیږلي دي. نو پدې وجه داعي له هم ددې بیان ضروري دې.

د ((ظلمات)) او ((نور)) ډیر مصداقات او مطلبونه په سورة البقره کښې ذکر شویدي.

١- مِنْ ظُلُمَاتِ الْكُفْرِ إِلَى نُوْرِ الْإِيْمَانِ. ٢- مِنْ ظُلُمَاتِ الشِّرْكِ إِلَى نُوْرِ التَّوْحِيْدِ.

٣- مِنْ ظُلُمَاتِ الْبِدْعَةِ إِلَى نُوْرِ السُّنَّةِ ٤- مِنْ ظُلُمَاتِ الْمَعْصِيَةِ إِلَى نُوْرِ الطَّاعَةِ.

٥- مِنْ ظُلُمَاتِ الشَّكِّ إِلَى نُوْرِ الْيَقِيْنِ ٦- مِنْ ظُلُمَاتِ الْجَهْلِ إِلَى نُوْرِ الْعِلْمِ.

قرطبیؒ وغیره دا ټول مصداقات ونیلي دي. یعنې د کفر او شرك او بدعت او ګناهونو او د شك او د جهالت د تیارو نه راوباسې رڼرا د ایمان، توحید، سنت، طاعت، یقین او علم ته. نو قرآن هم نعمت شو او رسول الله ﷺ هم نعمت. او ددې نعمت شکریه دا ده چه د هغوی سره محبت وساتی او د هغهٔ اتباع وکړی.

امام رازیؒ لیکی چه ظلمات په لفظ د جمع او نور په لفظ د مفرد ذکر شو پدې کښې اشاره ده چه دکفر او بدعت لارې ډیرې دی او د حق لاره صرف یو ده. انتهیٰ. (فتح)

**بِإِذْنِ رَبِّهِمْ** : یعنی رسول الله ﷺ صرف داعی او لارخودونکې دې نور واك د الله تعالیٰ دې، توفیق د هدایت د هغهٔ په لاس کښې دې نو هغهٔ ته متوجه کیدل پکار دی.

**إِلَىٰ صِرَاطِ** : دا بدل دې د (النّور) نه، یعنی نور او د الله لاره یو شې دې، دغه رڼرا د الله لاره ده.

**الْعَزِيْزِ** : پدې کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ زوره ور دې، څوك چه تیارو کښې پاتې شو او د رسول الله ﷺ خبره ئې ونهٔ منله نو الله به عذاب ورکړی. او دې دواړو صفتونو کښې اشاره ده چه دغه لاره سبب د عزت او حمد دې د الله تعالیٰ د طرفنه.

**الْحَمِيْدِ**: کښې د الله تعالیٰ شکر ته اشاره ده چه د هغهٔ شکر پکار دې ځکه چه هغه نعمت ورکونکې احسان کونکې دې. حمید هغه ذات ته وائی چه که څوك ئې صفت کوی او که نهٔ خو هغه ئې لائق دې.

| اللهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ |
|---|
| الله هغه ذات دې چه د هغهٔ په اختیار کښې دی هغه څه چه په آسمانونو کښې دی |
| وَمَا فِي الْأَرْضِ وَوَيْلٌ لِّلْكَافِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدٍ ﴿٢﴾ |
| او هغه څه چه په زمکه کښې دی او هلاکت دې کافرانو لره د عذاب سخت نه. |

| اَلَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَيَصُدُّوْنَ |
|---|
| هغه کسان دي چه خوښوي ژوند دنیوي په آخرت باندے او منع کوي (خلقو لره) |
| عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ ﴿٣﴾ |
| د لارے د الله تعالیٰ نه او لټوي په هغے کښ کږليچ، دا کسان په ګمراهئ لرے کښ دي۔ |

**تفسیر**: اللّٰهِ: دا عطف بیان دے د (العزیز الحمید)۔ یعني دغه لاره (دین اسلام) د هغه الله لاره ده چه هغه د آسمانونو او د زمکے ترمینځ د هر شي مالك دے۔ نو که څوك د هغهٔ هدایت ته رانغے، د هغهٔ په بادشاهي کښ هیڅ نقصان نهٔ راځي۔

وَوَيْلٌ: پدے وجه په دنیا کښ هلاکت او بربادي او د قیامت په ورځ د اُور عذاب دے هغه کافرانو دپاره چه د نبي کریم ﷺ دعوت نهٔ قبلوي، او د کفر د تیارو نه وتلو سره د ایمان او اسلام رڼرا کښ نهٔ داخلیږي۔ یعني دے خلکو ځان تباه کړو۔

اَلَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ: د دغه کافرو صفات بیان شویدي چه دوي د آخرت ژوند هیروي، او د دنیا د ژوند په کامیابولو کښ ورننوتي دي، او د الله بندګان په حقه لاره باندے روانیدو نه منع کوي او وائي چه دا لاره صحیح نهٔ ده، یا غواړي چه خلق د اسلام نه واوړي، یا د الله دین د دوي د نفس د خواهش مطابق شي۔ الله تعالیٰ د دوي په باره کښ فرمائي چه دوي د ګمراهئ په لاره ډیر لرے تلي دي۔ او د ﴿اُولٰٓئِكَ ضَالُّوْنَ﴾ په ځاي ﴿اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ﴾ وئیلو سره دے طرف ته اشاره ده چه ګمراهي د دوي دویم فطرت جوړ شویدے۔

عَلَى الْاٰخِرَةِ: ددے نه د دنیا د محبت معنیٰ ښکاره کیږي چه د دنیا محبت هغه ممنوع دے چه انسان د آخرت کارونه پریدي او دنیا واخلي۔ یعني د آخرت په مقابله کښ دنیا غوره کړے شي۔ او نفس دنیا سره محبت ساتل مذموم نهٔ دي۔

وَيَصُدُّوْنَ: قرآن کښ دا جمله هم ډیره راځي ځکه چه صد عن سبیل الله په هر دور کښ د داعي په خلاف کیږي۔

سَبِيْلِ اللّٰهِ: د الله لاره د رسول الله ﷺ لاره، او دین اسلام دے۔

فِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ: اَيْ عَنِ الْحَقِّ۔ یعني د حق نه ډیر لرے والي کښ دي ځکه چه څوك د نبي په خلاف کښ ودریږي نو هغه ته هدایت کیدل زر ممکن نهٔ وي ځکه چه د هدایت یوه لاره ده او هغهٔ یو تن پریخوسته نو بل په کومه لاره کښ به دهٔ ته هدایت کیږي۔ او عام

ناپوهه خلك د هدايت په خوا وشا كښې روان وي نزدې ده چه ورته راواوړي، خو چه كله د نبي په خلاف يو تنظيم او پارټي او مذهب جوړ كړي نو هغه د هدايت نه لرې شو. لكه دا خبره بار بار تيره شويده.

| |
|---|
| وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ |
| او نۀ دے ليږلے موږ هيڅ رسول مګر په ژبه د قوم د هغۀ دے دپاره چه بيان كړي دوي ته |
| فَيُضِلُّ اللهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ |
| (احكام د الله) نو ګمراه كوي الله تعالیٰ چا له چه اُوغواړي او هدايت كوي |
| مَنْ يَّشَآءُ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٤﴾ |
| چا له چه اُوغواړي او هغه زورور حكمتونو والا دے. |

**تفسير** : پدے آيت كښې د عامو پيغمبرانو اجمالي واقعه بيانوي چه الله تعالیٰ هر رسول د هغۀ د قوم په ژبه راليږلے دے دپاره چه هغوي ته خبره ښۀ واضحه شي، بيا د پيغمبرانو نه روستو به څه كار پيدا كيدو نو پدے كښې طبيعت د رسالت بيانوي.

نو دغه شان الله تعالیٰ قرآن كريم نازل كړو او نبي كريم ﷺ ئې پيغمبر كړو، په عربو باندے ئې خپل احسان داسے پوره كړو چه رسول الله ﷺ عربي وو، د هغۀ ژبه عربي وه، دے دپاره چه د شريعت كارونه هغوي ته د هغوي په ژبه د هغوي مخے ته بيان كړي، لكه چه الله تعالیٰ سورة فصلت آيت (٤٤) كښې فرمايلي دي : ﴿وَلَوْ جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا أَعْجَمِيًّا لَّقَالُوْا لَوْلَا فُصِّلَتْ آيٰتُهٗ﴾ (كه موږ قرآن په عجمي ژبه كښې نازل كړے وے نو دوي به وئيلے چه ددے آيتونه ولے نۀ دي واضحه كړے شوي) ځكه چه عربي ژبه كښې هغه كمالات دي او فراخي او ژوروالے دے چه په نورو ژبو كښې نشته.

قَوْمِهٖ: داسے ئې ونۀ ويل چه (بِلِسَانِ أُمَّتِهٖ) (په ژبه د امت د هغۀ) ځكه چه په امت كښې خو مختلفې ژبے دي، بلكه اول مخاطبين د رسول الله ﷺ د هغۀ قوم وو او هغوي دۀ ته ډير نزدے وو، بيا به هغوي نورو ژبو والو ته وضاحت كوي په طريقه د ترجمے سره. او كه هر قوم ته په مختلفو ژبو قرآن كريم نازل شوے وے نو دا سبب د اختلاف جوړيدو او د جګړو دروازه كولاويده ځكه چه د هرے ژبے والا داسے معاني په خپله ژبه كښې لري چه هغه د دوي

نه علاوه خلك نهٔ پیژني، او ډیر کرته به په دے کار سره تحریف او غلطي واقع کیدلے او د متعصبینو خلکو باطلې دعوے به ثابتیدلے۔

دارنګه هر انسان د خپلے ژبے کمالات ښهٔ پیژني نو وضاحت ښهٔ کولے شي۔ نو الله تعالیٰ په یوه ژبه راولیږلو چه ټول خلك په مراد اخستو کښې برابر شي، ټول به دے یو لغت ته رجوع کوي او مقاصد به معلوموي۔ (فتح البيان بتصرف)

لِيُبَيِّنَ لَهُمْ : اَیْ شَرْعَ اللّٰهِ۔ دے دپاره چه بیان کړي دوی ته د الله تعالیٰ شرع او د هغه د دین احکام۔

فَيُضِلُّ اللّٰهُ : په دے کښې د رسالت نه روستو پیدا کیدونکے حال بیانوي چه د رسول د رالیږلو نه روستو الله تعالیٰ ځینی خلك په خپل مشیت او حکمة سره ګمراه کړي ځکه چه هغوی ضد کښې راشي، او ځینو ته هدایت وکړي ځکه چه هغوی انابت والا وي۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسٰى بِآيَاتِنَا أَنْ أَخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ الظُّلُمَاتِ |
| او یقیناً لیږلے وو مونږ موسیٰ (عليه السلام) په آیتونو خپلو سره چه اُوباسه قوم خپل د تیارو نه |
| إِلَى النُّوْرِ وَذَكِّرْهُمْ بِأَيَّامِ اللّٰهِ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَآيَاتٍ |
| رڼا ته او وریاد کړه دوی ته عبرتناك واقعات د الله تعالیٰ، یقیناً په دے کښې خامخا نخے دي |
| لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿٥﴾ وَإِذْ قَالَ مُوسٰى لِقَوْمِهِ |
| دپاره د هر ډیر صبرناك او ډیر شکر ګذار۔ او کله چه اُووئیل موسیٰ (عليه السلام) قوم خپل ته |
| اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ إِذْ أَنْجَاكُمْ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ |
| یاد کړئ احسان د الله تعالیٰ په تاسو کله ئے چه خلاص کړئ تاسو د فرعونیانو نه |
| يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْءَ الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُوْنَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ |
| رسَول به ئے تاسو ته بد عذاب او حلالول به ئے ځامن ستاسو او ژوندۍ ئے پریخودلے |
| نِسَاءَكُمْ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَاءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿٦﴾ |
| ښځے ستاسو او په دے کښې امتحان وو د طرف د رب ستاسو نه لوئي۔ |

**تفسير** : د ټولو انبیاؤ د بعثت مقصد دا وو چه دوی خپل امتونو ته په نیغه لاره

روانيدو دعـوت وركړى. نو اوس يو ه خاص واقعه د موسىٰ عليه السلام راوړى چه مقصد پكښې ترغيب الى الشكر دے، چه هغه خپل قوم ته د شكر كولو دعوت وركړے وو. نو رسالت يو نعمت شو. او لكه څنگه چه رسول الله ﷺ خلك د تيارو نه راويستل نو دغه شان موسىٰ عليه السلام هم راويستل.

وَذَكِّرْهُمْ بِأَيَّامِ اللَّهِ: تذكير نصيحت وركولو ته وائي او خبره ورته راياده ول.

ايام جمع د يوم ده ورځ ته وائي، بيا د عربو عادت دا دے چه د ايام نه مراد واقعات اخلي لكه ايام العرب يعنى هغه ورځے چه په هغے كښې واقعات راغلي وى لكه يوم بدر، يوم احد يعنى واقعه د بدر او واقعه د اُحد. نو دلته مراد: (وَقَائِعُ اللَّهِ الَّتِيْ أَوْحَدَهَا عَلَى الْمُنْعَمِيْنَ وَعَلَى الْمُعَذَّبِيْنَ) (زجاج) (فتح البيان) د الله تعالىٰ هغه واقعات دى چه بعض خلكو باندے ئے پكښې انعامات كړيدى او بعضو له ئے پكښې عذابونه وركړيدى. نو د الله واقعات دوه قسمه شو، نعمتونه او عذابونه. يعنى دوى ته ترغيب او ترهيب وركړه.

او په حديث د مسند احمد (١٢٢/٥) رقم (٢١١٥٨) كښې ابى بن كعب رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كړيدے [يُذَكِّرُهُمْ بِأَيَّامِ اللَّهِ، نِعَمَهُ وَبَلَاءَهُ] موسىٰ عليه السلام خپل قوم ته د الله تعالىٰ ايام يعنى نعمتونه او عذابونه بيانول. (حديث صحيح وهذا اسناد حسن فى المتابعات والشواهد من اجل محمد بن يعقوب ابى الهيثم الربالى – شعيب الارنووط)

يوه بله رائے داده چه د «ايام الله» نه مراد هغه نعمتونه دى چه الله تعالىٰ قوم د موسىٰ عليه السلام ته وركړى وو، او د ټولو نه اولنے دا نعمت چه دوى ته ئے د فرعون دظلم او زياتى نه نجات وركړے وو.

لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ: د «صبار شكور» نه مراد هغه مؤمنان دى چه په مصيبتونو باندے صبر كوى او په نعمتونو شكر ادا كوى، او كله چه د تير شوى قومونو هلاكت يا په هغوى باندے د الله تعالىٰ د نعمتونو د باران واقعات آورى نو فوراً ويښ شى، خپله محاسبه كوى، او د صبر او شكر ژوند اختياروى.

د صبر او شكر تخصيص ئے ولے وكړو؟ وجه دا ده چه صبر او شكر ايمان دے او مؤمن عبرت اخلى نۀ كافران.

دويم دا چه چا ته چه د پخوانو قومونو واقعات بيان شى نو نيك بنده وائى چه زۀ به داسے كار نكوم لكه هغه خلكو چه كړے وو څكه په ما باندے به د هغوى په شان عذاب راشى نو بنده به د كافرانو د اعمالو نه صبر كوى او د هغه بندگانو په شان به شى چه

هغوی د پیغمبرانو ملګرتیا کړیده او شکرئې کړیدے۔ نو پدے جمله کښې ترغیب دے چه ځان کښې صبر او شکر پیدا کړئ نو د پخوانو قومونو د واقعاتو نه به فائده واخلئ۔ (فتح) صبرئې مقدم کړو ځکه چه شکر د صبر نه راپیدا کیږی۔

وَإِذْ قَالَ مُوسٰى : دا تشریح د (اَیَّامِ الله) ده۔ پدے وجه ئې پدے مقام کښې ﴿ وَيُذَبِّحُونَ﴾ سره واو راوړو ځکه چه هريو جدا جدا انعام وو۔

وَفِي ذٰلِكُم : يعنې د فرعون د موسیٰ علیه السلام د قوم سره دغه ظالمانه سلوك د الله د طرفنه لوی ازمینښت وو۔ ۲- یا ذلك اشاره ده نجات ته، ځکه چه الله تعالیٰ په نعمت ورکولو سره امتحان کوی او دا ازمینښت زیات سخت وی۔

| |
|---|
| وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ |
| او کله چه اعلان اُوکړو رب ستاسو که تاسو شکر اُوکړو نو خامخا زیات به کړو تاسو لره |
| وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ ﴿٧﴾ وَقَالَ مُوسٰى |
| او که تاسو ناشکری اُوکړه یقیناً عذاب زما ډیر سخت دے۔ او اُووئیل موسیٰ (علیه السلام) |
| إِنْ تَكْفُرُوا أَنْتُمْ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا فَإِنَّ اللهَ |
| که ناشکر کوئ تاسو او هغه خوك چه په زمکه کښې دی ټول نو یقیناً الله |
| لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٨﴾ |
| بے حاجته ستائیلے شویدے۔ |

**تفسیر** : دا هم د موسیٰ علیه السلام وینا ده یعنې موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته دا هم وویل چه ستاسو رب دا اعلان کړیدے او ما ته ئې دا خبر راکړیدے چه که تاسو د هغهٔ د نعمتونو په خالص ایمان او عمل صالح سره شکر ادا کوئ نو هغه به تاسو ته نور زیات رزق درکړی او په دنیا کښې به مو معزز او مکرم کړی۔ او دا اعلان د الله تعالیٰ ټول انسانیت ته دے پدے وجه خو الله تعالیٰ دا اعلان په قرآن کریم کښې هم نازل کړو۔

وَإِذْ تَأَذَّنَ : دا په معنیٰ د آذَنَ سره دے اَیْ اَعْلَمَ۔ یعنې خبر ورکړو۔ (قرطبیؒ)

لَأَزِيدَنَّكُمْ : ۱- اَیْ مِنْ نِعَمِیْ۔ یعنې خپل نعمتونه به درته زیات درکړم۔

۲- اَیْ مِنْ طَاعَتِیْ۔ سفیان ثوریؒ او حسنؒ ددے تفسیر دا بیانوی چه هغه به تاسو ته د زیات

طاعت او د بندګئ توفیق درکړي. او که ناشکري کوئ نو هغه نعمتونه به تاسو نه واخستې شي او په سخت عذاب کښې به اخته شئ. (تفسیر ابن ابی حاتم والطبری وفتح البیان)

وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِن تَكْفُرُوٓا : موسیٰ ؑ دا هم ووئیل چه که تاسو او زمکه کښې اوسیدونکی ټول خلق د الله ناشکره شي نو ددې نقصان به همدا تاسو ته رسیږي، هغه ستاسو د شکر محتاج نهٔ دې، ستاسو په ناشکرئ سره د هغهٔ په ذات او صفاتو کښې هیڅ کمې نهٔ راځي. نو پدې کښې دا ذهن جوړول مقصود دې چه د شکر فائده انسان ته خپله راجع کیږي، الله تعالیٰ ته هیڅ فائده نهٔ حاصلیږي، صرف الله تعالیٰ پرې خوشحالیږي.

غالباً هغهٔ به دا خبره په هغه وخت کښې کړې وي چه کله ئې ولیدل چه د هغهٔ قوم په کفر او عناد باندې کلك دې، او د ترغیب او ترهیب هیڅ اسلوب او طرز په دوی باندې اثر نهٔ کوي.

امام مسلمؒ د ابوذر ؓ نه حدیث قدسي روایت کړیدې چه الله تعالیٰ فرمائي : «اې زما بندګانو ! که ستاسو اول او آخر او انسانان او پیریان ستاسو نه د یو ډیر نیك انسان په شان شي، نو پدې سره زما په بادشاهئ کښې هیڅ زیاتې نهٔ کیږي. اې زما بندګانو ! که ستاسو اول او آخر او انسانان او پیریان ستاسو نه د یو ډیر بد کار انسان په شان شي نو پدې سره زما په بادشاهئ کښې هیڅ کمې نهٔ راځي، اې زما بندګانو ! که ستاسو ټول اول او آخر او انسانان او پیریان په یو ځای راجمع شي او ما نه غواړئ او زهٔ هر یو ته د هغهٔ مراد پوره کړم نو پدې سره زما په خزانو کښې هیڅ کمې نهٔ راځي، داسې هم لکه یوه ستنه چه دریاب ته داخله کړې شي بیرته رابهر کړې شي». (مسلم :٦٧٣٧)

بیا شکر دې ته وائي چه نعمت د مُنْعِم په خدمت کښې استعمال کړي،

شکر باره کښې علماء فرمائي : صَيْدُ الْمَفْقُوْدِ وَقَيْدُ الْمَوْجُوْدِ. موجوده نعمت درله باقي پریدی او ورك شوې نعمت درله راپیدا کوي. په صحت چه شکر وکړې شي نو نور زیاتیږي او که په علم شکر وکړې شي نو زیاتیږي، د علم شکر دا دې چه عمل پرې وکړه او خلکو ته ئې بیان کړه. د مال شکر دا دې چه صدقه ترې ورکړه او حقوق د خلکو پرې ادا کړه. او دغه شان نور څیزونه واخله، د هر شي خپل خپل شکر وي.

| أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوحٍ |
| --- |
| آیا نهٔ دې راغلې تاسو ته خبر د هغه کسانو چه مخکښې وو ستاسو نه قوم د نوح |

| وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ وَالَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِهِمْ لَا يَعْلَمُهُمْ |
|---|
| او عادیان او ثمودیان او هغه کسان چه روستو دی د دوی نه، نهٔ دی پوهه په دوی بانديے |
| إِلَّا اللّٰهُ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَرَدُّوْا |
| مگر الله، راغلی وو دوی ته رسولان د دوی په ښکاره دلیلونو سره نو واپس کړل دوی |
| أَيْدِيَهُمْ فِيْ أَفْوَاهِهِمْ وَقَالُوْا إِنَّا كَفَرْنَا بِمَا |
| لاسونه خپل په خولو د هغوی کښې او اُووئیل دوی یقیناً انکار کوو مونږ د هغے نه |
| أُرْسِلْتُمْ بِهٖ وَإِنَّا لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا |
| چه رالیږلے شوی یئ تاسو په هغے او یقیناً مونږه خامخا په شك کښې یو د هغے نه |
| تَدْعُوْنَنَا إِلَيْهِ مُرِيْبٍ ﴿٩﴾ |
| چه رابلئ تاسو مونږه هغے ته سخت شك۔ |

**تفسیر** : د ابن جریرؒ په نیز دا هم د موسیٰ ؑ د وینا حصه ده۔

حافظ ابن کثیرؒ او قاسمیؒ وائی چه چونکه د عاد او ثمود قصے په تورات کښې نهٔ دی ذکر شوی پدے وجه په ظاهره کښې دا د الله تعالیٰ د امت محمدیه سره خطاب دے۔ الله تعالیٰ د قوم نوح او عادیانو او ثمودیانو او نورو قومونو واقعات بیان کړیدی کومو چه انبیاء علیهم السلام دروغجن کړی وو۔

او داسے قومونه په دنیا کښې تیر شویدی چه د هغوی شمار صرف الله تعالیٰ ته معلوم دے۔ دے رسولانو چه کله د دلائلو په رڼا کښې د الله تعالیٰ دین د هغوی مخے ته پیش کړو نو هغوی په درے طریقو د دوی دعوت رد کړو، یو دا چه هغوی ئے د خبرو کولو نه منع کړل، او وے وئیل چه مونږ تاسو نه زیاتی یوه کلمه هم آوریدل نهٔ غواړو، خپله خبره په خپله خوله کښې وساتئ۔ دویم دا چه مونږ ستاسو د دعوت نه انکار کوو۔ او دریم دا چه د کومے خبرے (توحید) طرف ته چه تاسو مونږ رابلئ زمونږ په زړهٔ کښې ددے په رشتینوالی کښې ژور شك او شبهه ده۔

## مناسبت

مخکښې مقدمه وه نو اُوس د هغے تفصیل ذکر کوی او دا تشریح ده د تَذْکِیْرِ بِاَیَّامِ اللّٰهِ دپاره۔

یعنی د پیغمبرانو راتلل او بیا د اقوام مکذبه ؤ تکذیب او د هغوی هلاکت په دنیا او په آخرت کښې ذکر کیږی۔

لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللهُ : ۱- یعنی ددے په تفصیلاتو سوئ د الله تعالیٰ نه بل هیڅوك خبردار نشته۔ او اجمالی علم انسانانو ته شته۔ بلکه ددے امت هم ډیر تفصیل دے چه ټول نهٔ دے لیکلے شوے، صرف اجمالی او یوه نقشه پیش کړے شویده۔

۲- بعض سلفو به دا خبره مطلقاً اخستله لکه چه عبد الله بن مسعود ﷺ به فرمایل :كَذَبَ النَّسَّابُوْنَ ـ د نسبونو بیانونکی (چه تر آدم ﷺ پورے نسب بیانوی) دروغجن دی ځکه چه ددے پیړو او اقوامو علم صرف الله تعالیٰ ته دے۔ او بعض مفسرین وائی چه څه ناڅه تاریخ خو د قرآن او حدیث نه معلوم دے نو اجمالاً معلومات شته۔

فَرَدُّوْا اَيْدِيَهُمْ فِيْ اَفْوَاهِهِمْ : ددے ډیر مصداقات او ډیر مطلبونه دی۔ رَدُّ الْاَيْدِيْ کله په حقیقت بناء دے او کله کنایه وی۔

۱- عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : دا رَدُّ الْاَيْدِيْ د تعجب د وجه نه وو۔ یعنی واپس کړو کافرانو لاسونه خپل په خولو خپلو کښې تعجباً لکه یو تن چه تعجب کوی نو څوك تندی له تړی ورکوی او څوك په خوله باندے لاس اړدی چه دا څنګه ناشنا مسئلے کوی۔

۲- کافرانو د غصے د وجه نه په خپلو خولو کښې خپل لاسونه ورکړل، یا ئے په رسولانو باندے سترګے راویستلے او په خوله باندے ئے لاسونه کیخودل چه غلی شئ ګنے سزا به درکړو۔ لکه څوك چه چاته د غلی کولو دپاره اشاره کوی نو په خپله خوله باندے یوه ګوته یا ټول لاس کیږدی۔

۳- یا کافرانو خپل لاسونه د پیغمبرانو په خولو کښې ورکړل چه چپ شئ۔

٤- قاسمیؒ وائی چه اَيْدِيْ کنایه ده د معجزو نه او دواړه ضمیرونه پیغمبرانو ته راجع دی یعنی واپس کړل کافرانو معجزات د پیغمبرانو د هغوی په خولو کښې چه مونږ درله دا نهٔ منو دا ځان سره وساتئ۔ (محاسن التاویل وفتح البیان)

بِمَا اُرْسِلْتُمْ بِهٖ : یعنی ستاسو دین او ستاسو وحی او معجزات نهٔ منو۔

وَاِنَّا لَفِيْ شَكٍّ : یعنی تاسو چه مونږ الله تعالیٰ ته او په هغه باندے یو اخے ایمان راوړو ته رابلئ نو د هغے په باره کښې مونږ شك لرو نو دوی دوه خبرے وکړے، یو د معجزاتو او د دین نه انکار، او بل د الله تعالیٰ د توحید په باره کښې شك کول۔

| قَالَتْ رُسُلُهُمْ أَفِي اللّٰهِ شَكٌّ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ |
|---|
| اُووئیل رسولانو د دوی آیا په توحید د الله کښې شك دے چه اول پیدا کونکے د آسمانونو |
| وَالْأَرْضِ يَدْعُوكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُمْ مِنْ ذُنُوبِكُمْ |
| او د زمکے دے، رابلی تاسو (داسے خبرے ته) چه اُوبخی تاسو ته گناهونه ستاسو |
| وَيُؤَخِّرَكُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى قَالُوا إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ |
| او روستو کړی تاسو نیتے مقررے پورے اُووئیل دوی نهٔ یئ تاسو مگر انسانان یئ |
| مِثْلُنَا تُرِيدُونَ أَنْ تَصُدُّونَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ |
| زمونږ په شان غواړئ تاسو چه منع کړئ مونږ لره د هغے نه چه بندگی ئے کوله |
| آبَاؤُنَا فَأْتُونَا بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ ﴿١٠﴾ |
| پلارانو زمونږ نو راوړئ مونږ ته دلیل ښکاره۔ |

**تفسیر** : پدے کښې پیغمبران د خپلو قومونو په دویمه خبره باندے اول رد ذکر کوی او د هغوی په آسمانی رسالت او دعوت په انکار باندے انتهائی درجه حیرانتیا ښکاره کوی چه آیا ستاسو د الله تعالیٰ د وجود او د هغهٔ د وحدانیت او د هغهٔ په حقیقی معبود کیدو کښې شك دے حال دا چه هغه ناشنا پیدا کونکے د آسمانونو او د زمکے دے، نو د آسمان او د زمکے وجود پدے خبره یقینی گواه دے چه دا د هیڅ شك گنجائش نهٔ پریدی چه د هغه نه سوئ هیڅوك لائق د عبادت نشته، هغه د هر شی خالق او مالك او معبود دے، نو د داسے یقینی ذات په باره کښې شك خو ډیره عجیبه خبره ده۔

**يَدْعُوكُمْ** : یعنی هغه ذات تاسو ته په مونږ باندے د ایمان راوړو حکم کوی، مونږ د خپل ځان نه تاسو لره دے طرف ته نهٔ رابلو۔

اَیْ يَدْعُوكُمْ إِلَى الْإِيمَانِ بِهٖ وَتَوْحِيدِهٖ۔ الله تعالیٰ تاسو ایمان ته او د هغهٔ توحید ته رابلی۔

**لِيَغْفِرَ لَكُمْ** : که تاسو زمونږ په تصدیق کولو سره په الله تعالیٰ باندے ایمان راوړئ نو هغه به ستاسو گناهونه معاف کړی، او د یو معین وخت پورے به د دنیا د ژوند نه د فائدے اخستو موقعه درکړی۔

**مِنْ ذُنُوبِكُمْ** : مِنْ ئے پکښې راوړو ځکه چه هغه گناهونه معاف کیږی چه د کوم نه توبه

وېستلې شي۔ او د کوم نه چه توبه نهٔ وي وېستلې شوي نو د هغې معافي نشته۔

وَيُؤَخِّرَكُمْ : اَیْ بِلَا عَذَابٍ۔ یعنی په غیر د عذاب راوستو نه، یعنی که ایمان مو راوړو نو عذاب به درباندې نهٔ راولي او د تاخیر الاجل نه مراد دا نهٔ دې چه د انسان موده د عمر به روستو کیږي۔ هغه خو حتمي د هر چا دپاره مقرر ده، که مؤمن دې او که کافر۔ خو په مؤمن عذاب نهٔ راولي۔

قَالُوْا اِنْ اَنْتُمْ : اُوس د اقوام مُکذبه ؤ اعتراضات ذکر کوي پس ددې نه چه دوي پدې خبره غلي شو او دا خبره ئې ومنله چه آسمان او زمکه الله تعالیٰ پیدا کړیدي، او مونږ مغفرت ته محتاج یو۔ لیکن نور درې اعتراضونه پرې کوي، یو د بشریت اعتراض، دویم د پلار نیکه د لارې نه د اړولو، او دریم معجزات غوښتل لکه ټولو اقوامِ مکذبه ؤ دغه شان اعتراضونه کړیدي۔

بَشَرٌ مِّثْلُنَا : یعنی تاسو زمونږ په شان انسانان يئ، خوراك څکاك کوئ، تاسو ته په مونږ باندې هیڅ فضیلت حاصل نهٔ دې، او بشر خو رسول نشي کیدې۔ نو د دوي دا باطله عقیده جوړه شوې وه چه رسول بشر نشي کیدې رسول خو به چرته ملائك وي۔

تُرِيْدُوْنَ : دویم اعتراض: ستاسو مقصد دا دې چه مونږ د خپلو پلارانو او نیکونو د معبودانو د عبادت نه منع کړئ۔

(دریم) پدې وجه مونږ به ستاسو خبره هله منو چه کله یو واضحه او ښکاره نخه راوړئ چه واقعي تاسو د الله تعالیٰ پیغمبران يئ۔

دا د دوي خالص عناد او ضد وو، ځکه چه هر نبي داسې معجزات او نخې پیش کړیدي چه قومونو ته د یقین ورکولو دپاره کافي وو چه دوي د الله تعالیٰ رالیږلې شوي پیغمبران دي۔

بِسُلْطَانٍ مُّبِيْنٍ: اَیْ حُجَّةٍ ظَاهِرَةٍ وَاضِحَةٍ تَدُلُّ عَلٰی صِحَّةِ مَا تَدْعُوْنَهُ مِنَ الْمَزِيَّةِ اَوِ النُّبُوَّةِ۔

یعنی داسې ښکاره او واضح دلیل راوړئ چه هغه ستاسو په زیاتي فضیلت او نبوت باندې دلیل وګرځي۔ کافرانو همیشه د پیغمبرانو ښکاره دلیلونو ته صریح نهٔ دي وئیلي، او خپلې باطلې نخې غوښتل ئې ښکاره ګنړلې دي۔

| قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ |
| --- |
| اُووئیل دوي ته رسولانو د دوي نهٔ یو مونږ مګر انسانان یو ستاسو په شان لیکن |

اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَمَا كَانَ لَنَا

الله تعالیٰ احسان کوی په چا چه اُوغواړی د بندګانو خپلو نه او نشته مونږ لره طاقت

اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطَانٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ وَعَلَى اللّٰهِ

چه راوړو تاسو ته دلیل مګر په حکم د الله تعالیٰ سره او خاص په الله تعالیٰ

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۱﴾ وَمَا لَنَا اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ

دې ځان اُوسپاری مؤمنان۔ او څه عذر دے مونږ لره چه ځان به نۀ سپارو مونږ په الله

وَقَدْ هَدٰىنَا سُبُلَنَا وَلَنَصْبِرَنَّ

او حال دا چه هغۀ خودلی دی مونږ ته لارے زمونږ او خامخا صبر به کوو مونږ

عَلٰى مَا اٰذَيْتُمُوْنَا وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۱۲﴾

په هغے تکلیفونه چه راکوئ تاسو مونږ ته او په الله دِے توکل اُوکړی توکل کونکی۔

**تفسیر**: رسولانو د اِرْخَاءُ الْعِنَان (واړے سستولو) په طریقه قومونو ته ووېل چه آؤ مونږ دا خبره منو چه مونږ ستاسو په شان انسانان یو. لیکن دا خبره ستاسو خطاء ده چه بشر او رسول دواړه نشی جمع کیدے بلکه الله تعالیٰ کولے شی چه په بعض بندګانو باندے چا له چه غواړی احسان وکړی او نبی ئے وګرځوی. پدے منافات باندے هیڅ دلیل نشته۔

**فائده**: مخکښې آیت کښې ئے (قَالَتْ رُسُلُهُمْ) ووېل او دلته ئے (قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ) ووېل. لَهُمْ ئے پکښې زیات کړو۔ (۱) فرق دا دے چه دا وینا د مکذبینو دپاره خاص وه او مخکښې وینا عامه وه مُصَدِّقِیْن او مُکَذِّبِیْن دواړو دپاره۔ (۲) دویم دا چه د الله تعالیٰ وجود نظری شے دے نو د رسولانو کلام د الله تعالیٰ د وجود په باره کښې خطاب وو عامو قومونو خپلو ته او هرچه د رسولانو رالیږل دی نو هغه ضروری او بدیهی (ظاهر) امر وو، هیڅ نظر او فکر ته ئے حاجت نۀ وو نو ګویا که وے فرمایل: چه رسولانو دا خبره خاص خپلو مکذبینو ته ووېل نۀ بل چا ته ځکه چه دوی غبیان او جاهلان وو۔

(۳) یا مخکښې صورت کښې خطاب وو معاندینو ته په یو ضروری امر کښې نو ګویا که هغوی رسولانو ته متوجه نۀ وو نو رسولانو هم عامه جمله ورته ذکر کړه، او په دویم ځای کښې هغوی رسولانو ته متوجه شو (اِنْ اَنْتُمْ) نو رسولانو هم خپل جواب هغو ته متوجه

کړو یعنې رسولانو دا خبره د هغوی د وجه نه وکړه. لام اجلیه دے. (ابن عاشورؒ)
وَمَا كَانَ لَنَا : د کافرانو خیال دا وو چه معجزے راوړل به د نبی په اختیار کښې وی نو دوی چه څه غواړی هغه شان معجزے به رسولان پیش کوی، نو ځکه ورله رسولان ذهن سازی کوی چه مونږ یوه نخه هم په خپلے خوښے سره نشو راوړے، الله چه کله غواړی رالیږی، او هغه پدے وخت کښې نۀ دی غوختی.
وَمَا كَانَ لَنَا : اَیْ مَا صَحَّ لَنَا وَلَا اسْتَقَامَ. مونږ دپاره دا صحیح (ممکن) او برابره نۀ ده.
او د دریمے خبرے جواب ورته نۀ کوی، ځکه دا خبره صحیح وه واقعی رسولان د همدے دپاره راغلی دی چه خلك د پلار نیکه د غلطے طریقے نه د الله تعالیٰ لارے او عبادت ته راواړوی.
وَعَلَى اللهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ : یعنی د رسولانو د دعوت نه به بعض خلك متأثر شو، هغوی به ایمان راوړو نو رسولانو به ورته وویل چه خاص په الله دے ایمان والا ځان وسپاری. او پدے کښې د دوی مقصد د تولو نه مخکښې خپل ځان ته نصیحت کول وو چه مونږ ته د قومونو د طرف نه کوم تکلیف د دعوت په لاره کښې رارسیږی پدے باندے صبر کولو دپاره په الله تعالیٰ باندے بهروسه کول پکار دی، او د هغۀ نه مدد غوختل پکار دی.
پدے وجه روستو ورپسے خپل ځان یادوی (وَمَا لَنَا) او چونکه د انبیاء علیهم السلام او د هغوی د قومونو ډیره سخته جګړه تیره شویده نو په هغے کښې توکل ته سخت ضرورت وی.
وَمَا لَنَا : یعنی په الله تعالیٰ باندے بهروسه کولو دپاره زمونږ سره بیا کوم عذر باقی پاتے شویدے، کله چه هغه زمونږ نه هر یو په نیغه لاره روان کړیدے؟.
هَدٰانَا سُبُلَنَا : یعنی مونږ ته ئے راخودلی دی لارے زمونږ یعنی د کامیابئ لارے. او کوم ذات چه د کامیابئ لاره ښائی نو په هغۀ باندے خو توکل پکار دے.
سُبُلَنَا : سُبل ئے جمع راوړه ځکه چه په هره لاره کښې الله تعالیٰ مؤمنانو ته بیل بیل هدایت کوی. یعنی په هره موقعه کښې ئے زمونږ رهنمائی کړیده.
وَلَنَصْبِرَنَّ : او چونکه د کافرانو په ضرر رسولو سره د انسان د استقلال په خپه کښې د حرکت راتللو خطره وی پدے وجه هغوی خپل قوتِ ارادی او کلك عزم ښکاره کړو او وے وئیل چه اے خلقو ! مونږ به د دعوت په لاره کښې ستاسو په مصیبتونو باندے صبر کوو. یعنی ستاسو په تکذیب کولو او په ضد او عناد او په باطلو مطالبو کولو. (فتح البیان)

وَعَلَى اللهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ : مخکښې هم توکل ذکر شو او دلته هم، په دواړو توکلونو کښې یو فرق دا دے چه (۱) اول کښې توکل راپیدا کول مقصود دی، او د دویم توکل نه مراد کوشش کول دی د هغے په باقی پاتے کیدو او همیشوالی کښې۔

(۲) یا د اول توکل معنیٰ دا ده چه کوم خلك معجزات طلب کوی هغوی باندے لازم دی چه د معجزاتو په باره کښې په الله تعالیٰ باندے ځان وسپاری نهٔ په مونږ، که د الله تعالیٰ خوښه وی ورته راښکاره به ئے کړی او که خوښه ئے شیٔ نهٔ به ئے راښکاره کوی۔ او د دویم توکل معنیٰ دا ده چه انبیاء علیهم السلام دا خبره راښکاره کوی چه د کافرانو د شر او بې وقوفتیا د دفع کولو په باره کښې په الله تعالیٰ باندے توکل لازم دے۔ (فتح البیان)

ابن عاشورؒ وائی : مقصد پدے کښې د مخکښې توکل تاکید دے، او د متوکلینو لوی شان ښکاره کول دی، چه توکل خو به صرف او صرف په الله تعالیٰ باندے کولے شی۔ او معنیٰ دا ده چه څوك په خپلو کارونو کښې په بل چا توکل کوی نو هغه لره پکار دی چه خاص په الله تعالیٰ باندے توکل وکړی۔

| وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ |
|---|
| او اُووئیل هغه کسانو چه کافران دی رسولانو خپلو ته خامخا اُوباسو به مونږ تاسو |
| مِّنْ اَرْضِنَا اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِيْ مِلَّتِنَا فَاَوْحٰى |
| د زمکے زمونږ نه یا به خامخا واپس کیږئ تاسو په دین زمونږ کښې نو وحی به اُوکړه |
| اِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٣﴾ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ |
| دوی ته رب د دوی چه خامخا هلاکوو به مونږ ظالمان۔ او خامخا اُوسه وو به تاسو |
| الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِيْ |
| په زمکه کښې روستو د دوی نه دا (وعده) د هغه چا دپاره ده چه یریږی د پیشیٔ زما نه |
| وَخَافَ وَعِيْدِ ﴿١٤﴾ |
| او یریږی د عذاب زما نه۔ |

**تفسیر** : دا عمومی اعتراض د کافرانو په پیغمبرانو دے۔ کافرانو چه کله ولیدل چه

انبیاء (علیهم السلام) د صبر غرونه جوړ شو او مصیبتونه برداشت کوی او په الله تعالیٰ باندے د دوی داسے مضبوط بهروسه ده چه د دعوت په لاره کښې د دوی په هیڅ خبره پرواه نشته، نو هغوی په ښکاره توګه سره دهمکی ورکړه چه یا خو به تاسو زمونږ دین ته بیرته واپس راځئ، یا به تاسو خپل کور او وطن پریږدئ او مونږ به مو وباسو۔

لَتَعُوْدُنَّ : د عَوْد معنیٰ په سورة الاعراف آیت (۸۸) کښې تفصیلًا ذکر شویده۔ مراد ترے داخلیدل دی۔

ځینی مفسرینو اَوْلَتَعُوْدُنَّ کښې اَوْ په معنیٰ د (اِلٰی اَنْ) سره دے یعنی مونږ به مو د زمکے نه تر هغه وخته پورے وباسو تردے چه تاسو زمونږ دین ته راواپس شوئ او که نهٔ راواپس کیږئ نو ستاسو ویستل به یقینی وی۔ لیکن دے ته ضرورت نشته بلکه اَوْ په خپله معنیٰ دے۔ یعنی اختیار دے په دوه کارونو کښې۔ (فتح البیان)

امام رازیؒ لیکلی دی چه اهل حق په هره زمانه کښې کم وی، او اهل باطل ډیر وی، او د حق د ډیوے مړ ډ کولو دپاره همیشه خپل مینځ کښې تعاون او مرسته کوی، پدے وجه دوی په کبر او غرور کښې انبیاؤ ته داسے دهمکی ورکړه نو الله تعالیٰ انبیاء کرامو ته اطمینان ورکړو او وے وئیل چه تاسو مهٔ پریشانه کیږئ، مونږ به ظالمان هلاکوو، او د زمکے مالکان به تاسو جوړه وو لکه چه الله تعالیٰ په سورة الصافات آیات (۱۷۱/۱۷۲/۱۷۳) کښې فرمایلی دی : ﴿ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ ۞ اِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ ۞ وَاِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغَالِبُوْنَ ﴾ یعنی زمونږ وعده د مخکښې نه د خپلو رسولانو دپاره صادره شویده چه دوی به کامیاب او مدد کړے شوی وی او زمونږ لښکر به غالب او پورته وی)۔

فَاَوْحٰى اِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ : دا د الله تعالیٰ د طرفنه تسلی او بشارت بالفتح دے (د فتح راتللو زیرے دے) سره د تهدید (دهمکی) نه کافرانو ته۔

وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ : دغه شان کار الله تعالیٰ د تولو انبیاء علیهم السلام او د حق داعیانو سره کړے او زمونږ د رسول ﷺ دشمنان ئے هم هلاك کړل او زمکه د مکے ئے بیرته خپل نبی ته ورکړه۔

ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ : دا وعده د نصرت د هغه چا دپاره ده چه زما د پیشئ او زما د عذاب نه یریږی۔

## د نصرت اسباب

ددے آیتونو نه د نصرت اسباب ښکاره کیږی (۱) اَلتَّوَكُّلُ عَلَى اللّٰه ـ په الله باندے توکل کول۔ (۲) اَلصَّبْرُ لِلّٰهِ ـ (د الله دپاره صبر کول)۔ (۳) خَوْفُ مَقَامِ اللّٰه ـ (د الله د پیشیٔ نه یریدل)۔ (٤) خَوْفُ وَعِيْدِ اللّٰه ـ (د الله تعالیٰ دعذابونو نه یریدل)۔

(۵) او نورو ځایونو کښې تقوی ذکر شویده۔ که دا کارونه تا کښې راغلل نو الله تعالیٰ به ستا دشمن خامخا وهی، انتظار ئے کوه۔ او کله چه یو مؤمن کښې دا صفات نشته نو د الله مدد به څنګه راشی۔

مَقَامِیْ : ددے دوه معانی دی (۱) قِيَامُهٗ بَيْنَ يَدَىِ اللّٰهِ ـ د الله مخے ته ودریدل۔ یعنی پیشی۔

(۲) مقام مصدر مضاف دے فاعل ته۔ یعنی ودریدل د الله تعالیٰ په بنده باندے او د ودریدو نه مراد علم د الله تعالیٰ دے په بنده باندے۔ لکه په سورة الرعد (۳۳) آیت ﴿ اَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍ ﴾ کښې تیر شو۔ یعنی مؤمن ددے نه یریږی چه ما ته بره الله تعالیٰ کوری او زما د هر حالت نه خبردار دے۔

د دواړو مطلبونو حاصل یو دے۔ اوله معنیٰ غوره ده۔

مقام په فتح د میم سره په اصل کښې ځای د ودریدو ته وائی او په ضمه د میم سره اقامة (ودریدو) ته وائی۔ (فتح)

| وَاسْتَفْتَحُوْا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ ﴿۱۵﴾ مِنْ وَّرَآئِهٖ |
|---|
| او طلب د فتح وکړو دوی (پیغمبرانو) او نا اُمیده شو هر سرکش ضدی۔ روستو د هغه نه |
| جَهَنَّمُ وَيُسْقٰى مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ ﴿۱۶﴾ يَّتَجَرَّعُهٗ |
| جهنم دے او څکولے به شی په هغه د اُوبو نه چه وینے زوی دی۔ کوټ کوټ به ئے څکی |
| وَلَا يَكَادُ يُسِيْغُهٗ وَيَاْتِيْهِ الْمَوْتُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ |
| او نزدے به نهٔ وی چه په آسانه ئے تیر کړی او راځی به دهٔ ته مرګ د هر ځائے نه |
| وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ ؕ وَمِنْ وَّرَآئِهٖ عَذَابٌ غَلِيْظٌ ﴿۱۷﴾ مَثَلُ الَّذِيْنَ |
| او نهٔ به وی دے مړ کیدونکے او روستو ددهٔ نه عذاب سخت دے۔ مثال د هغه کسانو |
| كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ ِۨ اشْتَدَّتْ |
| چه کفر ئے کریدے په رب خپل عملونه د دوی په شان د ایرے دی چه سخته راوالوزی |

بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ لَا يَقْدِرُوْنَ

په هغې باندې هوا په هغه ورځ کښې چه تيزې هوا والا وی، قادر به نۀ وی دوی

مِمَّا كَسَبُوْا عَلٰى شَيْءٍ ۚ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ﴿۱۸﴾

د هغې عمل نه چه کړې وی په هيڅ شی دا گمراهی لرې ده (د حق نه).

**تفسير** : يعنی انبياءِ کرامو عليهم السلام د الله تعالىٰ نه مدد طلب کړو چه اے الله ! مونږ ته زمونږ په دشمنانو غلبه رانصيب کړه، يا زمونږ او د دوی ترمينځ آخری فيصله وکړه، نو الله تعالىٰ د دوی مدد وکړو او دوی ئے د دوی په دشمنانو غالب کړل، او سرکشان او نافرمان ئے ذليله کړل.

وَاسْتَفْتَحُوْا : ۱- اَیْ اِسْتَنْصَرُوْا بِاللّٰهِ عَلٰى اَعْدَائِهِمْ. د الله تعالىٰ ئے نه مدد طلب کړو په مقابله د دشمنانو کښې. ۲- يا دا د فَتَاحة نه دے په معنىٰ د فيصلے سره اَیْ سَأَلُوا اللّٰهَ الْقَضَاءَ بَيْنَهُمْ. يعنی د الله تعالىٰ نه ئے د دوی او د خپل ځان ترمينځ فيصله وغوښتله.

ځينی داسے معنىٰ کوی چه کافرانو فيصله طلب کړه ليکن اول قول غوره او ظاهر دے.

وَخَابَ : اَیْ خَسِرَ وَهَلَكَ. تاوانی او هلاك شو.

يعنی مقصد ته ونۀ رسيدل ځکه چه د جبار او عنيد مقصد دا وو چه د دنيا مشری دے زمونږه وی نو الله ورله دا مقصد خراب کړو.

جَبَّارٍ : جبارية : ۱- اِدِّعَاءُ مَنْزِلَةٍ عَالِيَةٍ لَا يَسْتَحِقُّهَا. داسے مرتبه غوښتل چه د هغې مستحق نۀ وی. ۲- اَلَّذِیْ لَا يَرٰى فَوْقَهٗ اَحَدًا. د ځان نه پورته هيڅوك نۀ گنړی.

۳- اَلْمُتَكَبِّرُ الَّذِیْ لَا يَرٰى لِاَحَدٍ عَلَيْهِ حَقًّا. هغه متکبر چه د هيچا په خپل ځان باندے حق نۀ گنړی. ٤- اَلْمُتَعَظِّمُ فِیْ نَفْسِهٖ اَلْمُتَكَبِّرُ عَلٰى اَقْرَانِهٖ. ځان لوی گنړونکے او په خپلو همزولو کبر کونکے. او دا ټول تعبيرونه يو بل ته نزدے دی. (فتح البيان)

عَنِيْدٍ: اَلْمُعَانِدُ لِلْحَقِّ وَالْمُجَانِبُ لَهٗ (مجاهد).

د حق سره ضد کونکے او هغه يو طرفته کونکے. دا د عِنْدَ نه اخستے شويدے چه طرف ته وائی. يعنی په طريقه د اعراض يو طرفته کيدونکے.

۲- زجاج وائی : اَلَّذِیْ يَعْدِلُ عَنِ الْقَصْدِ. عنيد هغه شخص دے چه د نيغے لارے نه اوړی.

۳- هُوَ الَّذِیْ عَنَدَ وَبَغٰى. دا هغه شخص دے چه ضد کوی او زياتے کوی. (ابوعبيدؒ).

٤- اَلْمُعْرِضُ عَنِ الْحَقِّ۔ (ابن عباسؓ) هغه شخص چه د حق نه مخ اړونکے دے۔
٥- اَلَّذِیْ یُعَانِدُ وَیُخَالِفُ۔ دا هغه شخص دے چه ضد کوی او مخالفت کوی۔
٦-اَلْمُکَابِرُ الْمُعَارِضُ لِلْحُجَّةِ) لوئی کونکے، د هر شی نه ځان لوئی گنړونکے او د دلیل مقابله کونکے۔ (فتح البیان والقرطبی والتحریر وغیره)
مِنْ وَّرَآئِهٖ جَهَنَّمُ : وراء مخے او روستو دواړو ته وائی د اضدادو نه دے۔ یعنی جهنم به هم د دوی پسے وی چه هلته به د دوی د سکلو دپاره د جهنمیانو پیپ ملاویږی چه د هغے د سکلو په وخت به د دوی نفس په لوئی مصیبت کښ اخته وی، او مرگ به د هر طرف نه راگیر کړے وی، لیکن دوی به نهٔ مری، او سخت او نهٔ ختمیدونکے عذاب به د دوی پسے روستو لگیدلے وی۔
صَدِیْدٍ : دا هغه گند ته وائی چه د اُور والو د څرمنو او غوښو نه رابهیږی، یعنی هغه وینه چه د زوو سره یوځای شوی وی او د کافر د څرمنے او غوښے نه رابهیږی۔ دا مشتق دے د صَدٌّ نه منع کولو ته وائی او دا هم کتونکے دے ته د کتلو نه منع کوی۔
٢- محمدبن کعب القرظیؒ وائی : (هُوَ مَا یَسِیْلُ مِنْ فُرُوْجِ الزُّنَاةِ) دا هغه گند ته وائی چه د زناکارو د عورتونو نه رابهیږی دا به په کافرانو څکولے شی۔ (قرطبیؒ)
یَتَجَرَّعُهٗ : یعنی دا به د ډیرے بد بوئی او گندگئ او تریخ والی د وجه نه په یو ځل تیرولے نشی بلکه گوټ گوټ به ئے څکی۔ همیشه به د زنکدن په حالت کښ وی، مرگ به پرے نهٔ راځی، هر رگ او هر هډوکے به ئے همیشه دردونه کوی، دا ډیر لوی عذاب دے۔
عَذَابٌ غَلِیْظٌ: نور سخت عذابونه یا په اُور کښ همیشوالے دے۔ (ابراهیم التیمیؒ)
یا نور قسم عذابونه دی۔ یا ساه گانو بندیدل۔ (فُضیل بن عیاضؒ)
مَثَلُ الَّذِیْنَ : سوال پیدا شو چه کافرانو خو ډیر نیك عملونه هم کړیدی، بشر دوستی ئے کړیده، حاجیانو ته ئے خوراکونه او څکاکونه ورکړیدی او د مور او پلار خدمت او ډیر میلمه دوست او سخیان خلك هم پکښ شته، نو الله تعالیٰ د هغے د بربادئ مثال بیانوی چه دا عملونه ئے د اِیرو په شان برباد دی چه تیزه هوا پرے راوالوزی او هغه ختمه کړی نو د دوی دغه اعمال به هم په آخرت کښ برباد شی چه هیڅ فائده به دوی ته ورنکړی۔
یا ددے اعمالو نه شرکی او غلط عملونه دی، یعنی دوی چه د بتانو د رضا دپاره کوم اعمال کړیدی یا هغه اعمال چه په هغے کښ مقصد ریاکاری وه لکه د شهرت او نوم دپاره به ئے مال خرچ کولو، یا میلمنو دپاره به ئے ډیر اُوښان ذبح کول دے دپاره چه خلك ووائی

چه فلانے شخص ډیر سخي او لوی میلمه دوست دے، نو داسے اعمال ئے هم د اِیرو په شان برباد دی۔ لکه الله تعالیٰ په سورة الفرقان آیت (۲۳) کښې فرمایلي دي: ﴿ وَقَدِمْنَا إِلَىٰ مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَّنثُورًا ﴾ یعنی دوی چه کوم اعمال کول مونږ به هغے ته متوجه شو نو هغه به وګرځوو دوړه خوره وره)۔ یعنی الله به ورسره حساب وکړی نو د بې اخلاصۍ د وجه نه به ئے برباد کړی۔ او په سورة آل عمران آیت (۱۱۷) کښې فرمائي: ﴿ مَثَلُ مَا يُنفِقُونَ فِي هَٰذِهِ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيحٍ فِيهَا صِرٌّ أَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ فَأَهْلَكَتْهُ ﴾ چه (دا کافران چه څه خرچ کوی ددے مثال دا دے چه یوه تیزه هوا راشي چه په هغے کښې اُور وی چه د ظالمانو په فصلونو پریوزی او هغه تس نس کړی)۔

**مَثَلُ الَّذِينَ**: اَیْ مَثَلُ اَعْمَالِ الْكُفَّارِ فِی الْحَبْطِ وَالضَّیَاعِ كَرَمَادٍ۔ یعنی د کافرانو د عملونو مثال په بربادۍ کښې د ایرے په شان دے۔ او دلته ئے دا خبره ددے دپاره راوړیده چه د دوی په عملونو کښې اخلاص د الله دپاره نشته او د رسول الله ﷺ تابعداری پکښې نشته نو ځکه برباد شو۔

## د کافرانو د عملونو تشبیه ئے د ایرو سره ولے ورکړه؟۔

**كَرَمَادٍ**: تشبیه ئے د ایرے سره ورکړه: ۱- ځکه چه ایره توره وی نو د کافرانو اعمال هم تور وی چه هیڅ رنړا او کمال پکښې نهٔ وی۔ ۲- ایره چه کله الوزی نو په هغے کښې ضرر وی، د خلکو سترګے او جامے خرابے کړی، نو اشاره ده چه د دوی دا عمل به یواځے بربادیږی نهٔ بلکه د دوی د ضرر سبب به هم جوړیږی چه په دغه اعمالو به د حساب په وجه جهنم ته هم ګوزار کړے شی چه پدے کښې دے اخلاص او اتباع د رسول الله ﷺ ولے نهٔ وه کړے۔ آه۔ ۳- دارنګه د ایرے نه هیڅ فائده نهٔ اخستلے کیږی نو دغه شان د مشرك عملونه بې فائدے دی۔ ٤- دارنګه ایره راپیدا کیږی د سوزیدو د لرګو او سکارو نه نو دغه شان د دوی عملونه به روستو وسوزیږی۔ (احسن الکلام)

**اشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيحُ**: په هوا او یوم عاصف کښې اشاره ده د الله تعالیٰ حساب ته چه سخت دے۔

**يَوْمٍ عَاصِفٍ**: اَیْ عَاصِفُ الرِّیْحِ: تیزے سیلۍ والا ورځ وی۔

**الضَّلَالُ الْبَعِيدُ**: ددے نه لویه د دوی ګمراهي څه کیدے شی چه د قیامت په ورځ به د دوی اعمال برباد شی او دوی ته به د هغے اجر او ثواب نهٔ ملاویږی۔ ځکه چه د رسول په

مخالفت کښې وو.

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ إِنْ |
| آیا تهٔ نهٔ ګورې چه یقیناً الله تعالیٰ پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه په حق سره که |
| يَّشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ ﴿١٩﴾ وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ |
| اُوغواړي نو بوبه څې تاسو او رابه ولي مخلوق نوې. او نهٔ دې دا کار په الله باندې |
| بِعَزِيْزٍ ﴿٢٠﴾ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ جَمِيْعًا فَقَالَ الضُّعَفَآءُ لِلَّذِيْنَ |
| څه ګران. او میدان ته به شي دوی الله ته ټول نو وبه وائي کمزوری کسان هغه کسانو ته |
| اسْتَكْبَرُوْا إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ أَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا |
| چه لوئي ئې کوله یقیناً مونږ ستاسو تابع وو نو آیا تاسو دفعه کولې شئ زمونږ نه |
| مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ قَالُوْا لَوْ هَدَانَا اللّٰهُ |
| د عذاب د الله نه څه شې، هغوی به ووائي که هدایت کړې وې مونږ ته الله تعالیٰ |
| لَهَدَيْنَاكُمْ سَوَآءٌ عَلَيْنَا أَجَزِعْنَا أَمْ صَبَرْنَا |
| خامخا هدایت به کړې وې مونږ تاسو ته، برابره ده په مونږ که بې صبري کوو یا صبر کوو، |
| مَا لَنَا مِنْ مَّحِيْصٍ ﴿٢١﴾ |
| نشته مونږ لره ځائې د خلاصئ. |

**تفسیر** : ❀ ددې ځای نه اُوس عقلي دلیل ذکر کیږي، دپاره د اثبات د توحید او د آخرت.

مناسبت :

اې بنده! تا چه غلط عملونه وکړل نو دا خو تهٔ د عالَم د نظام د مقصد نه خلاف چلیږې ځکه چه الله تعالیٰ کائنات د حق دپاره پیدا کړي او هغه حق د الله تعالیٰ دپاره عمل کول دي په طریقه د رسول الله ﷺ. نو ځکه الله تعالیٰ تا سره دا معامله وکړه چه عملونه ئې درله برباد کړل.

أَلَمْ تَرَ : دا خطاب نبي کریم ﷺ ته دې، او مراد د هغه امت دې، یا د کافرانو هر فرد ته خطاب دې.

بِالْحَقِّ : یعنی هرکله چه الله تعالیٰ آسمان او زمکه په حق سره پیدا کړل چه هغه د الله تعالیٰ یواځې بندګی کول دی نو اے بنده ! اُوس به د الله تعالیٰ بندګی کوے۔

❁ دارنګه علامه قاسمیؒ لیکی چه پدے کښې دا مقصد هم بیانول دی چه کوم ذات باری تعالیٰ چه آسمانونه او زمکه او ددے ترمینځ تمام څیزونه پیدا کړیدی، هغه یقیناً پدے خبره باندے قادر دے چه د قیامت په ورځ انسانان دویم ځلی راژوندی کړی۔

الله تعالیٰ په سورة یٰسٓ آیت (۸۱) کښې فرمایلی دی : ﴿ اَوَلَيْسَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰۤى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ بَلٰى وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ﴾ یعنی کوم ذات چه آسمانونه او زمکه پیدا کړیدی، آیا هغه د دوی په شان په پیدا کولو باندے قادر نهٔ دے، بیشکه قادر دے، او هغه خو پیدا کونکے پوهه دے۔

❁ دارنګه مشرکانو ته دا هم خودل مقصود دی چه دوی الله تعالیٰ نشی عاجز کولے، که دوی د هغهٔ د اوامرو دغسے خلاف ورزی کوی، نو کیدے شی چه دوی هلاك کړی او د دوی نه بنهٔ خلق پیدا کړی چه هغه به د الله مطیع او فرمانبرداروی ځکه چه د قادرمطلق دپاره هیڅ خبره مشکله نهٔ ده۔ الله تعالیٰ په سورة النساء آیت (۱۳۳) کښې فرمایلی دی :

﴿ اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاْتِ بِاٰخَرِيْنَ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴾

یعنی (که د الله خوښه شی نو اے خلقو ! هغه به تاسو ټول فناء کړی او نور خلق به راولی، او الله تعالیٰ پدے باندے پوره قدرت لری)۔ (محاسن التاویل للقاسمی)

بِالْحَقِّ : حافظ ابن القیمؒ معنیٰ کوی : اَیْ لِلْحَقِّ اَیْ لِلْحِكْمَةِ وَهُوَ مَعْرِفَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى وَتَوْحِيْدِهٖ وَعِبَادَتِهٖ ۔ یعنی د حق دپاره یعنی د یو حکمة دپاره چه هغه د الله تعالیٰ پیژندګلی او د هغه توحید او د هغه بندګی کول دی۔

وَيَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ : یعنی نور مخلوق به پیدا کړی : [هُمْ اَطْوَعُ لِلّٰهِ مِنْكُمْ] چه هغوی به ستاسو په نسبت د الله تعالیٰ ډیر تابعدار وی۔

بِعَزِيْزٍ : یعنی ګران او ممتنع۔ دا دلیل دے چه الله تعالیٰ لائق دے چه د هغه نه د ثواب امید وکړے شی او د هغه د عذاب نه یره وکړے شی۔ پدے وجه ئے روستو ورپسے د آخرت احوال بیان کړل۔

وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ : پدے آیت کښې تخویف اُخروی دے، او برائت د اَتباعو او مَتبوعینو دے د یو بل نه۔ او بیان د عجز د هغوی دے د دفع کولو د عذاب نه۔

وَبَرَزُوْا : یعنی د قبرونو نه به خلك الله تعالیٰ ته د قیامت په ورځ رابښکاره شی۔

یعنی د قیامت په ورځ کله چه مجرمان د محشر په میدان کښې راجمع شي نو خپل مینځ کښې به بېې جګړې کوي، او یو بل نه به اعلان د براء ت کوي. په دنیا کښې چه کوم مجرمان کمزوري وو او د خپلو سردارانو او مالدارو پیروي کولو سره ئې د الله تعالیٰ د دین نه انکار کړے وو، دوی به هغه سردارانو ته وائي چه مونږ په دنیا کښې ستاسو خبره منلے وه نو آیا نن ورځ زمونږ د عذاب نه څه برخه آسانولے شئ؟ نو هغوی به وائي چه که الله تعالیٰ مونږ ته هدایت کړے وے نو مونږ به هم پدے لاره تللي وے.

مطلب دا چه هریو به د خپلے بې وسئ اظهار کوي او د اُور د عذاب مزه به اُوڅکي چه هغے نه د خلاصیدو هیڅ امید به ئې نۀ وي. (العیاذ بالله)

او دا جګړے به بیا په جهنم کښې هم کوي لکه د سورة غافر په آیت (٤٧) کښې ذکر دي.

الضُّعَفٰٓؤُا : ددے ضعیفانو او مستکبرینو په مصداق کښې درے قسمه خلك داخلیږي.

(١) ضعفاء : عوام الناس او (اسْتَكْبَرُوْا) د ملك او علاقے غلط مشران، لیډران دي. لکه ابوجهل او د هغوی کشران. (٢) شاګردان او علماء لکه یهود او د هغوی عوام. (٣) پیران او مریدان لکه نصاریٰ شو چه د نصاراو پاپانو د هغوی عوام په لاس کښې نیولی دي.

مُّغْنُوْنَ عَنَّا : یعنی تاسو خو به په دنیا کښې مونږ سره د جنت وعدے کولے اُوس خو صرف مونږ د عذاب نه بچ کړئ.

لَوْ هَدٰىنَا اللّٰهُ لَهَدَيْنٰكُمْ : یعنی که الله تعالیٰ مونږ ته ایمان طرفته هدایت کړے وے نو مونږ به تاسو ته هدایت کړے وے ایمان طرفته لیکن مونږ خپله ګمراه وو نو تاسو مو څان سره ګمراه کړئ. نو اُوس د الله تعالیٰ د عذاب نه د خلاصیدو هیڅ ځای نشته.

او پدے آیت کښې مونږ ته دا دعوت دے چه خپل داسے مشر ونیسه چه صبا له د هغه نه براء ت او بیزاري نۀ کوے او د هغه په تابعدارئ ځان نۀ ملامته کوے، رسول الله ﷺ پسے روان شه چه پدے تابعدارئ به همیشه خوشحاله ئې.

| وَقَالَ الشَّيْطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الْاَمْرُ اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمْ |
| --- |
| او وبه وائي شیطان هرکله چه فیصله اُوشي د کار یقیناً الله تعالیٰ وعده کړے وه تاسو سره |
| وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدْتُّكُمْ فَاَخْلَفْتُكُمْ وَمَا كَانَ لِيَ |
| وعده رښتیني او وعده کړے وه ما تاسو سره نو خلاف مے اُوکړو تاسو سره او نۀ وو زما |

| عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطَانٍ إِلَّا أَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ |
|---|
| په تاسو باندې زور (دليل) مګر دا چه دعوت مې درکړو تاسو ته نو خبره اُومنله تاسو |
| لِي فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوا أَنْفُسَكُمْ مَّا أَنَا |
| زما نو مهٔ ملامته کوئ ما لره او ملامته کړئ ځانونه خپل، نهٔ يم زهٔ |
| بِمُصْرِخِكُمْ وَمَا أَنْتُمْ بِمُصْرِخِيَّ إِنِّي كَفَرْتُ |
| فريادرسي (مددګار) ستاسو او نهٔ تاسو فريادرسي کولې شئ، زما يقيناً ما انکار اُوکړو |
| بِمَا أَشْرَكْتُمُونِ مِنْ قَبْلُ إِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ |
| د هغه څه نه چه شريك کولو تاسو ما لره (د الله سره) پخوا يقيناً ظالمان دوی لره عذاب |
| أَلِيمٌ ﴿٢٢﴾ وَأُدْخِلَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا |
| دردناك دې. او داخل به کړې شي هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدې او عملونه ئې کړيدي |
| الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا |
| نيك، جنتونو ته چه بهيږي به لاندې د هغې نه نهرونه همېشه به وی په هغې کښې |
| بِإِذْنِ رَبِّهِمْ تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ ﴿٢٣﴾ |
| په حکم د رب خپل، دالئ د دوی به په هغې کښې سلام وی. |

**تفسير** : هرکله چه کشران او مشران د يو بل سره بنهٔ بحث او جګړه وکړی نو بيا به وائي چه زمونږ د ټولو د ګمراه کولو سردار شيطان وو راځئ چه د هغهٔ خوا ته ورشو. نو هغه ته به وائي چه تا مونږ ولې ګمراه کړو؟ اُوس مونږ د الله تعالیٰ د عذاب نه خلاص کړه، تا به مونږ ته دا وعدې راکولې ؟

نو هغه به ئې نه، هم په خپلو کړو پښيمانه او ملامته کړی. چه الله تعالیٰ تاسو سره د خپلو انبياؤ (عليهم السلام) په ژبه وعده کړې وه چه که تاسو د هغه تابعداری وکړه او په هغه مو ايمان راوړو نو الله تعالیٰ به مو د عذاب نه بچ کړی او که نهٔ وی نو جهنم ته به داخليږئ. (يا ټولې وعدې د الله تعالیٰ مراد دی، د قيامت راوستل او د هغه په طاعت کښې د ټولو خيرونو وعدې).

نو تن ورځ هغه خپله وعده پوره کړه، او ما تاسو سره وعدے کړے وه چه د مرګ نه روستو دوباره راپورته کیدل او د جزا او سزا عقیده غلطه ده، او که بالفرض دا صحیح ومنلے شي نو ستاسو بتان به ستاسو دپاره سفارش کوي۔

او ما بغیر د دلیل او حجت نه تاسو ته د خپلے تابعدارئ دعوت درکړے وو نو تاسو قبول کړے وو او رسولانو په خپلو ځانونو او د خپل دعوت په رشتینوالی باندے دلائل پیش کړی وو، لیکن تاسو د هغوی خبره رد کړے وه، پدے وجه نن ورځ چه تاسو سره څه کیږی پدے باندے ما نهٔ بلکه خپل ځانونه ملامته کړئ، زهٔ تاسو ته نجات نشم درکولے، او نهٔ تاسو زما په کار راتلے شئ، نن ورځ زهٔ ددے خبرے نه قطعي انکار کوم چه په هیڅ حیثیت سره زهٔ د الله تعالیٰ شریك یم، او تاسو نه په هره طریقه د بیزارئ اعلان کوم۔ دے نه روستو الله تعالیٰ فرمائی چه ظالمانو ته به په دغه ورځ لوئی دردناك عذاب ورکولے شي۔

زمخشری لیکلی دی : د قیامت په ورځ به شیطان چه څه وائی، هغه وینا الله تعالیٰ ددے دپاره رانقل کړیده چه آوریدونکی د قیامت په ورځ د خپل انجام په باره کښ فکر وکړی او د اُوس نه د خپل نجات دپاره تیاری وکړی، کله چه به شیطان د خپلو تولو تابعدارو نه د بیزارئ اعلان کوی۔

لَمَّا قُضِيَ الْأَمْرُ : یعنی کله چه فیصله د کار وشی د خلکو چه دوی جهنم ته بوتخی نو په دغه وخت کښ به د شیطان سره مُکالَمه (خبرے اترے) وشی۔

سُلْطَان : دلیل ته هم وائی او زُور ته هم۔

فَلَا تَلُوْمُوْنِيْ : ما مهٔ ملامته کوئ بلکه ځانونه ملامته کړئ ځکه چه تاسو هغه خلك یئ چه خالص باطل مو قبول کړے وو چه د هغے بطلان په ادنیٰ عقل لرونکی باندے هم پټ نهٔ پاتی کیږی۔

بِمُصْرِخِكُمْ : أَيْ بِمُسْتَغِيْثِكُمْ۔ یعنی زهٔ ستاسو مددګار او فریادرست نهٔ یم۔

اِنِّيْ كَفَرْتُ : یعنی تاسو په ما ولے دهوکه کیدلئ زهٔ خو څه بنه شے نهٔ وم، زهٔ خو د مخکښ نه ورانکارے وم او تاسو ته زما حالات معلوم وو۔

١ - بِمَا : د مَا نه مراد الله تعالیٰ دے۔ اَشْرَكْتُمُوْنِيْ : أَيْ فِي الطَّاعَةِ۔

یعنی ما ستاسو نه مخکښ په هغه الله کفر کړیدے چه تاسو ورسره زهٔ په طاعت کښ شریك کړے یم، او زما خبره مو د الله په شان منلے ده۔ نو چه یو تن زور کافر وی د هغهٔ خبره خلك ولے ومنی، تاسو زهٔ ولے د الله سره شریك جوړولم؟۔

۲- د کفر نه مراد انکار دے او د مَا نه مراد طاعت او تابعداری ده. یعنی زهٔ انکار کوم د هغه طاعت او خبرے منلو نه چه تاسو پکښې زهٔ د الله سره شریك کړے یم په دنیا کښې.
یعنې تاسو زما تابعداری نهٔ ده کړے بلکه تاسو د خپلو خواهشاتو تابعداری کړیده. ستاسو طاعت نهٔ منم.
۳- کَفَرْتُ : ای تَبَّتُّ عَلَى الْكُفْرِ بِسَبَبِ اِشْرَاكِكُمْ .یعنې زهٔ په کفر باندے کلك شوم پدے وجه چه تاسو زهٔ د الله تعالیٰ سره شریك کړم په دنیا کښې.
یعنې ستاسو په وجه زهٔ په کفر کلك شوے یم، که تاسو زما تابعداری نهٔ کولے نو کیدے شی چه ما به توبه ویستلے وے لیکن ستاسو تابعداری زما دپاره په کفر باندے د کلکوالی سبب وګرځیدو. پدے کښې اول تفسیر ظاهر د قرآن دے.
إِنَّ الظَّالِمِيْنَ : یعنې ټولو ظالمانو له به دردناك عذاب وی، شیطان له په دعوت او د هغه تابعدارو له په اِجابت (یعنی خبره منلو) باندے، دواړه ظالمان دی.
وَاُدْخِلَ الَّذِيْنَ : د جهنمیانو په مقابله کښې د جنتیانو انجام بیانیږی.
تَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلَامٌ : ۱- یعنې هدیه د هغوی به په جنت کښې سلامونه وی یو بل ته، نهٔ ظاهری میوے وغیره.
۲- دعا د ژوند د هغوی به سلام وی، لکه د عربو به عادت وو چه یو بل باندے به ئے د ژوند دعا داسے کوله (اَنْعِمْ صَبَاحًا). (صبا دِے ښهٔ شه). (حَيَّاكَ اللهُ). (الله دِے ژوندے لره)
یا ملائك به د جنتیانو تعظیم کوی او هغوی ته به سلامونه کوی. الله تعالیٰ په سورة الزمر آیت (۷۳) کښې فرمایلی دی: ﴿وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَامٌ عَلَيْكُمْ﴾ چه د جنت خزانچیان ملائك به جنتیانو ته سلام کوی.
او په سورة الرعد آیتونو (۲۴/۲۳) کښې فرمایلی دی: ﴿وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُوْنَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ، سَلَامٌ عَلَيْكُمْ﴾ چه ملائك به د هرے دروازے نه ددوی خوا ته راتلو سره سلام کوی.

| أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ |
|---|
| آیا نهٔ ګورے ته چه څنګه بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال د کلمے پاکے په شان د ونے |
| طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ ﴿۲٤﴾ |
| پاکے (فائده منے) چه جرړے د هغے مضبوطے دی او څانګے ئے په بره طرف کښې دی. |

| |
|---|
| تُؤْتِيْ أُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ |
| ورکوی میوے خپلے هر وخت په حکم د رب خپل او بیانوی الله تعالیٰ مثالونه خلقو لره |
| لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٥﴾ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيْثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيْثَةٍ |
| دے دپاره چه دوی نصیحت واخلی۔ او مثال د کلمے پلیتے (ناپاکے) په شان د ونے پلیتے دے |
| نِاجْتُثَّتْ مِنْ فَوْقِ الْأَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ ﴿٢٦﴾ يُثَبِّتُ اللّٰهُ |
| چه راختلے وی دپاسه د زمکے نه، نۀ وی هغے لره مضبوطوالے۔ مضبوطوی الله تعالیٰ |
| الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ |
| ایمان والو لره په وینا مضبوطه په ژوند دنیوی کښې او په آخرت (قبر) کښې |
| وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظَّالِمِيْنَ وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَاءُ ﴿٢٧﴾ |
| او گمراه کوی الله تعالیٰ ظالمانو لره او کوی الله تعالیٰ څه چه اُوغواړی۔ |

**تفسير:** ١- پدے آیتونو کښې الله تعالیٰ د مثال په ذریعه د کفر او شرك او د حق او باطل ترمینځ فرق ښکاره کړیدے۔ ٢- یا دا مثال د مؤمن او مشرك دے، یا د ایمان او د شرك مثال دے۔ د اسلام کلمے «لا اله الا الله» تـه ئے کلمه طیّبه او د شرك کلمے ته ئے کلمه خبیثه وئیلے ده۔ خینی اهل علم وائی چه د کلمه طیّبه نه هره د خیر کلمه او د کلمه خبیثه نه هره د شر کلمه مراد ده۔ لکه تسبیح، تحمید، استغفار، توبه، دعوت۔ (زمخشری) (فتح البیان)

## د مثال تطبیقونه

(١) د کلمے طیبے مثال د هرے شنے تازه ښائسته ونے دے چه د هغے نه مزیداره خوشبوئی راپورته کیږی چه د هغے میوے ډیرے خوندورے او مفیدے وی، او چه د هغے جرړے په زمکه کښې دومره ژورے وی چه د هغے د بیخ نه د راوتلو هیڅ خطره نۀ وی۔

داسے ونے تـه په کتلو سره د هغے مالك ته ډیره خوشحالی حاصلیږی، او د هغے څانگے د آسمان سره خبرے کوی۔ گویا که هغه په هره طریقه یو مکمل او فائده منه ونه وی، د هغے میوه غوره او مفیده وی، او په هر موسم کښې تیاره وی، کله هم نۀ ختمیږی۔ نو دغه شان د مؤمن ایمان دے۔

## فوائد د مثال او تطبیق :

(۱) د کلمې طیبې مثال ئې د ونې سره ولې ورکړو؟ (۱) نو وجه دا ده چه ونه یو اُوبو ته حاجت لرې که هغې ته اُوبه نهٔ اچولې کیږی هغه وچیږی، نو دغه شان د مؤمن ایمان هر وخت علم نافع او وعظ او نصیحت ته ضرورت لری، که د وحې دا اُوبه ورته وخت په وخت وانچوی نو ایمان ئې خرابیږی.

(۲)- دویم د ونې دپاره دا ضروری ده چه د هغې نه به خواؤ شا فضول گیاه گانې لرې کوې، دې دپاره چه ونه ترقی وکړی او طاقت ئې خراب نکړی نو دغه شان د ایمان نه به گناهونه، خرافات او بدعات لرې کوی، ورنه ایمان به ئې ترقی نکوی، بلکه خرابیږی به.

(۳) هره ونه چه کمال ته رسیږی نو د هغې دپاره یو څو خبرې ضروری دی :

۱- عِرْقٌ رَاسِخٌ. جرړه به ئې مضبوطه وی. ۲- اَصْلٌ ثَابِتٌ. (تنه به لری).

۳- وَفُرُوعٌ نَابِتَةٌ عَالِيَةٌ. اُوچتې څانګې به لری. که څانګې نهٔ لری نو هغه هسې لرګې دې ونه ورته نهٔ وئیل کیږی. بیا پدې څانګو کښې به څه ورې وی څه غټې.

٤- ثِمَارٌ نَضِجَةٌ. میوې به وی پخې، تازه تازه. ٥- بعض ونو کښې خوشبوئی هم وی.

نو دغه شان په ایمان کښې هم دغه پنځه څیزونه ضروری دی هله به کمال ته رسیږی، نو جرړه د ایمان یقین جوړول دی، یعنی د الله او د رسول په خبرو به یقین وی، د چا چه یقین کمزورې وی د هغه د ایمان جرړه به کمزوری وی. او اصل ثابت (تنه) په ژبه اقرار او اخلاص دې، څوك چه اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا الله ووائی نو دهٔ د ونې تنه ودروله. او فروع عالیه اعمال صالحه دی، چه دا بعض واړه وی او بعض غټ، مستحبات د وړو څانګو په شان دی او فرائض د غټو څانګو په شان دی. په وړو څانګو وهلو سره ونه نهٔ خرابیږی لیکن بې رونقه کیږی ضرور. او غټې څانګې وهلو سره خلك وائی چه "ونه ئې ختمه کړه".

نو پدې وجه رسول الله ﷺ فرمائی : چا چه په قصد سره مونځ پریخودو نو دهٔ کفر وکړو. ځکه چه په عرف او محاوره کښې دغه شان حکم کیږی.

بیا ددې حدیث دا مطلب نه دې چه تارك الصلاة یقینی کافر دې بلکه دا په محاوره بناء دې لکه خلك وائی چه ((د ونې نه ئې غټه څانګه وهلې ده دا خو ئې توله ختمه کړیده)).

نو ددې وجه نه راجح قول دا دې چه څوك همیشه دپاره مونځ پریدی نو بیا به یقینی کافر کیږی او که کله کله ئې پریدی نو کافر نهٔ دې). او دغه شان د ونې نه چه تولې څانګې

وو هلے شي نو بیا ورته ونه نهٔ بلکه هسے لرګے واني۔
نـو ددے وجـه نـه د محققینو علماؤ په نیز د ټولو اعمالو پریخودونکے کافر دے، او تارك د بعض اعمالو کافر نهٔ دے۔ او پدے خبرو باندے د مرجئه او خوارجو او معتزلو ذهن نهٔ وو کولاؤ شوے پدے وجه به ئے د ایمان په مسئلو کښې ګډے وډے ونیلے، چا به په ایمان کښې اعمالو لره اعتبار نهٔ ورکولو او چا به په ګناه باندے خلك كافر كول)۔
او میوے په ایمان کښې اخلاق حمیده دي، یعنی ښائسته اخلاق چه دا د نیك اعمالو نه راپیدا کیږي لکه په مانځه، روژه وغیره سره په بنده کښې تواضع، صبر، انابت الله ته، د مخلوق سره احسان او همدردي کول پیدا کیږي۔ چا کښې چه اخلاق نهٔ وي نو شنډه ونه ده، چه خلك ترے فائده نشي اخستے۔
(۲) سیدنا ابن عباس ﷺ فرمائي : کلمه طیبه د (لا اله الا الله) ګواهي ورکول دي، او شجره طیبه مؤمن دے او ددے اصل ثابت (مضبوط بیخ) د لا اله الا الله وینا ده چه دا مضبوطه ده په زړه کښې، او ددے څانګے پورته دي یعنی ددے په وجه د مؤمن اعمال آسمان طرفته پورته کیږي۔ (فتح البیان)

## (۳) تطبیق

(۳) یا تطبیق داسے دے : لکه چه د کجورے ونه ډیرو فائدو والا ده او بیخ د هغے مضبوط دے او څانګے د هغے د زمکے نه اوچتے دي او میوے د هغے هر وخت کښې موجودي وي په مختلفو قسمونو سره، نو دغسے د موحد عقیده ده چه بیخ د هغه د عقیدے کلك دے، په شکونو او شبهاتو سره نهٔ زائله کیږي او دا عقیده په زړه کښې ده او هغه عملونه چه ددے عقیدے نه پیدا کیږي آسمان ته پورته خیژي دپاره د قبولیت، او فائدے او برکات ددے عقیدے په هر وخت کښې ملاویږي هم په دنیا کښې او هم په قبر او هم په آخرت کښې۔ (احسن الکلام)
كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ : په حدیث د بخاري او مسلم کښې دي چه ددے ونے نه مراد د کجورے ونه ده چه پدے کښې دا کمالات شته چه جرړه ئے مضبوطه وي او څانګے ئے پورته وي۔ (بخاري فی العلم باب ٤، ٥، ٥٠) ومسلم فی المنافقین حدیث: ٦١، ٦٢، ٦٤)
تُؤْتِيٓ اُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍ : د کجورے ونے په میوه کښې د دریے سوو نه زیات قسمونه دي چه په هریو کښې جدا جدا فائده شته، نو دغه شان د مؤمن د بدن نه هم د ایمان په وجه

قسماقسم عملونه راوځي چه د هر يو جدا جدا اثر وي.

کجورے په ټول کال کښې په هر وخت کښې ملاويږي نو دغه شان د مؤمن د بدن نه هم هر وخت نيك عملونه د شپے او د ورځے راوځي، برابره ده چه په سفر کښې وي او که په حضر کښې، خانله وي که د خلکو ترمينځ وي. ددے وجه نه د مؤمن بدن هيڅکله بې عمله نهٔ وي، ددهٔ ناسته، ودريدل، ګرځيدل، خوب او بيداري هر حالت ئے د عمل دے. (پدے کښې مؤمن ته دعوت دے چه ځان داسے جوړ کړه).

بِإِذْنِ رَبِّهَا: پدے کښې اشاره ده چه لکه کجوره خپله ميوه نهٔ ورکوي بلکه د الله په اراده سره نو دغه شان د مؤمن د بدن نه چه نيك عمل راوځي نو دا هم د الله تعالىٰ په اراده سره، نو که هغه ذات توفيق درنکړي ته عمل نشے کولے نو فخر مهٔ کوه.

وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ: ددے نه مراد کلمه د کفر او شرك ده چه د کافر په خوله کښې وي.

اجْتُثَّتْ: أَيْ اُسْتُؤْصِلَتْ، وَاقْتُلِعَتْ مِنْ أَصْلِهَا - چه د بيخ نه راويستلے شوي وي. دلته ئے معنیٰ دا ده چه د زمکے په سر باندے راختلے وي، يعنی جرړه ئے نهٔ وي او تنه ئے هم نهٔ وي.

كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ: ددے نه د مرغونی ونه مراد ده چه ((اندرائن))، ((ترخه هندوانه))، ((تمه)) ورته هم وائي.

مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ: چه هغے له څه قرارے او مضبوطوالے نهٔ وي بلکه په ګوتے سره هم د بيخ نه راخيژي.

## تطبيق د مثال

لکه څنګه چه د مرغونی ونه د زمکے په سر باندے راختلی وي چه څه پخه جرړه نهٔ لري، او په زمکه باندے نشي ايساريدے داسے ښکاره کيږي لکه چه د زمکے د بيخ نه راويستلے شوي وي، او د هغے ميوه هم ډيره ترخه وي چه په خوراك سره خيټه خرابوي او په انسان باندے دستونه لګوي، نو دغه شان کافر او د هغه کفري کلمه ده چه د هغه سره هيڅ دليل نشته، او نهٔ د هغے څه مضبوطوالے شته بلکه د قيامت په ورځ به هغه زائله شي او د بيخ نه به راويستلے شي او په کافر کښې هيڅ خير نهٔ وي، نهٔ ددهٔ کوم مزيداره وينا وي، او نهٔ نيك عمل وي چه پورته وخيژي. نو لکه څنګه چه دغه ونه کښې فائدے او خير نشته نو دغه شان کافر کښې هم فائده او خير نشته.

او (مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ) کښې اشاره ده چه د کافر کفر دومره قوي نهٔ وي بلکه په معمولي دليل

سره هم هغه د کفر او شرك نه راړولے شي، ددے وجه نه مشرك او کافر کله یو طرفته اوړي او کله بل طرفته، کله ئے په یو بابا عقیده جوړه شي، او کله په بل، کله په مال او دولت اوړي. او مؤمن څوك په شبهاتو او مال او دولت باندے د ایمان نه نشي اړولے. او اشاره ده چه شرك توله بې چیني او پریشاني ده او ایمان سراسر سکون او اطمینان دے.

(۲) تطبیق :

ابن عباس رضي الله عنه فرمائي : کلمه خبیثه شرك دے او خبیثه ونه کافر دے یعني د شرك هیڅ بنیاد او جرړه نهٔ وي چه کافر هغه راونیسي او ځان پرے بچ کړي، او نهٔ ورسره څه دلیل وي، پدے وجه الله تعالیٰ د شرك سره هیڅ عمل نهٔ قبلوي. (فتح البیان)

یُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِیْنَ : د ایمان د فوائدو نه دا ده چه الله تعالیٰ بنده ته تثبّت (کلك والے) ورکوي.

بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ : ددے درے مطلبونه دي (۱) ددے نه مراد همدغه کلمه طیبه «لا اله الا الله محمد رسول الله» ده. اَیْ یُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِیْنَ آمَنُوْا عِنْدَ الشَّدَائِدِ بِکَلِمَةِ التَّوْحِیْدِ. الله تعالیٰ مضبوطوي ایمان والا په سبب د کلمه د توحید سره په وخت د شدائدو او تکلیفونو کښې. نو توحید داسے مزیدار شے دے چه په وخت د مصیبتونو کښې د انسان پکار راځي.

(۲) بِالْقَوْلِ کښې باء په معنیٰ د علیٰ سره ده. اَیْ عَلَی الْقَوْلِ الثَّابِتِ. الله تعالیٰ ایمان والا مضبوطوي په دغه کلمه د حق او دین اسلام باندے. یعني چه د چا په زړهٔ کښې ایمان ننوزي نو د ازمینښتونو په وخت کښې به هم الله تعالیٰ هغهٔ لره ددے توحید او صحیح عقیدے نه نهٔ اړوي، بلکه په همدے کلمه باندے مضبوط ولاړ وي. او د قیامت په ورځ هم کله چه د هغهٔ نه د هغهٔ د دین او عقیدے په باره کښې تپوس کیږي نو د محشر د میدان نه متأثر کیدو سره به د هغه ژبه نهٔ خطاء کیږي.

لکه بخاريؒ او مسلمؒ او اهل سنن د براء بن عازب رضي الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : «مسلمان نه چه کله په قبر کښې تپوس کیږي نو هغه گواهي ورکوي چه د الله تعالیٰ نه سویٰ هیڅوك حقدار د عبادت نشته او محمد (صلی الله علیه وسلم) د الله رسول دے.

دا خبره الله تعالیٰ پدے آیت کښې داسے وئیلے ده : ﴿یُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِیْنَ آمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا وَفِی الْآخِرَةِ﴾. نو ددے حدیث نه ثابته شوه چه د آخرت نه مراد قبر دے.

(بخاري : ۱۳٦۹ مسلم : ۷۳۹۸)

(۳) اَلْقَوْلِ الثَّابِت : قرآن ته وائي، یعني الله تعالیٰ ایمان والا د قرآن کریم په ذریعه سره په دنیا کښې هم مضبوطوي او ایمان ته ئې وخت په وخت ترقي ملاویږي، او په آخرت کښې هم چه اوله مرحله د آخرت قبر دے چه په قبر کښې به هم مؤمن صحیح سوال اوجواب ورکوي. او بیا به ئې روستو په آخرت کښې هم د حساب په وخت مضبوطوي چه په غیر د رب ریې نه به د شهادت کلمه په خپله ژبه باندے راوړي، او مضبوطه خبره به کوي، د توحید او سنت ګواهي به ورکوي.

وَيُضِلُّ اللهُ الظّٰلِمِيْنَ : یعني چا چه په کفر او شرك کولو سره په خپل ځان باندے ظلم کړے وي، کلمه د شهادت به د هغه په ژبه باندے نۀ په قبر کښې راځي او نۀ به د قیامت په ورځ د حساب په وخت، بلکه الله به ئې خطاء کوي، په قبر کښې به وائي : (هاه هاه لاَ اَدْرِیْ) (ابوداود:۴۷۵۵) زۀ په هیڅ نۀ پوهیږم.

بعض مفسرینو د ﴿ وَيُضِلُّ اللهُ الظّٰلِمِيْنَ ﴾ په ضمن کښې لیکلي دي چه هر شخص چه د دلائلو او براهینو باوجود د حق نه اعراض کوي، هغه به د ازمیښتونو په وخت په حق دین باندے ثابت قدم نۀ پاتے کیږي. (فتح البیان)

وَيَفْعَلُ اللهُ مَا يَشَآءُ : یعني الله چه څه غواړي هغه کوي، چا ته په حق باندے د ثابت قدمۍ توفیق ورکوي نو چا لره ددے نعمت نه محروموي. د هغه په اراده او مشیت کښې د هیچا هیڅ دخل نشته.

| |
|---|
| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللهِ كُفْرًا |
| آیا تۀ نۀ ګورے هغه کسانو ته چه بدل کړے ئې دے نعمت د الله تعالیٰ په ناشکرئ سره |
| وَّاَحَلُّوْا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ﴿۲۸﴾ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ |
| او نازل ئې کړو قوم خپل کور د هلاکت ته. چه جهنم دے داخلیږي به هغے ته او بد دے |
| الْقَرَارُ ﴿۲۹﴾ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا لِّيُضِلُّوْا |
| ځائے د اوسیدو. او ګرځولي دي دوی الله لره شریکان دے دپاره چه ګمراه کړي (خلق) |
| عَنْ سَبِيْلِهٖ قُلْ تَمَتَّعُوْا فَاِنَّ مَصِيْرَكُمْ اِلَى النَّارِ ﴿۳۰﴾ قُلْ |
| د لارے د الله نه اُووایه مزے واخلئ (لږے) یقیناً ورګرځیدل ستاسو اُور ته دي. اُووایه |

| لِعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا يُقِيمُوا الصَّلَاةَ |
|---|
| بندګانو زما ته هغه کسان چه ایمان ئې راوړیدے چه پابندي دې کوي د مانځه |
| وَيُنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً مِّن قَبْلِ أَن |
| او خرچ کوي دې د هغې مال نه چه ورکړیدے مونږ دوی ته په پټه او ښکاره مخکې ددے نه |
| يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ ﴿٣١﴾ |
| چه رابه شي يوه ورځ چه نۀ به وي هیڅ اخستل خرخول په هغې کښې او نۀ دوستانه. |

**تفسیر** : پدے رکوع کښې الله تعالیٰ دنیاوي او دیني نعمتونه ذکر کوي، او بیا د هغې د شکر او کفر بیان کوي. لوی نعمت اسلام او محمد رسول الله ﷺ دے، او دا آیتونه په اول کښې د قریشو په شان کښې نازل وو لکه د عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه نقل دي چه ددے نعمتونو بدلونکو نه مراد قریش دي. اول دوی مراد دي بیا هر هغه څوك پکښې داخل دے چه دغه شان مرض پکښې راشي.

أَلَمْ تَرَ : پدے کښې رسول الله ﷺ ته خطاب کوي او د مکے د کافرانو په حالت باندے تعجب ښکاره کول دي چه الله تعالیٰ د دوی په بد حالت باندے رحم وکړو او دوی ته ئې محمد ﷺ نبي راولیږلو نو په دے نعمت باندے دوی له د الله تعالیٰ شکر ادا کول پکار وو، لیکن دوی ناشکري وکړه او د هغهٔ د رسالت او دین اسلام نه ئې انکار وکړو، او د قریشو سرداران خو هلاك شو، او ټول قوم ئې هم خان سره هلاك کړو. همیشه ئې د عوامو په نظر کښې کفر او شرك ښائسته ښکاره کولو سره پیش کړو او هغوی ئې اسلام قبلولو ته پرے نخودل، او پدے طریقه ئې جهنم ته ورسول چه د هغې نه لوی بل د هلاکت ځای کوم کیدے شي.

نِعْمَةَ اللهِ : اول مصداق ددے نعمت محمد رسول الله ﷺ دے او دغه شان دین اسلام. بیا پدے کښې عموم کیدے شي چه یو تن ته الله تعالیٰ مشري او بادشاهي او طاقت ورکړی نو هغه راولګي په ملك او عوامو کښې کفر او شرك او بې دیني عامه کړي، نو خپل خان هم د هلاکت کندے ته ګوزار کړي او نور خلك هم. او پدے کښې د کور مشر هم داخل دے چه کور ته ټي وي، وي سي آر، کیبل او نور د فساد څیزونه رانناباسي، خان هم هلاك کړي او کور والا هم. بچو ته د مانځه حکم نکوي، دین ورته نۀ ښائي، صرف دنیا ترے غواړي.

هر قسم نعمت چه چا ته ورکړے شي او هغه ناشکري وکړي نو دا آیت ورته شامل دے۔ یو مُلا ته چه الله تعالیٰ د علم نعمت ورکړو او هغه خپل قوم ته د شرك دعوت ورکوي نو دهٔ هم ددے نعمت ناشکري وکړه۔

وَجَعَلُوا : دا تشریح ده د (بَدَّلُوا)۔ یعني دغه نعمت ئے پدے طریقه بدل کړو چه د الله سره ئے برخه داران جوړ کړل۔

قُلْ تَمَتَّعُوا: پدے کښې کافرانو ته دهمکي ده چه د دنیا د خوندونو نه ښے مزے واخلئ، او خلك گمراه کوئ، لیکن پو هه شئ چه ستاسو ځاي به جهنم وي۔

قُلْ لِعِبَادِيَ الَّذِيْنَ : د ناشکرې کونکو په مقابله کښې مؤمنانو ته زیرے او تعلیم ذکر کوي۔ چه تاسو مونځونه قائم کړئ او الله چه کومه روزي درکړے د هغے نه په پټه او په ښکاره د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کړئ یعني زکاة ادا کړئ، په خپلوانو رشته دارو خرچ کړئ او د نورو هم مدد وکړئ، د هغه ورځے د راتلو نه مخکښې چه هلته به د هیڅا د طرف نه هیڅ فدیه نهٔ قبلیږي چه عوض ورکړي او د الله د عذاب نه خلاص شي، او نهٔ به کومه دوستانه په کار راځي چه یو دوست د خپل دوست دپاره د الله په دربار کښې سفارش وکړي او هغه د عذاب نه خلاص کړي۔ او دغه کارونه کول د الله تعالیٰ شکر گزاري ده۔

امام شوکانیؒ لیکلي دي چه الله تعالیٰ په دنیاوي ژوند کښې د خیر په لاره کښې د خرچ کولو حکم کړیدے کله چه یو انسان په خرچ کولو باندے قادر وي۔ مخکښې د هغه ورځے د قیامت نه چه بیا به هغه پدے قادر نهٔ وي بلکه هلته به هیڅ مال نهٔ وي۔ او د آیت په آخري حصه: ﴿ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خِلٰلٌ ﴾ کښې د تیر شوي حکم تاکید دے۔

(فتح القدیر)

صاحب د «فتح البیان» لیکلي دي چه پدے آیت کښې د قیامت په ورځ د دوستۍ نفي شویده، او په سورة الزخرف آیت (٦٧) ﴿ اَلْاَخِلَّآءُ يَوْمَئِذٍۭ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ اِلَّا الْمُتَّقِيْنَ ﴾ کښې په هغه ورځ دوستي ثابته شویده۔ نو ددے جواب دا دے چه پدے آیت کښې د الله دپاره دوستي ثابته شویده، یعني صرف د متقیانو دپاره ثابته شویده او نورو نه ددے نفي شویده۔ یعني د کافرانو به د یو بل سره مینه او دوستي نهٔ وي او د متقیانو به یو بل سره مینه وي۔

بعض خلکو ونیلي دي چه د قیامت په ورځ به مختلف حالات وي۔ په بعض حالاتو کښې هر دوست به د خپل دوست د پیژندلو نه انکار کوي، او په بعض حالاتو کښې به

مؤمنان صالحین د خپل ځان په شان مؤمنانو صالحینو دوستانو سره د همدردئ اظهار کوی۔ (فتح البیان ۵٤۸/۳)

| |
|---|
| اللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ |
| الله هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه او نازل کړی ئے دی د آسمان نه |
| مَاءً فَأَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ وَسَخَّرَ لَكُمُ |
| اُوبه نو راوستلے ئے دی په هغے سره میوے دپاره د خوراك ستاسو او تابع کړے ئے دی تاسو لره |
| الْفُلْكَ لِتَجْرِیَ فِی الْبَحْرِ بِأَمْرِهٖ وَسَخَّرَ لَكُمُ |
| کشتئ دے دپاره چه روانے وی په دریاب کښ په حکم د الله او تابع کړی ئے دی تاسو لره |
| الْأَنْهَارَ ﴿۳۲﴾ وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآئِبَیْنِ |
| نهرونه۔ (په خپل حکم سره) او تابع کړی ئے دی تاسو لره نمر او سپوږمئ همیشه روان |
| وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّیْلَ وَالنَّهَارَ ﴿۳۳﴾ وَآتَاكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا |
| او تابع کړے ئے ده تاسو لره شپه او ورځ۔ او درکړی ئے دی تاسو ته د هر هغه څیز نه |
| سَأَلْتُمُوْهُ وَإِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ |
| چه تاسو ورته حاجت لرئ، او که شمار شروع کړئ تاسو د نعمتونو د الله تعالیٰ |
| لَا تُحْصُوْهَا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ ﴿۳٤﴾ |
| نو نۀ شئ راګیرولے هغه په شمار کښ، یقیناً انسان خامخا ظالم ناشکره دے۔ |

**تفسیر:** په دے ذکر شوو درے آیتونو کښ الله تعالیٰ د مخلوق دپاره خپل بعض نعمتونه ذکر کړیدی، چه د هغهٔ په وحدانیت او د هغهٔ په علم او قدرت باندے دلیل دے۔ آسمانونه او زمکه ئے بغیر د مخکنئ نمونے لیدلو نه پیدا کړی، او پدے کښ ئے ډیر څیزونه پیدا کړی۔ آسمان ئے د مخلوقاتو دپاره د اطمینان والا چت جوړ کړے او زمکه ئے د دوی دپاره خوره کړیده دے دپاره چه د آسمان نه لاندے په سکون او اطمینان سره په زمکه باندے ژوند تیر کړی۔ او ددے دواړو ترمینځ ئے داسے مخلوق پیدا کړے چه د انسانانو دپاره د قسما قسم فوائدو او منافعو سبب دے۔ دا ټول پدے خبره دلیل دے چه الله تعالیٰ خالق او

مالك دے، او په هره خبره قادر دے۔ آسمان نه ئے باران نازل کړے چه د هغے په ذریعه ئے قِسم قسم میوے او غلے پیدا کړی چه د انسانانو دپاره د رزق کار ورکوی۔

او کشتیانے ئے داسے تابع کړی چه هغه د هغوی د خوښے مطابق د الله په حکم سره د اُوبو په سر بانده چلیږی او دوی او د دوی د تجارت سامان د یو ښار نه بل ښار ته منتقل کوی، او نهرونه ئے روان کړی چه زمکه خیرلو سره د یوے علاقے نه بلے علاقے ته رسیږی، چه د هغے اُوبه خلك خپله څکی، څاروی خروبه کوی، او د هغے نه خپلے زمکے سیرابه وی. دا نهرونه د الله تعالیٰ لوی نعمتونه دی۔

او نمر او سپوږمیٔ ئے په کار اچولی دی چه د هغے د رڼا نه انسانان فائده اخلی، او ددے دواړو په رڼا او د دوی په رفتار او د یو بل نه په روستو تلو راتلو کښ عظیم فوائد دی چه د هغے احاطه صرف الله تعالیٰ کولے شی۔ ددے نه په زمکه باندے راختونکی تمام بوټی او پدے باندے وسیدونکی تمام حیوانات فائده اخلی، تیارهٔ لرے کیږی۔ د نمر په ذریعه د کال مختلف موسمونه معلومیږی، او د سپوږمیٔ په مزل سره د میاشتو ابتداء او انتهاء معلومیږی۔ ددے دواړو دا معلوم رفتار تر قیامته پورے باقی پاتے کیږی، په هیڅ حال کښ نهٔ منقطع کیږی او شپه او ورځ ئے په کار لګولی دی، شپه ئے د آرام دپاره او ورځ ئے د روزی حاصلولو په لاره کښ د کوشش دپاره ګرځولے ده۔

په سورة القصص آیت (۷۳) کښ فرمائی: ﴿ وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ ﴾ چه (هغهٔ په خپل پوره رحمت سره شپه او ورځ مقرر کړی دے دپاره چه پدے کښ آرام وکړیٔ او د الله فضل (روزی) تلاش کړیٔ)۔

او د بندګانو چه هر ضرورت راشی، هغه الله تعالیٰ دوی ته ورکړے، ګویا که دوی په زبانِ حال سره دا څیزونه د خپل ځان دپاره د الله نه غوختلی دی۔

وَسَخَّرَ لَكُمُ الْاَنْهٰرَ: یعنی تاسو له ئے نهرونه تابع کړیدی چه تاسو په هغے سورلی هم کویٔ، او هغه د خپلے ارادے مطابق روانه ویٔ او دا د الله تعالیٰ لوی نعمت دے۔

دَآئِبَيْنِ: دَؤُوْب یو کار همیشه کولو او جاری ساتلو ته وائی۔ اَیْ مُسْتَمِرَّیْنِ عَلٰی عَادَتِهِمَا۔ یعنی همیشه روان په خپل عادت باندے، هر سهار نمر راخیژی او ماښام پریوزی، هیڅکله ئے ددے عادت خلاف ونکړو، ځکه چه بیا پدے سره نظام خرابیږی۔

مَا سَاَلْتُمُوْهُ: دا اجتمال بعد التفصیل دے۔ سؤال په دوه قسمه دے، په ژبه او بل په حال سره، دلته سوال په حال سره مراد دے۔ اَیْ مِنْ کُلِّ مَا اَحْتَجْتُمُوْهُ ۔ یعنی درکړی ئے دی تاسو

ته هر هغه شے چه تاسو ورته ضرورت لرئ او ستاسو بدن ئے غواړی اګرکه بنده به د الله تعالیٰ نه په ژبه نهٔ وی غوښتی لکه انسان کتو ته، آوریدو ته، بوئی کولو، څکلو، سوچ کولو ته، خیال کولو ته محتاج دے ددے طاقتونه ورله الله تعالیٰ ورکړیدی۔ بلکه داسے شے نشته چه انسان ورته د ژوندګئ په تیرولو کښې ضرورت لری او الله ورله په بدن کښې نهٔ وی اچولے۔ برابره ده که هغه پنځه حواس ظاهریه دی او که پنځه حواس باطنیه دی۔

لَا تُحْصُوْهَا: إحصاء دے ته وائی چه په شمارلو کښې ئے راګیر کړی، یعنی په کیلکولیټر باندے د هغے حاصل راوباسی۔

إِنَّ الْإِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ : یعنی که څوک ددے دلائلو او نعمتونو نه روستو هم د ایمان او د یقین او د الله تعالیٰ د هدایت نه محرومه شی نو هغه به د الله تعالیٰ لوی ناشکره او لوی ظالم وی۔ ظلوم او کفار اول کښې صفتونه د کافر دی بیا پکښې ګناهګار مسلمان هم داخلیږی، او دلیل پرے د عمر بن الخطاب رضی الله عنه واقعه ده چه هغه یو ځل داسے دعا وکړه: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِیْ ظُلْمِیْ وَ كُفْرِیْ۔ (اے الله ما ته زما ظلم او کفر معاف کړه) نو چا ورته ووئیل چه ظلم خو راتلے شی نو تا کښې کفر څنګه راشی (ته خو اُوچت مؤمن ئے)؟ هغه وفرمایل: الله فرمائیلی دی: (إِنَّ الْإِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ) (انسان لوی ظالم او کافر دے) نو پدے آیت کښې الله تعالیٰ د انسان تعریف بیان کړیدے چه دا ظلوم او کفار دے، او دغه شان فرمائی: ﴿ خُلِقَ الْإِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ﴾ ﴿إِنَّهُ كَانَ ظَلُوْمًا جَهُوْلًا﴾ ﴿ إِنَّ الْإِنْسَانَ لِرَبِّهٖ لَكَنُوْدٌ﴾ ﴿ إِنَّ الْإِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا ) الآية۔ یعنی انسان بی صبره او حرص کونکے بخیل دے۔ ﴿ إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ﴾ د بدئ امر هم کوی۔ انسان کښې دا بد صفات راتللے شی لیکن دا بد صفات به د انسان نه په ریاضت او خوارئ او کوشش باندے وځی نو اصحابو د رسول الله ﷺ دا صفات د ځان نه ویستلی، بیا په عامو مؤمنانو کښې چا کښې لږ وی او چا کښې ډیر۔

## د شکر په باره کښې د سلفو صالحینو اقوال

۱- سلیمان التیمیؒ وائی: الله تعالیٰ په بندګانو باندے په خپله اندازه انعامات کړیدی او د هغوی نه ئے شکر د هغوی د اندازے او وس مطابق غوښتے دے۔

۲- بکر بن عبد الله المزنیؒ وائی: [يَا ابْنَ آدَمَ! إِنْ أَرَدْتَ أَنْ تَعْلَمَ قَدْرَ مَا أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْكَ فَغَمِّضْ عَيْنَيْكَ]۔ اے د آدم ځویه! که ته غواړے چه د الله تعالیٰ د هغه نعمت اندازه معلومه کړے چه په تا باندے ئے کړیدے نو خپلے دواړه سترګے پټے کړه۔

۳- ابوالدرداء ﷺ فرمائی: چا چه د الله تعالیٰ نعمت صرف په خوراك او څکاك کښې ویپېژندو نو یقیناً چه ددهٔ علم کم دے او عذاب ورته رانزدے دے۔

٤- ابو ایوب القرشیؒ وائی: داود ﷺ وفرمایل: اے ربه! ما ته خبر راکړه چه ستا په ما باندے ادنیٰ نعمت کوم یو دے؟ نو الله تعالیٰ ورته وحی وکړه چه اے داووده! ساه واخله، نو هغه ساه واخسته، الله وفرمایل: دا زما ادنیٰ نعمت دے په تا باندے۔ (فتح البیان)

## ظلوم او کفار کښې فرقونه

۱- ظَلُوْمٌ بِنَفْسِهٖ كَفَّارٌ لِنِعْمَةِ رَبِّهٖ۔ د خپل ځان سره ظلم کونکے دے په ګناه سره، او د خپل رب د نعمتونو ناشکره دے۔

۲- ظَلُوْمٌ بِشُكْرِ الْغَيْرِ، كَفَّارٌ: شَدِيْدُ الْكُفْرَانِ وَجَحُوْدٌ لِنِعَمِ اللّٰهِ عَلَيْهِ۔ ظالم دے پدے طریقه چه احسان ورسره الله تعالیٰ کړے وی او هغه شکر د بل چا کوی، یعنی بل څوك زیات یادوی چه فلانی راسره دا نعمت وکړو۔ او کفار دے یعنی سخت ناشکری کونکے دے، او د الله تعالیٰ د نعمتونو نه انکار کونکے دے۔ حال دا چه الله تعالیٰ ورته بیشماره نعمتونه ورکړی وی چه ددهٔ مخے ته مخے ته کیږی او دے پرے سترګے پټوی۔

۳- ظَلُوْمٌ بِاِغْفَالِ الشُّكْرِ۔ ظالم دے په شکر نهٔ کولو۔ كَفَّارٌ: شَدِيْدُ الْكُفْرَانِ۔ سخت ناشکری کونکے دے۔

| وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ آمِنًا وَاجْنُبْنِي |
|---|
| او کله چه اُووئیل ابراهیم (ﷺ) اے ربه زما! وګرځوه دا ښار امن والا او جدا کړه ما |
| وَبَنِيَّ أَنْ نَّعْبُدَ الْأَصْنَامَ ﴿۳۵﴾ رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ |
| او خامن زما ددے نه چه بندګی وکړو د بتانو۔ اے ربه زما! یقیناً دوی ګمراه کړیدی ډیر د |
| النَّاسِ فَمَنْ تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي وَمَنْ عَصَانِي |
| خلقو نه نو چا چه تابعداری وکړه زما نو یقیناً هغه زما نه دے او چا چه نافرمانی وکړه زما |
| فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۳۶﴾ رَبَّنَا إِنِّي أَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِي |
| نو یقیناً تهٔ بخونکے رحم کونکے ئے۔ اے ربه زمونږ! یقیناً ما ووسه ول بعض اولاد خپل |

بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ رَبَّنَا

په داسې کنده کښې چه نۀ ده فصل والا، خو اته د کور ستا چه عزتمند دے، اے ربه زمونږ!

لِيُقِيمُوا الصَّلَاةَ فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِنَ النَّاسِ تَهْوِي إِلَيْهِمْ

دے دپاره چه پابندی وکړی د مانځه نو اوګرځوه زړونه د خلقو چه مائله کیږی دوی ته

وَارْزُقْهُمْ مِنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ ﴿٣٧﴾

او روزی ورکړه دوی ته د قسماقسم غلو نه دے دپاره چه دوی شکر اوکړی۔

**تفسیر**: پدے رکوع کښې د ابراهیم علیه السلام واقعه ذکر کیږی۔

مناسبت:

۱- مخکښې د نعمت د تبدیل یو قسم ذکر شو چه هغه د رسول الله ﷺ نه انکار وو نو اُوس دا بل قسم تبدیل د نعمت دے، هغه دا چه دے خلکو ته الله تعالیٰ نعمت د حرم ورکړو نو دوی پکښې شرك شروع کړو، او ددے لوی نعمت شکر ئے پریخودو، حال دا چه دوی ته الله تعالیٰ بیت الله الحرام ددے دپاره ورکړے وو چه دوی به د الله تعالیٰ شکر کوی۔

۲- په دے سورت کښې ترغیب وو شکر ته نو پدے واقعه کښې هم شکر کولو ته ترغیب ورکړے کیږی چه د ابراهیم علیه السلام تابعداری وکړئ چه هغه شکر کړے وو او حرم ئے ددے دپاره جوړ کړے وو او الله تعالیٰ ورله بچے ورکړو نو د الله تعالیٰ حمد او شکر ئے ادا کړو۔

**الْأَصْنَامَ**: دا لفظ په قرآن کریم کښې پنځه ځای راغلے دے۔

اصنام جمع د صَنَم ده، بتانو ته وائی۔

ددے آیت نه معلومه شوه چه بت پرستی ډیر بد شے دے پدے وجه ترے ابراهیم علیه السلام پناهی غواړی۔ او بله فائده دا چه انبیاء علیهم السلام هغه خلك دے چه په ځان اعتماد نۀ کوی بلکه ټول اعتماد په الله تعالیٰ کوی، د خاتمے د خرابوالی نه یریږی چه زۀ او زما بچی چرته بت پرست نشو، وګوره دا امام الْحُنَفَاء (د موحدینو سردار) دے، او بیا هم د شرك نه د بیزارئ دعا کوی۔ او سلفو به د ابراهیم علیه السلام دا خبره مخے ته وه نو د شرك نه به ډیر یریدل او د مرګ دعاګانے به ئے غوښتلے، دے دپاره چه په ایمان کښې ورله مرګ راشی او چرته شرك کښې واقع نشی لکه دا خبره د سفیان ثوری نه نقل ده۔ نو موحدین به د شرك نه یره کوی، ډیر کرته په مؤمن کښې شرك راغلے وی او هغه به پرے خبر نۀ وی۔

رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ : یعنی دا بتان سبب د گمراهئ د ډیرو خلکو ګرځیدلی دی، لکه د پخوا زمانے نه اکثر انسانیت د بتانو په بندګئ کښې مصروف دے، اوس هم تول عالَم کښې اکثر امت د بتانو په عبادت او پوجا کښې مشغول دی۔

فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ : سوال دا دے چه نافرمانو ته څنګه غفور رحیم لفظ استعمالوی چه اے الله ! دوی معاف کړه، او رحم پرے وکړه او حال دا چه نافرمانو کښې مشرکان هم داخل دی او مشرکانو ته د الله تعالیٰ بخنه نۀ ده فراخه ؟ نو مفسرینو ددے ضعیف جوابونه داسے ورکړیدی (۱) امام قرطبیؒ دلته دا قید لګولے دے (وَمَنْ عَصَانِيْ فِيْمَا دُوْنَ الشِّرْكِ) (نقله عن مقاتل) چا چه زما نافرمانی وکړه سویٰ د شرك نه په نورو ګناهونو سره۔

(۲) خازنؒ داسے جواب کوی چه (وَمَنْ عَصَانِيْ فِيْ غَيْرِ الدِّيْنِ) څوك چه زما نافرمانی وکړی په غیر د دینی کارونو کښې۔ نو پدے باندے دا سوال دے چه ابراهیم ﷺ سره خو څه مزدورانو په پټو او دکانونو کښې کار نۀ کولو چه د هغه نافرمانی وکړی بلکه د هغه تهول کارونه د دین وو۔ (۳) چا دا قید لګولے دے (وَمَنْ عَصَانِيْ بَعْدَ التَّوْبَةِ) (سدیؒ)

چا چه زما نافرمانی وکړه پس د توبے ویسْتلو نه نو بخنه ورته وکړه۔

(٤) څینی وائی چه دا دعائے په هغه وخت کښې غوښتے وه چه الله تعالیٰ ورته دا خبر نۀ وو ورکړے چه الله تعالیٰ شرك نۀ معاف کوی۔ لکه څنګه ئے چه د مشرك پلار دپاره اول بخنه غوښتے وه بیا الله تعالیٰ منع کړو۔ (ابن الانباریؒ) لیکن دا تولے خبرے ضعیفے دی۔

(٥) حقه دا ده چه پدے کښې مقصد تفویض دے الله ته۔ او دا مطلب نۀ دے چه اے الله ! څوك زما نافرمان وی نو هغه وبخښه۔ بلکه پدے کښې خپله نرمی بیانوی او الله تعالیٰ ته خبره سپاری چه کـه څوك زما نافرمانی وکړی نو ستا خوښه ده، که معاف کوے ئے او که عذاب ورکوے او تۀ د هغوی په بخنه او رحم باندے قادر ئے۔ چونکه د ابراهیم ﷺ په مزاج کښې ډیره نرمی وه نو د خپل مزاج مطابق داسے خبره کوی، او داسے نۀ وائی چه [وَمَنْ عَصَانِيْ فَإِنَّكَ جَبَّارٌ قَهَّارٌ]۔ (څوك چه زما نافرمانی وکړی نو تۀ زوروَر او غلبه کونکے ئے)۔

رَبَّنَا إِنِّيْ أَسْكَنْتُ : ابراهیم ﷺ دا دعاګانے په هغه وخت کښې وکړے چه کله د خپلے بی بی (هاجرے رضی الله عنها) نه جدا شو او هغه ئے یواځے د خپل ځوی (اسماعیل ﷺ) سره په مکه کښې پریخوده چه هیڅ انسان ورسره خوا کښې نۀ وو۔ په شاړ میدان کښې ئے پریخوستل، او چه لږ جدا شو نو بیا مکے ته متوجه شو او دا دعائے وکړه۔

## تفصیل د واقعې

دا بل امتحان وو چه په ابراهیم علیه السلام باندې راغلې وو، صحیح حدیث کښې ئې تفصیل راغلې دې چه هاجره رضی الله عنها د ساره رضی الله عنها بنه وه نو د هغې سره به ئې اختلافات راتلل، (هاجره ورته د مصر د بادشاه د طرفنه ملاؤ شوې وه) نو الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام ته دا حکم وکړو چه دا ښځه جدا ووسوه، یو خو پدې وجه چه اختلافات ختم شی ځکه چه دوه ښځې په یو ځای وسیدو سره اختلافات زیات رامینځ ته کیږی، او بل د الله تعالیٰ د طرفنه امتحان وو چه پدې مقام کښې کعبه جوړیږی نو هغه ته ئې حکم وکړو چه هاجره سره د خپل بچی (اسماعیل) نه د شام نه مکې ته بوځه (او پدې وخت کښې ئې همدا یو مشر بچې وو او نور لا نهٔ دی پیدا شوی) او دا ئې د مکې مکرمې دې ناؤ ته راوستل (ځکه چه کعبه د غرونو مینځ کښې خوړونو کښې واقع ده) پدې وخت کښې دلته هیڅ انسان نشته، نهٔ اُوبه شته بلکه یو شاړ ځای دې،

هاجره رضی الله عنها او اسماعیل علیه السلام دواړه ئې دلته پریخودل او د دوی سره ئې په بتکی (مشك) کښې لږې اُوبه او په توشه دان کښې ئې لږې کجورې پریخودې، او بیرته ترې شام ته روان شو، نو هاجرې ورته آواز وکړو: [إِلَىٰ مَنْ تَكِلُنَا يَا إِبْرَاهِيمُ !؟ بِوَادٍ لَيْسَ بِهَا أَنِيسٌ]۔

تهٔ مونږ چا ته پریدې اې ابراهیمه! په داسې کنده کښې چه هیڅ انسان اُنس والا نشته چه خبرې ورسره وکړو) هغه ورته نهٔ کتل، بیا ئې ورته آواز وکړو هغه بیا هم نهٔ کتل، په دریم ځل ئې ورته آواز وکړو، [آللهُ أَمَرَكَ بِهٰذَا؟] - آیا الله تا ته ددې کار حکم کړیدې؟ نو هغه ورته مخ راواړولو چه آؤ، نو دې وویل: [إِذًا لَا يُضَيِّعُنَا اللهُ]۔ په دغه وخت به مونږ الله تعالیٰ نهٔ ضائع کوی۔ (وګوره ددې زنانه لوی همت او اخلاص او عاجزئ ته چه دا تکبر نکوی چه تا زهٔ د ښې د کور نه راجدا کړم، هغه دې کور کښې پریخوسته او زهٔ دې داسې شاړ ځای ته راوستم، خوراك څکاك هم نشته بلکه په الله باندې ځان سپاری) دا په ابراهیم علیه السلام باندې بې شانه غټ امتحان دې چه پداسې دشته کښې د خپل جګر ټکره وړوکې بچې او محبوبه ښځه یواځې پریدی، ځان ته فکر وکړه ستا به په داسې وخت کښې څه حال وی؟۔

کله چه د هغوی نه پناه شو نو د کعبې مقام طرفته متوجه شو او دا دعاګانې ئې وکړې چه اې الله! ددې ځای نه بلد (ښار) جوړ کړه او امن پکښې واچوه او ددې ځای وسیدونکو ته قسم قسم میوې ورکړه او د مکې د ښار محبت د خلکو په زړونو کښې واچوه دې دپاره چه

دے طرفته د هر ځای نه خلك راشي. نو الله تعالیٰ د هغهٔ دعا قبوله کړه او مکے والو ته ئے
تول نعمتونه ورکړل، لیکن دوی د الله تعالیٰ ناشکري وکړه او عزتمند ښارئے د کفر ښار
وګرځولو او د الله تعالیٰ سره ئے نور شریکان کړل.
او الله تعالیٰ دا دعاګانے په ډیره اُوچته پیمانه باندے قبولے کړے چه قیامته پورے ددے اثر
شته او وی به. ابراهیم ﷺ روان شو، شام ته ئے مخه کړه، دلته ددے د بی بی (هاجره) سره
اُوبه او کجورے ختمے شوے، په زنانه کښې د ماشوم دپاره پئ ختم شو نو بچی ژړل نو دے د
غر په شان لوی همت والا زنانه د صفا غونډئ طرفته منډه کړه چه څوك به وینی او د بچی
ګوزاره به ئے روانه شي، بیا ئے مروه ته منډه کړه بیا صفا ته بیا مروه ته اُوه ځل ئے منډه
ووهله. او پدے مینځ کښې د خپل بچی خوا ته راغله چه وګوری چه د هغهٔ به څه حال
وی؟ نو وے کتل چه د پریشانئ په حالت کښې لتے وهی نو بیرته واپس صفا ته لاړه اُوه ځله
ئے دا حالت وکړو تردے چه جبریل ﷺ راغے او د زمزم د کوهی په مقام باندے ودریدو او دے
ته ئے آواز وکړو او دا په مروه کښې ولاړه وه نو خان ته ئے وویل: [صَهْ] چپ شه. (یعنی دا
څوك دے) بیا هغه آواز وکړو نو دے ورته وویل: [قَدْ اَسْمَعْتَ اِنْ كَانَ عِنْدَكَ غَوَاثٌ].
آواز دے ما ته راورسیدو خو که څه مدد درسره وی نو راشه. پدے کښې چه کله راغله نو
جبریل ﷺ په خپل وزر باندے زمکه ووهله نو د زمزم اُوبه راوختلے نو دے ورته زر زر ګټے
او شړے راغونډے کړے چه دا خورے نشی ختمے نشي. (نبی کریم ﷺ فرمایل:
[رَحِمَ اللّٰهُ اُمَّ اِسْمَاعِیْلَ لَوْ تَرَكَتْ زَمْزَمَ لَكَانَتْ زَمْزَمُ عَیْنًا مَعِیْنًا] - (که چرته دے ورته دا دیوال
نهٔ وهلے نو زمزم به بهیدونکے چینه وے). (مسند احمد: ۳۳۹۰ بسند صحیح)
نو دے به د زمزم اُوبه څکلے او د هغے نه ئے پئ پیدا کیدل او ماشوم ته به ئے ورکول. نو
پدے مینځ کښې د بنو جُرهم یوه قبیله د یمن نه راروانه وه په لاره تیریدله نو وے کتل چه
علاقه کښې مارغان دی، وے وئیل چه مارغان خو د اُوبو خوا کښې وی نو کسان ئے راولیږل
وے کتل چه چینه ده او زنانه ورسره خوا کښې ناسته ده، نو هغوی قافلے ته حال وویلو نو
هغوی ټول راغلل، حدیث کښې دی چه [وَكَانُوْا اَصْحَابَ خُلُقٍ] د جرهم قبیلے خلك د
اخلاقو والا وو نو دوی ددے زنانه نه دلته د راتللو او د اُوبو څکلو اجازه واخسته. نو هغے
ورته اجازه ورکړه لیکن دا ئے ورته وویل چه ستاسو به په اُوبو کښې حق نهٔ وی صرف د
څکلو حق به وی یعنی تصرف به نهٔ کوئ. نو هغوی دلته دیره شو.
بیا لږه زمانه روستو هاجره رضی الله عنها وفات شوه او اسماعیل ﷺ رالوی شو، په دغه

قوم كښې ئې وادهٔ وكړو، ابراهيم عليه السلام ته الله تعالىٰ په شام فلسطين كښې وحى وكړه چه مكے ته لاړ شه نو هغه راروان شو دلته اسماعيل عليه السلام به ښكار كولو، د كور نه وتلے وو، ابراهيم عليه السلام د هغهٔ د كور پوښتنه وكړه نو ورته وخودے شو، ښځے نه ئې ورله تپوس وكړو، خاوند دې چرته شو؟ هغے ووئيل: مونږ له خوراك طلب كوى، ستاسو څه خوراك دے؟ هغے ووئيل: غوښه او اوبه. نو ابراهيم عليه السلام د هغے دپاره دعا وكړه چه الله دې پدے غوښه او اوبو كښې بركت واچوى. حديث كښې دى چه په مكه كښې څوك دا دواړه خورى نو نه خرابيږى او په بل ځاى كښې خرابيږى. نو هغے نه ئې د نورو احوالو تپوس وكړو نو هغے ورته بد حالى او فقر ذكر كړو نو ابراهيم عليه السلام ورته ووئيل چه خاوند ته به زما سلام ووائے او ورته ووايه چه د دروازے دا درشل دې بدله كړه.

او ددے نه پس ابراهيم عليه السلام رخصت شو، د انبياء عليهم السلام كار ډير ناشنا وى، د شام نه راغلے دے، او سمدست روانيږى د خپل ځوى ملاقات ئې هم ونكړو ځكه چه هغوى د الله تعالىٰ د امر تابع وى. كله چه اسماعيل عليه السلام كور ته راغلو نو د احوالو نه ئې معلومه كړه نو كور والو نه ئې تپوس وكړو؟ هغے ووئيل چه يو سپين ګيرے سړے وو او داسے خبره ئې وكړه. هغه ورته ووئيل چه دا زما پلار وو او درشل ته ئې، ما ته ئې حكم كړے چه تا ته طلاق دركړم. نو هغه ئې طلاقه كړه، او د هغه قوم نه ئې بله ښځه وكړه.

بيا ابراهيم عليه السلام په بل وخت كښې راغلو. اسماعيل عليه السلام بيا بهر وتلے دے، ملاقات ونشو، د ښځے نه ئې د احوالو تپوس وكړو نو هغے د الله تعالىٰ شكر ادا كړو چه الحمد لله ښه حال دے، (نو دا د شكر واقعه ده) نو ورته ئې ووئيل چه خاوند ته سلام وكړه او ورته ووايه چه (ثَبِّتْ عَتَبَةَ بَابِكَ) د دروازے درشل دې مضبوط وساته. اسماعيل عليه السلام ته ئې حال ووئيلو، هغه ووئيل چه درشل ته ئې، او دا زما پلار دے ما ته ئې امر كړيدے چه زهٔ تا ځان سره وساتم.

(ددے نه دا معلوميږى چه ناشكره ښځه طلاقول پكار دى او شكر ګزاره ساتل پكار دى، ناشكره انسان د الله تعالىٰ خوښ نهٔ دے) او بيا چه دريم ځل راغلو نو اسماعيل عليه السلام د يوے ونے لاندے ناست وو، غشى ئې جوړول نو يو بل سره ډير په مينه محبت ملاؤ شو، بيا ئې ورته ووئيل: چه ما ته الله تعالىٰ حكم كړيدے چه زهٔ د هغهٔ دپاره يو كور جوړوم، ته به زما موافقت كوے؟ هغهٔ ورته ووئيل: آؤ، د خپل رب خبره ومنه. نو دواړه شروع شو كعبه ئې جوړوله لكه باقى تفصيل ددے خوږے واقعے زمونږ په كتاب (سيرت الرسول ﷺ) كښې وګوره.

بعض مفسرینو لیکلی دي چه دلته د ابراهیم علیه السلام واقعه د کلمې طیبې د مثال په توګه ذکر شویده. او بعضو وئیلی دي چه پدې سره مقصود خلقو ته د توحید دعوت ورکول او د بتانو د عبادت نه منع کول دي. صاحب د «فتح البیان» وائي چه دا واقعه د ابراهیم علیه السلام د اُور ته د غورزیدو نه روستو راغلې ده. هلته دوی د خپل رب نه هیڅ سوال نهٔ دے کړے، او نهٔ ئې کومه دعا کړې او دلته د الله په حضور کښې په خشوع او خضوع سره ئې دعا کړیده. او مقام د دعا د مقام د سکوت او د ترك د دعا (دعا پریخودلو) نه اعلیٰ او ارفع دے. نو معلومه شوه چه ابراهیم علیه السلام کله دا دعا کړې وه په هغه وخت کښې دا په درجه د کمالاتو کښې عروج (بره سر) ته رسیدلے وو. (فتح البیان ۵۵۱/۳)

بعض مفسرینو لیکلی دي چه د ابراهیم علیه السلام اته خامن وو، د دوی نه هیچا هم د بتانو عبادت نهٔ دے کړے.

مِنْ ذُرِّيَّتِي : د ذریت نه مراد صرف اسماعیل علیه السلام دے.

بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ : د مکے په زمکه کښې داسے طاقت نشته چه هغه فصلونه راوخیژوی، اُوس ورله د بهر نه خلکو خاورے راوړیدي، نو بعض بوټی پکښې موجود دي.

**حکمة** : الله تعالیٰ خپل کور په داسے شاره کښې جوړ کړو دے دپاره چه مُحبّین او غیر محبّین معلوم شي، ولے که مکه داسے علاقه وے چه کیا هګانې او بوټي او چمنونه وے نو خلك به چکر له تللې، نو دا صحراوونه او مزلے او تکلیفونه دي، دا ددے دپاره چه محبت والا خلك د الله تعالیٰ کعبے ته لاړ شي، پدے سره د محبت والا بندګان ښکاره کیږي.

عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ : یعنی دلته به ستا کور جوړیږي. او مسجد حرام ته پدے وجه بیت حرام او حرم وئیل کیږي چه هغې ته الله تعالیٰ عزت ورکړیدے، د هغې بیعزتي کول ئې حرام کړیدي، او دلته ئې ښکار حرام ګرځولے دے.

لِيُقِيمُوا الصَّلَاةَ : مونځ ئې ذکر کړو، ددے اهمیت ته اشاره ده او بل دے ته چه مونځ کول د شکر یو قسم دے. خیني خلك د صلاة معنیٰ په دین سره کوي. دا دومره غوره نهٔ ده ځکه چه مونځ په اسلام کښې ډیر لوی اهمیت لري پدے وجه ابراهیم علیه السلام په داسے مقام کښې ذکر کړیدے. او رَبَّنَا ئې دوباره راوړو پدے کښې د مانځه ډیر اهمیت ته اشاره ده چه د مونځ په وجه د بنده تربیت کیږي.

مِنَ النَّاسِ : مِنْ ئې راوړو اشاره ده چه د حج او عمرے سره به بعض انسانان (چه هغه مؤمنان دي) مینه کوي، نهٔ یهود او نصاریٰ او نور کفار. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي : که داسے ئې

وئیلی وے (اَفۡئِدَةُ النَّاسِ) نو ټولو انسانانو به په مکه باندے ټیل کړے وے، فارس والا، رومیان، ترکیان، هندوان، یهود او نصاریٰ۔

تَهۡوِیۡ اِلَیۡهِمۡ: اَیۡ تَحِنُّ اِلَیۡهِمۡ وَتَطِیۡرُ وَتَشۡتَاقُ اِلَیۡهِمۡ ۔یعنی چه مینه او شوق ئے کیږی مکے والو ته، دپاره د زیارت د کور ستا۔ اهل لغت ئے داسے معنیٰ کوی: [تَنۡحَطُّ اِلَیۡهِمۡ وَتَنۡحَدِرُ وَتَنۡزِلُ]۔ دوی ته راښکته کیږی او دوی طرفته نازلیږی۔

وَارۡزُقۡهُمۡ مِّنَ الثَّمَرَاتِ: او د قسم قسم میوو دعا ئے چه کومه وکړه نو پدے کښ د هغه اولاد او هغه تمام خلق شامل دی چه مکے ته راځی او وسیږی۔

لَعَلَّهُمۡ یَشۡکُرُوۡنَ: اَیۡ یُوَحِّدُوۡنَکَ وَیُعَظِّمُوۡنَکَ) چه یواځے ستا بندگی وکړی او ستا تعظیم وکړی۔

| رَبَّنَا اِنَّکَ تَعۡلَمُ مَا نُخۡفِیۡ وَمَا |
|---|
| اے ربه زمونږ! یقیناً ته پوهیږے په هغه څه چه پټوی ئے مونږ او هغه څه |
| نُعۡلِنُ وَمَا یَخۡفٰی عَلَی اللّٰهِ مِنۡ شَیۡءٍ فِی الۡاَرۡضِ وَلَا فِی السَّمَآءِ ﴿۳۸﴾ |
| چه ښکاره کوو ئے مونږ او نه پټیږی په الله باندے هیڅ شے په زمکه کښ او نه په آسمان کښ |
| اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡ وَهَبَ لِیۡ عَلَی الۡکِبَرِ اِسۡمَاعِیۡلَ وَاِسۡحَاقَ |
| شکر دے الله لره هغه ذات چه وے بخلو ما ته سره د بوډاوالی نه اسماعیل او اسحاق |
| اِنَّ رَبِّیۡ لَسَمِیۡعُ الدُّعَآءِ ﴿۳۹﴾ رَبِّ اجۡعَلۡنِیۡ مُقِیۡمَ الصَّلٰوةِ |
| یقیناً رب زما خامخا قبلونکے د دعا دے۔ اے ربه زما! اُوگرځوه ما پابندی کونکے د مانځه |
| وَمِنۡ ذُرِّیَّتِیۡ رَبَّنَا وَتَقَبَّلۡ دُعَآءِ ﴿۴۰﴾ رَبَّنَا اغۡفِرۡ لِیۡ |
| او د اولادو زما نه اے ربه زمونږ! او قبوله کړه دعا زما۔ اے ربه زمونږ! بخنه اُوکړه ما ته |
| وَلِوَالِدَیَّ وَلِلۡمُؤۡمِنِیۡنَ یَوۡمَ یَقُوۡمُ الۡحِسَابُ ﴿۴۱﴾ |
| او مور او پلار زما ته او مؤمنانو ته په هغه ورځ چه اُودرولے به شی حساب۔ |

**تفسیر**: زمخشری ددے آیت تفسیر دا کړیدے (کوم چه د ابن جریرؒ رائے ته نژدے دے) چه اے زمونږه ربه! ته زمونږ د حالاتو او زمونږ د ضرورتونه ښه خبردار ئے، چه کوم شے زمونږ

دپاره مفید دے او کوم شے نقصان ده دے، هغه تا ته ښه معلوم دے، ته زمونږ نه زیات په مونږ باندے رحم کونکے ئے، پدے وجه دعا او طلب ته ضرورت نشته دے۔ مونږ خو ستا په دربار کښې اظهار د بندګۍ او ستا په جناب کښې د خشوع او خضوع د اظهار دپاره تا ته آواز کوو، مونږ پدے وجه دعا کوو چه ستا د کرم محتاج یو، او ستا د فضل او کرم دپاره زمونږ په زړونو کښې جلتی ده۔ زمونږ حال ددے غلام دے چه د خپل مالك په حضور کښې ښه چاپلوسي وکړی دے دپاره چه هغه خپل زیات نعمتونه هغهٔ ته ورکړی، او مالك هم داسے دے چه د خپلو غلامانو په ادنیٰ طلب باندے د نعمتونو باران کوی۔ (محاسن التاویل)

یا د (مَا نُخْفِیْ) نه مراد هغه خفګان دے چه په اسماعیل او د هغه د مور پسے ئے په زړه کښې کړے وو چه په شاړه زمکه کښې ئے پریخودل۔ او د (مَا نُعْلِنُ) نه مراد هغه جفاء ده چه مونږه ئے ددے دواړو سره ښکاره کوو۔

وَمَا يَخْفٰى : دا یا قول د ابراهیم ﷺ دے یا جواب د الله تعالیٰ دے، د اول په اعتبار سره به مطلب دا وی چه اے الله! تا ته زما نیت معلوم دے چه زما ددے ښځے او بچی دلته وسوه ولو مقصد ستا شکر کول دی۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَهَبَ لِیْ عَلَی الْكِبَرِ : ابراهیم ﷺ د الله شکر ادا کړو چه هغه له ئے په بو دا والی کښې دوه ځامن ورکړل، دے دپاره چه د هغه نه روستو د دعوت الی الله کار کوی، خلق توحید طرف ته راوبلی، او مونځونه قائم کړی۔ وائی چه د اسماعیل ﷺ د پیدائش په وخت د هغوی عمر نهه نوی (۹۹) کاله وو او د اسحاق ﷺ د پیدائش په وخت د هغه عمر یوسل دولس (۱۱۲) کاله وو او د سعید بن جبیرؒ په قول یو سل اولس (۱۱۷) کاله وو۔ دیارلس کاله اسحاق ﷺ د اسماعیل ﷺ نه کشر دے۔ او پداسے زمانه کښې اولاد پیدا کیدل د الله تعالیٰ ډیر لوی نعمت وی ځکه چه دا زمانه د نا امیدیٔ وی نو ځکه پدے باندے شکر کوی۔ او دا (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ) ابراهیم ﷺ پدے وخت کښې نهٔ ده وئیلے بلکه دا د بل وخت شکریه ادا کول دی خو الله تعالیٰ د هغه د شکر راښکاره کولو دپاره پدے مقام کښې ددے واقعے سره جمع کړل۔ (فتح البیان والقاسمیؒ)

رَبِّ اجْعَلْنِیْ : هغهٔ د خپل رب نه دا دعا هم وکړه چه اے ربه زما! ما او زما اولاد د مانځه پابند کړه، او زمونږ ټولے دعاګانے عموماً او دا دعاګانے خصوصاً قبولے کړه۔

بعض مفسرینو دلته د دعا نه مراد عبادت اخستے دے۔ او د الله تعالیٰ نه ئے دا هم طلب کړل چه هغه ما او زما مور او پلار او نور ټولو مسلمانانو ته د قیامت په ورځ معافی

وكړي۔ مفسرين ليكي چه د والدينو دپاره دوی دا دعا په هغه وخت كړې وه چه كله دۀ ته دا معلومه نۀ وه چه دوی دواړه د الله تعالىٰ دشمنان دی۔ يو قول دا هم دے چه ددۀ مور مسلمانه شوې وه۔ په يو قراءت كښې «وَالِدِيَّ» راغلے دے۔ يعني په دعا كښې ئے صرف خپل والد مراد كړے وو۔ په يو بل شاذ قراءت كښې «وَلَدَيَّ» راغلے دے، يعني زما دواړه خامن اسماعيل او اسحاق هم معاف كړه۔ ليكن دا غوره نۀ ده۔

او ظاهر دا ده چه ابراهيم عليه السلام د خپل پلار سره د بخښنے غوښتو وعده كړې وه نو هغه ئے دلته پوره كړه۔ بيا الله تعالىٰ منع كړو چه مشرك له به بخنه نۀ غواړے لكه چه تفصيل ئے مخكښې په سورة التوبه كښې تير شويدے۔

يَقُومُ الْحِسَابُ : د هر شي خپل خپل ودريدل وي نو مراد ترے هغه ورځ ده چه حساب پكښې ودريږي يعني ثابت شي او شروع شي۔ او تعبير ئے ترے په قيام سره وكړو اشاره ده د هغے يقيني والي ته چه دا به په ډير استقامت او تاكيد سره كيږي۔

او تاويلي معنىٰ پكښې دا ده چه (يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِلْحِسَابِ) په كومه ورځ چه خلك به د حساب دپاره ودريږي۔ اول قول غوره دے۔ (فتح البيان)

وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ : د ايمان د فوائدو نه يوه فائده دا ده چه اصحاب الاستجابة به تا ته دعا كوي، نو چه ايمان در پكښې راغلو، د ابراهيم عليه السلام دعا به تا ته كيږي ځكه چه هغه ټولو مومنانو ته د بخښنے دعا كړيده او د هغه دا دعا قبوله ده ځكه چه قرآن كښې الله تعالىٰ كومه دعا ذكر كړي نو هغه قبوله شوي وي، نو دا د ډير زيري والا آيت دے ولله الحمد۔ بيا ئے زنانه (وَلِلْمُؤْمِنَاتِ) ذكر نكړے، زنانه ئے د سړو تابع كړيدي ځكه چه ددۀ ټول اولاد زامن وو او لونړه ئے نۀ وے نو د هغوی سره ئے تعلق نۀ وو۔

| وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ |
|---|
| او گمان مۀ كوه په الله باندے د ناخبره د هغے نه چه كوي ئے ظالمان، |
| اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ الْاَبْصَارُ ﴿٤٢﴾ |
| يقيناً روستو كوي دوی لره هغه ورځے ته چه كروغے به راوخي په هغے كښې سترگے۔ (چه كولاؤ به پاتے شي په هغے كښې نظرونه)۔ |

**تفسير** : پدے آخري ركوع كښې تخويفات دي چه خلك ناشكري كوي او اے زما نبي!

ستا خلاف كوي نو دا خلك ما نه نشي بچ كيدے، نو پدے آيت كښې ظالمانو دپاره دهمكي ده، او وعده ده دپاره د مظلوم.

يعني نبي كريم ﷺ ته تسلي وركړے شويده او د مدد او كاميابئ وعده ورسره كړے شويده او د مكے كافرانو ظالمانو ته دهمكي وركړے شويده چه كه دوي خپل حالت برابر نكړو نو د بد انجام انتظار دے وكړي.

او مناسبت ئے د مضمون د سورت سره دا دے چه څوك شكر نه كوي او اتباع د رسول ﷺ نكوي هغه ظالم دے.

وَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ : دلته مخاطب اگركه نبي كريم ﷺ دے، ليكن مقصود د هغهٔ امت دے. او د ((ظالمون)) نه مراد د مكے مشركان دي.

يعني كه الله تعالىٰ دوي ته مهلت وركړيدے او عذاب ئے د دوي نه روستو كړيدے نو ددے نه دِے دوي پدے غلط فهمئ كښې نهٔ پريوزي چه گنے د دوي نه الله تعالىٰ ناخبره دے، يا ئے دوي ته معافي كړيده، بلكه هغه د دوي ټول اعمال بيل بيل د دوي په عمل نامه كښې راجمع كوي، او كله چه هغه ورځ راشي كله چه به د ډيرے په وجه د خلقو سترگے ايغے نيغے پاتے شي، نو هغه ټول بد اعمال به د دوي مخے ته راپيش كړے شي.

تَشْخَصُ: شُخُوصُ الْبَصَرِ : تيز نظر كول او په يو ځاي باندے نظر نهٔ پاتے كيدلو ته وئيلے شي. يعني كولاو به پاتے شي نظرونه د دوي.

| مُهْطِعِيْنَ مُقْنِعِيْ رُءُوْسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ اِلَيْهِمْ |
|---|
| منډے وهونكي به وي، اُوچت كړي به ئے وي سرونه خپل، نهٔ به واپس كيږي دوي ته |
| طَرْفُهُمْ وَاَفْئِدَتُهُمْ هَوَآءٌ ﴿٤٣﴾ |
| نظرونه د دوي او زړونه د دوي به خالي وي (د هر خير نه او د پو هے نه). |

**تفسير** : كله چه قيامت راشي نو مړي به د خپلو قبرونو نه راوتو سره ميدان محشر طرف ته په ډيره تيزئ سره منډے وهي لكه چه الله تعالىٰ په سورة المعارج آيت (٤٣) كښې فرمايلي دي : ﴿يَوْمَ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ سِرَاعًا﴾

چه (په هغه ورځ به خلق د خپلو قبرونو نه راوتو سره ډير په تيزئ سره منډے هي). خپل سرونه به ئے پورته طرف ته اُوچت كړي وي، او سترگے به ئے كولاوے وي، په بڼړو كښې به ئے

حرکت هم نهٔ وي، او د ډیرے یرے او ګبراهټ په وجه به ئے زړونه فناء او ختم شوي وي.

مُهْطِعِيْنَ : ١ - (اَىْ مُسْرِعِيْنَ) زغلیدونکي به وي. (قتادة)

٢- مُدِيْمِى النَّظَرِ) (مجاهد) نیغ او متواتر کتونکي به وي.

ثعلبؒ وائي : اَلْمُهْطِعُ الَّذِىْ يَنْظُرُ فِىْ ذُلٍّ وَخُضُوْعٍ)

مهطع هغه شخص دے چه په ذلت او عاجزئ سره کتل کوي.

ابن عباسؓ فرمائي : د إهطاع معنیٰ دا ده چه په کتو کښې به نظر نهٔ ړپه وي.

(فتح، الدر المنثور)

مُقْنِعِىْ رُءُوْسِهِمْ : یعنې سرونه به ئے پورته کړي وي آسمان طرفته، هغے ته به د یرے او د ذلت په نظر سره ګوري او بعضے به بعضو ته نهٔ ګوري او نهٔ به ځان ته کتلے شي ځکه چه ځان او بل ته کتونکے هغه څوك وي چه بیغمه وي او چه کله انسان په سخت هیبت کښې وي نو بیائے خپل ځان ته هم فکر نهٔ وي.

وَاَفْئِدَتُهُمْ هَوَآءٌ: ١ -خَالِيَةٌ عَنِ الْخَيْرِ) یعنې زړونه به ئے د هر خیر نه خالي وي.

٢- اَىْ لَاتَعْقِلُ شَيْئًا وَلَاتَعِيْهِ مِنَ الْخَوْفِ) یعنې د زیاتے یرے په وجه به په هیڅ نهٔ پو هیږي او نهٔ به یوه خبره یادولے شي. ځکه چه کله د انسان هیبت زیات شي نو بیا په یوه خبره هم نهٔ پو هیږي.

٣- هَوَاءٌ : اَىْ جَوْفٌ لَاعُقُوْلَ لَهَا (قرطبي) زړونه به ئے داسے وي چه هیڅ عقلونه به پکښې نهٔ وي. ٤- خَاوِيَةٌ. (ابن کثیرؒ) (زړونه به ئے د خپل ځاي نه پریوتونکي وي)، لکه چه الله تعالیٰ فرمائي : ﴿اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ﴾ (حم المؤمن : ١٨)

په هغه ورځ به زړونه د خپلو ځایونو نه وتلي وي او مرئ ته به رارسیدلي وي. (د سخت هیبت د وجه نه ځکه چه دوي کله اُور ویني نو یو تیزه چغه به کړي چه د هغے په وجه به ئے زړونه د خپلو ځایونو نه جدا شي)

| وَاَنْذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَاْتِيْهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا |
| --- |
| او اُویروه خلقو لره د هغے ورځے نه چه رابه شي دوي ته عذاب نو وائي به ظالمان |
| رَبَّنَا اَخِّرْنَا اِلٰى اَجَلٍ قَرِيْبٍ نُّجِبْ |
| اے ربه زمونږ ! روستو کړه مونږ (مهلت راکړه) تر نیتے نزدے پورے چه قبول کړو |

| دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُمْ |
|---|
| دعوت ستا او تابعداری اوکړو د رسولانو۔ آیا نهٔ وئ تاسو چه قسمونه مو کړی وو |
| مِنْ قَبْلُ مَا لَكُمْ مِنْ زَوَالٍ ﴿٤٤﴾ وَسَكَنْتُمْ فِي مَسَاكِنِ |
| مخکښ ددې نه چه نشته تاسو لره زائله کیدل (فنا)۔ او اوسیدلیٔ یئ تاسو په ځایونو |
| الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ |
| د هغه کسانو کښې چه ظلم ئې کړې وو په ځانونو خپلو او ښکاره شویده تاسو ته |
| كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْأَمْثَالَ ﴿٤٥﴾ |
| چه څنګه کار کړې وو مونږ د دوی سره او بیان کړیدی مونږ تاسو ته مثالونه (قصې او |
| وَقَدْ مَكَرُوا مَكْرَهُمْ وَعِنْدَ اللهِ |
| واقعات)۔ او یقیناً مکرونه کړی وو دوی مکرونه خپل او د الله په اختیار کښې دې |
| مَكْرُهُمْ وَإِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ الْجِبَالُ ﴿٤٦﴾ |
| مکر د دوی، او اګرکه وو مکرونه د دوی (دومره غټ) چه ختم شی د هغې په وجه غرونه۔ |

**تفسیر** : دلته هم خطاب نبی کریم ﷺ سره دې۔ او د «الناس» نه مراد یا خو عام خلق دی، یا مکې والا دی۔ اولنې قول راجح دې۔ ځکه چه د رسول الله ﷺ د قیامت د ورځې نه یرول مسلمان او کافر تولو ته شامل دی۔

الْعَذَابُ : ددې نه دنیاوی او اُخروی دواړه قسمه عذاب مراد کیدل صحیح دی۔

فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا : لیکن کله چه عذاب راشی نو بیا به ظالمان د تیر شوی وخت ارمان کوی چه مونږ ته دې دوباره موقعه راکړې شی چه ستا دعوت قبول کړو او ستا د رسولانو خبره ومنو۔

نُجِبْ دَعْوَتَكَ : د الله تعالیٰ دعوت د هغهٔ یواځې بندګی کول دی۔ نو دوی به د دوه څیزونو پسې ارمان کوی، د الله تعالیٰ یواځې بندګی او د رسولانو اتباع۔ ځکه چه دوی ته پته ولګیده چه صرف دا دوه څیزونه په کار راځی۔

أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُمْ : کفارو به د مرګ نه روستو د دویم ځلی ژوندی کیدو نه انکار

کولو، او کله چه به داعی الی الله داسې خبرې کولې نو دوی به قسمونه خوړل چه د دویم ژوند عقیده باطله ده۔ په سورة النحل آیت (۳۸) کښې الله تعالیٰ فرمایلي دي:
﴿ وَاَقۡسَمُوۡا بِاللّٰهِ جَهۡدَ اَيۡمَانِهِمۡ لَا يَبۡعَثُ اللّٰهُ مَنۡ يَّمُوۡتُ ﴾ چه (دوی به په الله ډیر غټ قسمونه کول وئیل به ئې چه څوك مړ شي نو الله به هغه دویم ځلې نهٔ راژوندې کوي)۔
مِّنۡ زَوَالٍ: اَیۡ مِنۡ زَوَالٍ مِنَ الدُّنۡیَا ۔ یعنی د دنیا نه زائله کیدل نشته بلکه خلك په دنیا کښې مري او ژوندي کیږي او دوباره ژوند نشته۔
وَّسَكَنۡتُمۡ: یعنی تاسو وسیدلی وئ۔ یعنی تاسو هغه کلي لیدلي دي چه د هغې وسیدونکو په ځانونو ظلم کړې وو لکه د عادیانو او ثمودیانو کلي۔ الله تعالیٰ په هغوی باندې چه کوم عذاب نازل کړې وو د هغې آثار اُوسه پورې باقي دي۔
او د هغوی خبرونه په تواتر سره مونږ ته رارسیدلي دي۔ او څه چه هغوی کړي وو چه د هغې په وجه سره هغوی دغه بد انجام ته ورسیدل هغه ټولې خبرې تاسو ته معلومې دي، بیا هم په تاسو کښې څوك داسې پیدا نهٔ شو چه عبرت ئې حاصل کړې وې او خپله اصلاح ئې کړې وې۔
۲- حسن معنی کوي: اَیۡ عَمِلۡتُمۡ بِمِثۡلِ اَعۡمَالِهِمۡ: تاسو د هغوی د عملونو په شان عملونه وکړل۔
كَيۡفَ فَعَلۡنَا بِهِمۡ: دا فاعل دې د (تَبَيَّنَ) دپاره۔ اَیۡ تَبَیَّنَ لَكُمۡ كَيۡفِيَّةُ فِعۡلِنَا بِهِمۡ مِنَ الۡعُقُوۡبَةِ وَالۡعَذَابِ الشَّدِیۡدِ) یعنی تاسو ته ښکاره شویده طریقه د کار زمونږ چه دوی سره مو وکړو چه هغه سزا او سخت عذاب ورکول وو په سبب د ګناهونو د هغوی۔ یعنی ډیر عجیبه کار مو د هغوی سره وکړو۔
وَضَرَبۡنَا لَكُمُ الۡاَمۡثَالَ: یعنی که تاسو په خپلو سترګو نهٔ وي لیدلي نو بیا مونږ تاسو ته د هغوی واقعات بیان کړیدي په کتابونو زمونږ او په ژبه د رسولانو زمونږ سره۔ دې دپاره چه په تاسو باندې حجت پوره شي۔ (فتح البیان) د اَمۡثَال نه مراد قصې او واقعات دي۔
وَقَدۡ مَكَرُوۡا مَكۡرَهُمۡ: که څوك ووائي چه هغوی به کمزوري وو او مونږ خو ډیر طاقتور یو؟ نو الله جواب کوي وَقَدۡ مَكَرُوۡا: یعنی دغه کافرانو د حق او د انبیاؤ په خلاف باندې ډیر سازشونه کړي وو لیکن د هغې ټولو سازشونو واك او اختیار د الله تعالیٰ په لاس کښې وو چه هغوی ته ئې هیڅ فائده ورنکړه او هغوی حق مغلوبه نکړې شو۔ بلکه الله تعالیٰ په خپلو سازشونو کښې راګیر کړل۔

وَعِنۡدَ اللّٰهِ مَكۡرُهُمۡ : انسان چه څه مکر کوی نو الله تعالیٰ په هغې باندې احاطه کړې وی، د الله تعالیٰ په اختیار کښې وی.

وَإِنۡ كَانَ مَكۡرُهُمۡ : إِنۡ وصلیه دے. یعنی اګرکه دومره لوی لوی مکرونه او سازشونه ئې کړی وو چه غرونه به ئې راویستل او زائل کول به ئې او هغه به ئې خکته پورته کول.

د اسلام مثال د غرونو په شان دے، یعنی د دوی سازشونه دومره قوی وو چه نزدے وه چه اسلام د هغې په وجه زائل شوے وے لیکن دغه مکرونه د الله په اختیار کښې وو، الله تعالیٰ به د خپل دین اسلام حفاظت کولو او د هغوی چلونه به شنډ پاتے کیدل.

۲- یا إِنۡ مخفف من المثقل دے. اَیۡ إِنَّهٗ كَانَ مَكۡرُهُمۡ . یعنی یقیناً د دوی سازشونو سره غرونه زائله کیدل. دومره غټ غټ مکرونه او سازشونه ئې د اسلام په خلاف کړی وو.

۳- ځینی وائی : إِنۡ نافیه دے. یعنی د الله تعالیٰ په مقابله کښې دغه مکرونه دومره غټ نهٔ وو چه غرونه پرے وخوزیږی.

لیکن دا تفسیر غوره نهٔ دے. ځکه چه الله تعالیٰ فرمائی: ﴿ وَمَكَرُوۡا مَكۡرًا كُبَّارًا﴾ کافرانو لوی لوی مکرونه جوړ کړی وو.

نو پدے کښې رد دے د مکے په مشرکانو چه د دوی سازشونه به هم کامیاب نشی.

فَلَا تَحۡسَبَنَّ اللّٰهَ مُخۡلِفَ وَعۡدِهٖ رُسُلَهٗ ؕ إِنَّ

نو ګمان مهٔ کوه په الله تعالیٰ خلاف کونکے د وعدے خپلے د رسولانو خپلو سره، یقیناً

اللّٰهَ عَزِيۡزٌ ذُو انۡتِقَامٍ ﴿٤٧﴾ يَوۡمَ تُبَدَّلُ الۡأَرۡضُ غَيۡرَ الۡأَرۡضِ

الله غالبه بدله اخستونکے دے. په هغه ورځ چه بدل به کړے شی زمکه په بله زمکه

وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوۡا لِلّٰهِ الۡوَاحِدِ الۡقَهَّارِ ﴿٤٨﴾ وَتَرَى

او آسمانونه (هم) او راښکاره به شی دوی الله ته چه یو دے، زورَور دے. او وینے به ته

الۡمُجۡرِمِيۡنَ يَوۡمَئِذٍ مُّقَرَّنِيۡنَ فِي الۡأَصۡفَادِ ﴿٤٩﴾ سَرَابِيۡلُهُمۡ

مجرمانو لره په دغه ورځ تړلے شوی په زنځیرونو کښې. قمیصونه د دوی به

مِّنۡ قَطِرَانٍ وَّتَغۡشٰى وُجُوۡهَهُمُ النَّارُ ﴿٥٠﴾ لِيَجۡزِيَ اللّٰهُ

د رنړرو نه وی او پټوی به مخونو د دوی لره اُور. دے دپاره چه بدله ورکړی الله تعالیٰ

كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٥١﴾

هر نفس ته د هغې عمل چه کړے ئې دے یقیناً الله تعالیٰ زر حساب کونکے دے۔

**تفسیر**: پدے کښې د دین اسلام او د نبی کریم ﷺ د حمایت او حفاظت وعده په ډاګه کوی، او پدے کښې تسلی ده رسول الله ﷺ ته او دهمکی ده مشرکانو ته چه الله تعالیٰ به خپل نبی ته ښکاره مدد ورکوی۔ قرآن کریم کښې ددے ښکاره بیان په ډیرو ځایونو کښې راغلے دے۔ په سورة غافر آیت (۵۱) کښې دی: ﴿إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا﴾ چه (مونږ به د خپلو رسولانو ضرور مدد کوو)۔

په سورة المجادله آیت (۲۱) کښې الله فرمایلی دی: ﴿كَتَبَ اللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِي﴾
یعنی الله تعالیٰ دا خبره لیکلے ده چه زهٔ او زما انبیاء به ضرور غالب وی)۔

او سورة النور آیت (۵۵) کښې ئې فرمایلی دی:
﴿وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ﴾ چه (الله ستاسو نه د ایمان او عمل صالح والوسره وعده کړیده چه دوی به د زمکے وارثان جوړوی)۔

او وعده کښې خلاف کول عیب دے، او الله تعالیٰ د عیب کار نهٔ کوی۔

يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ: دا متعلق دے د پټ (اُذْكُرْ یا اِرْتَقِبْ) پورے۔

یعنی رایاده کړه هغه ورځ یا انتظار کوه د هغه ورځے۔ یا د (انتقام) پورے متعلق دے۔
یعنی بدله به اخلی په هغه ورځ۔ د ترهیب دپاره د قیامت د ورځے حالات ذکر کیږی چه په هغه ورځ به د زمکے او آسمان نقشه بدله وی، غرونه به د مالوچو په شان الوزی، د دریاب اُوبه به راخلاصے شی، او زمکه به هموار شی۔ د آسمان ستوری به وُدوریږی او نمر او سپوږمئ به بے نوره شی۔ او خلق به د خپلو قبرونو نه راوځی او د الله تعالیٰ مخے ته به حاضریدو دپاره منډے وهی، دے دپاره چه هغه دوی ته د دوی د عملونو بدله ورکړی۔

تُبَدَّلُ الْأَرْضُ: تبدیل دوه قسمه دے۔ (۱) تبدیل ذاتی لکه دَرَاهم په دنانیرو سره بدل شی۔ (۲) تبدیل وصفی چه صفت ئے بدل شی، نهٔ ذات لکه د بنګړی نه ګوتمه جوړه شی۔ د جهمیه وُ عقیده دا وه چه قیامت فناء محض ته وائی چه آسمان او زمکه به بیخی ختم شی، او انسانان به بیخی ختم (معدوم محض) به وګرځی، بیا به د عدم نه الله تعالیٰ دوی دوباره دا ځیزونه راپیدا کړی، او دا عقیده د قرآن او د حدیث نهٔ وه، پدے وجه کله چه به دوی دا عقیده فلاسفه وُ ته پیش کوله نو هغوی به ورسره نهٔ منله چه معدوم محض نه

څنګه دوباره پیدائش وشي څکه چه دا خو بیا همغه شے پیدا نشو بلکه بل شے شو.
صحیح خبره دا ده چه دلته تبدیل وصفي مراد دے، او قیامت د عالَم تغیر او تبدیل ته وائي او عدم محض ته نهٔ وائي، آسمان او زمکه به وي، خو الله تعالیٰ به پکښې تبدیل پیدا کړي او د انسانانو ارواح به وي او د هغوی د بدنونو نه به «لکه لمے» موجود وي، او بعض انسانان به روغ په قبرونو کښې پراتهٔ وي، ددے نه به ئے راژوندي کړي. لکه الله تعالیٰ ئے داسے تصویر پیش کړیدے. ﴿وَإِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ﴾. (انشقاق: ۳)
(او کله چه زمکه اُوږده کړے شي او راګوزار کړي هغه څیزونه چه پدے کښې دي او خالي کړے شي. ﴿لَا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا﴾. (طه: ۱۰۷)
(نهٔ به وینے په هغے کښې کوږ والے او نهٔ ډیره کي) ﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا﴾. (زلزال: ٤)
(په کومه ورځ چه بیانوي به زمکه خبرونه خپل) همدا زمکه به خبرونه بیانوي. نو همدا زمکه به وي، غرونه به ئے الله تعالیٰ کندو ته ګوزار کړي هوارے به راولي، او دریابونه به اُوچ کړي او جهنم کښې به ئے واچوي نو هوار میدان به جوړ شي.
غَيْرَ الْأَرْضِ: اُوس زمکه مملوکه ده، بیا به د چا مملوکه نهٔ وي. غرونه به پکښې نهٔ وي، دریابونه به پکښې نهٔ وي، لوړے او ژورے به پکښې نهٔ وي.
وَالسَّمَاوَاتُ: آسمانونه به خکته راودوریږي او غاړے او اطراف به ئے باقي وي ﴿وَالْمَلَكُ عَلَىٰ أَرْجَائِهَا﴾. (الحاقه: ۱۷) (او ملائك به د هغے په غاړو کښې وي).
بیا به ئے الله تعالیٰ مضبوط کړي نو دآخرت آسمانونه به ترے جوړ کړي.
الْمُجْرِمِينَ: ډیر لوی مجرمان به په زنځیرونو تړلے کیږي لکه دنیا کښې هم دغه شان کیږي. نو په قیامت کښې به د مجرمانو حالت دا وي چه د دوی نه به هر یو قسم مجرمان جدا جدا جمع کړے شي او د دوی په لاسونو او خپو کښې به بیړئ اچولے شي او د دوی څټونو پورے به تړلے شي.
مِّن قَطِرَانٍ: قطران رنزړو ته ونیلے شي.
او څینې وائي: اَلنُّحَاسُ الْمُذَابُ. ویلي کړے شوے تانبه. (عمر الفاروق وابن عباس ﷺ)
دا یو چیړ دے چه د ابهل ونے نه راوځي او بیا پوخ شي او په هغے باندے اُوښان غوړولے شي دے دپاره چه د هغے په تیز والي سره ئے خارښ بند شي. څینې وائي: دا د ابهل، عرعر، او توت ونے تیل دي لکه د تارکولو په شان چه اُوښان پرے غوړولے شي. (فتح)
یعنې د دوی لباس به د ګند هلك (رنزړو) نه وي، او د دوی مخونه به اُور سیزي. الله تعالیٰ

د جهنمیانو د شکل او صورت بدی او د دوی بدترین حالت بیانولو دپاره د دوی تشبیه د هغه خاربنتي اُوبښ سره ورکړه چه د هغهٔ د جسم نه پیپ روان وی او بد بوئی ترے ځی او د علاج دپاره د هغهٔ په ټول بدن باندے ګنډ هلك راخکلے شوی وی، چه د هغے بد بوئی ډیره سخته او د هغے منظر ډیر قبیح وی۔

زمخشری لیکلی دی چه د جهنمیانو په جسمونو به ګنډ هلك اچولے شی چه د قمیص په شان به دوی پټ کړی چه په هغے باندے به خلور قسمه آثار مرتب کیږی:

١-د ګنډ هلك چیچل، او د هغے سوزش۔

٢- او اُور به په تیزئ سره د دوی جسمونه سوزوی لکه رنړره اُور زر اخلی۔

٣-او د دوی رنګ به یرونکے وی،

٤- او تیزه بدبوئی به د دوی د جسمونو نه راپورته کیږی۔ او ددنیا رنړره او د جهنم په رنړرو کښې به هغه فرق وی کوم چه د دوارو ځایونو په اُور کښې فرق دے۔

وَتَغْشٰى : اَىْ تَعْلُوْ وَتُغَطِّيْ وَتَضْرِبُهَا وَتُخَلِّلُهَا۔

یعنی دپاسه به پرے راځی او پټوی به او وهی به ئے او ورداخلیږی به د دوی په مخونو کښې اُور، او دغه شان په زړونو کښې هم۔ مخونه ئے ذکر کړل ځکه چه دا اشرف بدن دے او بل پدے کښې د اِدراك حواس موجود دی، او بل ددے سوزش ډیر زیات دے۔

لِيَجْزِىَ : اَىْ يَفْعَلُ ذٰلِكَ بِهِمْ لِيَجْزِىَ ۔ دا کار به د دوی سره ددے دپاره کوی چه دوی ته د دوی د بدو عملونو سزا ورکړی۔

سَرِيْعُ الْحِسَابِ: حساب ئے په جلتئ راځی او په جلتئ سره به ئے وکړی چه د ټول مخلوق حساب به د دنیا د نیمائی ورځے په اندازه وکړے شی۔

| هٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ وَلِيُنْذَرُوْا بِهٖ |
|---|
| دا (قرآن) رَسول دی (تبلیغ دے) خلقو ته، او دے دپاره چه اُویرولے شی پدے سره |
| وَلِيَعْلَمُوْا اَنَّمَا هُوَ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ |
| او دے دپاره چه پو هه شی دوی چه یقیناً الله تعالیٰ لائق د عبادت دے، یو دے |
| وَلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٥٢﴾ |
| او دے دپاره چه نصیحت واخلی غوره عقلونو والا۔ |

**تفسیر**: آخر د سورت د اول سره یو کوی، څکه چه په اول کښې هم ترغیب وو قرآن کریم ته، اُوس هم ترغیب ورکوی چه دا سورت نصیحت او نیغې لارے طرف ته د لارخودنے دپاره کافی دے۔ او څوک چه پدے کښې په ذکر شوو احکامو او نصیحتونو باندے عمل کوی هغه ته به د دنیا او د آخرت نیکبختی حاصلیږی۔

او د الله تعالیٰ په وحدانیت باندے دلالت کونکی کوم دلائل چه پدے کښې بیان شویدی، په هغے کښې سوچ او فکر کولو سره به هغه ته یقین وشی چه الله تعالیٰ یو دے، د هغهٔ هیڅ شریك نشته دے۔

**هٰذَا** : یعنی دا سورت۔ او بعض وائی چه اشاره ده قرآن کریم ته، او پدے کښې مقصد د قرآن کریم ذکر دے څکه ټول قرآن کریم د هدایت او لارخودنے چینه ده۔ او د الله تعالیٰ په وحدانیت باندے د دلالت کونکو دلائلو او براهینو نه پوره دے۔

ددے دویم قول تائید ددے سورت د اولنی آیت نه هم کیږی چه په هغے کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی: ﴿ الر كِتَابٌ اَنْزَلْنَاهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ اِلَى النُّوْرِ ﴾

یعنی دا قرآن یو داسے کتاب دے چه مونږ په تا باندے نازل کړیدے دے دپاره چه ته خلق د دوی د رب په حکم سره د تیارو نه راوباسے او رڼرا طرف ته ئے بوځے۔

**بَلاغٌ** : ۱– اَیْ تَبْلِیْغٌ وَ کِفَایَةٌ فِی الْمَوْعِظَةِ ۔ دا سورت او دا قرآن د نصیحت دپاره پوره دے۔ او پدے سره پوره تبلیغ وشو۔ دلیل دے چه څوك په قرآن باندے وعظ او نصیحت وکړی او دا خلکو ته ورسوی نو ددهٔ پوره تبلیغ وشو۔

نو کوم خلك چه د قرآن تبلیغ ناقص گنړی او خپل تاویلی ما ویلی کافی گنړی، په لوی نقصان کښې اخته دی۔

۲– یا بلاغ مصدر په معنی د مُبَلِّغ او مُوصِل سره دے۔ یعنی دا کتاب خلکو لره رسونکے دے مراتبو د سعادت (نیك بختئ) ته۔ ددے رجوع اولے معنیٰ ته کیږی۔

۳– یا دا قرآن د رسولو کتاب دے۔ چه پدے سره خلکو ته تبلیغ وکړے شی۔

نو چا چه قرآن بیان کړو گویا که ټول دین ئے ورسولو څکه چه نصاب تبلیغ ئے بیان کړو۔

**وَلِيَعْلَمُوْا** : د قرآن نه روستو چه څوك بیا هم شرك کوی او د الله تعالیٰ په توحید پوهه نشو نو ددهٔ قرآن نهٔ دے لوستلے او د قرآن په غرض او مقصد نهٔ دے پوهه شوے۔

**وَلِيَذَّكَّرَ** : یعنی عقلمند خلك به فکر وکړی چه داسے عذابونه راروان دی او مجرمان به

الله تعالیٰ داسے راګیروی نو راځئ چه د ځان غم وکړو نو د الله تعالیٰ په طاعت کښ به کوشش کوی۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورت رعد

۱- پدے سورت کښ دوه خبرے زیاتے وے یو شکر النعم۔ (د نعمتونو شکر کول) او بل نعمة الرسالة۔
۲- عمومی درے اعتراضات په پیغمبرانو باندے پدے سورت کښ ذکر شویدی۔
۳- د شیطان مناظره د خپلو تابعدارو سره په قیامت کښ ددے سورت خصوصیت دے۔
٤- د کلمه طیبه او کلمه خبیثه مثالونه۔
٥- د ابراهیم علیه السلام واقعه پکښ ذکر ده۔

ختم شو تفسیر د سورة ابراهیم بحمد الله وحسن توفیقه په سخته بارانی ورځ (یوم الاحد) کښ، تاریخ : ۱۸ جمادی الاولیٰ ۱٤۳٦ هـ الموافق : 2015 /3/ 9 ء
وکتبه ابوزهیر سیف الله بشاوری الشیخ آبادی۔

بسم الله الرحمن الرحيم

| ركوعاتها (٦) | (١٥) سورة الحجر مكية (٥٤) | آياتها (٩٩) |
| --- | --- | --- |

سورة الحجر مکي دے، پدے کښې نهه نوی آیتونه او شپږ رکوع دی۔

## تفسیر سورة الحجر:

**نوم** : په دے سورت کښې په (٨٠) آیت کښې د اصحابِ حِجر (یعنی قوم صالح) د کفر او عناد او بیا د دوی بد انجام بیان شوید ے چه د هغے نه ډیر عبرت اخستے کیږی نو ځکه دا نوم ورکړے شوید ے۔

**د نزول زمانه** : قرطبیؒ د تفسیر د امامانو نه پدے باندے اتفاق نقل کړیدے چه دا سورت مکی دے۔ او په مضامینو کښې د سوچ کولو نه دا معلومیږی چه دا به د سورة ابراهیم نه روستو نازل شوے وی، کله چه د رسول الله ﷺ مکے والو ته د خپل دعوت پیش کولو ډیر کلونه تیر شوی وو۔

### مناسبت

١ - مخکښې سورت کښې شکر ته ترغیب وو نو پدے سورت کښې په ناشکره خلکو باندے د عذاب نازلولو تذکره کوی۔

٢ - مخکښې سورت کښې ترغیب وو شکر ته دلته موضوع د خوف او رجاء بیانیږی چه دا دواړه د ایمان شعبې دی۔

### موضوع ددے سورت

١ - زمونږ مشائخ وائی چه پدے سورت کښې اِنْزَالُ الْعَذَابِ عَلَى الْأَقْوَامِ الْمُكَذِّبَةِ الْمُنْكِرِيْنَ لِلتَّوْحِيْدِ ذکر دے۔ یعنی په پخوانو کافرانو باندے عذاب نازل شوے وو کوم چه د توحید نه منکر وو، یعنی تخویف دنیوی په عذاب سره بیانوی۔ لکه په پخوانو چه څنګه نازل شوے وو په موجوده ؤ به هم نازلیږی۔

٢ - دویمه موضوع : ظاهر دا معلومیږی چه پدے سورت کښې د خوف او رجاء موضوع ده، یعنی اے خلکو ! د الله تعالیٰ د عذابونو نه یره وکړئ او دا یره پدے ورکوی چه شرك مه

کوه، او ددے رسول پسے استهزاء مهٔ کوه، ورسره په نافرمانئ باندے تخویف ذکر کوی۔ بیا خوف پدے سورت کښې زیات راغلے دے۔ لکه ﴿ ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ ﴿ وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ ﴾ ﴿ مَا نُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ ﴾ ﴿ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ ﴾ ﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ﴾ دلته ئے اُوه دروازے د جهنم هم د زیات ترهیب دپاره ذکر کړیدی، او د واقعے د لوط ﷺ ترتیب ئے هم بدل کړیدے، د تخویف تکې ئے ترے رامخکښې کړیدی لکه (٦١) آیت کښې وګوره۔ او دغه شان ﴿ دَابِرَ هٰؤُلَاءِ مَقْطُوعٌ﴾ ئے رامخکښې کړیدے او ﴿ وَجَاءَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ ﴾ په ترتیب کښې مقدم دے۔

﴿ فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ﴾ او بیا پدے سورت کښې سخت وعید والا لفظ ﴿ فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ بیا وائی : ﴿ إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ﴾ ټول وعیدونه دی۔ په آخر کښې هم وائی ﴿ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾۔

مفسرین لیکی : په اول کښې هم تهدید او په آخر کښې هم فَكَيْفَ يَهْنَأُ الْعَيْشُ بَيْنَ تَهْدِيدَيْنِ۔ د دوو دهمکیانو ترمینځ به ژوند څنګه مزیدار او په آرام شی۔ (فتح البیان)

مؤمن سرے ددے نه ډیره یره کوی۔

ورسره د قرآن عادت دا دے چه د یرے سره رجاء (امید) هم یو ځای کوی دے دپاره چه په یره سره بنده نا امیدئ ته ونهٔ رسی، نو فرمائی چه الله ارحم الراحمین هم دے۔ هغه داسے ذات دے چه د هغهٔ سره رحمتونه او مهربانیانی دی، د هغے نه مهٔ نا امیده کیږئ لکه وګوره ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ الخ﴾ بیا فرمائی : ﴿ نَبِّئْ عِبَادِي أَنِّي أَنَا الْغَفُورُ الرَّحِيمُ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ الْعَذَابُ الْأَلِيمُ﴾ پدے کښې ګویا که موضوع ذکر ده۔

بیا په واقعه د ابراهیم ﷺ کښې وائی : ﴿ وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ﴾ دا ئے لنډه واقعه راوړیده د هغے مقصد هم دا دے چه د الله تعالیٰ د رحمتونو نه نا امیدی نهٔ ده پکار۔

او په هغے کښې ډیر فوائد دی چه هغه اول کښې ویریدو نو الله تعالیٰ ورله یره په امن بدله کړه نو دغه شان نیکانو باندے به الله تعالیٰ سلامتیا ورکوی۔ ﴿ نُبَشِّرُكَ﴾ ﴿ فَبِمَ تُبَشِّرُونَ﴾ ﴿بَشَّرْنَاكَ﴾ ددے الفاظو تکرار هم اشاره ورکوی چه الله تعالیٰ بندګانو ته زیری او خوشحالیانے ورکوی۔ او بندګانو له پکار دی چه دومره یره پیدا نکړی چه د الله تعالیٰ د رحمت نه نا امیده شی۔ او دومره باغی کیږه مهٔ چه داسے ووائے چه ما باندے الله تعالیٰ رحم نهٔ کوی۔ ﴿ وَمَنْ يَقْنَطُ مِنْ رَحْمَةِ رَبِّهِ إِلَّا الضَّالُّونَ﴾ د الله تعالیٰ د رحمتونو نه نا امیده کیدل خو د ګمراهانو کار دے۔

طریقه د رحمت حاصلولو دا ده چه توبه وباسئ او نیك اعمال شروع کړئ، د الله تعالیٰ د رحمت نه نا امیدی ولے گمراهي ده؟
وجه دا ده چه نا امیده انسان الله تعالیٰ نهٔ پیژني او نهٔ د هغهٔ قدرت پیژني نو گمراه شو۔ او څوك چه د الله شان او قدر او مهرباني پیژني نو هغه نهٔ نا امیده کیږي۔
نو سورت کښې ډیر ښائسته دعوت دے چه د الله تعالیٰ نه امید ساته او تهٔ چه دا بغاوتونه کوے نو ددے وجه دا ده چه ستا د الله تعالیٰ نه د خیرونو امید نشته، که ستا د الله تعالیٰ د رحمتونو امید پیدا شو نو بیا به الله تعالیٰ ته تسلیم شے او د هغه نه به بغاوتونه نکوے۔
او دا بیانوی چه چا کښې خوف پیدا شو نو کفر او شرك او عصیان به ئے ختم شي او که چا کښې امید پیدا شو نو نیك عملونه به پکښې پیدا شي نو ددے وجه نه دا سورت به دغه نیك عملونه هم بیانوی ﴿وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ﴾ عبادت، صبر، قرآن لوستل او اسلام راوړل او تقویٰ پیدا کول دا عملونه به د رجاء پیدا کولو دپاره ذکر کوی۔ امید د هغه چا وی چه عملونه کوی۔
بیا په دویمه او دریمه رکوع کښې یو د الله د تعالیٰ قدرت او د بل د الله تعالیٰ د علم بیان دے۔ دلته دا دلائل عقلیه د رسالت د رشتینوالی او د رسول الله ﷺ د عظمت دپاره بیان شویدی اگرکه د الله تعالیٰ معرفت هم پکښې ذکر دے، وجه دا ده چه مشرکانو د رسول الله ﷺ پورے استهزاء او توقے کولے چه هغه الله تعالیٰ دلته ذکر کړیدی، هغه نه ئے د عذابونو او ملائکو راوستو مطالبے کولے۔ نو مقصد به دا وی چه دغه لوی الله تعالیٰ دا رسول رالیږلے دے۔ دهٔ ته وحی شیطان نهٔ ده راوړے ﴿وَحَفِظْنَاهَا مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ رَّجِيْمٍ﴾۔ (آسمان مونږ د هر شیطان نه محفوظ کړیدے)
او واقعه د آدم ؑ هم ددے مقصد دپاره راوړی چه څوك د الله تعالیٰ د انبیاؑ پورے توقے کوی د هغه به څومره بد انجام وی۔ او مشرکان د ابلیس سره په استهزاء کښې مشابه دی۔ او دغه شان د نورو انبیاؑ په واقعاتو کښې به هم دا مقاصد وی چه ددے انبیاؑ تکذیب او استهزاء کونکی الله تعالیٰ څنگه هلاك کړیدی۔ گویا که دا دریمه موضوع د سورت ده چه هغے ته "شان د رسول الله ﷺ او د هغهٔ عظمت" وائی۔

## خلاصه د سورت

اول کښې ترغیب الی القرآن دے، بیا د کافرانو په اسلام پسے ارمان ذکر دے، بیا د دنیا

تخویف دے، بیا د کافرانو په پیغمبر پسے استهزاګانے دی، دا تر رکوع پورے بیانیږی بیا په یوه رکوع کښې عقلی دلائل دی چه دا ئے د ډیرو فائدو دپاره راوړیدی. بیا ئے واقعات راوړیدی اول د آدم ﷺ بیا ئے په هغے باندے تفریعات ذکر کړیدی، بیا د ابراهیم ﷺ بیا د لوط ﷺ واقعه ده بیا د شعیب ﷺ او بیا د صالح ﷺ د قوم (اصحاب حجر) بیا په آخر د سورت کښې تفریعات دی، لکه د نورو مکی سورتونو په شان په آخر کښې آداب ذکر دی.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| الٓرٰ تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ وَقُرْآنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱﴾ |
| --- |
| ددے حروفو په مراد الله پوهه دے دا آیتونه د کتاب او د قرآن ښکاره دی. |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د قرآن کریم عظمت ذکر دے.

الٓرٰ ، دا حروف مقطعات دی، ددے معنیٰ الله تعالیٰ ته معلومه ده. ((تلك)) سره اشاره ددے سورت آیتونو یا د ټول قرآن آیتونوته ده.

د الکتاب نه مراد قرآن کریم دے، او قرآن مبین د هغے عطف تفسیر دے، او مقصد پدے کښې د قرآن دپاره دوه صفتونه ثابتول دی، یو دا چه دا داسے کتاب دے چه پخوا نه الله تعالیٰ په لوح محفوظ کښې لیکلے دے، او بیا ئے چه کله نازل کړو نو وے لیکلو او بیا به تر قیامته پورے لیکلے کیږی. او دا کمال بل کتاب له نۀ دے ورکړے شوے.

او دا کتاب قرآن هم دے، یعنی د لوستلو کتاب دے، بعض کتابونه لوستلے کیږی لیکن څوك ئے نۀ لیکی او بعض لیکلے کیږی لیکن بیا په یو کوټ کښې پراتۀ وی او په قرآن کښې دا دواړه صفتونه شته.

او قرآن ته د نازلیدو نه مخکښې هم کتاب وویل شو، پدے کښې اشاره ده چه دا کتاب لائق دے چه کتاب ترے جوړ شی او ولیکلے شی. (ابن عاشورؒ)

او قرآن مبین ئے عطف تفسیر پدے وجه راوړو چه د کتاب اطلاق کله په تورات او انجیل هم کیږی نو هغه ترے دلته وباسی.

او کتاب ئے په قرآن مقدم کړو ځکه چه سیاق د کلام کافرانو ته زورنه ورکول دی او هغوی د کتاب عنوان د مخکښې نه پیژندو لکه (اهل کتاب) لیکن د قرآن عنوان ئے نۀ پیژندو چه دا د مسلمانانو کتاب دے، نو پدے وجه ورته وویل شو چه د مسلمانانو دا کتاب

دے او دا قرآن دے چه مسلمانان به ئے لولی، او دا وجه ده چه په سورة النمل کښې ئے د (قرآن) عنوان مخکښې ذکر کړیدے۔ (ابن عاشورؒ)

ددے نه معلومه شوه چه دا تفسير ډیر بعید دے چه څوك وائی : د «الکتاب» نه مراد تورات او انجیل او پخوانی کتابونه دی۔

مُبِیْنٍ: د حق او د باطل، د رشتیا او د دروغو، د دوست او د دشمن وضاحت ئے کړیدے۔ یا ښکاره قرآن دے چه اعجاز ئے دلالت کوی پدے خبره چه دا د الله تعالیٰ د طرفنه راغلے دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه د داسے ښکاره کتاب نه انکار ډیره لویه بی وقوفی ده۔ (ابن عاشورؒ)

| رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ﴿٢﴾ |
|---|
| ډیر کرت خوښوی به کافران ارمان دے چه دوی مسلمانان وے (توحید ئے قبول کړے وے) |
| ذَرْهُمْ يَأْكُلُوْا وَيَتَمَتَّعُوْا وَيُلْهِهِمُ |
| پریده دوی لره چه خوراك اوکړی او مزے واخلی (د دنیا) او غافل کړیدی دوی لره |
| الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿٣﴾ وَمَا |
| امیدونو (د ایمان او طاعت نه) نو زر دے چه دوی به پو هه شی۔ او نۀ دے |
| أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَّعْلُوْمٌ ﴿٤﴾ مَا تَسْبِقُ |
| هلاك کړے مونږ یو کلے مګر د هغے دپاره لیکل دی مقرر۔ نۀ شی مخکښې کیدے |
| مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُوْنَ ﴿٥﴾ |
| یو امت د خپلے نیټے او نۀ شی روستو کیدے۔ |

**تفسیر** : د قرآن صفت ئے وکړو دے دپاره چه د خلکو ورسره مینه پیدا شی نو اُوس مقصد ته راځی۔

رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ: پدے کښې ډیر تفسیرونه دی (۱) یو دا چه علامه قاسمیؒ فرمائی : پدے آیتِ کریمه کښې نبی کریم ﷺ ته زیرے دے چه ستا دین به غالبیږی او یوه ورځ به داسے راځی چه کافران به تمنا کوی چه آرمان دوی د مخکښې نه مسلمانان شوی وے نو دوی به هم نن هغه مقام حاصل کړے وے کوم چه دے مشرانو صحابه ؓ ته حاصل دے، کومو چه په ابتداء کښې د اسلام په دعوت باندے لبیك وونیلو۔ الله تعالیٰ د سابقین اولین دے مقام

طرف ته اشاره کولو سره په سورة الحدید آیت (۱۰) کښې فرمایلي دي:
﴿ لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً ﴾
چه چا د مکې د فتح نه مخکښې د الله په لاره کښې خرچ کړې او جهاد ئې کړے د هغوی مقام ډیر اُوچت دے، نور خلق د هغوی برابریدے نشي).
ددے زیری په ضمن کښې د نبي کریم ﷺ د همت پورته کول هم دي چه ته د دعوت په کار کښې د صبر او استقامت نه کار واخله ځکه چه آخري انجام کښې به غلبه تا ته حاصلیږي. علامه قاسميؒ په محاسن التاویل کښې همدا تفسیر بیان کړیدے.
(۲) لیکن حافظ ابن کثیرؒ او شوکانيؒ وغیرهما لیکلي دي چه کافران به دا تمنا یا خو د مرګ په وخت کوي، یا به د قیامت په ورځ. کله چه حقیقت راښکاره شي او دوی ته د خپل دین او عقیدے د باطل کیدو یقین وشي نو بیا به تمنا کوي.
(۳) د ابن عباس او انس رضی الله عنهم نه روایت شویدے چه الله تعالیٰ چه کله مشرکان او ګناهګار مسلمانان جهنم کښې راجمع کړي نو مشرکان به مسلمانانو ته وائي چه ستاسو توحید (یعني یو اځې د الله بندګي) ستاسو په کار رانغله، نو الله تعالیٰ به غضب کښې راشي او په خپل رحمت او فضل سره به مسلمانان د جهنم نه رابهر کړي. نو په دغه وخت کښې به مشرکان داسے ارمان وکړي چه ارمان چه مونږ کښې هم اسلام وے، مونږ به هم د جهنم نه وتلي وے. (الطبريؒ وابن کثیرؒ وفتح البیان) (الترمذی: ۲۶۳۸ باسناد حسن وظلال الجنة: ۸۴۳ حدیث صحیح) واخرجه البیهقی فی البعث وابن المبارك فی الزهد)
(٤) عِنْدَ الشَّفَاعَةِ: کله چه ملائك او انبیاء علیهم السلام د ګناهګارو مؤمنانو سفارش کوي نو الله تعالیٰ به ئې په شفاعت سره معاف کوي، نو دغه وخت به کافران د اسلام پسے ارمان کوي. (صحیح ابن حبان: ۷۴۳۲ حدیث صحیح)
دا ټول تفسیرونه صحیح دي. په دے ټولو ځایونو کښې د کافرانو ارمان واقع دے.
**رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ**: ربما د تقلیل دپاره وضع شویده او بیا په تکثیر کښې استعمالیږي یعني په ډیرو اوقاتو کښې به کافران د اسلام پسے ارمان کوي. یا دلته هم د تقلیل دپاره استعمال ده. او مطلب دا دے چه کافران به اکثر اوقاتو کښې په عذاب مشغول وي، یا د قیامت اهوالو به په دهشت کښې اچولي وي نو ئه به بیداریږي تردے چه دا ارمان به په کمو اوقاتو کښې کوي. (فتح البیان)
**لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ**: یعني ارمان چه دوی هم مُنقاد وے د الله تعالیٰ د حکم او ضد ئې نه

کولے۔
ذَرۡهُمۡ : پدے کښې کافرانو ته زجر دے په محبت د دنیا چه هغه خوراکونه او د دنیا نورے مزے دی چه ددے په وجه د توحید او د الله تعالیٰ د طاعت او اسلام نه غافل شویدی۔
فرمائی: دوی ږدے د څارووپه شان خوراکونه څکاکونه کوی او بنے مزے دے واخلی، خپل شهوتونه دے پوره کړی، او د دوی د دروغو امید چه د دوی انجام به په خیر سره وی دوی لره د توبے او استغفار او د الله تعالیٰ د ذکر نه غافله کړیدی۔ دوی به زردے چه د قیامت په ورځ خپل بد انجام ته ورسی، او جهنم به د دوی ځای وی۔ یعنی اُوس خو دوی ستا د تابعداریٔ نه دے خواهشاتو او د دنیا مزو منع کړیدی لیکن قیامت کښې به ئے پکار رانشی۔
وَيُلۡهِهِمُ الۡاَمَلُ : یعنی مشغوله کړیدی دوی لره اُوږدو امیدونو او عمر او حاجتونو پوره کیدو، او روغ والی د حالت او صحت، او مالداریٔ د ایمان راوړو نه او د الله تعالیٰ د طاعتونو نه۔
فَسَوۡفَ يَعۡلَمُوۡنَ: اَیۡ عَاقِبَةَ اَمۡرِهِمۡ وَسُوۡءَ صَنِيۡعِهِمۡ۔ زر دے چه دوی به پوهه شی په بد انجام د کار خپل۔
بعض اهل علمو وئیلی دی چه (ذَرۡهُمۡ) یوه دهمکی ده او (فَسَوۡفَ يَعۡلَمُوۡنَ) بله نو بیائے وئیلی دی : [كَيۡفَ يَهۡنَأُ الۡعَيۡشُ بَيۡنَ تَهۡدِيۡدَيۡنِ] ۔ د دوو دهمکیانو ترمینځ ژوند به څه مزیدار شی۔ سیدنا علی بن ابی طالب ﷛ فرمائی : [اِنَّمَا اَخۡشٰى عَلَيۡكُمۡ اثۡنَتَيۡنِ طُوۡلَ الۡاَمَلِ وَاتِّبَاعَ الۡهَوٰى فَاِنَّ الۡاَوَّلَ يُنۡسِى الۡاٰخِرَةَ وَالثَّانِىۡ يَصُدُّ عَنِ الۡحَقِّ ] (شرح السنة للبغوی ٤٠٩٣)۔
زهٔ په تاسو باندے د دوه څیزونو نه یریږم، یو د اُوږدو امیدونو نه او بل د خواهشاتو د تابعداریٔ نه ځکه چه اول آخرت هیروی او دویم د حق نه منع کوی۔ (فتح البیان)
دلته تفسیر مدارك او صاحب د فتح البیان وغیره لیکلی دی :
[تَنۡبِيۡهٌ عَلٰى اَنَّ اِيۡثَارَ التَّلَذُّذِ وَالتَّنَعُّمِ وَمَا يُؤَدِّىۡ اِلَيۡهِ طُوۡلُ الۡاَمَلِ لَيۡسَ مِنۡ اَخۡلَاقِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ]۔
پدے کښې خبرداریے دے پدے خبره چه (د آخرت د کارونو په مقابله کښې) د دنیا خوندونه او مزے حاصلول او اُوږده امیدونه کول د مؤمنانو اخلاق نهٔ دی۔
وَمَا اَهۡلَكۡنَا : سوال پیدا شو چه دا خلك به کله هلاکیږی؟ نو الله فرمائی چه کله مونږ یو کلے د کناهونو په همیشوالی سره هلاك کول غواړونو د هغے یو وخت مقرره وو، دے دپاره چه ددے نه مخکښې دے کلی والو ته د هلاکت په اسبابو کښې د بنه سوچ او فکر کولو موقعه ملاؤ شی، کیدے شی چه د خپلو حرکتونو نه منع شی۔ هیڅ یو ظالم قوم د

هغه مقرر وخت نه مخکښې نهٔ هلاکیږي. او کله چه هغه وخت راشي نو یوه لمحه تاخیر هم نهٔ کیږي ځکه چه حجت پوره شوے وي او د هغوي مخذور ګڼړلو هیڅ سبب باقي نهٔ وي پاتے شوے.

**کِتَابٌ مَّعْلُومٌ** : اَیْ اَجَلٌ مَکْتُوْبٌ مَعْلُوْمٌ ۔ یعنی نیټه وي چه لیکلے شوي وي او معلومه وي.

**مَّا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ** : (مِنْ اُمَّةٍ) فاعل د (تَسْبِقُ) دے.

| |
|---|
| وَقَالُوْا یَا اَیُّهَا الَّذِیْ نُزِّلَ عَلَیْهِ الذِّکْرُ اِنَّکَ |
| او وائي دوي اے هغه سړیه چه نازل شویدے په هغه باندے وحي یقیناً تهٔ |
| لَمَجْنُوْنٌ ﴿٦﴾ لَوْ مَا تَاْتِیْنَا بِالْمَلٰٓئِکَةِ اِنْ کُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ ﴿٧﴾ مَا نُنَزِّلُ |
| خامخا لیونے ئې. ولے نهٔ راولے مونږ ته ملائک که ئې تهٔ د رشتینو نه. نهٔ رالیږو مونږ |
| الْمَلٰٓئِکَةَ اِلَّا بِالْحَقِّ وَمَا کَانُوْا اِذًا مُّنْظَرِیْنَ ﴿٨﴾ |
| ملائک مګر په عذاب سره او نهٔ به وي دوي په دغه وخت کښې مهلت ورکړے شوي. |

<u>**تفسیر**</u> : دا د دوي د (وَیُلْهِهِمُ الْاَمَلُ) بیان دے چه په پیغمبر باندے اعتراض کوي. نو پدے کښې د مکے د کافرانو انتهائي درجه استکبار او عناد بیانیږي چه دوي په نبي کریم ﷺ پورے توقے کولے او وئیل به ئې چه اے ددے خبرے دعوی کونکیه! چه په تا باندے قرآن نازلیږي! تهٔ خو پاګل او لیونے ئې چه مونږ باندے خپل ځان رسول منے او دعوی کوے چه د آسمان نه په تا باندے وحي نازلیږي.

**نُزِّلَ عَلَیْهِ الذِّکْرُ**: یعني ستا د ګمان مطابق چه په تا باندے وحي نازلیږي.

**لَوْ مَا تَاْتِیْنَا بِالْمَلٰٓئِکَةِ** : د مکے کافران د رسول الله ﷺ سره په کبر او عناد کښې راغلل وے وئیل چه که تهٔ رشتینے ئې نو د آسمان نه ملائک ولے نهٔ رالیږے چه ستا د رشتینوالي ګواهي ورکړي، او د تبلیغ او دعوت په کار کښې ستا مدد وکړي. قرآن کریم د دوي دا خبره پدے طریقه هم بیان کړیده چه ﴿لَوْلَا اُنْزِلَ اِلَیْهِ مَلَکٌ فَیَکُوْنَ مَعَهٗ نَذِیْرًا﴾ یعني (ددهٔ دپاره یو ملائک ولے نهٔ رالیږلے شي چه ددهٔ سره په تبلیغ او انذار کښې کار وکړي). (الفرقان : ۷)

او فرعون د موسیٰ علیه السلام په باره کښې وئیلي وو : ﴿فَلَوْلَا اُلْقِیَ عَلَیْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ جَآءَ مَعَهُ

الْمَلٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِیْنَ﴾ چه (دهٔ دپاره د سروزرو بنګړی ولې نهٔ شي نازلیدې، یا ددهٔ سره صف ترونکي ملائك ولې نهٔ راځي). (الزخرف : ۵۳).

مَا نُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ : پدې کښې ورته جواب ورکوی او د دوی کبر او عناد رد کوی چه ملائك د تبلیغ او دعوت دپاره خو نهٔ راځي، البته په ګناهګار قومونو باندې د الله تعالیٰ د عذاب نازلولو دپاره راځي. او په هغه وخت به هغوی ته مهلت نهٔ ورکړے کیږي. لکه چه الله تعالیٰ په سورة الفرقان آیت (۲۲) کښې فرمایلي دی : ﴿يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا﴾ چه (په کومه ورځ چه دا خلق ملائك اُووینی په هغه ورځ به دې ګناهګارو له څه خوشحالي نهٔ وي، او ملائك به دوی ته وائي چه نن جنت او د هغې نعمتونه په تاسو حرام کړے شویدي).

نو د حق نه مراد عذاب دے. (قاله مجاهدؒ) مطلب دا چه ملائك چه راشي او بیا انسانان خبره ونهٔ مني نو سمدست پرې عذاب راځي بیا ورته مهلت نهٔ ورکړے کیږي. ځکه چه بیا به دوی ته غیبي مخلوق ښکاره شي، او د مشاهدې نه په انکار سره سمدستي عذاب راځي.او که د خپل ځان په شان بشر رسول نه انکار وکړي نو الله تعالیٰ ورته مهلت ورکوی، او په آخر کښې پرې عذاب راولي.

۲- یا د حق نه مراد وحي ده یعني ملائك خو صرف وحي راوړي هغه انسانانو ته پیغمبران نشي جوړیدې.

| إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴿۹﴾ |
|---|
| یقیناً موږ نازل کړیده وحي او یقیناً مونږه دې لره حفاظت کونکي یو. |

**تفسیر** : پدې آیتِ کریمه کښې د ﴿إِنَّكَ لَمَجْنُوْنٌ﴾ جواب دے او د هغوی د استهزاء رد دے او هغوی ته زجر او دهمکي ده. یعني که د مکې کافران ددې قرآن نه انکار کوي او ددې په وجه تا لیونے ګڼري نو د چا نقصان به وکړي، ددې په خلاف به د دوی هیڅ سازش فائده نهٔ ورکوی، ځکه چه دا د الله تعالیٰ کلام دے، هغه په خپل رسول ﷺ باندې نازل کړیدے او هغه ددې حفاظت کوي. پدې کښې نبي کریم ﷺ دپاره تسلي هم ده او د ټولو مسلمانانو دپاره ډیر لوئی زیرے دے چه دا د هدایت مشعل به هیڅوك نشي مړ کولے، ددهٔ عالمي نُور به تر قیامته پورې انسانانو ته لاره ښائي. تیارې به ختمیږي، طوفان به راپورته کیږي،

لوني لوني سازشونه به كيږي، ليكن ترقيامت راتللو پورې به دا قرآن بغير د څه ادنیٰ تحريف او تغير نه باقي پاتې وي. مفسرينو ليكلي دي چه په آيت كښې دويمه جمله ﴿ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴾ دلالت كوي چه الله تعالىٰ به ددې قرآن تر قيامته پورې حفاظت كوي.

الذِّكْرَ: ذكر نه مراد قرآن كريم دې. او مطلب دا دې چه عذابونه څه له غواړئ، قرآن الله تعالىٰ د نصيحت كتاب راليږلې دې راشئ ددې نه فائده واخلئ، او ددې ختمول څوك نشي كولې او نۀ ئې مقابله كولې شي ځكه چه الله تعالىٰ ئې حفاظت كوي.

لَحٰفِظُوْنَ : ۱- دا حفاظت د تحريف او تبديل نه دې. او دا دليل دې چه دا د الله تعالىٰ كتاب دې ځكه كه د انسان كتاب وې نو ضرور به پكښې زيادت او نقصان راتللې شوې لكه د عامو انسانانو په كلام كښې داسې كار كيږي. ۲- يا د شيطانانو نه محفوظ دې.

۳- يا تر قيامته پورې به باقي معجزه وي

٤- يا د مقابلې نه محفوظ دې چه هيڅوك د انسانانو او پيريانو نه ددې په مقابله قادر نۀ دې. اګركه په يو آيت سره وي. (فتح البيان).

امام مسلم د عياض رضي الله عنه نه روايت كړيدې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د الله تعالىٰ دا ارشاد ذكر كړو (يعني حديث قدسي دې) [نَزَّلْتُ عَلَيْكَ قُرْآنًا لَا يَغْسِلُهُ الْمَاءُ] - ما په تا باندې داسې قرآن نازل كړو چه اُوبه ئې نشي وينځلې). (مسلم رقم الحديث : ٦٣)

يعني څوك ئې نشي منسوخ كولې او نۀ پكښې تحريف لفظي كولې شي. الله تعالىٰ ددې د حفاظت دپاره په امت كښې راسخين علماء مقرر كړل چه دا يادوي او ددې حفاظت كوي او ددې نه به تر قيامته پورې مدافعت كوي.

## د عبرت قصه

يحيى بن اكثم وائي : د مامون الرشيد د حكومت په زمانه كښې په هر كال د علماؤ د تبادلۀ خيال يو مجلس لګيدو نو په نورو خلكو كښې يو يهودي په ښائسته جامو او مزيدارې خوشبوئي لګولو سره راننوتو نو ډيرې ښائسته خبرې ئې وكړې، كله چه مجلس ختم شو نو مامون ورته ووئيل چه اسلام راوړه او د ډيرو تحفو وعده ئې ورسره وكړه ليكن هغه انكار وكړو چه زۀ د خپل پلار نيكه په دين باندې يم، يو كال روستو مسلمان شو او دغه مجلس ته حاضر شو نو مامون ورته ووئيل چه ستا د اسلام څه سبب وو؟

هغه ووئيل چه ما ووئيل چه زۀ په دينونو باندې امتحان كوم چه كوم دين محفوظ او حق دې؟ نو ما په ښائسته خطونو سره درې درې نسخې د تورات او انجيل او قرآن نه تيارې

کړے، او هر یو کښې مے تبدیل او تغییر وکړو، کله چه مے تورات او انجیل یهود او نصاراؤ ته وړاندې کړو نو هغوی ډیر په شوق واخستو چه ډیر مزیدار لیکلے شویدے، او قرآن مے د مسلمانانو مدرسے ته یوړو نو هغوی واړو راواړو چه لیکل خو ډیر ښائسته شویدی لیکن پدے کښې خو د تبدیلۍ شویده نو وے ویل چه سړے وئیسئ نو ما ورته وویل چه ما په دینونو امتحان کولو مگر ما ته پته ولگیده چه اسلام حق دین او قرآن د الله حق کتاب دے۔ نو دا زما سبب د اسلام راوړو شو۔

یحیی بن اکثم وائی چه ما په دغه کال حج کولو نو د سفیان بن عیینة سره ملاؤ شوم او دا قصه مے ورته ذکر کړه نو هغه وویل چه ددے قصے مصداق د الله په کتاب کښې موجود دے، ما وویل کوم ځای؟ نو هغه وویل چه یهود او نصاراؤ ته د خپلو خپلو کتابونو د حفاظت ذمه واری سپارلے شوے وه نو هغوی ضائع کړو ﴿بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ﴾ او د قرآن ذمه واری الله تعالیٰ واخسته (وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ) نو دا محفوظ پاتے شو۔

(تفسیر القرطبی ۱۰/۶)

او لکه څنگه چه الله تعالیٰ د قرآن کریم د حفاظت ذمه واری اخستے ده نو دغه شان ئے د احادیثو د نبی کریم ﷺ د حفاظت ذمه واری هم اخستے ده ځکه چه ذکر لفظ دواړو ته شامل دے، پدے وجه الله تعالیٰ داسے علماء په امت کښې پیدا کړل چه د رسول الله ﷺ احادیث ئے چانړ کړل او په هغے کښې ئے د صحیح احادیثو نه ضعیف او موضوع روایات داسے جدا کړل لکه څنگه چه د وړو نه وښته جدا کولے شی۔ او دا ښکاره رد دے په شیعه گانو باندے هم چه هغوی دا قرآن مُحرّف (تبدیل شده) کتاب گڼړی لکه چه د هغوی کتابونه پدے باندے گواه دی۔

| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِي شِيَعِ الْأَوَّلِينَ ﴿١٠﴾ وَمَا |
|---|
| او یقیناً لیږلی دی مونږ (پیغمبران) مخکښې ستا نه په ډلو مخکنو کښې او نهٔ |
| يَأْتِيهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿١١﴾ كَذَٰلِكَ |
| به راتلو دوی ته یو رسول مگر وو به دوی چه په هغه پورے به ئے توقے کولے۔ دغسے |
| نَسْلُكُهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٢﴾ لَا يُؤْمِنُونَ بِهِ وَقَدْ |
| داخلوو مونږ دا په زړونو د مجرمانو کښې۔ ایمان نهٔ راوړی پدے باندے او یقیناً |

| خَلَتْ سُنَّةُ الْأَوَّلِيْنَ ﴿۱۳﴾ وَلَوْ فَتَحْنَا |
|---|
| تیره شویده طریقه د پخوانو خلقو (په عذاب د الله کښې). او که چرے راکولاؤه کړو مونږ |
| عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ السَّمَآءِ فَظَلُّوْا فِيْهِ يَعْرُجُوْنَ ﴿۱۴﴾ |
| په دوی باندے دروازه د آسمان نه او اُوګرځی دوی په هغے کښې چه اُوخیژی |
| لَقَالُوْا إِنَّمَا سُكِّرَتْ أَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ |
| خامخا وائی به دوی یقیناً بند کړے شویدی نظرونه زمونږ بلکه مونږ |
| قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ ﴿۱۵﴾ |
| داسے قوم یو چه جادو راباندے کړے شویدے۔ |

**تفسیر** : پدے کښې تسلی ده نبی کریم ﷺ ته سره د عذاب ذکر کولو نه منکرینو ته، چه که د قریش کافران ستا تکذیب کوی او په تا پورے توقے کوی نو پدے سره تا لره خفه کیدل نۀ دی پکار. دا خو همیشه د قومونو عادت راروان دے چه کله هم یو رسول یو قوم ته راغلے دے نو هغوی د هغه پورے توقے کړیدی۔

د أَرْسَلْنَا: مفعول پټ دے. اَیْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا. مونږ لیږلی دی ډیر پیغمبران۔

شِيَعِ : جمع د شیعة ده، اتباع او انصارو (مددګارو) ته وائی. او هر قوم چه په یو کار راجمع شی هغوی ته شیعه وائی، بیا دا دیو خاص ډلے نوم ګرځیدلے دے۔

كَذٰلِكَ نَسْلُكُهٗ : (۱) (ه) ضمیر استهزاء او ضلال د خلکو ته راجع دے. یعنی لکه څنګه چه مونږ ددے تیر شوی مجرمانو په زړونو کښې ګمراهی داخله کړے وه، دغه شان د مکے کافرانو په زړونو کښې به هم کفر او ګمراهی داخلوو. بیا به دوی پدے قرآن ایمان نۀ راوړی. او همیشه نه د الله تعالیٰ همدا سنت او طریقه جاری ده چه هغه دغه شان قومونه هلاکوی او خپل رسولان او په هغوی باندے ایمان راوړنکی غالبه کوی۔

(۲) (ه) ضمیر قرآن ته راجع دے (لکه دا سورة شعراء کښې هم راغلے دے) یعنی مونږ دا قرآن په زړونو د مجرمانو کښې ننباسو۔

د قرآن په زړۀ کښې ننباسل دوه قسمه دی (۱) یو دا چه قرآن زړه ته ننوزی پداسے حال کښې چه په هغے باندے زړه تکذیب کوی او نفرت ترے کوی چه دا څنګه خبرے دی. (۲)

دویم داخلول په داسې حال کښې چه په هغې باندې تصدیق کوي نو د مؤمنانو په زړونو کښې قرآن د تصدیق په حالت کښې داخلوي او د کافرانو په زړه کښې ترې نفرت پیدا کوي.
نو معنیٰ دا ده چه دغه شان مونږ داخلوو دا قرآن په زړونو د مجرمانو کښې په داسې حال کښې چه ایمان به پرې نهٔ راوړي یعنې تکذیب به ئې کوي. لکه دا طریقه د الله تعالیٰ د پخوانو کفارو سره هم تیره شویده. یعنې الله تعالیٰ دا کافران په قرآن کریم باندې ښهٔ پوهه کړي دي دپاره چه د دوي هیڅ حجت باقي پاتې نشي او الله تعالیٰ دوي ته دا خودل غواړي چه دوي ښه په قصد سره په معاندانه توګه سره د قرآن نه انکار کړیدې.
وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ : پدې آیت کښې زجر دې په انکار د معجزاتو سره او د کافرانو سخت ضد او عناد بیانوي. پدې کښې دوه تفسیره دي :
(۱) ظَلُّوا کښې ضمیر ملائکو ته راجع دې، یعنې که د رسول الله ﷺ معجزه دا جوړه شي چه دې معاندینو کافرانو ته ملائك ښکاره د آسمان نه راکوز شي او دوي ئې ویني او بیا دغه ملائك بیرته د آسمان دروازې ته وخیژي نو بیا هم دا مشرکان منونکي نهٔ دي بلکه دا به وائي چه زمونږ نظر بندي شویده او په مونږ باندې جادو شویدې او په حقیقت کښې دا هیڅ نشته.
(۲) یا د ظَلُّوا ضمیر مشرکانو ته راجع دې یعنې که مونږ مشرکانو ته د آسمان نه یوه دروازه راکولاوه کړو نو دوي پکښې په رڼرا ورځ بره وخیژي او هلته عجائبات او غرائب ویني چه د هغې دا نتیجه کیدل پکار دي چه دوي فوراً ایمان راوړي لیکن بیا به هم دوي وائي چه محمد (ﷺ) په مونږ باندې جادو کړیدې پدې وجه مونږ ته حقائق بدل ښکاره کیږي. او دا تفسیر غوره دې ځکه چه پدې کښې د دوي کبر او کفر او ضد او د معجزاتو نه د زیات انکار بیان دې.
سُكِّرَتْ أَبْصَارُنَا : یعنې یا خو وروکې جادو شویدې چه مونږ بره نهٔ یو راخیژولې شوي، صرف نظر بندي شویده چه مونږ ته داسې ښکاري چه بره راختلي یو. یا لوی جادو شویدې چه بره راخیژولې شوي یو لیکن د جادو په زور سره. یعنې په هر حال کښې دوي انکار کوي.

| وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّزَيَّنّٰهَا |
|---|
| او یقیناً مونږه پیدا کړیدي په آسمان کښې غټ ستوري او ښائسته کړیدې مونږ |

| لِلنَّاظِرِينَ ﴿١٦﴾ وَحَفِظْنَاهَا مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ ﴿١٧﴾ إِلَّا مَنِ |
|---|
| دپاره د کتونکو۔ او ساتلے دے مونږ دا د هر شیطان رټلی شوی نه۔ مګر هغه څوك |
| اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ مُّبِينٌ ﴿١٨﴾ وَالْأَرْضَ |
| چه په غلا باندے غوږ کیدی نو وروپسے شی د هغه پسے شغله ښکاره۔ او زمکه |
| مَدَدْنَاهَا وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْبَتْنَا |
| خوره کړیده مونږ او اچولی دی مونږ پدے کښې کلك غرونه او رازرغون کړیدی مونږ |
| فِيهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُونٍ ﴿١٩﴾ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ |
| پدے کښې هر شے وزن (اندازه) کړے شوے۔ او ګرځولی مونږ تاسو لره پدے کښې اسباب د ژوند |
| وَمَنْ لَّسْتُمْ لَهُ بِرَازِقِينَ ﴿٢٠﴾ وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا عِنْدَنَا |
| او هغه څوك چه نهٔ یئ تاسو هغهٔ ته روزی ورکونکی۔ او نشته یو شے مګر مونږ سره |
| خَزَائِنُهُ وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ ﴿٢١﴾ |
| خزانے د هغے دی او نهٔ رالیږو مونږ هغے لره مګر په اندازه معلومه۔ |

**تفسیر** : پدے رکوع کښې لس عقلی دلیلونه ذکر کیږی چه پدے دلیلونو کښې د الله تعالیٰ د قدرت او د هغهٔ د علم اتلس صفتونه ذکر شویدی۔ ددے عقلی دلیلونو ذکر کولو دلته یو څو فائدے دی ❁ یو بیان د معرفت د الله تعالیٰ او د عظمت د هغهٔ دے۔

❁ او بل د رسول الله ﷺ شان بیانول دی چه دا رسول یو داسے عظیم ذات رالیږلے دے چه د هغهٔ دا دا صفتونه دی۔ نو د لوی ذات د رسول پسے استهزاء کول ډیر لوی جرم دے۔

❁ دارنګه پدے آیتونو کښې د قرآن کریم عظمت هم دے چه دا رښتینی کتاب دے، او شیطانانو دا نهٔ دے راوړے بلکه الله تعالیٰ د شیطانانو نه محفوظ ساتلے دے نو دا به د (إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ) سره لګیږی چه ددے کتاب نه فائده واخلئ دا رښتینی کتاب دے۔

❁ او بله عجیبه فائده پکښې دا ده چه مشرکانو ددے پیغمبر نه تکبر کړے وو چه مونږ به آیا ددے کمزوری انسان خبره وومنو؟ نو الله تعالیٰ د خپل عظمت آیتونه راولیږل چه لوی والے د الله تعالیٰ د شان سره لائق دے۔

❁ صاحب د فتح البیان او قرطبیؒ وائي: مخکنو آیتونو کښې الله تعالیٰ د کفارو کفر او د هغوی کمزور والے او د هغوی د بتانو عجز بیان کړو نو اُوس د خپل قدرت عجائب او د پیدائش ناشنا کارونه بیانوی او پدے سره د خپل وحدانیت دپاره دلیل نیسی۔ نو دا د توحید دلیلونه هم دی۔

دلته د ((بروج)) نه مراد نمر او سپوږمئ او د اُوه حرکت کونکو ستورو هغه منازل دی چه د هغے شمار د تجربے مطابق دولس دی۔

د عربو په نیز د پخوا زمانے نه د ستورو د منازلو علم ډیر مفید گڼلے کیدو۔ د هغے په ذریعه لارے، وختونه او زرخیزی او قحط سالی وغیره معلومول۔ ددے علم والو دا خیال دے چه د آسمان دولس برجونه دی، د هغے نه هر درے برجونه د عناصر اربعه (اُور، اُوبه، خاوره، هوا) نه د یو د مزاج مطابق واقع شویدے۔

دا هم وائی چه دا دولس برجونه په اته ویشت (۲۸) منزلونو کښې تقسیم شویدی۔ د هر برج دوه منزله او دریمه حصه منزل دے۔ او د آسمان همدغه دولس برجونه د اُوه متحرك ستورو منازل دی۔ ددے ستورو او د دوی په منازلو کښې د دوی په گردش سره موسمی تبدیلی، یخنی، گرمی، منے، سپرلے، او ډیر مفید معلومات حاصلیږی۔ نمر او سپوږمئ د آسمان ډول هم دے۔ او د فکر والو دپاره د فکر او نظر سامان هم تیاروی۔

حسنؒ او قتادهؒ فرمائی: د بروج نه مراد لوی ستوری دی او دے ته بروج ځکه وائی چه بروج په معنیٰ د ظهور سره دے، او دا هم ښکاره دی او پورته دی۔

او مجاهدؒ وائی چه د بروج نه مراد تول ستوری دی۔

او ددے برجونو نومونه دا دی: حمل، ثور، جوزاء، سرطان، اسد، سنبله، میزان، عقرب، قوس، جدی، دلو، حوت۔ او ددے برجونو دپاره (۳۶۰) شپیته درجے دی، د هر برج دیرش درجے دی چه نمر ئے په کال کښې یو ځل قطع کوی او پدے سره د آسمان دوره (گردش) پوره کیږی، او سپوږمئ ئے په (۲۸) ورځو کښې قطع کوی۔ (القرطبی وفتح البیان)

لِلنَّاظِرِيْنَ: ۱-یعنی څوك چه آسمان ته گوری۔

۲- یا نظر په معنیٰ د استدلال سره دے یعنی لِلْمُسْتَدِلِّيْنَ بِهَا عَلٰى تَوْحِيْدِ خَالِقِهَا۔ یعنی څوك چه ددے په عجائباتو کښې فکر کوی او پدے سره د توحید د خالق دپاره دلیل نیسی۔

اهل علم وائی: که د آسمان رنگ ددے نه بدل وے نو انسان به د هغے لاندے تنگیدلے خو الله تعالیٰ داسے رنگ ورکړو چه د هر چا د مزاج موافق دے۔

وَحَفِظْنَاهَا : الله تعالىٰ آسمان لره د مردود شیطان د رسیدلو نه محفوظ ساتلے دے دے دپاره چه ملأ اعلىٰ (د اُوچت جماعت د ملائکو) خبرے وانهٔ وری۔ او که د دوی نه کوم یو تمرد (سرکشی) اختیاروی او مخکښ تلو سره د غوږ کیخودو کوشش کوی نو د اُور انګار (شعله) د هغه پسے راخوشے کیږی او هغه ختموی۔

❁ د حسن بصریؒ وغیره همدا رائے ده چه مخکښ ددے نه چه دوی د ملأ اعلىٰ نه کومه آوریدلے شوے خبره خپل روستو پیری ته ووائی نو بَله لمبه هغه لره وژنی، یعنی پیرے خپل ملګری ته د آسمان هیڅ خبره نشی رسولے بلکه هغه پدے کار سره د خبرے رسولو نه مخکښ مخکښ وژلے کیږی۔

❁ لیکن په صحیح بخاری کتاب التوحید باب :۳۲) کښ د ابو هریره ﷺ نه د نقل شوی حدیث نه ثابتیږی چه کله خو هغه خپل روستو پیری ته آوریدلے شوے خبره ورسوی، بیا بله لمبه د هغه پسے راخوشے شی او هغه قتل کړی، او کله د خبرے د ویلو نه مخکښ هغه لره بَله لمبه قتل کړی۔ (صحیح بخاری :۴۷۰۱ بترقیم فتح الباری)

امام شوکانیؒ د حسن بصریؒ قول ته ترجیح ورکړیده چه همدا وجه ده چه دآسمان خبرونه د انبیاؤ او رسولانو نه غیر نورو ته نهٔ حاصلیږی، او پدے وجه د کهانت هیڅ حقیقت نشته دے۔

لیکن صحیح خبره هغه ده چه کوم په حدیث کښ راغلے ده، او دا کار د رسول الله ﷺ په زمانه کښ زیات کیدو لیکن الله تعالىٰ په شیطانان آسمان ته نهٔ پریخوستل دے دپاره چه د رسول الله ﷺ د وحی او د کهانت او جادو فرق وشی، پدے وجه پیریان ګرځیدل چه دا څه شویدی چه مونږ د آسمان نه بند کړے شوی یو لکه هغه واقعات زمونږ په کتاب ((سیرت الرسول)) کښ تفصیلًا وګورئ۔

پدے آیت کښ هم اشارات دی چه دا رسول د الله تعالىٰ حق رسول دے، دهٔ ته وحی د بَره نه راغلے ده او شیطانانو دا خبرے نهٔ دی راوړی، ﴿وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيَاطِينُ﴾ څکه چه شیطانان بره آسمان ته نشی ختلے که وخیژی نو بره ملائک ئے د اُور په شعلو باندے ولی۔ نو پدے کښ هم د هغوی د استهزاء رد دے۔

مَّوْزُوْن: ۱- اَیْ مُقَدَّرٌ مَعْلُوْمٌ- یعنی په اندازه معلومه۔

۲- مَوْزُوْنٌ بِمِیْزَانِ الْحِکْمَةِ وَمُقَدَّرٌ بِقَدْرِ الْحَاجَةِ۔

د حکمة سره مناسب او د حاجت په اندازه۔

۳- اَلْمَحْكُوْمُ بِحُسْنِهٖ. چه د هغې په حسن او ښائسته بانديے فيصله شوې وي. (فتح البيان)
يعنى پديے كښې څوك نۀ كمى راوستے شي او نۀ زياتے، او په كوم هيئت او كيفيت چه هغه پيدا كړيدي، د هغې نه غوره هيڅ كيفيت نشى كيدے.
مَعَايِشَ : يعنى اسباب د ژوند، يعنى د خوراك او څكاك سامان.
وَمَنْ لَّسْتُمْ لَهٗ بِرَازِقِيْنَ: ❁ دا عطف دے په (مَعَايِشَ) باندے يعنى الله تاسو لره هغه څوك هم پيدا كړيدى چه تاسو ورته روزى نۀ وركوئ بلكه الله تعالىٰ ئے رازق دے چه هغه غلامان، خادمان، څاروى او اولاد دى. فائدے ترے تاسو اخلئ: او رزق ورته الله وركوى
❁ يا دا عطف دے د (لَكُمْ) په ضمير باندے، تقدير داسے دے : (وَجَعَلْنَا لِمَنْ لَّسْتُمْ لَهٗ بِرَازِقِيْنَ فِيْهَا مَعَايِشَ) . او مونږ په زمكه كښې هغه چا له هم اسباب د ژوند جوړ كړيدى چه تاسو هغوى ته رزق نۀ وركوئ چه هغه حيوانات او خادمان او غلامان او اولاد دى بلكه الله تعالىٰ هغوى ته رزق وركوى لكه څنګه ئے چه تاسو ته دركوى.
وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ : دا بل دليل د قدرت دے چه د الله تعالىٰ سره د هر شى خزانه ده، هغه چه څه غواړى او څومره غواړى ښكاره كوى، ليكن هغه د آسمان نه زمكے ته د خپلو بندګانو دپاره دومره نازلوى چه د هغه مشيت ئے تقاضا كوى.
الله تعالىٰ په سورة الشورىٰ (۲۷) آيت كښې فرمايلى دى :
﴿ وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ ﴾
چه كه الله تعالىٰ د خپلو بندګانو دپاره رزق ښه فراخولے نو دوى به په زمكه كښې سركشى كولے، ليكن د خپل مشيت مطابق چه څومره غواړى هغومره وركوى.
دا آيت دليل دے چه څوك دا عقيده لرى چه د الله تعالىٰ د خزانو اختيار يو نبى يا ولى له وركړے شويدے نو هغه مشرك دے لكه جاهلان خلك په لاهور كښې على هجويرى ته داتا ګنج بخش وائى. (يعنى خزانے وركونكے)

| وَاَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ فَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً |
| --- |
| او ليږلى دى مونږ هواګانے پورته كونكے وريځو لره نو راليږو د آسمان نه اوبه |
| فَاَسْقَيْنٰكُمُوْهُ وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ بِخٰزِنِيْنَ ﴿۲۲﴾ وَاِنَّا لَنَحْنُ |
| پس څكوو تاسو ته هغه او نۀ يئ تاسو هغې لره جمع كونكى. او يقيناً خامخا مونږ |

| نُحۡیِ وَنُمِیۡتُ وَنَحۡنُ الۡوٰرِثُوۡنَ ﴿۲۳﴾ وَلَقَدۡ عَلِمۡنَا |
|---|
| ژوندی کول کوو او مړهٔ کول کوو او مونږ آخری مالکان یو۔ او یقیناً معلوم دی مونږ ته |
| الۡمُسۡتَقۡدِمِیۡنَ مِنۡکُمۡ وَلَقَدۡ عَلِمۡنَا الۡمُسۡتَاۡخِرِیۡنَ ﴿۲۴﴾ |
| مخکښ کیدونکی ستاسو نه او یقیناً معلوم دی مونږ ته روستو کیدونکی |
| وَاِنَّ رَبَّکَ هُوَ یَحۡشُرُهُمۡ ؕ اِنَّهٗ حَکِیۡمٌ عَلِیۡمٌ ﴿۲۵﴾ |
| او یقیناً رب ستا هغه به راجمع کړی دوی لره، یقیناً هغه حکمتونو والا پوهه دے۔ |

**تفسیر:** لَوَاقِحَ : جمع د لَاقِحَةٌ او لَاقِحٌ ده، په معنیٰ د مُلۡقِحَةٌ سره ده، یعنی بلاربه ونکے۔ او پورته کونکے۔ ځکه چه لاقح خپله حاملے ته وائی، او دلته ئے دا معنیٰ نهٔ صحیح کیږی۔

مطلب دا چه الله تعالیٰ په وریځه پسے چه خالصه هوا وی یخه هوا راولیږی نو په هغے کښې یخوالے زیات کړی، هغه بلاربه شی، حامله شی نو هغه په باران سره بدله شی او د هغے نه اُوبه راروانے شی بیا هغه په زمکه راوروی چه په هغے سره انسان خپله هم خړوبه کیږی او خپلے زمکے او ځاروی هم خړوبه کوی۔

وَمَاۤ اَنۡتُمۡ لَهٗ بِخٰزِنِیۡنَ : یعنی د باران د نازلیدو نه روستو تاسو دا په کندو او غرونو او چینو او کوهیانو کښې د آینده دپاره د محفوظ ساتلو قدرت نهٔ لرئ، دا خو صرف الله تعالیٰ دے چه پدے تمامو کارونو قادر دے۔ که الله داسے کار کړے وے چه اُوبه ئے په یو ځل انسانانو ته ورکړے وے چه دا ځانله د میاشت یا د کال دپاره وساتئ نو انسانانو به دا کوم ځای ساتلے، دا به ترے سخا کیدے، یا به گرمیدے، او تول عمر به ئے ددے په حفاظت کښې تیرولے، دغه شان روتئ واخله۔ دا ډیر عجیب نعمت دے۔

وَاِنَّا لَنَحۡنُ نُحۡیِ : هغه ژوندی کول کوی او هغه مړهٔ کول کوی، او د تمامو مخلوقاتو د هلاکت نه روستو صرف د هغه ذات به باقی پاتے وی۔

الۡوٰرِثُوۡنَ نه معلومه وه چه میراث د زمکے صرف الله تعالیٰ ته پاتے دے۔ وارث آخری مالك ته وائی۔ نو کوم خلك چه دا وائی چه «الله نبی وارث» نو دا شرکی کلمه ده۔

وَلَقَدۡ عَلِمۡنَا الۡمُسۡتَقۡدِمِیۡنَ : ۱ – مستقدمین مخکنی امتونه او مستأخرین روستنی امتونه۔ یعنی امة محمد ﷺ ۲ – په صحیح حدیث کښې دی : چه د رسول الله ﷺ پسے

به یوے ښائسته زنانه مونځ کولو نو صحابه کرامؓ به مخکنو صفتونو ته تلل دے دپاره چه پدے زنانه ئے نظر ونهٔ لګی او منافقان به روستو روستو صفونو کښ ودریدل دے دپاره چه د رکوع په حالت کښ دے زنانه ته وګوری نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو. (النسائی: ۸۷۰، والترمذی (۳۱۲۲) حدیث صحیح- البانی) . دا آیت اګر که مکه کښ نازل دے لیکن د مدینے ددے عمل سره موافق شو. نو دا ئے هم مصداق ګرځی.

۳- اَلْمُسْتَقْدِمِیْنَ : مَنْ یُقَدِّمُ الصَّلَاةَ وَمَنْ یُؤَخِّرُ الصَّلَاةَ) څوك چه مونځ مخکښ کوی او څوك ئے روستو کوی. ٤- اَلْمُسْتَقْدِمِیْنَ فِی الطَّاعَةِ وَالْمُسْتَأْخِرِیْنَ فِیْ مَعْصِیَةِ اللّٰهِ)

څوك طاعت او د الله بندګئ ته او د الله په انبیاؤ باندے ایمان راوړو ته مخکښ کیږی او څوك د الله تعالیٰ په نافرمانئ کښ روستو کیږی.

۵- مخکنی صفونه د جهاد او روستنی صفونه.

٦- مخکنی مړهٔ او اُوس ژوندی.

۷- هغه څوك چه مخکښ تیر شویدی او هغه چه روستو دی یعنی پیدا شوی نهٔ دی. دا ټول مصداقات په کښ داخل دی. دا دلیل دے چه د الله تعالیٰ د علم نه هیڅ شے بهر نهٔ دے. نو مخکښ آیت کښ د الله تعالیٰ قدرت او طاقت ذکر شو او دلته د الله تعالیٰ علم ذکر دے.

وَإِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ : او د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ اول او آخر ټول انسانان د دوی د ډیر والی باوجود د محشر په میدان کښ راجمع کوی، او د خپل علم او حکمت مطابق به د دوی سره معامله کوی، په کوم سړی کښ چه څومره بد صفات پټ دی د هغهٔ نه هیڅ هم پټ نهٔ دی، ټولو ته به د هغوی د عملونو مطابق بدله ورکوی.

| وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿۲۶﴾ وَالْجَآنَّ |
|---|
| او یقیناً پیدا کړیدے مونږ انسان لره د کړنګیدونکے د خټے زړے شوے نه او پلار د پیریانو |
| خَلَقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ﴿۲۷﴾ |
| پیدا کړیدے مونږ مخکښ (د آدم علیه السلام نه) د اُور ګرم لوګی والا نه. |

**تفسیر**: پدے آیت کښ د آدم علیه السلام او د ابلیس واقعه راوړی او پدے کښ ۱- یو مقصد: مَآلُ مَنِ اسْتَكْبَرَ اَلتَّمَنِّیْ وَالْحَسْرَةُ بیانوی. یعنی چا چه تکبر کړیدے د هغه انجام حسرت او افسوس جوړ شویدے لکه ابلیس ته وګورئ. انجام ئے خراب شو. نو پدے کښ منع ده د

تکبر نه چه انجام به مو خراب شي. ۲- پدے کښې تَشْبِيْهُ الْمُشْرِكِيْنَ بِإِبْلِيْسَ فِي الْاِسْتِهْزَاءِ بِالرَّسُوْلِ دے یعنی مشرکان د ابلیس سره مشابه دي په استهزاء د انبياؤ کښې۔ ابلیس د آدم ﷺ پسے استهزاء او مسخرے وکړے او دا مشرکان د رسول الله ﷺ پسے استهزاء کوی۔
دارنګه ابلیس پریشانه شویدے او الله تعالیٰ پرے لعنت کړیدے نو دغه شان په مستهزئینو د رسول الله ﷺ باندے به لعنت کیږی ﴿وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾
دارنګه پدے کښې تشبیه پدے طریقه ده: لکه څنګه چه ابلیس د ملائکو د جماعت نه جدا شوے وو نو دغه شان مشرکان د مسلمانانو د جماعت نه جدا شو ﴿ رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ﴾ ۔ لکه پدے باندے دا الفاظ دلالت کوی ﴿ اَبٰى اَنْ يَّكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِيْنَ﴾ هر لفظ د موضوع د سورت سره برابر وی۔
مفسر ابوالسعودؒ وائی: پدے دواړو آیتونو کښې هم الله تعالیٰ په خپل کمالِ قدرت باندے دلیل نیولے دے، او د بعث بعد الموت عقیده باندے ئے عقلی دلیل قائم کړیدے چه کومے اغږلے شوے خټې چه د آدم ﷺ د پیدائش په وخت تکوینی عمل او روح قبول کړو هغه یقیناً د الله په حکم سره دویم ځلی به هغه خبرے قبلوی او ژوندی کیدو سره به د حشر میدان ته رامنڅے وهی۔ (محاسن التاویل للقاسمیؒ)
((صلصال)) هغه خټې ته وائی چه داسے اُوچه شوی وی چه په لړ وهلو سره په هغے کښې د کړنګ آواز پیدا شی۔ ابوعبیدهؒ وائی: دا هغه خټه ده چه شړه ورسره یو ځای شوی وی او په حرکت سره په هغے کښې د کړنګ آواز پیدا کیږی، او کله چه په اُور باندے پخه شی نو دے ته فخار وائی او دا قول د اکثرو مفسرینو دے۔ او کسائیؒ وائی چه دا بد بویه خټې ته وائی۔ او ((حَمَاٍ)) چه بدبویه توره شوی وی۔ او ((مسنون)) د حَمَاٍ صفت دے، چه ددے لغوی معنیٰ ده: بدله شوے، او خرابه شوے او بدبویه شوے۔ یا مَضَتْ عَلَيْهِ السِّنُوْنَ ته وائی۔ یعنی چه په هغے باندے ډیره موده او کلونه تیر شوی وو۔
د آدم ﷺ په خټه ډیر دَورونه تیر شویدی، اول کښې الله تعالیٰ د مختلفو ځایونو نه خاوره راجمع کړه، بیا ئے پکښې اُوبه واچولے خټه ئے ترے جوړه کړه، بیا دا خټه ډیره اُوږدے مودے پورے پرته وه تردے چه بدبویه او توره شوه چه دے ته حمأ مسنون وائی او ګرنګارے ئے کولو نو صلصال ترے جوړ شو۔ او آواز ئے مشابه وو د ټکری سره نو (كَالْفَخَّارِ) شو۔
پدے سره د ټولو آیتونو جمع والے راځی چه کله ورته ﴿ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ﴾ وائی (ال عمران: ۵۹) او کله وائی (بَشَرًا مِنْ طِيْنٍ) (ص: ۷۱) وائی او کله ورته حمأ مسنون او کله صلصال

وائی۔ بیا الله تعالیٰ د آدم علیہ السلام کالبوت جوړ کړو چه دا په جنت کښې ډیره موده پروت وو نو بیا پکښې الله تعالیٰ روح وا چولو۔

**فائده** : دلته الله تعالیٰ د انسان د پیدائش په بیان کښې صَلْصَال او حَمَأٍ مَسْنُوْن الفاظ ذکر کړل او د نورو آیتونو په شان (مِنْ تُرَاب) یا (مِنْ طِيْن) ئې ونهٔ وئیل بلکه درې ځله ئې دا لفظ ذکر کړو دې کښې حکمة دا ښکاره کیږی (والله اعلم) چه دلته الله تعالیٰ د انسان تحقیر او سپکوالے بیانوی چه اے انسانه! تهٔ خپل اصل ته وګوره، تهٔ څومره حقیر وې، په تا باندې څومره ډورونه تیر شویدی او تهٔ بیا رالګیږې او د خپل رب د توحید نه انکار کوې او په هغهٔ باندې تکبر کوې۔ ابلیس د آدم علیہ السلام د تحقیر دپاره دا لفظ استعمال کړیدے او الله تعالیٰ د عام انسان د تحقیر دپاره استعمال کړیدے۔

او ددې مناسبت د موضوع د سورت سره هم دے چه انسان الله تعالیٰ ته ډیر محتاج دے نو د هغه نه ورله یره او د هغه نه ورله امید پکار دے۔

**وَالْجَآنَّ** : پدې کښې دوه قوله دی (۱) ځینی وائی چه دا ابو الجن (د جناتو پلار) دے، او دا د ابلیس نه مخکښې وو او ابلیس د شیطانانو پلار دے۔ (۲) او حسنؒ، عطاءؒ، قتادهؒ او مقاتلؒ وائی چه ددې نه مراد ابلیس دے چه د شیطانانو پلار دے، او دهٔ ته جان پدې وجه ووئیل شو چه دا د بنیادمانو د سترګو نه پټ دے ځکه چه د جن معنیٰ ده پټوالے۔ نو دا دوه نوعی دی، په جناتو کښې مسلمانان او کافران دواړه شته او دوی خوراك څكاك كوی، او مرګ او ژوند پرې راځی لکه د بنیادمانو په شان او هرچه شیطانان دی نو هغوی کښې مسلمانان نشته او نهٔ مری مګر که د دوی پلار ابلیس مړ شی نو دوی به هم مری۔ (ذکره الخازن)۔

**السَّمُوْمِ** : یعنی داسے سخت ګرم شوے چه د سختے ګرمئ په وجه سره په مساماتو (رګونو او پټو) کښې ننوزی۔ ابو صالحؒ وائی چه سموم هغه اُور دے چه لوګے نهٔ لری او ددے نه صواعق (تندرونه) راپیدا کیږی۔

نو جان د خالص ګرم اُور نه پیدا دے او جنات د مَارِجٍ مِنْ نَار (یعنی د هغه اُور نه پیدا دی چه د هغے سره لوګے یو ځای شوے وو) او ملائك د نور نه پیدا دی۔ (فتح البيان)

| وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ |
|---|
| او کله چه ووئیل رب ستا ملائکو ته یقیناً زهٔ پیدا کونکے یم د یو انسان د کړنګیدونکی |

مِنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿۲۸﴾ فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ

د خیټې زړې شوې نه۔ نو کله چه برابر کړم زۀ هغه لره او پو کړم په هغه کښې د

رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ ﴿۲۹﴾ فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ

روح خپل نه نو پریوزئ هغه ته سجده کونکي۔ نو سجده اُوکړه ملائکو ټولو

اَجْمَعُوْنَ ﴿۳۰﴾ اِلَّآ اِبْلِيْسَ اَبٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِيْنَ ﴿۳۱﴾ قَالَ

په یو ځائے مګر ابلیس، انکار ئے وکړو ددے نه چه شي د سجده کونکو سره۔ اُووئیل الله

يٰٓاِبْلِيْسُ مَا لَكَ اَلَّا تَكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِيْنَ ﴿۳۲﴾ قَالَ لَمْ اَكُنْ

اے ابلیسه! څه وجه ده تا لره چه نۀ شوے تۀ د سجده کونکو سره۔ اُووئیل هغه نۀ یم زۀ

لِّاَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهٗ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿۳۳﴾

چه سجده وکړم یو انسان ته چه پیدا کړیدے تا د ګړنګارے کونکے د ختې زړے نه۔

قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ رَجِيْمٌ ﴿۳۴﴾ وَّاِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ اِلٰى يَوْمِ

اُووئیل الله پس اُوځه ددے نه یقیناً تۀ رټلے شوے ئې۔ او یقیناً په تا باندے لعنت دے تر ورځے

الدِّيْنِ ﴿۳۵﴾ قَالَ رَبِّ فَاَنْظِرْنِيْٓ اِلٰى يَوْمِ

د جزا پورے۔ اُووئیل هغه اے ربه زما! نو مهلت راکړه ما ته تر هغه ورځے پورے

يُبْعَثُوْنَ ﴿۳۶﴾ قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ﴿۳۷﴾

چه دوي به دوباره راپورته کولے شي۔ اُووئیل الله نو یقیناً تۀ د مهلت ورکړے شوو نه ئې،

اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ﴿۳۸﴾

تر ورځے د وخت معلوم پورے۔

**تفسیر**: اُوس تفصیل د واقعے ذکر کیږی۔ آدم علیه السلام ته چه الله تعالیٰ د هغۀ د پیدائش په وخت کوم عزت ورکړے وو هغه دلته بیانیږی چه ملائکو ته حکم وشو چه هغه طرفته سجده وکړي، نو ټول د هغه د تعظیم دپاره په سجده پریوتل لیکن ابلیس د کفر او عناد او حسد او استکبار په وجه ددے حکم نه سر وارولو او الله ته ئے ووئیل چه زۀ آدم ته سجده نۀ

کوم چه دا تا د بدبویه اغرلے شوے ختے نه پیدا کریدے، او زهٔ دے د اُور نه پیدا کړے یم چه هغه د خاورے نه اُوچت او غوره دے. مفسرین لیکی چه لفظ د «صلصال» بار بار ذکر کولو نه مقصد انسان ته ددهٔ اصل راياد ساتل دی دے دپاره چه په کبر او لوئی کښې پریوتو سره د سرکشئ او نافرمانئ ژوند اختیار نکړی. (تیسیر الرحمن)

**فَإِذَا سَوَّيْتُهُ**: یعنی کله چه زهٔ د هغهٔ پیدائش او د هغهٔ انسانی صورت او د هغهٔ بشری اندامونه او اجزاء برابر او پوره کړم.

**مِنْ رُّوْحِيْ**: دا اضافت د تشریف دپاره دے لکه د نَاقَةُ الله او بَيْتُ الله په شان.

**فَقَعُوْا**: یعنی واقع شئ/ پریوزئ. دا دلیل دے چه په حقیقی سجده باندے دوی ته حکم شوے وو چه هغه تندے په زمکه باندے کیخودل دی او نفس انحناء (سر ټیټول) نهٔ وو.

**فَاخْرُجْ مِنْهَا**: د «مِنْهَا» ضمیر نه مراد د معززو او مکرمو ملائکو جماعت دے. او د «رجیم» معنیٰ ده: د هر خیر او هر عزت او اکرام نه محروم کړے شوے.

مفسر ابو السعودؒ لیکی چه د الله تعالیٰ پدے جواب کښې د ابلیس د شبهے جواب هم دے چه څوک په قیاس سره د نص نه انکار کوی هغه به د الله تعالیٰ په نظر کښې مردود او ملعون وی. او پدے کښې اشاره ده چه څوک د الله تعالیٰ امر مات کړی او د رسول بیعزتی وکړی نو الله تعالیٰ به ئے تر قیامته پورے ملعون کوی نو د محمد رسول الله ﷺ خلاف مهٔ کوئ ورنه په دائمی او سخت مصیبت به واوړئ.

**وَإِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ إِلَى يَوْمِ الدِّيْنِ**: اَیْ ثُمَّ تَزْدَادُ مَعَهَا عَذَابًا. یعنی بیا به د هغے نه روستو د لعنت سره عذاب هم ملګرے کیږی. نو ددے نه مراد همیشه او نهٔ منقطع کیدونکے لعنت دے. او دا معنیٰ نهٔ ده چه صرف آخرت پورے لعنت او بیا خلاص.

**قَالَ رَبِّ فَأَنْظِرْنِيْ**: ابلیس چه کله د قیامت د ورځے پورے په خپل ځان باندے د لعنت خبره واوریده نو پوهه شو چه ددهٔ عذاب هغه وخت پورے روستو شویدے، پدے وجه ددهٔ د الله تعالیٰ نه طلب وکړو چه ددهٔ ته تر هغه ورځ پورے مرګ مهٔ راولے، ګویا که ددهٔ دا طلب کړل چه ددهٔ ته هیڅ کله مرګ مهٔ راولے، ځکه چه د قیامت د ورځے نه روستو هیچا ته مرګ نهٔ راځی، نو الله تعالیٰ هغه ته مهلت ورکړو. (یعنی په ابلیس به مرګ نهٔ راځی او همدا سے به قیامت ته پیش کیږی). مګر ځینی مفسرینو وئیلی دی چه په آیت (۳۸) کښې د «وقت معلوم» نه مراد د قیامت د راتلو نه مخکښې وخت دے. یعنی د قیامت د راتلو نه روستو به ابلیس هم مړ کیږی او د نورو پیریانو او انسانانو په شان به دویم ځلی راژوندے کیږی.

(فتح البيان)

مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ : الله تعالىٰ ابليس ته ولے مهلت ورکړو؟ لِزِيَادَةِ شَقَائِكَ وَبَلَائِكَ۔

يعنی دے دپاره چه ستا بد بختی او عذاب او امتحان نور هم زيات شی۔ ځکه چه ډير خلك به ګمراه کړی نو عذاب به ئے زيات شی، او بل پکښ په انسانانو باندے هم امتحان کول غرض دے۔

او د مُنظرين نه مراد هغه خلك دی چه د اولے شپيلئ په وخت به ژوندی وی او بيا به روستو فناء شی نو معلومه شوه چه ابليس به هم په دغه وخت فناء کيږی۔

| قَالَ رَبِّ بِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأُزَيِّنَنَّ |
|---|
| اُووئيل دۀ اے ربه زما په دے وجه چه تا زۀ ګمراه کړم خامخا بنائسته به ښکاره کوم |
| لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۳۹﴾ إِلَّا عِبَادَكَ |
| دوی ته په زمکه کښ (څيزونه) او خامخا ګمراه کوم به دوی لره ټول۔ مګر بندګان ستا |
| مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴿۴۰﴾ قَالَ هَٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ ﴿۴۱﴾ إِنَّ عِبَادِي |
| د دوی نه چه بيچ ساتلے شوی دی۔ ووئيل الله دا لاره ده په ما باندے نيغه، يقيناً بندګان زما |
| لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ ﴿۴۲﴾ |
| نشته تا لره په دوی باندے زور مګر هغه څوك چه تابعداری کوی ستا د سرکشانو نه۔ |
| وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۴۳﴾ لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ |
| او يقيناً جهنم خامخا ځائے د وعدے ددوی دے د ټولو۔ هغے لره اُووه دروازے دی، |
| لِكُلِّ بَابٍ مِنْهُمْ جُزْءٌ مَقْسُومٌ ﴿۴۴﴾ |
| د هرے دروازے دپاره د دوی نه حصه ده تقسيم شوے۔ |

**تفسير** : يعنی تا ما لره ګمراه کړو، نو زۀ قسم خوړلو سره وايم چه ترڅو پورے د آدم اولاد په دنيا کښ وی، زۀ به دنيا هغوی ته بنائسته ښکاره کولو سره پيش کوم، او هغوی به په ګناهونو راپورته کوم، ليکن کوم چه ستا مخلص بندګان وی او خپل دين او اعمال د الله تعالىٰ دپاره خالص کوی په هغوی به زما داؤ نۀ چليږی۔ ابليس په ملائکو کښ وسيدو،

او الله تعالیٰ ملائکو ته د آدم علیه السلام د پیدائش نه مخکښې د انسانانو حالات بیان کړی وو چه په دوی کښې به انبیاء علیهم السلام او نیکان خلك پیدا کیږی او څه به ګمراهان وی نو پدې وجه دلته ابلیس وائی چه ما نه به ستا مخلص بندګان بچ وی او نور به ګمراه کوم او ابلیس دا خبره په خپل ګمان کړې وه خو هغه رشتینی راوخته لکه چه الله فرمائی :
﴿وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾. (سبا: ۲۰)
(او یقیناً رشتینی کړو په دوی باندې ابلیس ګمان خپل نو روان شو د هغه پسې (عام خلك) سوی د یوې ډلې د مؤمنانو نه)
دلته جرم ابلیس وکړو او د ګمراه کولو نسبت الله تعالیٰ ته کوی، خپله ګړه په الله تعالیٰ باندې اچوی دا ډیره لویه بې ادبی او د الله تعالیٰ شان نهٔ پیژندل دی.
**لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ** : یعنی دنیا به ورته ښائسته ښکاره کوم او دا به ورته محبوبه جوړوم چه پدې سره به د الله تعالیٰ د حکمونو نه غافل وی. یا به ورته ګناهونه ښائسته ښکاره کوم.
**قَالَ هَذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ** : الله تعالیٰ جواب ورکړو په طریقه د دهمکئ سره چه ستاسو د ټولو د راتیریدو لاره په ما باندې ده چا چه ستا تابعداری وکړه هغه ته به د هغه د عمل سزا ورکوو او چا چه ستا تابعداری ونکړه نو هغوی ته به د هغوی نیکه بدله ملاویږی.
پدې کښې مفسرینو ډیر تفسیرونه ذکر کړیدی. (۱) هذا اشاره ده روستو (إِنَّ عِبَادِي) ته او عَلَيَّ کښې تقدیر دې. او حاصل دا دې : هَذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ أَنْ أُرَاعِيَهُ وَأَحْفَظَهُ وَهُوَ أَنْ لَا يَكُونَ لَكَ عَلَى عِبَادِي سُلْطَانٌ) یعنی دا لاره ده، په ما باندې لازم دی چه زهٔ به ددې رعایت او حفاظت کوم، هغه لاره دا ده چه ستا به زما په مخلصو بندګانو هیڅ دلیل او زور نهٔ وی. یعنی زهٔ به مخلص بندګان ستا نه بچ ساتم. او دا تفسیر صاحب د مدارك او ایسر التفاسیر او فتح البیان وغیره ذکر کړیدې. مګر لږ په تاویل بناء دې.
(۲) هذا اشاره ده حق ته یعنی په حق چه څوك روان شو نو سیده به الله تعالیٰ ته ورسیږی، اَلْحَقُّ يَرْجِعُ إِلَى اللهِ وَعَلَيْهِ طَرِيقُهُ . یعنی حق به الله تعالیٰ ته واپس کیږی او په الله باندې ئې لاره ده. او دا د مجاهد تفسیر دې چه حافظ ابن القیم په ((مدارج السالکین)) کښې غوره کړیدې. او امام بغوی ذکر کړیدې (معالم التنزیل ۳۸۲/٤)
(۳) یا هذا اشاره ده یو اځې بندګئ د الله تعالیٰ ته چه هغه په لفظ د (عبادك) کښې یا په (المخلصین) کښې ذکر شوه یعنی دا اخلاص او دا یو اځې بندګی لاره ده چه زما په ذمه

باندے ددے بیانول دی۔ نو (عَلَیَّ) سره تقدیر د عبارت داسے دے : (عَلَیَّ بَیَانُهٗ وَهِدَایَتُهٗ)۔ یعنی زما په ذمه دی بیانول د هغے او هدایت کول هغے ته۔

(٤) یا عَلیٰ په معنیٰ د (اِلیٰ) سره دے یعنی دا بندګی لاره ده ما طرفته یعنی زما کرامت او زما رضا ته نیغه رارسیدلے ده۔ (یعنی زما رضا او زما د طرفنه عزت صرف زما په یواځے بندګئ او اخلاص سره حاصلیږی)۔ (فتح البیان)

(٥) حافظ ابن کثیرؒ وائی چه هذا کښې اشاره ده (مَرْجِعٌ اِلَی الْاٰخِرَةِ) ته یعنی آخرت ته راګرځیدل ستاسو لاره ده په ما باندے نیغه۔ هغه وائی چه دا د ﴿اِلَی اللّٰهِ مَرْجِعُکُمْ﴾ او ﴿اِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ په شان دے۔ یعنی دا تهدید او زجر دے او معنیٰ دا ده : دا لاره ده چه ما ته به بندګان راواپس کیږی نو زهٔ به هر یو ته د هغهٔ د عمل بدله او سزا ورکوم۔

اِنَّ عِبَادِیْ لَیْسَ لَكَ عَلَیْهِمْ سُلْطَانٌ : یعنی څوك چه زما خالص بندګی کوی په هغوی باندے به ستا سازش کار نهٔ ورکوی، او هغه به ستا په دام کښې نهٔ راګیریږی، آؤ کوم خلك چه د حق د لارے نه اوړیدلی وی او ګمراهی د هغوی دویم طبیعت جوړ شوے وی، هغوی به ستا د سازش ښکار کیږی، د داسے تولو خلکو ځای به جهنم وی چه د هغه به اُوه دروازے وی، د هرے دروازے نه به د جهنمیانو یو معین شمار د خپلو خپلو بدو اعمالو مطابق داخلیږی۔

## د جهنم اُوه دروازے

د علی بن ابی طالب رضی الله عنه او عکرمهؒ نه روایت شویدے چه اُوه دروازو نه مراد د جهنم اُوه طبقے دی۔ او د ابن عباسؓ د یو روایت مطابق د دوی او پدے کښې د داخلیدونکو خلقو نومونه لاندینی دی :

(١) جهنم چه د تولو نه پورته طبقه ده، د اهل توحید دپاره چه د خپلو ګناهونو د سزا څکلو نه روستو به د الله تعالیٰ په خاص رحمت سره جهنم نه وځی او جنت ته به لیږلے شی، (٢) لظیٰ د یهودو دپاره، (٣) حُطَمَه د نصرانیانو دپاره، (٤) سعیر دے دینو دپاره، (صابئینو دپاره) (٥) سقر د مجوسیانو دپاره، (٦) جَحِیْم د مشرکانو دپاره،

(٧) او هَاوِیَه د منافقانو دپاره چه دا د تولو نه لاندے طبقه ده۔ یعنی د ابلیس تابعدار به د هغوی د کفر او نافرمانئ د وجه نه په اُوه ډلو تقسیمیږی ځکه چه د کفر او ګناهونو مرتبے مختلفے دی نو په اُور کښې ئے طبقے هم مختلفے شوے۔ (فتح البیان)

او دا اُوه واړه نـومونه هریو د تول جهنم نوم هم دے لکه قرآن کریم کښې د جهنم دپاره کله یـو ذکـر کیـږی او کـلـه بـل۔ لیـکن چونکه اُوه طبقے ذکر دی، او په قرآن کریم کښې دغه اُوه نومونه هم ذکر دی نو دا نومونه د دغه طبقاتو سره برابر شو۔

**فائده اوحکمة :** د جهنـم اُوه دروازے او د جنت اته دروازے دی، پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالىٰ رحمت د هغهٔ په غضب باندے مخکښې دے۔ دویم د اُوه دروازو څه حکمة دے؟ نو ددے پوره عـلـم الله تـعـالـىٰ دے، او ځیـنـی علماؤ وئیلی دی چه په انسان کښې اُوه اندامونه مـصـدر السیـئـات دی، یـعـنـی ددے نه ګناهونه پیدا کیـږی، زړه او دماغ، سترګے، غوږونه، خـولـه، خیټـه، فـرج، لاسونه او خپے دی۔ دویمه وجه دا ده چه د انساناتو اُوه طبقے دی، لکه چه مخکښې ذکر شو۔

| إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿٤٥﴾ ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ |
|---|
| یقیناً متقیان به په جنتونو او چینو کښې وی۔ داخل شئ دے ته په سلامتیا سره |
| آمِنِينَ ﴿٤٦﴾ وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ |
| په امن سره به یئ۔ او وبه باسو هغه څه چه په سینو د دوی کښې دی د کینے نه |
| إِخْوَانًا عَلَىٰ سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ ﴿٤٧﴾ لَا يَمَسُّهُمْ |
| وروڼه به وی، په تختونو باندے به یو بل ته مخامخ وی۔نهٔ به رسی دوی ته |
| فِيهَا نَصَبٌ وَمَا هُمْ مِنْهَا بِمُخْرَجِينَ ﴿٤٨﴾ |
| په هغے کښې ستړے والے او نهٔ به دوی د هغے نه وبستلے شی۔ |

**تفسیر :** قرآن کریم د خپلے معلومے طریقے مطابق، د جهنم او جهنمیانو د حال بیانولو نه روستـو اُوس د جـنـتـیـانو حـال بیانوی۔ د جمهورو صحابه کرامو او تابعینو عظامو په نیز دلته د متقین نه مراد هغه خلك دی چه الله تعالىٰ سره د شریکانو جوړولو نه ځان ساتی، او د یـو قـول مـطـابـق د دوی نـه مراد هـغـه خلق دی چه د تمامو ګناهونو نه ځان ساتی۔ د الله تـعـالـىٰ دا وعـده ده چه ددے خبر پدے آیت کښې ورکړے شویدے۔ الله تعالىٰ به د قیامت په ورځ دوی تـه وائـی چه تاسو په پوره سلامتیا او د تمامو آفاتو او مصیبتونو نه محفوظ او په امن کښې جنت ته داخل شئ۔

بِسَلَامٍ : اَیْ مِنْ جَمِیْعِ الْآفَاتِ۔ د ټولو مصیبتونو نه به بچ یئ۔
آمِنِیْنَ : اَیْ مِنْ جَمِیْعِ الْاَمْرَاضِ وَالْمَخَاوِفِ وَزَوَالِ النِّعِیْمِ۔ د ټولو مرضونو او یرو نه به په امن یئ او دارنګه د نعمتونو د زائله کیدو نه۔ ۲- یا سلام د طرفه د الله نه، یا د ملائکو نه یا په یو بل باندے سلام اچول مراد دی۔ او آمِنِیْنَ : ضحاك وائی چه د مرګ، بوډا والی، بیمارئ، بربنډ والی او لوږے نه به په امن یئ۔ (فتح البیان)
غِلٍّ : دا حِقد (کینه) دشمنئ، او بغض، خفګان وغیره ته وائی۔
اِخْوَانًا : دا حال مُقدره دے اَیْ اُدْخُلُوْهَا اِخْوَانًا ۔ داخل شئ پداسے حال کښې چه تاسو به ورونړه ورونه یئ۔ یا حال مقارنه دے د ضمیر د صُدُوْرِهِمْ نه۔ یعنی په داسے حال کښې چه دوی په دین کښې په محبت او رحم او دوستئ کښې ورونه وو۔
او په حدیث د بخاری کښې دی چه مؤمنان به د جنت او د جهنم ترمینځ په یوه قنطره (پُل) باندے ایسار کړے شی تردے چه بعض د دوی د بعضو نه قصاص واخستے شی کوم چه د دوی ترمینځ په دنیا کښې وو نو کله چه پاك صفا کړے شی، بیا به ورته د جنت په داخلیدو اجازه وکړے شی۔ (بخاری : ۶۵۳۵)
عَلٰی سُرُرٍ : جمع د سَریر ده کټ او تخت ته وائی۔ مفسرین لیکی چه دا کټونه او تختونه به دومره اُوږده وی لکه د صنعاء الیمن نه تر جابیه پورے۔ (جابیه د دمشق د علاقو نه یوه علاقه ده (معجم البلدان یاقوت حمویؒ)
او څینی وائی چه سریر اُوچت مجلس ته وائی چه د خوشحالئ دپاره تیار شوے وی یعنی د خوشحالئ په مجلسونو کښې به وی۔ (فتح البیان)
مُتَقَابِلِیْنَ: یعنی یو بل ته به مخامخ وی۔ مجاهدؒ وائی : لَایَرٰی بَعْضُهُمْ قَفَا بَعْضٍ۔ بعضے به د بعضو څټ نهٔ وینی۔ او کله چه دوی راجمع شی او د یو بل سره ملاقات وکړی او بیرته د واپسئ اراده وکړی نو د هر چا تخت او کټ به ګرځی پداسے شان سره چه سور انسان به ئے د خپل ملګری مخامخ راځی او څټ به ئے شا ته پاتے کیږی او دا په انس او اکرام کښې ډیر کمال دے۔ (فتح) ددے مثال د سپرنګ والا تاویدونکے کرسئ دے۔
او دا ناسته د دوی به په هغه وخت وی چه کله د دوی اجتماع کیږی او د الله تعالیٰ ملاقات ته راوتلی وی او هر چه عام اوقات دی نو دوی به د خپلو ښځو سره په مزو کښې وی۔
نَصَبٌ: دا سترړی والے کله د ناستے په وجه وی او کله د یو کار کولو په وجه۔ نو هیڅ قسم سترړی والے به نهٔ وی۔

نَبِّئْ عِبَادِیْ اَنِّیْ اَنَا الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ ﴿۴۹﴾ وَاَنَّ عَذَابِیْ هُوَ

خبر ورکړه بندګانو زما ته چه یقیناً زهٔ بخونکے رحم کونکے یم۔ او یقیناً عذاب زما همدا

الْعَذَابُ الْاَلِیْمُ ﴿۵۰﴾ وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَیْفِ اِبْرَاهِیْمَ ﴿۵۱﴾ اِذْ

عذاب دردناك دے۔ او خبر ورکړه دوی ته د میلمنو د ابراهیم علیه السلام نه، کله چه

دَخَلُوْا عَلَیْهِ فَقَالُوْا سَلَامًا قَالَ اِنَّا مِنْکُمْ

داخل شول دوی په هغه نو وے وئیل سلام دِې وی، ووئیل هغهٔ یقیناً مونږ تاسو نه

وَجِلُوْنَ ﴿۵۲﴾ قَالُوْا لَا تَوْجَلْ اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ عَلِیْمٍ ﴿۵۳﴾

یریدونکی یو۔ ووئیل دوی مهٔ یریږه، یقیناً مونږ زیرے درکوو تا ته په هلك پوهه سره۔

قَالَ اَبَشَّرْتُمُوْنِیْ عَلٰی اَنْ مَّسَّنِیَ الْکِبَرُ فَبِمَ

ووئیل هغه آیا زیرے راکوئ ما ته سره ددے نه چه رسیدلے دے ما ته بوډا والے نو په څه سره

تُبَشِّرُوْنَ ﴿۵۴﴾ قَالُوْا بَشَّرْنَاكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَکُنْ مِّنَ

زیرے راکوئ۔ اُووئیل دوی زیرے درکوو مونږ تا ته په حق سره نو مهٔ کیږه ته د

الْقَانِطِیْنَ ﴿۵۵﴾ قَالَ وَمَنْ یَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ ﴿۵۶﴾

نا اُمیدی کونکو نه۔ ووئیل هغهٔ او نهٔ نا امیده کیږی د رحمت د رب خپل نه مګر ګمراهان۔

**تفسیر**: دا آیت د مخکنی آیتونو تتمه ده په کوم کښې چه د جنت او د جهنم خبره راغلے ده۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته خطاب کولو سره فرمائی، چه ته زما بندګانو ته ددے خبرے خبر ورکړه چه څوك د خپلو ګناهونو نه توبه وباسی او د عمل صالح ژوند اختیار کړی، د هغے ګناهونه به زهٔ معاف کوم او د هغهٔ په حال به رحم کوم، او څوك چه په خپل کفر او عصیان باندے کلك پاتے وی نو هغهٔ له پوهیدل پکار دی چه زما عذاب ډیر دردناك دے۔

بیا دلته ئے د مغفرت او رحمت ذکر وکړو په دریے تاکیداتو سره یو (اَنِّیْ) کلمه د تاکید دپاره ده، او دویم ضمیر فصل (اَنَا) او دریم (الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ) ئے معرفه په الف لامو سره راوړیده، او دارنګه اسمونه ئے ذکر کړیدی چه دلالت کوی په دے خبره چه د الله تعالیٰ د رحمت او مغفرت جانب مقدم دے د عذاب په جانب باندے څکه چه د عذاب په جانب کښې

ئے (اَنِّیْ اَنَا الْمُعَذِّبُ) ذکر نـکـړو (یـعـنـی خپل ځان ئے په عذاب ورکولو سره متصف نکړو) بلکه صرف د عذاب اخبار ئے ورکړو چه زما عذاب سخت دے۔ دارنګه د مغفرت سره ئے دا خبره نـزدے راوړه چه خپـل رسول تـه ئے حـکـم وکـړو چه هغه د الله بندګانو ته دا مقصد ورسوی چه زهٔ بخنه کونکے رحم کونکے یم او عذاب ئے روستو ذکر کړو۔ (فتح البیان)

نو پدے کښې اشاره ده هغه حدیث ته چه رسول الله ﷺ فرمائی :

((الله تعالیٰ چه کله د مخلوقاتو تقدیر وکړو نو هغه یو خط ولیکلو چه هغه د هغهٔ سره د عرش دپاسه دے چه [سَبَقَتْ رَحْمَتِیْ غَضَبِیْ]

زما رحمت زما په غضب باندے مخکښې دے))۔ (بخاری : ۷۵۵۳) مسلم : (۷۱٤٦)

امام بخاری د ابو هریره ﷛ نـه روایت کـړیدے چه الله تعالیٰ چه کله (رحمت) پیدا کړو نو هغـه ئے په سلو حصو کښې تقسیم کړو، نهه نوی (۹۹) حصے ئے د خپل ځان سره وساتلے او یوه حصه ئے په خپلو تمامو مخلوقاتو کښې تقسیم کړه۔

[فَلَوْ يَعْلَمُ الْكَافِرُ كُلَّ الَّذِیْ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رَحْمَتِهٖ لَمْ يَيْأَسْ مِنَ الرَّحْمَةِ وَلَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ بِكُلِّ الَّذِیْ عِنْدَ اللّٰهِ مِنَ الْعَذَابِ لَمْ يَأْمَنْ مِنَ النَّارِ] د الله سره چه د رحمت کومه خزانه ده که کافر د هغے نه خبر شی نو هیڅ کله به د الله د رحمت نه نا امیده نهٔ شی۔ او د الله سره چه د عذاب کـوم مقدار دے که مؤمن د هغے نه خبر شی نو د جهنم نه به هیڅ کله ځان په امن کښې ونهٔ ګنړی۔ (بخاری : ٦٤٦٩ و مسلم فی التوبة حدیث : ١٤ - ١٦)

مـعـلـومه شوه چه مؤمن له د امید او نا امیدیٔ او د یرے او امید په مابین کښې چه کومه مـعـتـدله لاره ده هغه اختیارول پکار دی۔ نهٔ به د الله په رحمت بهروسه کولو سره د ایمان او عـمـل صـالح لاره پریدی، او نهٔ به د هغهٔ د رحمت نه نا امیده کیږی۔ او پدے آیت او حدیث کښې مونږ ته همدغه دعوت راکړے شویدے۔

وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَاهِيْمَ : ددے ځای نـه روستـو څـلـور قصے د انبیاء عـلیهم السلام بیـانوی دا ددے دپاره چه ددے آوریدو سره انسان د الله تعالیٰ د بندګئ سره مینه وکړی چه د کـامـیـابئ او نیک بـخـتئ درجاتو ته ورسیږی، او د ګناهونو نه یره وکړی په کوم سره چه د بدبختانو درکات ملاویږی۔ او ددے قصے ربط هم ددے نه سوئ بل څه نهٔ دے چه بندګان د الله تـعالیٰ د رحمتونو امید وکړی او د هغے نه نا امیدی ونکړی، او د الله تعالیٰ د عذابونو نه یره وکړی۔ لـکـه په قصـه کښې دا لفظ راغلے دے ﴿وَمَنْ يَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖ إِلَّا الضَّآلُّوْنَ﴾ او دغه رب العالمین عذابونه راوستونکے دے لکه د لوط ؑ په قوم ئے کلے راپورته کړو۔ نو

گویا که واقعه د ابراهیم ﷺ د (اَنِّیۡۤ اَنَا الۡغَفُوۡرُ الرَّحِیۡمُ) بیان دے او واقعه د قوم لوط د (اَنَّ عَذَابِیۡ هُوَ الۡعَذَابُ الۡاَلِیۡمُ) بیان دے۔ نو پدے واقعاتو کښې خوف او رجاء ذکر ده۔

عَنۡ ضَیۡفِ اِبۡرٰهِیۡمَ : کوم ملائك چه الله تعالیٰ د لوط ﷺ د قوم د هلاکولو دپاره لیږلی وو هغوی اول ابراهیم ﷺ ته تلی وو، او هغه ته ئے د اسحاق ﷺ زیرے ورکولو، دا واقعه په پوره تفصیل سره په سورة هود کښې تیره شویده۔ ملائك ابراهیم ﷺ ته د انسانانو په شکل کښې میلمانهٔ جوړ شوی راغلل او سلام ئے وکړو نو هغه ډیر خوشحاله شو، لیکن کله چه هغوی خوراك او غوښے ته لاس اُوږد نهٔ کړو نو ابراهیم ﷺ ته د هغوی په باره کښې شك شو او ویریدو چه کیدے شی د دوی نیت ښه نهٔ وی۔

نو ملائکو هغهٔ ته فوراً ووئیل چه مونږ د الله تعالیٰ ملائك یو، ته مهٔ یریږه، او مونږ تا ته د یو داسے خوی زیرے درکوو چه هغه به لوی عالِم وی۔ ابراهیم ﷺ ووئیل چه تاسو ما ته د بوډاوالی باوجود داسے زیرے راکوئ دا څنګه عجیبه خبره ده ؟ ! او څنګه ددے زیرے راکوئ ؟! ملائکو د زیات تاکید په توګه ووئیل چه مونږ تا ته د یو داسے یقینی خبرے زیرے درکوو چه ددے د نهٔ کیدو سوال نهٔ پیدا کیږی، ځکه چه دا د الله تعالیٰ فیصله او د هغه وعده ده، او هغه په هر شی قادر دے، ته مهٔ نا امیده کیږه۔

نو ابراهیم ﷺ جواب ورکړو چه زهٔ هیچرے نهٔ نا امیده کیږم، نا امیده کیدل خو د ګمراهانو طریقه ده، زهٔ خو ستاسو د زیری مطابق امید ساتم چه الله به ما ته خوی راکړی۔ ما ته حیرانتیا صرف پدے وجه شویده چه په عامه توګه سره داسے نهٔ کیږی۔

فَبِمَ تُبَشِّرُوۡنَ: دا تعجب د ابراهیم ﷺ پدے وجه وو چه دا کار د عادت خلاف وو او د الله تعالیٰ د قدرت نه ئے تعجب نهٔ کولو۔

بَشَّرۡنٰكَ بِالۡحَقِّ : یعنی مونږ زیرے درکوو تا ته په رښتیا سره چه دا به خامخا کیږی۔ یا حق نه مراد یقین دے یعنی دا یقینی وعده ده چه پدے کښې به هیڅ مخالفت نهٔ کیږی۔

وَمَنۡ یَّقۡنَطُ مِنۡ رَّحۡمَةِ رَبِّهٖۤ اِلَّا الضَّآلُّوۡنَ : د الله د رحمت نه نا امیده خلك ولے ګمراهان دی ؟ نو وجه دا ده چه دوی الله نهٔ پیژنی که څوك په صحیح معنو کښې الله تعالیٰ وپیژنی نو د هغه د رحمت طمع به کوی ځکه چه هغه د ټول مخلوق نه زیات مهربانه دے، نو نا امیدئ ته ضرورت څه دے ؟!۔ دویم دا چه نا امیده شخص د الله تعالیٰ د قدرت او علم نه منکر وی وائی چه الله په ما عالِم نهٔ دے او په ما قادر نهٔ دے دا کار نشی کولے۔ نو بد ګمانی ئے هم پیدا شی او توبه هم نهٔ وباسی، ځان هلاك کړی نو ځکه پدے عقیده سره ګمراه شو۔

نو پدے کښې مونږ ته دا سبق پروت دے چه راشئ ایمان راوړئ او الله ته رجوع وکړئ، د الله تعالیٰ رحمتونه ډیر زیات دی هغه به دریاندے رحمتونه وکړی۔

| قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٥٧﴾ قَالُوْا إِنَّا |
| --- |
| اُووئیل هغهٔ نو څه دے لوی کار ستاسو اے رالیږلے شوو۔ اُووئیل دوی یقیناً مونږ |
| أُرْسِلْنَا إِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ ﴿٥٨﴾ إِلَّا آلَ لُوْطٍ إِنَّا |
| رالیږلے شوی یو قوم مجرمانو ته۔ سوئ د کورنئ د لوط نه، یقیناً مونږ |
| لَمُنَجُّوْهُمْ أَجْمَعِيْنَ ﴿٥٩﴾ إِلَّا امْرَأَتَهُ قَدَّرْنَا إِنَّهَا |
| خامخا نجات ورکونکی یو دوی ټولو ته۔ مګر ښځه ددهٔ مقرر کړیده مونږه چه یقیناً دا به |
| لَمِنَ الْغَابِرِيْنَ ﴿٦٠﴾ فَلَمَّا جَاءَ آلَ لُوْطٍ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٦١﴾ |
| د پاتے خلقو نه وی (په عذاب کښې)۔ نو هرکله چه راغلل کورنئ د لوط ته رالیږلے شوی |
| قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿٦٢﴾ قَالُوْا بَلْ جِئْنَاكَ |
| (استازی) اُووئیل دهٔ یقیناً تاسو یو قوم یئ ناشنا۔ اُووئیل دوی بلکه راوړیدے مونږ تا ته |
| بِمَا كَانُوْا فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ ﴿٦٣﴾ وَأَتَيْنَاكَ بِالْحَقِّ |
| هغه شے چه دوی په هغے کښې شک کوی۔ او راوړیدے مونږ تا ته یقینی خبر (د عذاب) |
| وَإِنَّا لَصَادِقُوْنَ ﴿٦٤﴾ |
| او یقیناً مونږ خامخا رشتینی یو۔ |

**تفسیر** : ابراهیم ؑ معلومه کړے وه چه ملائك صرف ددهٔ د خوی د زیری ورکولو دپاره د آسمان نه نهٔ دی راکوز شوی، ضرور څه خبره هم شته، ځکه چه زیرے خو په تن رالیږلو سره هم کیدو، پدے وجه هغهٔ تپوس وکړو چه ستاسو د راتلو بل مقصد څه دے؟ نو هغوی ووئیل چه مونږ د یو مجرم او ګناهګار قوم د هلاك کولو دپاره رالیږلے شوی یو۔ بیا ئے فوراً آل د لوط مستثنیٰ کړو چه هغه مجرمان نهٔ وو۔ او د تاکید په توګه ئے ووئیل چه مونږ به آل د لوط ته یقیناً نجات ورکوو۔ او د آل لوط نه مراد په هغوی باندے ایمان راوړونکی خلق وو۔ پدے وجه ئے د لوط ؑ د ښځے په باره کښې فوراً ووئیل چه هغه به د

کافرانو سره پاتے کیږی، او ضرور به هلاك کیږی، ځکه چه هغے ایمان نهٔ وو راوړے.
إِلَّا امْرَأَتَهُ: پدیے کښ خو خوف ته اشاره ده چه یوه ضعیفه زنانه ده او د الله تعالیٰ د نبی ښځه ده، او د هغه بدن ورسره لګیدلے دے لیکن کله چه پکښ کفر او شرك موجود دے نو الله تعالیٰ ئے د لوط علیه السلام د خاطره هم نهٔ پریدی.
**فائده** : پدیے کښ دوه استثناء ګانے دی، دویمه استثناء د اولے استثناء نه استثناء ده، او مطلب دا دے چه قوم مجرمان به هلاکیږی مګر آل لوط به بچ وی او آل لوط به ټول بچ وی مګر ښځه به ئے نهٔ بچ کیږی. او په عربیٔ ژبه کښ د مستثنیٰ نه استثناء جائز ده لیکن د یو یے مستثنیٰ منه نه دوه استثناء ګانے صحیح نهٔ دی.
إِنَّا لَمُنَجُّوهُمْ او ((قَدَّرْنَا)) دا کلام د الله تعالیٰ دے په ژبه د ملائکو، ځکه چه ملائك نجات چا ته نشی ورکولے او نهٔ تقدیر د هغوی په اختیار کښ وی. نو د مشرکانو دا شبهه خطاء ده چه ملائك خلکو ته نجات ورکولے شی نو انبیاء او اولیاء ئے هم ورکولے شی.
فَلَمَّا جَاءَ: دلته الله تعالیٰ د واقعے آخر مخکښ بیان کړو او تفصیل د واقعے ئے روستو ذکر کړو پدیے کښ اهتمام د جانب د خوف دے.
کله چه ملائك د ښائسته ځوانانو په شکل کښ لوط علیه السلام ته راغلل، نو هغهٔ ووئیل چه زهٔ تاسو نهٔ پیژنم، او نهٔ ستاسو د راتلو غرض ما ته معلوم دے، چرته تاسو په کوم بد نیت سره خو نهٔ یئ راغلی؟ نو ملائکو ووئیل چه مونږ هغه عذاب راوړیدے په کوم کښ به چه ستا د قوم خلقو شك کولو او ته به ئے دروغجن ګنړلے مونږ هغه شے یقیناً راوړیدے چه په هغے کښ هیڅ د شك ګنجائش نشته دے، او کوم خبر چه مونږ تا ته درکوو پدیے کښ مونږ بالکل رشتینی یو.
وَآتَيْنَاكَ بِالْحَقِّ : یعنی مونږ تا ته راغلی یو چه مشتمل یو په یقین سره چه هیڅ شك پکښ نشته. یا د حق نه مراد یقینی عذاب دے.

| فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ اللَّيْلِ وَاتَّبِعْ أَدْبَارَهُمْ |
|---|
| نو بوځه کورنیٔ خپله په یوه ټکړه د شپه کښ او روان شه روستو د دوی پسے |
| وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ وَامْضُوا حَيْثُ تُؤْمَرُونَ ﴿٦٥﴾ |
| او نهٔ دِے ګوری ستاسو نه یو تن او ځئ هغه ځائے ته چه تاسو ته حکم کیدیشی. |

وَقَضَيْنَا إِلَيْهِ ذَٰلِكَ الْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَٰؤُلَاءِ مَقْطُوعٌ

او فیصله اُولیږله مونږ ده ته ددې خبرې چه یقیناً جرړې ددې کسانو پرې به کړے شي

مُّصْبِحِينَ ﴿٦٦﴾ وَجَاءَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿٦٧﴾ قَالَ

په وخت د صبا کښې۔ او راغلل ښار والا چه خوشحالي ئې کوله۔ اُووئیل هغهٔ یقیناً

إِنَّ هَٰؤُلَاءِ ضَيْفِي فَلَا تَفْضَحُونِ ﴿٦٨﴾ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَلَا

دا کسان میلمانهٔ زما دي نو مهٔ شرموئ ما لره او اُویرېږئ د الله نه او مهٔ

تُخْزُونِ ﴿٦٩﴾ قَالُوا أَوَلَمْ نَنْهَكَ عَنِ الْعَالَمِينَ ﴿٧٠﴾ قَالَ

رسوا (ذلیله) کوئ ما۔ اُووئیل دوی آیا نهٔ ئې منع کړے مونږ تهٔ د خلقو نه۔ اُووئیل هغهٔ

هَٰؤُلَاءِ بَنَاتِي إِن كُنتُمْ فَاعِلِينَ ﴿٧١﴾

دا (ستاسو ښځې) لونړه زما دي که تاسو کونکي يئ (د حاجت پوره کول)۔

**تفسیر** : تـهٔ د شپې په آخري حصه کښې خپل مسلمانان ملګري ځان سره واخله او ددے ځائے نه اُوځئ او تـهٔ د دوی نـه روستـو روستـو روان شه دے دپاره چه دوی په تیز تلو باندے راپورتـه کـړے او خـیال ساتـه چـه څـوك روستو پاتے نشي، او نهٔ څوك شاته مخ اړولو سره وګـوري، ورنه عذاب به ورته ورسیږي، یا پدے وجه چه تهٔ مطمئن شے او پدے پوهه شے چه دوی ټول راخلاص شو۔ او د شام هغه علاقے ته لاړ شئ کوم ځای ته د تلو حکم چه تاسو ته شویدے چه هغه د ابراهیم ﷺ د ګاونډ ځای دے۔ بعض علماؤ وئیلي دي چه دا خلق مصر ته لاړل۔ او چا وئیلي دي چه د قوم لوط یو بل کلي طرف ته لاړل۔

وَقَضَيْنَا : قـضـاء دلتـه په معنیٰ د وحی سره دے۔ یعنی الله تعالیٰ لوط ﷺ ته د وحی په ذریعـه ددے عـذاب خبر د مـخـکښې نه ورکړے وو چه د صبا په وخت به تمام کافران هلاك کیږي، او ددوی نه به هیڅوك نهٔ بچ کیږي۔ کله چه (سدوم) ښار والو ته د ښائستـه ځوانانو د راتـلو اطـلاع مـلاؤ شـوه نـو خـوشـحاله شو او یو بل ته ئې زیری ورکول چه نن د لواطت کولو ډیره ښه موقعه په لاس راغلې ده۔

لوط ﷺ هـغـوی تـه وویل چه دا زما میلمانهٔ دي، د الله دپاره د دوی سره په بدکاری کولو ما مـهٔ شـرموئ، ځـکـه چـه د میـلمه شرم د کوربه شرم وي۔ او د دوی په باره کښې د الله نه

وبربرئ او ما ذلیل نهٔ کرئ، نو هغوی بد مستانو وویل چه آیا مونږ تا ته بار بار نهٔ دی وئیلی چه کله مونږ د چا سره بدکاری کول غواړو نو مونږ به نهٔ منع کوے۔

یو قول دا دے چه دوی لوط علیه السلام لره د مخکښ نه منع کړے وو چه دا به خلق نهٔ میلمانهٔ کوی۔ لوط علیه السلام وویل، که تاسو خپل خواهش پوره کوئ نو دا د کلی جینکئ زما لونړهٔ دی، ددے سره تاسو وادهٔ وکړئ۔

(د سورة هود په تفسیر کښې ددے په باره کښې تفصیل سره لیکل شویدی)۔

**يَسْتَبْشِرُوْنَ**: استبشار: اِظْهَارُ الْفَرَحِ وَالسُّرُوْرِ ته وئیلے شی یعنی خوشحالی ښکاره کول۔

**فَلَا تَفْضَحُوْنِ**: ۱- یعنی ما په خلکو کښې مهٔ شرموئ چه د میلمنو بی عزتی مے وکړئ خلک به وائی چه میلمانهٔ ئے ترے واخستل۔ ۲- عِنْدَ الضُّيُوْفِ) او دارنګه ما مهٔ شرموئ میلمنو ته چه هغوی به پوهه شی چه زهٔ د میلمنو د حفاظت نه عاجز یم۔

۳- یا لَا تَفْضَحُوْنِيْ بِفَضِيْحَةِ ضَيْفِيْ ۔ ما مهٔ شرموئ په شرم د میلمنو سره ځکه چه د میلمه شرم د کوربه شرم وی۔ (فتح)

**وَلَا تُخْزُوْنِ**: یعنی ما مهٔ ذلیله کوئ چه زما مخامخ زما د میلمنو بی عزتی کوئ او زهٔ درته څه نشم وئیلے۔

**عَنِ الْعَالَمِيْنَ**: ۱- اَیْ عَنْ ضِيَافَتِهِمْ ۔ یعنی ته مونږ نهٔ ئے منع کړے چه خلکو ته به میلمستوب نهٔ ورکوے۔ ۲- عَنْ مَنْعِهِمْ مِنَّا ۔ دارنګه مونږ نه به خپل میلمانهٔ نهٔ منع کوے بلکه مونږ ته به ئے راپریدے۔

**اِنْ كُنْتُمْ فَاعِلِيْنَ**: اَیْ مَا عَزَمْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ فِعْلِ الْفَاحِشَةِ بِضَيْفِيْ / اَوْ مَا آمُرُكُمْ بِهٖ)

۱- که تاسو کونکی یئ د هغه بی حیایئ چه تاسو ئے کلکه اراده کړیده۔

۲- یا که تاسو زما حکم منونکی یئ۔

| لَعَمْرُكَ اِنَّهُمْ لَفِيْ سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۷۲﴾ فَاَخَذَتْهُمُ |
| --- |
| قسم دے په ژوند ستا یقیناً دوی خامخا په نشه خپله کښې دی پریشانه۔ نو ونیول دوی لره |
| الصَّيْحَةُ مُشْرِقِيْنَ ﴿۷۳﴾ فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا |
| چغې په وخت د نمر خاتهٔ کښې۔ نو اوګرځوو مونږه بره طرف د دغه کلو لاندے طرف ته |

| وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ ﴿٧٤﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ |
|---|
| او باران اُوکړو مونږ په دوی باندے د کانړو د پخو کانړو نه۔ یقیناً پدے واقعه کښ |
| لَآيَاتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِينَ ﴿٧٥﴾ وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٍ مُّقِيمٍ ﴿٧٦﴾ |
| خامخا ډیر عبرتونه دی دپاره د فکو کونکو۔ او یقیناً دا کلی په لاره نیغه (پراته) دی۔ |
| إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٧٧﴾ |
| یقیناً پدے کښ نخه ده دپاره د ایمان والو۔ |

**تفسیر**: الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ په باقی ژوند باندے قسم خوړلو سره وئیلی دی چه د سدوم کلی وسیدونکی بیشکه په خپلو گمراهیانو کښ حیران پراته وو۔

قاضی عیاضؒ د مفسرینو پدے باندے اتفاق نقل کړیدے چه دلته الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ په ژوند قسم کړیدے، لیکن ابن العربیؒ وائی چه ددے خبرے نه کوم شے مانع دے چه الله تعالیٰ د لوط علیه السلام په ژوند باندے قسم خوړلے وی۔ او کله چه الله د لوط علیه السلام په ژوند قسم خوړلے شی نو د نبی کریم ﷺ په ژوند باندے په درجه اولیٰ قسم خوړلے شی۔

قرطبیؒ هم د ابن عربیؒ د رائے تائید کړیدے، او وئیلی ئے دی چه د لوط علیه السلام د قصے په مابین کښ د نبی کریم ﷺ په ژوند باندے قسم خوړل به جمله معترضه جوړیږی۔ (فتح)

حافظ ابن القیم رحمه الله په خپل کتاب ((اقسام القرآن)) کښ د جمهورو مفسرینو د رائے تائید کړیدے، بلکه دلته ئے د لوط علیه السلام ژوند مراد اخستل باطل گرځولی دی۔

ابوالجوزاءؒ ددے آیت په تفسیر کښ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ د ژوند نه سوئ هیڅکله د بل چا په ژوند قسم نهٔ دے کړے۔

او ددے نه معلومیږی چه د رسول الله ﷺ ډیره پاکه زندگی وه، د شهواتو نه خالی وه۔

په غیر الله باندے قسم په احادیثو کښ حرام گرځول شویدے او دے ته ئے شرك وئیلے دے مگر الله تعالیٰ چه وغواړی په هر مخلوق باندے قسم کولے شی۔

او عُمُرٌ او عَمْرٌ یو شے دے لیکن د قسم په وخت کښ په عین باندے زور استعمالیږی ځکه چه قسم زیات استعمالیږی نو تخفیف ورسره مناسب دے۔

لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ : د اصحاب الشهوات بیان چه قرآن کریم کړیدے نو هغوی دپاره ئے سکره (نشه) عَمَهٌ (د زړه ړندیدل) او طَمْسُ الْعُيُونِ۔ (د سترګو ړندیدل) ذکر

کړیدي، په ناجائز شهواتو کښې دا تول مرضونه دي چه نظر او دماغ او زړه به ئې خرابېږي.
فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ : په قومِ لوط باندې د الله تعالیٰ عذاب د يوې سختې چغې په شکل کښې د صبا په وخت کښې نازل شو، دې نه روستو ملائکو ټول کلي اپوټه کړو او په هغوی باندې ئې د کانړو باران وکړو. الله تعالیٰ فرمائي يقيناً پدې خبرو کښې د فکر کونکو دپاره لوئې نخې دي، او دا کلې د مدينې نه شام ته د تلونکو په لاره کښې واقع دې. ددې لارې هر مسافر د دوی باقي مانده آثار په سترګو ويني، يقيناً ايمان والو دپاره ددې نه لوئې عبرت او نصيحت حاصلول پکار دي.
مُشْرِقِيْنَ : اَىْ دَاخِلِيْنَ فِيْ وَقْتِ شُرُوْقِ الشَّمْسِ) چه داخليدونکي وو په وخت د نمرختلو کښې. په سورة هود کښې ئې (مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ) وئيلي وو نو وجه دا ده چه د صبا په وخت د دوی عذاب شروع شو او د نمرخاته په وخت د دوی معامله ختمه شوه.
لِّلْمُتَوَسِّمِيْنَ : [اَىْ لِلْمُتَفَكِّرِيْنَ النَّاظِرِيْنَ فِي الْاَمْرِ يَسْتَدِلُّوْنَ بِهَا وَالْمُعْتَبِرِيْنَ] هغه خلکو لره چه فکر کوي او د يو شي په انجام کښې ګوري او د هغې نه دليل نيسي او عبرت اخلي.
توسم په اصل کښې تثبت او تفکر ته وائي. يعني يو خبره مضبوطول او په هغې کښې فکر کول. او پوره تحقيق کونکې. دارنګه توسم يو شي ته د هغې په نښو سره نظر کول او په هغې کښې فکر کول دي، چه دې ته فِراست هم وائي.
حافظ سيوطيؒ په ((الاکليل)) کښې ليکلي دي چه دا آيتِ کريمه ((د عِلمِ فِراست)) دپاره دليل دې. ترمذيؒ د ابوسعيد خدري ﷺ نه مرفوعاً روايت کړيدې چه ((د مؤمن د فراست نه اُويريږه، ځکه چه هغه د الله په نور سره ليدل کوي، بيا هغوی دا آيت اُولوستلو)).
دا حديث د سند په لحاظ سره اګرچه شيخ البانی رحمه الله ضعيف ګرځولې دې. (الضعيفه/١٨٢١) ليکن ددې معنیٰ ډير حده پورې صحيح ده او د ډيرو آيتونو نه اشارةً معلومه ده.
علم فراست دا دې چه د انسانانو د هيئت، د هغوی د شکلونو، رنګونو او اقوالو نه د هغوی په اخلاقو او فضائلو او رذائلو باندې دليل ونيولې شي. الله تعالیٰ په سورة البقره آيت (٢٧٣) کښې د سوال نۀ کونکو غريبانو مسلمانانو په باره کښې نبی کريم ﷺ ته خطاب کولو سره فرمايلي دي: ﴿تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمَاهُمْ﴾ چه تۀ به دوی په نخو سره پيژنې).
او په سورة محمد آيت (٣٠) کښې د منافقانو په باره کښې فرمايلي دي: ﴿وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ﴾ چه تۀ به دوی د دوی د چالاکۍ د خبرونه پيژنې. معلومه شوه چه علم فراست يو

حقیقت دے چه ددے اقرار قرآن کوی، او د انسانانو د ظاهری احوالو په ذریعه د هغوی ډیر باطنی اخلاق او خصلتونه معلومیدے شی۔ (محاسن التاویل للقاسمیؒ)

لَبِسَبِيلٍ مُّقِيمٍ : یعنی دا کلی د قوم لوط په نیغه لاره کښې وو مکے والا چه به شام ته تلل نو پدے لاره به ورتیریدل۔

فِي ذَٰلِكَ : یعنی د دوی په هلاکت کښې۔ / یا په دغه مذکوره ښار او کلی کښې۔

| |
|---|
| وَإِن كَانَ أَصْحَابُ الْأَيْكَةِ لَظَالِمِينَ ﴿٧٨﴾ فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ وَإِنَّهُمَا |
| او اګرکه وو ښار والا خامخا ظلم کونکی۔ نو بدله واخسته مونږ د دوی نه او یقیناً دا دواړه |
| لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ ﴿٧٩﴾ وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ |
| (کلی) په ښکاره (مشهور) لاره باندے دی۔ او یقیناً دروغجن کړی وو حجر والو |
| الْمُرْسَلِينَ ﴿٨٠﴾ وَآتَيْنَاهُمْ آيَاتِنَا فَكَانُوا عَنْهَا |
| پیغمبرانو لره۔ او ورکړے وو مونږ دوی ته معجزے خپلے نو وو دوی د هغے نه |
| مُعْرِضِينَ ﴿٨١﴾ وَكَانُوا يَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا آمِنِينَ ﴿٨٢﴾ |
| مخ ګرځونکی۔ او وو دوی چه تراشل به ئے د غرونو نه کورونه، په امن اوسیدونکی۔ |
| فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ ﴿٨٣﴾ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُم |
| نو اونیول دوی لره هیبتناک آواز په وخت د صبا کښې۔ نو وانه ړوو د دوی نه عذاب |
| مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٨٤﴾ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا |
| هغه عملونو چه دوی کول۔ او نهٔ دی پیدا کړی مونږ آسمانونه او زمکه او هغه څه |
| بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَإِنَّ السَّاعَةَ |
| چه په مینځ د دواړو کښې دی مګر دپاره د ښکاره کولو د حق او یقیناً قیامت |
| لَآتِيَةٌ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيلَ ﴿٨٥﴾ |
| خامخا راتلونکے دے نو مخ اوګرځوه مخ ګرځول ښائسته۔ (په ښائسته طریقه سره)۔ |

**تفسیر** : اصحاب ایکه نه مراد د شعیب علیه السلام قوم دے، دا خلق په یوه داسے علاقه کښې

وسیدل چه هلته ونے ډیرے موجودے وے، د دوی ظلم دا وو چه دوی به د الله تعالیٰ سره شریکان جوړول، او په لاره تلونکی مسافر به ئے لوټ کول، او په ناپ تول کښې به ئے کمی کوله، نو الله تعالیٰ د دوی د هدایت دپاره شعیب علیه السلام ولیږلو لیکن دوی د هغه تکذیب وکړو نو الله تعالیٰ د دوی د هلاکولو دپاره داسے یوه وریځ راولیږله چه په هغے کښې اُور وو چه هغه دوی لره ایره کړل۔ د قوم لوط علیه السلام او قوم شعیب علیه السلام کلی په لویه لاره باندے یو بل ته نزدے وو۔

مفسرین لیکی چه مدین او اصحاب الایکه دوه امتونه وو، دواړو ته الله تعالیٰ شعیب علیه السلام پیغمبر رالیږلے وو۔ ایکه: هغه ځای ته وائی چه په هغے کښې ګڼړے ونے او ګڼړ باغ وی۔ یعنی (بڼړ)

**فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ**: مونږ په عذاب سره هلاك کړل۔

**وَإِنَّهُمَا**: یعنی کلے د قوم لوط علیه السلام او مکان د اصحاب الایکه۔

**لَبِإِمَامٍ مُّبِيْنٍ**: یعنی په لاره واضحه ښکاره باندے دی (ابن عباسؓ) لارے ته امام ځکه وائی چه ددے اقتداء کیدے شی او پدے باندے روانیدل کیدے شی۔

**وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ**: د اصحابِ حجر نه مراد د ثمودیانو قوم دے۔ ((حِجر)) د مدینے منورے او د شام ترمینځ یو مشهور میدان دے (د تبوك په لاره دے) چه هلته به دا خلق وسیدل، د شام نه چه کوم حاجیان راځی نو پدے میدان راتیریږی، (دے ته ((دیار ثمود)) او ((مدائن صالح)) هم وائی) د دوی د هدایت دپاره الله تعالیٰ صالح علیه السلام رالیږلے وو، چه دوی د هغه تکذیب وکړو۔ او مُرْسَلِيْنَ ئے د جمع صیغه پدے وجه راوړیده چه څوك د یو نبی تکذیب کوی نو ګویا که هغه د ټولو نبیانو تکذیب کوی۔

دوی د صالح علیه السلام نه مطالبه وکړه چه که ته نبی ئے نو د غر نه اُوښه راوباسه او مونږ ته ئے اُوښایه۔ صالح علیه السلام دعا وکړه او د الله په حکم سره د غر نه اُوښه راوتله، لیکن د چا په زړونو چه الله تعالیٰ د کفر مهر ولګوی نو هغوی ته کله هدایت حاصلیدے شی، هغوی هغه اُوښه هلاکه کړه او ایمان ئے رانهٔ وړو، نو الله تعالیٰ دوی ته درے ورځو پورے مهلت ورکړو او دے نه روستو ئے دوی په یو انتهائی سختے او خطرناکے چغے سره هلاك کړل چه په سهار کښې پرے راغله۔ او د دوی دولت او غرونو او کنستے شوی مکاناتو دوی لره د الله سبحانه د عذاب نه بچ نکړل۔

**آيَاتِنَا**: آیات معجزاتو او نخو ته وائی او دا ئے جمع راوړه ځکه چه صالح علیه السلام ته ډیر

معجزات ورکړے شوی وو چه يو په کښې دغه اُوښه وه او بيا پدے اُوښه کښې دننه ډيرے نخے وے چه د هغے د کاڼړی نه پيدا کيدل، د هغے نه زر بچے پيدا کيدل، د هغے غټ والے او ډير پئ ورکول چه ټول کلی ته به رسيدل۔

فَكَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ : اَىْ غَيْرَ مُعْتَبِرِيْنَ بِهَا وَلَا مُلْتَفِتِيْنَ اِلَيْهَا ۔ يعنى هيڅ عبرت ئے د دغه نخو نه وانخستو او نۀ ئے ورته څه توجه ورکړه۔ کرخیؒ وائی چه دا آيت دليل دے چه نظر (سوچ نه کار اخستل) او استدلال (مسئله باندے دليل نيول) واجب کار دے او تقليد مذموم دے۔ (فتح البيان)

وَكَانُوا يَنْحِتُوْنَ : د دوی يو صفت دا هم وو چه د کبر او غرور په وجه به ئے د خپل طاقت د ښکاره کولو دپاره بغير د ضرورت نه غرونه پريکول او کورونه به ئے جوړول۔

بخاریؒ او مسلمؒ د ابن عمر ﷺ نه روايت کړيدے چه نبی کريم ﷺ چه کله تبوک ته تلو نو هلته چه تيريدو نو خپل سر ئے خکته کړو او په تيزئ سره د تيريدو دپاره ئے سورلی تيزه کړه او صحابه کرامؓ ته ئے ووئيل چه د عذاب ورکړے شوو قومونو کورونو کښې په ژړا سره داخل شئ، او که ژړا نۀ درځی نو د ژړا شکل جوړ کړئ، ددے نه يره ده چه چرته تاسو ته هم د هغوی په شان عذاب ونۀ رسی۔ (بخاری: ۴۳۲) مسلم (۷۶۵۵)

آمِنِيْنَ: يعنی خانله ئے امن طلب کولو ليکن کله چه د الله تعالیٰ عذاب راغلو نو دغه پخو کورونو ورته هيڅ امن ورنکړو۔

مَا كَانُوا يَكْسِبُوْنَ : (۱) مِنْ نَحْتِ الْجِبَالِ ۔ دوی چه څه کول چه غرونه تراشل دی هغے ورله فائده ورنکړه۔ (۲) مِنَ الشِّرْكِ ۔ يعنی دوی چه کوم شرکونه کول او باباګان ئے نيولی وو او شرکی اعمال به ئے کول نو هغوی هم ورته فائده ورنکړه لکه سورة هود کښې ذکر شوی وو ﴿فَمَا أَغْنَتْ عَنْهُمْ آلِهَتُهُمُ الَّتِي يَدْعُونَ مِنْ دُوْنِ اللهِ﴾ ۔ (هود: ۱۰۱)

وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ : په مکی سورتونو کښې د سورت په آخر کښې ښکلی آداب ذکر کوی چه هغه د فرض په درجه کښې وی او په مخکنو خبرو باندے تفريعات کوی، دلته نه د تبليغ لس آداب راوړی، او پدے آيت کښې د مخکنو قومونو د عذاب دپاره علت ذکر کوی چه الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه د عدل دپاره پيدا کړيدی او د عدل تقاضا دا ده چه مجرمانو ته عذاب ورکړے شی۔

بِالْحَقِّ: د حق ۱- يوه معنیٰ د عدل ده، ۲- بل اظهار د حق دے۔ ۳- بله معنیٰ ئے حافظ ابن القيمؒ ذکر کړيده اَیْ لِلْحِكْمَةِ وَهِيَ مَعْرِفَةُ اللهِ وَتَوْحِيْدُهٗ وَعِبَادَتُهٗ وَاتِّبَاعُ رُسُلِهٖ وَشَرْعِهٖ اِلٰى

آخِرِه) یعنی الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه د یو حکمة دپاره پیدا کړیدی چه هغه د الله تعالیٰ پیژندل او د هغهٔ یواځې بندګی کول او د هغهٔ د رسولانو تابعداری کول او د هغهٔ شرع منل دی۔ نو د کائناتو د پیدائش مقصد د الله تعالیٰ بندګی ده۔ دے ته په کتو سره بنده خپل خالق راياد کړی او د هغهٔ شکر ادا کړی۔ او که څوك د هغهٔ ناشکری کوی او د کفر لاره اختیاروی نو هغوی الله تعالیٰ هلاکوی لکه چه مخکنی قومونه ئے هلاك کړل او بیا قیامت راروان دے په هغے کښې به ورته د عملونو بدلے ورکړی۔

فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيْلَ : ددے تفریع مطلب دا دے چه هر کله دوی ته د دوی په اعمالو باندے جزاء ورکول الله تعالیٰ ته سپارل شویدی او هغه به ئے ورته په قیامت کښې ورکوی، نو اے زما نبی! تهٔ دوی ته د تکلیف ورکولو نه، او دارنګه دوی چه ستا دعوت په بنهٔ شان سره نهٔ اخلی ددے نه ورله مخ واړوه۔ او د دوی دپاره په جلتیٔ سره عذاب مهٔ غواړه۔

(الطاهر ابن عاشورؒ)

نو دا اول ادب دے رسول الله ﷺ او داعی ته چه د دعوت کار به جاری ساتی او که په باب د دعوت کښې کوم تکلیفونه راځی نو په هغے به صبر کوی۔ صفح معافی کولو ته وئیلے شی او دا دلته په لازم معنیٰ کښې استعمال دے چه هغه د دین د دشمنانو په کارونو باندے نهٔ غمجن کیدل او نهٔ غصه کیدل دی چه د هغے په وجه خپل کار پریدی۔ (ابن عاشورؒ)

## صفح جمیل څه شے دے؟

۱- الصَّفْحَ الْجَمِيْلَ : إِظْهَارُ خُلُقٍ حَسَنٍ ته وائی۔ یعنی د ښائسته اخلاقو مظاهره کول، او د دوی سره د معافیٔ معامله کول دی، او د دوی نه مخ اړول دی په غیر د جزع فزع نه او بغیر د ویرے نه۔

۲- سیدنا علی ﷺ فرمائی : اَلرِّضَا بِغَيْرِ عِتَابٍ۔ د ملامتیا وئیلو نه بغیر راضی کیدل۔ او دا ورته څکه وائی چه پدے سورت کښې استهزاء د مشرکانو ذکر شوه، نو الله تعالیٰ خپل نبی ته وائی چه راضی وسیږه او هیڅ ملامتیا په دوی مهٔ وایه، معامله ئے الله ته وسپاره۔

۳- یعنی مخ واړوه د دوی نه ښائسته مخ اړول او دوی باندے په انتقام اخستو کښې جلتی مهٔ کوه او د دوی سره د صبرناك شخص په شان معامله وکړه۔ (فتح البیان)

٤- علامه سعدیؒ وائی : ماته پدے مقام کښې یوه بله معنیٰ ښکاره شویده، هغه دا چه دلته مامور بِهٖ ښائسته اعراض کول ذکر شویدی یعنی هغه اعراض چه د کینے او قولی او

فعلي ضرر نه بچ وي، نۀ هغه صفح (اعراض) چه ښائسته نۀ وي چه هغه معافي کول دي په غير د خپل محل کښې نو کوم مقام چه د سزا ورکولو تقاضا کوي، هلته به صفح او اعراض نکوي لکه ظالمان او معتدينو ته سزا ورکول شو چه دوي ته صرف سزا ورکول فائده ورکوي۔ (نۀ معافي) (السعديّ) يعني د الله د حکم مطابق به مخ اړوه۔

٥۔ الصَّفۡحَ الۡجَمِيۡلَ دا هم دے چه صرف د الله تعالیٰ د رضا دپاره مخ وګرځولے شي او د دوي نه براء ت وکړے شي بغير د دنيا د مقصدونو نه۔ لکه داسے خبره په سورة مزمل (١٠) آيت کښې هم ده: ﴿وَاهۡجُرۡهُمۡ هَجۡرًا جَمِيۡلًا﴾۔ (يعني پريږده دوي لره په پريښودو ښائسته سره) او مراد ددے نه په خپلو حقوقو او ضررونو کښې معافي کول دي نۀ د الله په حقوقو کښې، لهذا دا په آيت د قتال سره منسوخ نۀ دے بلکه دے ته اخلاق وائي۔

| |
|---|
| إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيْمُ ﴿٨٦﴾ وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا |
| يقيناً رب ستا ډير پيدا کونکے پوهه دے۔ او يقيناً مونږ درکړي دي تا ته اُووه آيتونه |
| مِّنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْآنَ الْعَظِيْمَ ﴿٨٧﴾ لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلٰى مَا |
| چه بار بار لوستلے کيږي او قرآن لوئي شان والا۔ مۀ اُوږدوه سترګے خپلے هغه څه |
| مَتَّعْنَا بِهٖ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ |
| چه مزے ورکړيدي مونږ په هغے سره مختلف قسمه کافرانو ته د دوي نه |
| وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٨٨﴾ |
| او مۀ غمجن کيږه په دوي باندے او خکته کړه وزر خپل مؤمنانو ته۔ |

**تفسير**: مخکښې چه د قيامت د راتلو کومه خبره شويده، د هغے د زيات مضبوطيا په توګه وئيلے شويدي چه رب العالمين د هر شي پيدا کونکے دے، هيڅ شے هغه له نشي عاجز کولے، نو د قيامت په راوستو قادر دے، هغه د ټولو هغه اجسامو نه خبردار دے کوم چه مړۀ شوي او خاورو سره هوار شوي او ذره ذره ختم شويدي۔

سورة يس آيت (٨١) کښې الله تعالیٰ فرمايلي دي: ﴿اَوَلَيۡسَ الَّذِيۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓي اَنۡ يَّخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ بَلٰي وَهُوَ الۡخَلّٰقُ الۡعَلِيۡمُ﴾ (چه چا آسمانونه او زمکے پيدا کړيدي، آيا هغه د دوي په شان په پيدا کولو قادر نۀ دے، بيشکه قادر دے، او هغه ډير پيدا کونکے،

هرڅه باندې پوهېدونکې دې).

**فائده :إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلَّاقُ** : علامه ابن عاشورؒ وائي چه دا جمله د فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيلَ دپاره علت واقع شويده، يعني د دوی نه بنائسته مخ واړوه ځکه چه پدې مخ اړولو کښې ستا فائده هم شته او د دوی هم چه ستا رب په هغې باندې پوهېږي، نو د نبي کريم ﷺ فائده په صفح کښې د هغه کامل اخلاق رابښکاره کيدل دي، او د دوی فائده پکښې دا ده چه اميد دې چه دوی به ايمان راوړي ځکه چه الله خلاق (پيدا کونکې) ستاسو هم دې، او د دوی هم، او ستا د نفس دپاره هم او د دوی د نفسونو دپاره هم۔ او هغه عليم (پوهه) دې په هغه عمل چه ستاسو نه هر يو ورته راتلل کوي۔

او ددې جملې مناسبت د ﴿وَإِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ﴾ سره ښکاره دې۔

او په (خلاق او عليم) صفتونو راوړو کښې اشاره ده زيري د رسول الله ﷺ ته چه الله تعالىٰ به ددې خلکو نه هغه خوك راپيدا کړي چه هغوی به د نبي کريم ﷺ اولياء (دوستان) وي، او دا هغه خلك وو چه ددې آيت د نازليدو نه روستو ئې ايمان راوړو او يا روستو راپيدا شوی وو لکه رسول الله ﷺ هم فرمائيلي وو (چه کيدې شي چه الله تعالىٰ به د دوی د شاګانو نه داسې خلك پيدا کړي چه د الله بندګي به کوي)

(التحرير والتنوير ۶۳/۱۳)

**وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا**: دا علت دې دپاره د مخکښې (فَاصْفَحْ) او دارنګه د روستو (لَاتَمُدَّنَّ) دپاره يعني تسلي ساته۔ او پدې کښې اشاره ده چه قرآن والو له پکار دي چه د مشرکانو او دنيا والو هيڅ پرواه ونۀ ساتي۔ او حاصل ئې دا دې : چه نبي کريم ﷺ ته د قريشو کافرانو په تکليفونو باندې د صبر کولو تلقين کولو سره ونيلې شويدی چه تا ته خو الله تعالىٰ بيشماره لوئي نعمتونه درکړيدی چه په هغې کښې د ټولو نه لوئي نعمت سورة الفاتحه او ټول قرآن کريم دې، پدې وجه ته زړۀ مۀ ورکوتې کوه، او د پيغام رسولو په کار کښې لګيا اُوسه، ځکه چه بنده کله په خپل ځان باندې د الله تعالىٰ لوئي نعمتونه يادوی نو د دعوت په کار کښې مشکلات آسانيږي۔ (القاسميؒ)

علامه ابن عاشورؒ وائي : دا جمله معترضه ده په مينځ د (فَاصْفَحْ) او د (لَا تَمُدَّنَّ) کښې۔ نو مخکښې تسلي ورکړې شوه نو اُوس الله تعالىٰ خپل نبي ته وعده د احسان راياد وي دې دپاره چه هغه ته لوی نعمت راياد کړي دې دپاره چه د هغۀ زړه مطمئن شي چه لکه ځنګه الله تعالىٰ هغه سره په دغه موجوده نعمتونو سره احسان کړيدې نو دغه شان به ورسره

نورے وعدے هم رشتینی کوی۔ او پدے احسان رایادولو کښې تعریض دے رد د منکرینو ته چه هغوی ونیلی وو ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ﴾ ۔ یعنی دے لیونے نهٔ دے بلکه الله تعالیٰ پرے عظیم احسانات کړیدی۔ او پدے آیت کښې د قرآن کریم عظمتِ شان او د مشرکانو سپك ژوند ته اشاره ده۔ (التحریر والتنویر)

سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ : ددے دوه تفسیرونه دی (۱) جمهور مفسرین وائی چه ددے نه سورتِ فاتحه مراد ده چه دا اُوه آیتونه او بار بار په مونځونو وغیره کښې تکرارېږی۔ نو ځکه ورته مثانی وائی۔ او دارنګه مضامین ئے مکرر دی او اضداد پکښې ذکر دی، لکه دنیا او آخرت، خالق او مخلوق، منعم علیهم او مغضوب علیهم۔ نو (وَالْقُرْآنَ الْعَظِيْمَ) عطف د عام دے په خاص باندے۔ یا قرآن به په معنیٰ د مَقْرُوْء سره وی۔ یعنی هغه سورتِ فاتحه چه بار بار لوستلے شی او لوی شان والا دے۔

(۲) علامه قاسمیؒ او سعدیؒ دے ته ترجیح ورکړیده چه د سبع مثانی نه اَلسَّبْعُ الطِّوَال (اوه اُوږده) سورتونه مراد دی چه هغه بقره، آل عمران، نساء، مائده، انعام، اعراف او اوم انفال او توبه دی، او دا د ابن عباس رضی الله عنه نه هم مروی دی۔ (فتح البیان)

او دا ځکه چه روستو (وَالْقُرْآنَ الْعَظِيْمَ) نه مراد سورتِ فاتحه ده۔ لکه د بخاریؒ په روایت کښې رسول الله ﷺ سورتِ فاتحے ته (اَلْقُرْآنُ الْعَظِيْم) ونیلے دے۔

(هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْآنُ الْعَظِيْمُ الَّذِيْ اُوْتِيْتُهٗ) (بخاري: ٤٤٧٤)

لیکن دا مطلب نهٔ دے چه صرف همدغه مراد دی ځکه چه دا سورت مکی دے او دغه اُوه سورتونه مدنی دی۔ بلکه مطلب دا دے چه د قرآن دا الفاظ دغه سورتونو ته هم شاملیږی۔ (القاسمیؒ)

او سورتِ فاتحه ته قرآن عظیم پدے وجه وائی چه دا سورت مشتمل دے په لویو مضامینو د قرآن باندے ګویا که دا د ټول قرآن اجمالی خلاصه ده، او د ټول قرآن اصول پکښې ذکر دی۔

لَا تَمُدَّنَّ: پدے آیت کښې داعی ته نور درے آداب ذکر کیږی۔ یعنی د سورة الفاتحه او قرآن کریم په شان نعمتونو په مقابله کښې د دنیا هر شے حقیر او معمولی دے، پدے وجه پدے لوئی نعمت باندے د الله تعالیٰ شکر ادا کوه، او دُنیا والو ته چه مونږ کوم عارضی نعمتونه ورکړیدی د هغے خواهش مهٔ کوه، هغه نعمتونه مونږ ددے دپاره ورکړیدی چه مونږ په دوی ازمیښت وکړو او څوك چه په ازمیښت کښې کامیاب نهٔ شی د هغه دپاره دا

نعمتونه وبال او تاوان گرځي.
**لَا تَمُدَّنَّ** : سترګې اوږدول کنایه وي د پسخیدو نه. واحدي وائي: يو شي ته سترګې اوږدول دا دي چه هغې ته همیشه ګوري او همیشه کتل دلالت کوي د هغه شي په ښه ګڼړلو او د هغې د تمنا کولو.
**فائده** : دلته ئې حرف عاطف (واو) رانهٔ وړو او په سورة طه کښې ئې (وَلَا تَمُدَّنَّ) وئیلې دے، ځکه چه هلته مخکښې امرونه ذکر شویدي نو بیا وروسته دغه نهي راغلې ده. او دلته دا جمله تمهید دے د مخکښې جملې دپاره نو ځکه عطف ونشو. او که عطف شوے وے نو دا مطلب به نهٔ معلومیدے. (ابن عاشورؒ)
**مَتَّعْنَا** : تعبیرئې په متاع سره وکړو اشاره ده ددے زر زائله کیدو ته.
**أَزْوَاجًا**: جمع د زوج ده، يو شخص مثل د بل وي په مالدارئ کښې.
١- نو مجاهدؒ وائي چه ددے نه مراد اَلْاَغْنِيَاءُ وَالْاَمْثَالُ وَالْاَشْبَاه دي. یعنی مالداره او یو بل سره (په مالدارئ کښې) مشابه او برابر خلك.
٢- یا ازواج اصناف (قسما قسم څیزونو) ته وائي. (ابن قتیبهؒ)
عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي: پدے آیت کښې سرے ددے نه منع شو چه د خپل ملګري د مال ارمان وکړي.
سفیان بن عیینهؒ وائي: چا ته چه قرآن ورکړے شو او هغه سترګې يو داسے شي ته اوږدے کړے چه هغه قرآن سپك ګڼړلو نو دهٔ هغه شے لوی وګڼړو چه قرآن ئې سپك ګڼړي. او بل روایت د هغه نه داسے دے: [مَنْ أُعْطِيَ الْقُرْآنَ فَمَدَّ عَيْنَيْهِ إِلَىٰ شَيْءٍ مِنَ الدُّنْيَا فَقَدْ صَغَّرَ الْقُرْآنَ]
چا ته چه الله تعالیٰ قرآن ورکړو بیا د دنیا يو شي ته مائل شو نو هغه د قرآن کریم سپکاوے وکړو. (ابن المنذرؒ والدر المنثور)
**وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ** : دویم ادب: ١- وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ حَيْثُ لَمْ يُؤْمِنُوا وَعَانَدُوا.
یعنی قریش کافران که ایمان نهٔ راوړي او عناد کوي نو غم مهٔ کوه. مخکښې منع وه د هغوی مالونو او سامانونو ته د کتلو نه اوس ئې منع کړو د هغوی د پرواه ساتلو نه.
٢- عَلَىٰ مَا فَاتَكَ مِنْ مُشَارَكَتِهِمْ فِي الدُّنْيَا)
یعنی پدے مهٔ خفه کیږه چه تهٔ د دنیا والو سره په دنیا کښې شریك نهٔ ئې، چه هغوی سره مالونه دي او تا سره نشته. اول مطلب غوره دے. (فتح البیان)
**وَاخْفِضْ**: یعنی کوم غریبان او کمزوري مسلمانان چه تا سره دي د هغوی سره تواضع

اختیار کړه، دوی خپل ځان ته نږدې کړه لکه څنګه چه مرغۍ وزرې وغوړوی او خپل بچي د وزرو د لاندې پټ کړي۔ نو پدې کښې ډیر شفقت او تواضع ته اشاره ده ځکه چه مارغه ډیر نرم زړه والا وی۔ نو اشاره ده چه خپل تابعدار د خپلو بچو په شان وګڼره۔

| وَقُلْ اِنِّیْٓ اَنَا النَّذِیْرُ الْمُبِیْنُ ﴿۸۹﴾ كَمَآ اَنْزَلْنَا |
|---|
| او اُووایه یقیناً زۀ یره درکونکے ښکاره یم۔ لکه څنګه چه (عذاب) نازل کړو مونږ |
| عَلَى الْمُقْتَسِمِیْنَ ﴿۹۰﴾ الَّذِیْنَ جَعَلُوا الْقُرْاٰنَ عِضِیْنَ ﴿۹۱﴾ |
| په تقسیم کونکو باندې۔ هغه کسان دی چه ګرځولے ئې دے قرآن لره ټوټې ټوټې۔ |
| فَوَرَبِّكَ لَنَسْــَٔلَنَّهُمْ اَجْمَعِیْنَ ﴿۹۲﴾ |
| پس قسم دے په رب ستا خامخا تپوس به کوو د دوی ټولو نه۔ |
| عَمَّا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴿۹۳﴾ |
| په باره د هغې عملونو کښې چه دوی ئې کوی۔ |

**تفسیر** : دا بل ادب دے۔ یعنی قریشو کافرانو ته اُووایه چه زۀ د الله تعالیٰ د طرف نه خلقو لره د داسې دردناك عذاب نه یرونکے یم، لکه څنګه عذاب چه الله تعالیٰ د قوم صالح په هغه کافرانو نازل کړے وو چه هغوی د هغهٔ مخالفت او تکذیب کړے وو، او د هغهٔ د قتلولو ئې په خپل مینځ کښې قسم خوړلے وو۔ په سورة النمل آیت (۴۹) کښې الله تعالیٰ د هغه کافرانو په باره کښې فرمایلی دی : ﴿ قَالُوْا تَقَاسَمُوْا بِاللّٰهِ لَنُبَیِّتَنَّهٗ وَاَهْلَهٗ ثُمَّ لَنَقُوْلَنَّ لِوَلِیِّهٖ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ اَهْلِهٖ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴾ (دوی خپل مینځ کښې لوئې قسمونو خوړلو سره لوظ وکړو چه د شپې به په صالح او د هغهٔ په کورو الو باندې حمله وکړو او د هغهٔ وارثانو ته به صفا وایو چه مونږ د هغهٔ د اهلِ د هلاکت په وخت موجود نهٔ وو او مونږ بالکل رشتینی یو)۔ بناء پدې به د قرآن نه مراد آسمانی کتاب وی چه د هغې د اتباع حکم قوم صالح ته شوے وو۔ لکه روستو نور اقوال راځی۔

كَمَآ اَنْزَلْنَا : دا کاف د تشبیه دپاره دے، نو مشبه یا خو انذار دے چه معلومیږی د (النذیر المبین) نه۔ اَیْ اَنَا النَّذِیْرُ الْمُبِیْنُ اِنْذَارًا مِثْلَ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِیْنَ) یعنی زۀ تاسو ته ښکاره یره درکوم په شان د هغه عذاب چه مونږ په مقتسمینو نازل کړے وو۔ (ابن عاشورؒ)

يا تعبير داسے دے : (اَنَا النَّذِيۡرُ لَكُمۡ مِنۡ عَذَابٍ مِثۡلِ عَذَابِ الۡمُقۡتَسِمِيۡنَ)
زۀ تاسو ته يره درکونکے يم د عذاب نه په شان د عذاب د مقتسمينو۔ (فتح البيان)

## مقتسمين څوك دي؟

پدے کښې د مفسرينو ډير اقوال دي (۱) مرجوح قول دا دے چه ددے نه مراد اهل کتاب دي او د قرآن نه مراد د لوستلو کتاب دے چه هغه تورات دے نو دوی د الله په کتاب کښې تقسيم کړے وو او هغه ئے ټوټے ټوټے کړے وو چه بعض ئے پټ کړے وو او بعض ئے ښکاره کړے وو۔ نو په يهودو او نصاراؤ باندے الله تعالیٰ قسماقسم عذابونه راوستی دي نو دغه شان پدے موجوده کفارو به ئے هم راولی۔

نو دوی ډيرے د يهودو او نصاراؤ نه عبرت واخلی چه هغوی هم د الله د کتاب پسے توقے کړے وے او دوی هم وکړے۔ دا تفسير جائز دے ليکن مرجوح دے۔

(۲) ظاهر د قرآن او غوره تفسير دا دے (او هغه فراء رحمه الله غوره کړيدے) چه د ((مقتسمين)) نه مراد هغه شپاړس قريش کافران دي کوم چه وليد بن مغيره مکے ته د داخليدو په لارو کښې متعين کړی وو دے دپاره چه دوی هر راتلونکے د اسلام او د رسول الله ﷺ نه واړوی۔ (چه د هغوی نومونه ابن عاشورؒ ذکر کړيدی) دوی وئيلی وو چه د حج ورځے رانزدے شويدی او بهر دنيا نه خلك راځي هسے نۀ چه پدے شخص (محمد ﷺ) باندے ايمان راوړی۔ نو راځئ چه ددۀ دپاره يو پروګرام جوړ کړو، وليد راجمع کړل چه ددۀ په باره کښې به خلکو ته څه وايو؟ نو چا ووئيل چه شاعر دے، بيا ئے ووئيل چه شاعر خو نۀ دے، چا ووئيل کاهن به ورته وايو، ليکن هغه خبره ئے هم رد کړه، او چا ووئيل چه ليونے به ورته وايو۔ چا ووئيل چه ساحر به ورته وايو ؟ دا ئے هم رد کړه چه سحر خو مونږ پيژنو ددۀ په کلام کښې نشته۔ بيا ئے خپله ووئيل چه ما ته دا ښکاره کيږی چه ددۀ کلام د سحر په شان دے څکه چه خلکو کښې جدائی راولی لکه څنګه چه سحر جدائی راولی۔

وليد ئے مشرو نو دوی شپاړس کسان مقرر کړل او د مکے په کنډه وونو او لارو باندے ئے تقسيم کړل او هلته ئے کينول چه خلکو ته به ووايئ چه دلته يو ساحر پيدا شويدے خو اله ورنشئ۔ کله چه به يو تن حج يا عمرے ته راتللو نو دوی به وريسے ورغلل او دغه خبره به ئے ورته وکړه، په زوره باندے ئے د رسول الله ﷺ نه خلك خبرول، په غير شعوری طور سره ئے د رسول الله ﷺ دعوت خورولو۔ (لکه دا په هره زمانه کښې د مشرکانو او مبتدعينو

طریقه ده چه د حق پرست دپاره دعوت کوی او د هغهٔ نه خلك خبروی چه دلته یو تن پیدا شویدے، که داعی د حق دا خلك خبره ولے نو ډیره موده به تیره شوے وے خو الله تعالیٰ ورله د باطل پرست خوله د دعوت ذریعه وګرځوی)

او دے کسانو ولید د مسجد حرام په دروازه کښ د محاکمے دپاره کینولے وو چه کوم حاجی به راغلو نو د ولید نه به ئے تپوس وکړو چه بهر څه کسانو داسے خبره وکړه آیا دا رشتینی ده؟ نو هغه به وویل (صَدَقُوْا) آؤ دے کسانو رشتیا ویلی دی۔ نو پدے طریقه به ئے خلك د الله تعالیٰ د لارے او د رسول الله ﷺ نه اړول۔ لیکن الله تعالیٰ به بیا هم حق ته خلك راوستل، د خلکو به شك شو چه ورشو دا څنګه شخص دے؟ او څوك دے؟

نو الله تعالیٰ په دغه کسانو باندے ناشنا عذابونه راوستل او زر تر زره ئے هلاك كړل، دانے ئے پرے راوخیژولے، او د چا په خیټو کښ دردونه راوستل او په لړو ورځو کښ تول مردار شو نو دلته الله تعالیٰ دغه کسان په مثال کښ ذکر کوی۔

(۳) یو دریم قول دا دے چه ددے نه مراد د قریش کافرانو هغه خلق دی چه د قرآن کریم پورے د ټوقو کولو دپاره ئے ددے سورتونه خپل مینځ کښ تقسیمول او وئیل به ئے چه دا سورت زما دے او دا ستا۔

(٤) څلورم قول دا دے چه د دوی نه د قریشو هغه خلق مراد دی چه قرآن کریم به ئے تقسیمولو او وئیل به ئے چه ددے بعض حصه شعر، بعض جادو او بعض د تیر شوی قومونو واقعات دی۔

(٥) پنځم قول دا دے چه ددے نه مراد یهود او نصاریٰ دی چه هغوی د قرآن کریم د بعض حصے تصدیق کړے او د بعضے نه ئے انکار کړے۔

(محاسن التاویل والطبری والبغوی والقرطبی وفتح البیان)

عِضِیْنَ: جمع د عِضَةٌ ده او په اصل کښ عِضْوَةٌ دے په وزن د فِعْلَةٌ۔ اندامونه اندامونه کول او د یو شی نه ډیرے حصے جوړول یعنی پوټی پوټی او ټوکرے ټوکرے کول۔ (فتح البیان)

یا جمع د عُضْوٌ ده۔ او ددے هم دغه معنیٰ ده۔ او د قرآن ټوکرے کول دا دی چه په هغے ایمان لری کوم چه د دوی د خواهش او تقاضا موافق وی او د باقی نه انکار کوی۔ یا ئے د قرآن په باره کښ مختلفے فتوے کولے، کله به ئے ویل چه دا دروغ دی، کله به ئے وئیل چه دا سحر دے او کله به ئے ویل چه دا شعر دے او کله به ئے ویل چه دا کهانت دے۔ او په لغت د قریشو کښ عَضْه سحر ته وائی۔ (الدر المنثور والطبری)

يا عضين د عَضَهٌ نه دے، (اَلْبَهْتُ وَالرَّمْیُ بِالْبَاطِلِ مِنَ الْقَوْلِ)۔
بهتان او په باطلو خبرو سره تهمت لګولو ته وئیلے شی۔ (الطبری)
فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ : (۱) هُم ضمير کافرانو ته راجع دے، يعنی الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ د تمامو کافرانو د عملونو حساب کوی کوم چه به دوی په دنيا کښې کول۔
(۲) يو دويم قول دا دے چه دلته مؤمن او کافر ټول انسانان مراد دی۔ لکه د قرآن کريم د نورو آيتونو نه معلوميږی چه د ټولو انسانانو نه به د هغوی د عملونو په باره کښې تپوس کيږی۔ صاحب د ((محاسن التنزيل)) رائے ده چه د ﴿عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ نه مراد د قريش کافرانو د قرآن کريم په باره کښې د تقسيم عمل دے چه ددے بعض شعر، بعض جادو او بعض د تير شوی قومونو واقعات دی، دے کافرانو ته په دے آيت کښې دهمکی ورکړے شويده۔ الله تعالیٰ د خپل کتاب په مخالفت باندے ډير ناراضه کيږی پدے وجه ئے په خپل ځان قسم کړيدے چه ددے کسانو سره به ضرور حساب کوی۔

| |
|---|
| فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ |
| نو صفا بيان کړه هغه وحی چه حکم کيدے شی تاته (د هغے د بيان) او مخ واړوه د |
| الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۹۴﴾ إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِيْنَ ﴿۹۵﴾ الَّذِيْنَ يَجْعَلُوْنَ |
| مشرکانو نه۔ يقيناً مونږ کافی يو تا لره د توقو کونکو نه۔ هغه کسان چه جوړوی |
| مَعَ اللهِ إِلٰـهًا آخَرَ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۹۶﴾ وَلَقَدْ نَعْلَمُ |
| د الله سره مددګار بل نو زر دے چه دوی به پوهه شی۔ او يقيناً پوهيږو مونږ چه يقيناً |
| أَنَّكَ يَضِيْقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُوْلُوْنَ ﴿۹۷﴾ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ |
| تنګيږی سينه ستا په هغه خبرو چه دوی ئے وائی۔ نو پاکی بيان کړه سره د ستائينے د |
| رَبِّكَ وَكُنْ مِّنَ السَّاجِدِيْنَ ﴿۹۸﴾ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى |
| رب خپل نه او شه د سجده کونکو نه۔ او بندګی کوه د رب خپل تر هغے پورے |
| يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ ﴿۹۹﴾ |
| چه راشی تاته مرګ۔ (چه يقينی شے دے) |

**تفسیر** : پدے آیت کښې نور دوه ادبه ذکر کوی۔ اول (فَاصْدَعْ) او دویم (وَاَعْرِضْ) د اول مطلب دا دے چه ښکاره بیان کړه هغه مسئلے د کومے چه تا ته د بیانولو حکم شویدے۔ فَاصْدَعْ د صَدْعْ نه دے، څولو او خیرولو ته وئیلے شی، یعنی داسے صفا بیان وکړه چه د مشرکانو سینے پرے وچوی، پرېږده چه دوی پرے خفه شی۔

او دا ددے کلمے پدے مقام کښې ډیر بلاغت دے۔ او فراءؒ وائی : فَاصْدَعْ بِالْاَمْرِ اَیْ اَظْهِرْ دِیْنَکَ۔ یعنی دین خپل راښکاره۔ او دا غوره معنیٰ ده۔

او ځینی وائی معنیٰ دا ده : چه د دوی ډله او دین تس نس (جدا) کړه پدے طریقه چه دوی توحید ته راوبله نو دوی به د یو بل نه جدا شی۔ (فتح)

واحدیؒ وغیره مفسرینو د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه قول نقل کړیدے چه ددے آیت د نزول نه مخکښې نبی کریم ﷺ به خلق اسلام طرف ته په پټه رابلل۔ کله چه پدے آیت کښې هغه ته حکم وکړے شو چه هغه صفا د خلقو مخامخ راشی او د اسلام دعوت پیش کړی او د مشرکانو پرواه ونکړی، نو نبی ﷺ د صحابه کرامؓ سره بهر را ووتو او خلقو ته ئے د اسلام طرف ته ښکاره دعوت ورکړو۔

وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِیْنَ : اَیْ لَا تَلْتَفِتْ اِلَیْهِمْ وَلَا تُبَالِ بِلَوْمِهِمْ۔ یعنی د هغوی خبرو ته توجه مهٔ ورکوه او د هغوی په ملامتیا هیڅ پرواه مهٔ کوه چه وائی دا څنګه خبرے ئے شروع کړے، د پلار نیکه لاره ئے پریخوده۔ او ددے جملے په فائده به تهٔ هله پوهه شے چه کله تهٔ حق بیانوے او خلك درپسے خبرے شروع کړی، چه د اعراض معنیٰ دا ده چه خلك به هر څه وائی او زهٔ به پرے غوږونه کاڼه کړم لګیا به وی، زما ذمه واری حق بیانول دی۔

## قصه

ددے آیت ډیر لوی بلاغت دے چه عرب ددے په کمال پوهیدل۔ یو اعرابی چه قرآن ئے نهٔ وو وئیلے، او ځینی وائی چه لا ایمان ئے هم نهٔ وو راوړے په لاره روان وو د یو قاری نه ئے دا آیت واوریدو نو د اوښے نه راکوز شو او سجده ئے وکړه۔ هغه ته وویل شو چه آیا تهٔ پدے وخت کښې سجده کوے؟ (یعنی دا ناڅاپی شان سجده دِے څنګه وکړه؟) هغهٔ وویل : لِعِظَمَةِ قَائِلِهَا ۔ دا خبره چه چا کړیده د هغه عظمت ته مے سجده وکړه چه دومره لوی بلاغت والا ذات دے چه په کلام کښې ئے ډیر لوی کمال راجمع کړیدے۔

اِنَّا كَفَیْنٰكَ الْمُسْتَهْزِءِیْنَ : پدے آیت کښې الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته تسلی ورکوی او

دا د تخویف دنیوی نمونه ده. الله تعالیٰ خپل نبی ته ضمانت ورکړو چه د قریشو کوم سرداران چه تا پورے توقے کوی مونږ به د دوی سره مقابله کوو، دوی تا ته هیڅ ضرر نشی رسولے. مونږ ستا دپاره د دوی نه کافی یو.

ابن اسحاقؒ د عروه بن زبیر رحمه الله نه روایت کړیدے چه د نبی ﷺ پورے توقے کونکی کافرانو کښې پنځه ډیر مشهور وو: ولید بن مغیره، عاص بن وائل، اسود بن مطلب بن حارث بن زمعه، اسود بن عبد یغوث او حارث بن طلاطله. (قرطبیؒ) الله تعالیٰ دا ټول په یوه ورځ هلاك کړل.

د عبد الله بن مسعود ﷺ د یو روایت نه معلو میږی چه هغه امام بخاری رحمه الله په کتاب الوضوء کښې روایت کړیدے چه هغه قریش کافران: ابوجهل، عتبه، شیبه، ولید بن عتبه، امیه بن خلف او عقبه بن ابی معیط وو کوم چه د بدر په میدان کښې په بده طریقه قتل کړے شو، او د نورو مقتولینو سره په یو کوهی کښې ګوزار کړے شو. دا خلق د نورو څه کافرانو سره یوځای شو او د رسول الله ﷺ په اُوګه باندے ئے د کعبے مخے ته د مونځ کولو په حالت کښې د اُوښ پریوانونه (ګندونه) ارتولی وو، نو نبی ﷺ دوی ته ښیرے کړے وے چه اے الله! ته قریش او د دوی بد معاشان راونیسه.

الْمُسْتَهْزِئِينَ: دا آیت دلیل دے چه د محمد رسول الله ﷺ یا د هغهٔ د سنتو پورے توقے کول سبب د هلاکت دے.

او پدے کښې یوه اشاره ده او هغه دا چه یو تن کافر وی نو الله ورته صبر کوی او چه کله د رسول الله ﷺ یا د هغهٔ د سنتو پسے توقے شروع کړی نو الله ئے زر راګیروی، په هغه زمانه کښې استهزاء کونکی د نورو کافرانو په موجودګئ کښې زر هلاك شو.

او زمونږ په زمانه کښې چه څوك د سنتو پورے توقے کوی نو الله تعالیٰ یا په ښځو یا په لواطت شرمولی دی، یا ئے پرے ګارے اړولے دے، اُوږ ئے اخستے دے، یا مقتدیانو وهلی او په شرم ئے شړلی دی، الله تعالیٰ ذلیله کړیدی او پدے باندے وے د هر مسلمان تجربه ګواه ده.

الَّذِينَ يَجْعَلُونَ: پدے کښې یو قسم تسلی هم ده چه اے زما نبی! مهٔ خفه کیږه څکه چه دے مجرمانو زما بی ادبی هم کړیده ما سره ئے شریکان جوړ کړیدی، زهٔ به ورسره ګورم.

وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ: الله تعالیٰ نبی ﷺ ته خبر ورکړیدے چه د قریش کافرانو د استهزاء (توقو والا) خبرو سره چه تا ته کوم تکلیف رسیږی ددے نه مونږ خبر یو.

رسول الله ﷺ اګر که ټول کارونه الله ته سپارل مګر بیا هم د هغهٔ د خلکو په خبرو زړه

تنگیدو ځکه چه دا د انسانی فطرت تقاضا ده۔ لیکن تهٔ د صبر نه کار واخله، او د الله تعالیٰ په پاکی او حمدونو بیانولو کښې مشغول شه او مونځونه کوه، نو ستا غم به آسانیږی، او ذهنی تکلیف به کمیږی۔ دارنګه د الله مدد به راځی۔

او بله دا چه همدا د آخرت دپاره تیاری دی۔ الله تعالیٰ په سورة البقره آیت (٤٥) کښې فرمایلی دی: ﴿وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ﴾ چه تهٔ د صبر او مانځه په ذریعه د الله نه مدد وغواړه)۔

او سورة الرعد آیت (٢٨) کښې فرمایلی دی: ﴿اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ﴾ چه (خبر شه چه د الله په یاد سره زړونو ته اطمینان رسیږی)۔

دا آیت دلیل دی چه د مجرمانو د خبرو علاج په عبادت کښې دی۔ پدی عباداتو کښې د دعوت فائده هم ده او د انسان خپله فائده هم۔

فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ: په قرآن کښې ددی دوه مصداقه وی۔

(١) یو تری مونځ مراد وی۔ (وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا)۔ (طه: ١٣٠)

(٢) دویم تری اذکار شرعیه مراد دی۔ دلته دواړه مراد دی۔ او د سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ نه دعوت نهٔ وی مراد۔

وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَاْتِيَكَ الْيَقِيْنُ: د یقین نه مراد مرګ دی ځکه چه ددی په راتللو سره هر شك زائل کیږی۔ / او د مرګ راتلل یقینی دی۔

او د عبادت وخت ئی تر مرګه پوری وخودلو۔ ابو حیانؒ او حافظ ابن کثیرؒ وائی چه دا آیت کریمه پدی خبره باندی دلیل دی چه مونځ او نور عبادتونه په انسان باندی تر هغه وخت پوری واجب دی ترڅو پوری چه د هغهٔ عقل کار کوی۔

او پدی سره د ملحدینو ددی رائی رد هم کیږی چه د یقین نه مراد معرفت دی، دوی وائی کله چه یو بنده د معرفت مقام ته ورسیږی نو تمام عبادات او اعمال د هغه نه ساقطیږی۔ دا کفر او ضلالت او جهالت دی۔ ځکه چه انبیاء کرام (علیهم السلام) او د هغوی صحابه کرامؓ د الله تعالیٰ مقام د ټولو انسانانو نه زیات پیژندلو، او د هغهٔ د حقوقو او صفاتو معرفت د تمامو خلقو په نسبت دوی ته زیات حاصل وو، ددی سره سره دوی د تمامو خلقو نه زیات د الله تعالیٰ عبادت کولو، او د ژوند د آخری وختونو پوری به ئی د نیکو کارونو پابندی کوله۔

حَتّٰى يَاْتِيَكَ الْيَقِيْنُ: پدی کښې اشاره ده چه عبادتونه به په ټول ژوند کښې کولی شی او د

ژوند هیڅ وخت به د عبادت نه نهٔ خالي کوي. پدې وجه امام زجاجؒ معنیٰ کوي: عبادت کوه د خپل رب همیشه دپاره ځکه که دلته ئې صرف (وَاعْبُدْ رَبَّكَ) وئیلے بغیر د روستو جملے نه نو بیا که یو انسان یو کرت عبادت کړے وے نو هغه به پدے حکم باندے عمل کونکے وے. خو کله ئې چه (حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ) ووئیل نو بنده ته ئې حکم وکړو چه په عبادت باندے همیشه دپاره وسیره تر څو پورے چه ژوندے ئې. لکه سورة مریم کښې د عیسیٰ ؑ په بیان کښې فرمائي ﴿وَأَوْصَانِيْ بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا﴾. (مریم: ۳۱)
(او ماته ئې وصیت (حکم) کړیدے په مانځه کولو او زکاة ورکولو ترڅو چه زهٔ ژوندے یم)
والله تعالیٰ اعلم وعلمه احکم. اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنَا لِحُسْنِ عِبَادَتِكَ فِيْ حَيَاتِنَا وَتَقَبَّلْهَا مِنَّا وَآتِنَا بِهَا الدَّرَجَاتِ الْعُلٰى وَالنَّعِيْمَ الْمُقِيْمَ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا مَفْتُوْنِيْنَ.

## امتیازات د سورت حجر

۱- د خوف او رجاء مسئله په کښې وه.
۲- واقعه د آدم ؑ په بل طرز بیان شویده چه درے کرته پکښې صلصال لفظ ذکر دے.
۳- د ملائکو آسمان ته ختل پکښې بسکاره ذکر دی.
٤- د قرآن د حفاظت وعده پکښې ذکر ده.
٥- د جهنم اُوه دروازے ذکر دی.
٦- سورتِ فاتحے ته پکښې اَلسَّبْعُ الْمَثَانِيْ وئیل شویدے.

ختم شو تفسیر د سورت حجر، د الله تعالیٰ په ښائسته توفیق سره. تاریخ:
1436/جمادی الاولی 27. الموافق: 18-3-2015.

بسم الله الرحمن الرحیم

| آیاتها (۱۲۸) | (۱٦) سورة النحل مکیة (۷۰) | رکوعاتها (۱٦) |
| --- | --- | --- |

سورة النحل مکی دے، پدے کښ یوسل اته ویشت آیتونه او شپاړس رکوع دی۔

## تفسیر سورة النحل:

**نوم:** ۱- ددے نوم د آیت (٦۸) نه اخستے شویدے چه د شاتو مچۍ ذکر پکښ راغلے دے چه د الله تعالیٰ په عجیب قدرت او د بندګانو په نعمت باندے دلالت کوی۔

۲- د علی بن زید (تابعیؒ) نه نقل دی چه ددے سورت بل نوم دے: سُوْرَةُ النِّعَم۔ (یعنی د نعمتونو سورت) ځکه چه د الله تعالیٰ د زیات نعمتونو تذکره پکښ راغلے ده۔

(زاد المسیر ٤/٤۲۵)

او پدے نعمتونو ذکر کولو کښ الله تعالیٰ د بندګانو نه د اسلام مطالبه کوی چه د الله تعالیٰ حکمونو ته تسلیم شی او د هغه حکمونو ته تیار شی۔ دا وجه ده چه پدے سورت کښ د اسلام لفظ ډیر تکرار یږی الله فرمائی: ﴿لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُوْنَ﴾ (۸۱ آیت) دا نعمتونه مے دربانده ددے دپاره وکړل چه تاسو اسلام راوړئ۔ او اسلام په دوه قسمه دے، اختیاری او بل اضطراری۔ نو په اختیار اسلام راوړل قابل قبول دی، او اضطراری اسلام قبول نۀ دے او هغه په دوه وختونو کښ خلك راوړی، یو چه کله د مرګ وخت راشی ﴿اَلَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ فَاَلْقَوُا السَّلَمَ﴾ (۲۸ آیت) دویم په (۸۷) آیت کښ دی چه د قیامت په ورځ به دا مجرمان بندګان الله تعالیٰ ته غاړه کیږدی۔ ﴿وَاَلْقَوْا اِلَى اللّٰهِ يَوْمَئِذِ السَّلَمَ﴾

لیکن ددے دواړو وختونو اسلام راوړل د الله خوښ نۀ دی۔ او په خپل اختیار باندے اسلام راوړونکو دپاره الله تعالیٰ دا کتاب هم رالیږلے دے لکه روستو به ووائی ﴿لِيُثَبِّتَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ﴾۔ (آیت: ۱۰۲)

او دلته د اسلام نه مراد د ایمان نه لاندے مرتبه نۀ ده بلکه مطلق غاړه کیخودل مراد دی۔ دا وجه ده چه دلته ئے (وَبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ) وئیلے دے۔ او په سورة البقره کښ ئے ﴿وَبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ وئیلے دے۔ او سورة البقره کښ ایمان ته دعوت دے او د ایمان فوائد او د هغے د پریخودو ضررونه بیانیږی نو د هر سورت د موضوع سره مناسب لفظ ذکر کیږی۔

**د نزول زمانه** : د حسنؒ، عکرمهؒ، عطاءؒ او جابر بن عبد الله ﷺ په نیز ټول سورت مکی دے۔ د ابن عباسؓ او ابو الزبیرؒ په نیز درے آیتونو نه سوئ ټول سورت مکی دے۔ هغه آیتونه دا دی: آیت (۹۵) ﴿وَلَا تَشۡتَرُوا۟ بِعَهۡدِ ٱللَّهِ ثَمَنࣰا قَلِیلًا﴾ نه تر ﴿یَعۡمَلُونَ﴾ پورے۔

د قتادةؒ په نیز پنځه آیتونو (۱۱۰/۱۲۶/۱۲۷/۱۲۸/۴۱) نه سِوئ ټول سورت مکی دے۔ اول قول غوره دے۔

## فضیلت د سورت

سیدنا عمر فاروق ﷺ به پدے سورت سره د جُمعے خطبے کولے، ځکه چه پدے سورت کښې د الله تعالیٰ د نعمتونو ذکر دے او د شرك رد دے پکښې۔

ﷺ ددے سورت د فضائلو او کمالاتو نه دا ده چه څوك دا سورت په تدبر سره ووائی نو یقین ئے مضبوطیږی او د دهریت او د کمیونستیٔ د عقیدے نه بچ کیږی ځکه چه سورت کښې داسے ژور عقلی خبرے او دلیلونه او نعمتونه دی چه انسان ته الله تعالیٰ مخامخ وربښائی۔

## مناسبت

۱- مخکښې د عذاب نازلیدل ذکر شو نو دلته د عذاب د دفع کولو اسباب بیانیږی چه توحید قبول کړئ او شرك مهٔ کوئ۔

۲- مخکښې بیان د عذاب وو او دا چه د رسول پورے استهزاء مهٔ کوئ نو دلته د توحید متعلق خبره کوی۔ او قرآن کښې ډیر کرته رسالت او توحید شریك بیانیږی۔

۳- مخکښې ئے د توحید منکرینو ته یره ورکړه نو پدے سورت کښې رد دے په باطل عذر د مشرکانو۔

٤- مخکښې سورت کښې په عذاب سره تخویف ذکر وو نو اُوس د هغه عذاب سبب ذکر کوی چه هغه شرك دے۔

## موضوع د سورت

دا سورت په دوه موضوع گانو او د هغې په متعلقاتو روان دے (۱) اَلرَّدُّ عَلَى الشِّرْكِ بِجَمِيعِ اَنْوَاعِهٖ۔ د شرك په ټولو اقسامو باندے رد کول دی لکه د سورة انعام په شان۔

لکه اول آیت کښې دی ﴿سُبۡحَـٰنَهُۥ وَتَعَـٰلَىٰ عَمَّا یُشۡرِكُونَ﴾ پدے وجه به د مشرکانو عقیدے رانقل کوی او رد به پرے کوی۔

بیا فرمائی: ﴿اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ﴾ (۲۲) آیت، بیا په (۲۷) آیت کښې فرمائی چه مشرکانو نه به الله تعالیٰ د قیامت په ورځ تپوس کوی چه زما شریکان اُوس چرته دی؟۔
په (۳٤) آیت کښې د مشرکانو دلیل ذکر کوی چه شرك مونږ د الله تعالیٰ په اجازه سره کوو۔ الله تعالیٰ پرے رد کوی، بیا په (٥۱) آیت کښې فرمائی: ﴿لَا تَتَّخِذُوْٓا اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ﴾ بیا په شرك د مشرکانو رد دے په (٥٤) آیت کښې چه نعمت الله ورکړی او بیا د الله سره شرك کوی۔ بیا په (٥٦/ ٥٧) ﴿وَيَجْعَلُوْنَ لِمَا لَا يَعْلَمُوْنَ نَصِيْبًا﴾ کښې فرمائی چه رزقونه الله ورکړیدی او دوی پکښې د غیر الله دپاره برخه جوړه کړیده۔ بیا په (٦۲) آیت کښې په شرك رد دے۔ بیا ئے د شرك د رد دپاره درے مثالونه راوړیدی په (۷٤/۷۳/۷۱) آیتونو کښې۔ بیا په (۸۲) آیت کښې په قیامت کښې د مشرکانو د خپلو معبودانو سره جګړه بیانوی۔
بیا ددے موضوع د متعلقاتو نه دا خبره کوی چه په شرك باندے د خلکو د ډیر والی نه مهٔ متأثره کیږه بلکه توحید چه ډے قبول کړو او د الله سره ډے وعده وکړه نو مضبوط شه لکه په (۹۱) آیت کښې ئے تشریح راځی ان شاء الله تعالیٰ۔
او په آخر د سورت کښې ﴿فَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمْ﴾ بیانوی چه د ځان نه تحریمات مهٔ جوړوئ۔
او په (۱۲۰) آیت کښې فرمائی: ﴿وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾۔
بیا ئے (۱۲۵) کښې د شرك علاج ذکر کړیدے چه هغه په حکمة او وعظ سره دعوت کول دی۔
بیا په رد د شرك کښې ئے دوه طریقے اختیار کړیدی یو (بَيَانُ مَعْرِفَةِ اللّٰهِ وَعَظَمَتِهٖ) د الله تعالیٰ د پیژند ګلی او د هغه د عظمت دلیلونه ئے بیان کړیدی ځکه چه څوك الله تعالیٰ لره وپیژنی بیا ورسره شرك نهٔ کوی۔ او پنځه ویشت قسمه دلیلونه ئے بیان کړیدی د الله د عظمت او د شرك د رد دپاره۔
دویم: بَيَانُ ضُعْفِ الْمَعْبُوْدِيْنَ۔ د مشرکانو د باطلو معبودانو ضعف او کمزورتیا به بیانوی چه (عَبْدًا مَّمْلُوْكًا) دا خو هسے غلامان دی چه په هیڅ قادر نهٔ دی۔
او دا د شرك د رد دپاره ډیره ښه طریقه ده چه د الله عظمت د بندګانو په زړونو کښې کینوه او بیا د باطلو معبودانو عجز بیان کړه۔
(۲) موضوع: بَيَانُ اِثْبَاتِ الْاٰخِرَةِ: د آخرت اثبات بیانول لکه په اول کښې دا دواړه موضوع ګانے ذکر دی۔ (اَتٰٓى اَمْرُ اللّٰهِ): یعنی یوه درنه ورځ راروانه ده چه په هغه ورځ به د بندګانو سره حسابونه کیږی، نو غټ تباه مشرك دے، ځکه چه د شرك او د قیامت

مناسبت دے لکه روستو (۲۲) آیت کښې به راشي ﴿ فَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ قُلُوْبُهُمْ مُّنْكِرَةٌ ﴾ ځوك چه آخرت نۀ مني د هغوی زړونه انکار کوي د توحید د الله تعالیٰ نه او ضد کوي. نو پدې سورت کښې به په اول او په مینځ او په آخر کښې د قیامت تذکرې هم کوي.

او داسې هم وئیلې شي چه رد د شرك ئې په بله طریقه داسې کړیدې چه د آخرت د ورځې په راتللو سره ئې مشرکان یرولي دي چه د دوی به په هغې کښې ډیر بد حال وي، او د دوی سره به په شرك باندې سخت حساب کیږي.

## اجمالي خلاصه

اول کښې دواړه موضوع ګانې ذکر دي، بیا د قرآن تذکره ده، بیا ئې ډیر عقلي دلیلونه ذکر کړیدي چه دا نعمتونه دي په بندګانو باندې. او د الله تعالیٰ د عظمت او د هغه د توحید دلیلونه هم دي تر (۱۶) آیت پورې، بیا ئې په شرك رد کړیدې بیا ئې د الله د علم تذکره کړیده بیا په شرك رد دې، بیا د شرك وجه ئې بیان کړیده چه مشرك آخرت نۀ مني ځکه شرك کوي. بیا د مشرکانو نظریات رانقل کوي او په هغې ردونه کوي په ﴿ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ ﴾ کښې.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ د

| اَتٰى اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ سُبْحَانَهٗ |
|---|
| راغې حکم د الله تعالیٰ نو جلتي پرې مۀ کوئ، پاك دے الله تعالیٰ |
| وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۱﴾ |
| او اُوچت دے د هغې نه چه دوی ورسره شریکان جوړوي. |

**تفسیر:** د مکې مشرکانو به د نبي کریم ﷺ نه د قیامت په راتللو یا د دوی په هلاك کولو ډیره جلتي کوله او پدې سره ئې مقصد د هغه پورې توقې کول او د قیامت تکذیب کول وو لکه چه الله تعالیٰ په سورة الانفال آیت (۳۲) کښې د نضر بن حارث قول نقل کړیدې: ﴿ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَاَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ○ ﴾ نو دیو ځو کلونو نه روستو دوی د بدر په میدان کښې قتل شو او جهنم ته اُورسیدل. پدې آیت کریمه کښې داسې کافرانو ته وئیل شویدي چه تاسو سره د کوم قیامت وعده شویده د هغې واقع کیدل یو یقیني کار دے چه ګویا که هغه راغلے دے، پدې وجه تاسو له د هغې د جلت راتلو تمنا کول نۀ دي پکار. کله چه به هغه راشي نو د الله دردناك

عذاب به تاسو په خپله گیره کښې واخلي او تاسو به هیڅرې ددې نه ځان نشئ خلاصولے۔
أَتَىٰ : قرآن کریم کښې د قیامت متعلق غالباً د مضارع په ځای ماضی استعمالیږی پدې کښې یقینی واقع کیدو ته اشاره ده۔ لکه یو شے چه یقینی راروان وی د هغې په باره کښې خلك داسې وائی چه دا فلانے شے راغلے دے، راغلے ئے واخله۔
نو د قیامت راتلل هم یقینی دی ځکه چه عقلی او نقلی دلیلونه پرے موجود دی۔
د أَمْرُ اللهِ نه مراد یا خو قیامت دے۔ یا ترے دنیاوی عذاب دے۔
پدے کښې داسے تفسیر کول چه د امر الله نه مراد مسئله د توحید ده او د فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ معنیٰ دا چه ددے په انکار باندے جلتی مه کوئ دا قرآن کریم د خپل ظاهر نه اړول دی۔
او هرکله چه دا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ وفرمایل :
[بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ وَيُشِيرُ بِإِصْبَعَيْهِ يَمُدُّهُمَا] زهٔ او قیامت داسے رالیږلے شوی یو لکه دا دواړه گوتے، او دواړو گوتو ته ئے د هغې په اُوږدوالی اشاره وکړه۔
(بخاری فی الرقاق باب : ۳۹ والطلاق باب ۲۵، ومسلم فی الجمعة حدیث : ۴۳)۔
سُبْحَانَهُ : مشرکان د خپلو باطلو معبودانو په محبت کښې پریوتی وو، او هغه به ئے د الله تعالیٰ سره شریکان جوړول او د هغې په وجه به ئے په قیامت کښې د الله تعالیٰ مخے ته د حاضریدو نه انکار کولو نو الله تعالیٰ د هغوی نه پدے جمله کښې خپله بیزاری او استغناء اعلان کړه۔ او ددے جملے ربط د مخکښې سره دا هم دے چه مشرکان خو قیامت نهٔ منی او دنیا کښې مشغول دی لیکن قیامت راروان دے د دوی سره به سخت حساب کیږی ځکه چه دوی د الله تعالیٰ حقوق برباد کړیدی۔ دارنگه قیامت راغلو نو قیامت کښې به کوم خلك نجات والا وی؟ نو الله فرمائی : چه مشرکان خو د الله د عذاب نه نشی خلاصیدے۔

| يُنَزِّلُ الْمَلَٰٓئِكَةَ بِالرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦٓ |
|---|
| نازلوی ملائك په وحی سره د حکم خپل نه په هغه چا چه اُوغواړی د بندگانو خپلو نه |
| أَنْ أَنذِرُوٓا۟ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱتَّقُونِ ﴿٢﴾ |
| چه یره ورکړئ پدے خبره چه نشته حقدار د بندگئ سوئ زما نه نو اُویریږئ ما نه۔ |

**تفسیر** : مشرکانو به د رسول الله ﷺ نبوت ناشنا گنړلو نو د هغې د تردید دپاره دا آیت نازل شو، او پدے کښې د وحی عظمت او مقصد ذکر دے۔

یعنی الله تعالیٰ جبریل ﷺ ته وحی ورکوی او په چا چه د خپلو بندګانو نه غواړی هغه ته ئے ورلیږی ددے مقصد دپاره چه انسانان ویروی او هغوی ته ووائی چه د الله تعالیٰ نه سوئ هیڅوک لائق د عبادت نشته او صرف د هغه نه یره وکړئ۔

ربط ددے د ماقبل سره دا دے چه هرکله رسول الله ﷺ دوی ته د الله د طرفنه خبر ورکړو چه د هغه امر (قیامت) راغے، او په هغے باندے د جلتی کولو نه ئے منع کړو، نو د دوی شك پیدا شو چه دے شخص ته به په کومه طریقه دا خبره معلومه شوی وی، نو دا شك ئے زائله کړو چه دا په وحی سره معلوم شو۔ او دغه شان وحی الله تعالیٰ بعض بندګانو (انبیاء علیهم السلام) ته کوی۔ (فتح البیان)

الْمَلٰٓئِكَةَ : د ملائکة نه مراد جبریل ﷺ دے او هغه دپاره ئے د جمع لفظ ذکر کړو دپاره د تعظیم د هغهٔ۔

بِالرُّوْحِ : عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی : د روح نه مراد وحی ده، او دا داسے دے لکه (يُلْقِي الرُّوْحَ مِنْ اَمْرِهٖ) (حم المؤمن : ۱۵) په شان۔ او وحی ته روح ځکه وائی چه پدے سره د مؤمنانو زړونه ژوندی کیږی، او د دغه وحی نه قرآن کریم هم دے، او دا په دین کښ داسے دے لکه روح په بدن کښ۔ (قاله الحسنؒ)

نو په روح سره ئے د وحی نه تعبیر وکړو ځکه چه په روح سره بدن ژوندے کیږی، او په وحی سره زړونه د جهالتونو نه ژوندی کیږی۔

ځینی وائی : د روح نه مراد هدایت دے چه پدے سره زړونه ژوندی کیږی لکه بدنونه په روحونو سره۔ ابوعبیدةؒ وائی : روح نه مراد جبریل ﷺ دے او باء په معنیٰ د مَعَ سره دے۔ یعنی ملائك د جبریل ﷺ سره یوځای رالیږی۔

مِنْ اَمْرِهٖ : مِنْ بیانیه دے یعنی نَاشِئًا وَّمُبْتَدِئًا مِنْ اَمْرِهٖ ۔ یعنی دا وحی د الله د امر نه راپیدا شویده۔ یا صفت د روح دے۔ یا متعلق دے د (يُنَزِّلُ) پورے۔

عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ : یعنی په هغه چا چه د نبوت او رسالت دپاره ئے غوره کوی۔

اَنْ اَنْذِرُوْٓا: دا مقصد د رالیږلو د وحی دے۔ انذار دلته په معنیٰ د اعلام سره دے۔ یعنی خبر ورکړئ۔ اَنْ تفسیریه دے یا اَنْ مصدریه دے۔

لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا : یعنی دوی ته زما په توحید باندے حکم وکړئ او خبر ورکړئ سره د یرولو د دوی نه ځکه چه په انذار کښ اعلام مع التخویف (خبردارے سره د یرے نه) وی۔

فَاتَّقُوْنِ: لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا کښ توحید ذکر شو او په (فَاتَّقُوْنِ) کښ احکام دی، او په وحی کښ

دا دواړه خبرے ذکر کیږی۔ نو په توحید باندے دلیل وحی بیان شو چه ټول کُتُب مُنزّله د توحید دپاره راغلی دی۔ اُوس عقلی دلیلونه شروع کوی۔

| |
|---|
| خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ تَعَالٰى عَمَّا |
| پیدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه د حق ښکاره کولو دپاره، اُوچت دے د هغے نه |
| يُشْرِكُوْنَ ﴿٣﴾ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَإِذَا هُوَ |
| چه دوی ورسره شریك جوړوی۔ پیدا کړے ئے دے انسان د نطفے نه نو ناڅاپه دا |
| خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ﴿٤﴾ وَالْأَنْعَامَ خَلَقَهَا لَكُمْ فِيْهَا |
| جګړه کونکے ښکاره دے۔ او چارپیان پیدا کړیدی الله تعالیٰ، تاسو لره پدے کښ |
| دِفْءٌ وَّمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَأْكُلُوْنَ ﴿٥﴾ وَلَكُمْ فِيْهَا جَمَالٌ |
| سامان د ګرمیدو دے او بعض ددے نه تاسو خوریٔ۔ او تاسو لره پدے کښ ښائست دے |
| حِيْنَ تُرِيْحُوْنَ وَحِيْنَ تَسْرَحُوْنَ ﴿٦﴾ |
| کله ئے چه ماښام کښ راولیٔ او کله ئے چه صبا وخت کښ صحراته بوځیٔ۔ |
| وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ إِلٰى بَلَدٍ لَّمْ تَكُوْنُوْا بَالِغِيْهِ إِلَّا |
| او پورته کوی بوجونه ستاسو داسے ښارته چه نهٔ ئے تاسو رسیدونکی هغے ته مګر |
| بِشِقِّ الْأَنْفُسِ إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَؤُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧﴾ |
| په مشقت د نفسونو سره یقیناً رب ستاسو خامخا شفقت کونکے رحم کونکے دے۔ |
| وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا |
| (او پیدا کړی ئے دی) آسونه او قچرے او خرهٔ دے دپاره چه سورلی اُوکړیٔ په هغے باندے |
| وَزِيْنَةً ۚ وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٨﴾ |
| او دپاره د ډول او پیدا کوی هغه څه چه تاسو ئے نهٔ پیژنیٔ۔ |

**تفسیر**: هرکله ئے چه توحید ذکر کړو نو اُوس په توحید باندے دلیلونه بیانوی چه دا نعمتونه هم دی، دا ددے دپاره بیانیږی چه بندګان د الله تعالیٰ په وحدانیت اقرار وکړی او

بیا د هغه په بندګۍ کښې مصروف شي او د دغه نعمتونو شکریه ادا کړي. ځکه چه دا څیزونه د الله تعالیٰ نه سوئ بل هیچا نهٔ دي پیدا کړي نو یقیناً د هغهٔ هیڅوك شریك نشته او عبادت هم صرف د هغهٔ پکار دے۔

خَلَقَ الْإِنْسَانَ : هغه آسمانونه او زمکه او اشرف المخلوقات انسان د یو سپکې قطرے نه ددے دپاره پیدا کړیدے چه دا ټول د هغهٔ په قدرت او وحدانیت باندے دلالت وکړي، لیکن دا انسان د غټیدو نه روستو د خپل پیداکونکي په مخالفت باندے راپورته کیږي او د هغهٔ د وحدانیت نه انکار کوي، او د هغهٔ د رسولانو مقابله کښې لګیا وي، حال دا چه هغه دا ددے دپاره پیدا کړے وو چه د هغهٔ مخلص او مطیع بندهٔ جوړ شي۔

الله تعالیٰ د انسانانو د فائدے دپاره چارپیان پیدا کړیدي چه د هغې د وېښتو او وړئ نه بنده کپړه تیاروي او د یخنئ نه پرے بچ کیږي، د هغوی نه پئ څکي، په هغې باندے سورلی کوي، د هغې غوښه خوري، او د خپل فطرت مطابق دا څاروي په خپل ملکیت کښې کتلو سره خوشحالیږي چه ددهٔ سره دا مال هم شته۔

خَصِيمٌ مُّبِينٌ : جګړه ئے دا ده چه مخلوق د الله تعالیٰ سره شریکان جوړوي او د قیامت د راتللو نه انکار کوي، او د هغهٔ رسولان نهٔ مني۔

وَالْأَنْعَامَ : مخکښې د انسان او د هغه دپاره د ځای پیدائش ذکر شو نو اُوس هغه څیزونه ذکر کوي چه انسان ورته په ژوند تیرولو کښې محتاج دے۔ او دا دریم عقلي دلیل دے۔

دِفْءٌ : ۱- سامان د ګرمائش لکه وړئ، وېښته، څرمنے وغیره۔

۲- دِفْءُ الثِّيَابِ۔ ګرمے جامے، څادرونه۔ (ابن عباسؓ) (فتح)

وَمَنَافِعُ : یعني فائدے د خوراکونو او څکاکونو لکه پئ شو، اُو سورلی او بچی راوړل او کرونده پرے کول وغیره۔

وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ : دا څلورم عقلي دلیل دے۔ یعني تاسو چه کله څاروي صحراء ته بوځئ او بیرته ئے ماښام کښې راولئ نو ښائسته ښکاره کیږي چه ددے په خوند باندے شپونکیان پوهیږي، او ماښام کښې چه څاروي کورته راوستلے شي نو ماړه شوي وي په خوراك او څکاك سره نو خائست په کښې زیات وي نو ددے وجه نه ئے (تُرِيحُونَ) مخکښې ذکر کړیدے۔

تُرِيحُونَ : اَیْ تَرُدُّوْنَهَا فِی الرَّوَاحِ۔ یعني ماښام کښې ئے واپس راولئ۔

تَسْرَحُونَ : یعني سهار وخت کښې ئے د څرولو دپاره بوځئ۔

وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ : دا پنځم عقلي دليل دے۔ يعني په اُوښانو باندے بوجونه او بارونه باروئ او داسے ښارونو ته ئے منتقل کوئ چه د هغے نه بغير خپل سامان نشي منتقل کولے، خپل ځان انسان هغے ته نشي بوتللے مګر په ډير تکليف او مشقت سره پاتے لا چه سامان ورسره وي۔

بِشِقِّ الْأَنْفُسِ : شق په معنىٰ د مشقت سره دے۔ او شق کله په معنىٰ د نصف (نيمائي) سره استعماليږي۔ نو معنىٰ به دا وي چه تاسو هغے ښارونو ته نشئ رسيدلے مګر په ختميدو د نيمائي نفسونو ستاسو د ستړي والي د وجه نه۔ (معنىٰ دا ده : په نيمائي کيدو د نفسونو ستاسو)

لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ : يعني داسے حيوانات د بار وړلو دپاره پيدا کول د الله تعالىٰ شفقت او رحمت دے په بندګانو باندے۔

وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ : دا شپږم دليل دے او پدے کښې ئے د درے قسمه حيواناتو دوه فائدے ذکر کړيدي۔ يعني الله آسونه، قچرے او خرۀ پيدا کړيدي چه دا انسان د سورلئ په توګه استعمالوي، او ددے حيواناتو په موجودګئ سره د انسان په دنياوي زينت او ښائست کښې هم اضافه کيږي۔ دا سبب د زينت دے لکه څوك چه په اس، قچر باندے سور وي ښائسته ښکاره کيږي۔ او دا دليل دے چه په دنيا څيزونو سره زينت حاصلول کله چه د شرعي حدودو د لاندے وي جائز دي۔ او دلته ئے خوراك نۀ دے ذکر کړے ځکه چه د خر او قچر خوړل بالاتفاق حرام دي۔

## آيا اسونه حلال دي؟

او هرچه اسونه دي نو په هغے کښې اختلاف دے (۱) مالك، ابوحنيفةؒ او ددے دواړو اصحابو او اوزاعيؒ او مجاهدؒ وغيره ددے آيت نه دليل نيولو سره وئيلي دي چه د قچر او خرو په شان د اسونو غوښه هم حرام ده ځکه چه الله تعالىٰ ددے درے واړو څيزونو منفعت صرف سورلي کول خودلي دي، او پدے وجه هم چه ددے ذکر ئے د حلال حيواناتو نه جدا کړيدے۔ که ددے غوښه خوړل جائز وے نو د نورو چارپيانو نه به ددے ذکر نۀ جدا کيدے،

(۲) ليکن د جمهورو محدثينو او فقهاؤ په نيز د اس غوښه حلاله ده، دوي وائي چه پدے آيت کښې ددے منافعو نه د سورلئ ذکر کول ددے د غوښے د حلت منافي نۀ دي۔ او دلته ئے اکثري فائده ددے حيواناتو ذکر کړيده، نو د اَسونو نه زياته فائده د سورلئ اخستے کيږي،

خوراك ئے كم وو پدے وجه ئے د هغے خوراك ذكر نكړو، او بل پدے وجه هم چه د خرو او قچرو ذكر ورسره نزدے شويدے. او د صحيح احاديثو نه ددے حلت ثابت دے، بخاري او مسلم د اسماء رضى الله عنها نه روايت كړيدے چه [نَحَرْنَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَرَسًا فَأَكَلْنَاهُ] مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه كښ يو آس ذبح كړو او د هغے غوښه مو وخوړله).

(بخاري في الذبائح باب ٢٧، رقم (٥٥١٠) ومسلم في الصيد حديث ٣٨ باب في اكل لحوم الخيل ٦)

او ترمذيؒ او نسائيؒ وغيره د جابر ؓ نه روايت كړيدے

[أَطْعَمَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لُحُوْمَ الْخَيْلِ وَنَهَانَا عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ] چه رسول الله ﷺ په مونږ باندے د اس غوښه وخوړله او د كورنو خرو د غوښے نه ئے منع كړو.

(بخاري (٥٥٢٠) ترمذي في الصيد باب ٩، ابوداود في الاطعمه باب ٢٥)

او بخاريؒ او مسلمؒ د جابر ؓ نه روايت كړيدے [نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَأَذِنَ فِيْ لُحُوْمِ الْخَيْلِ] چه رسول الله ﷺ مونږ د كورنو خرو د غوښے نه منع كړو او د اس د غوښے اجازت ئے راكړو.

(بخاري الذبائح باب ٢٨، (٥٥٢٠) ومسلم في الصيد حديث ٣٧،٣٦)

دارنګه كه پدے آيت سره د اسونو د غوښے حراموالے ثابتيږي نو بيا به د كورني خرو حراموالے هم ثابتيږي، نو بيا د خيبر د غزا په موقعه رسول الله ﷺ ولے ددے نوے حراموالے بيان كړو. او حال دا چه دا سورت خو مكي دے.

بله دا چه كله يوه مسئله په صحيح حديث كښ ثابته شي نو د هغے په خلاف مجمل استدلال كول صحيح نهٔ وي.

وَزِيْنَةً : دا په محل د (لِتَرْكَبُوْهَا) باندے عطف دے او د هغے محل نصب دے څكه چه هغه د (خَلَقَهَا) دپاره علت دے او دلته ئے (لِتَتَزَيَّنُوْا بِهَا) ونهٔ ويل چه د (لِتَرْكَبُوْهَا) سره موافق شوے وے ؟ وجه دا ده چه سورلي كار د مخاطبينو دے او زينت فعل د الله تعالىٰ دے چه پدے كښ ئے زينت اچولے دے. يا وجه دا ده چه ركوب (سورلي) اصلي مقصود دے، او زينت دومره اهم نهٔ دے د اُوچتو همتونو والو په نيز باندے څكه چه دا عُجب (خود پسندي) پيدا كوي. (فتح البيان)

وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ : پدے كښ جديد سائنسي آلاتو پيدا كولو ته اشاره ده، جهازونه، ريل ګاړي، موټرے، كمپيوټرے، موبائلے او نور به هم ډير څه پيدا شي.

دارنګه پدے كښ د حشراتو او حيواناتو اقسامو ته اشاره ده چه په لاندے زمكه كښ وي

یا په دریابونو کښې وی چه انسانانو نهٔ هغه لیدلې دی او نهٔ ئې آوریدلی دی۔

| |
|---|
| وَعَلَى اللهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ وَلَوْ |
| او خاص په الله باندے بیانول د نیغے لارې دی او بعض ددے لارو نه کږے دی او که |
| شَآءَ لَهَدٰىكُمْ أَجْمَعِيْنَ ﴿٩﴾ هُوَ الَّذِيْٓ |
| الله غوختلے خامخا هدایت به ئې کړے وے تاسو ټولو ته۔ الله هغه ذات دے |
| أَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لَّكُمْ مِّنْهُ شَرَابٌ وَّمِنْهُ شَجَرٌ |
| چه نازل کړی ئې دی د آسمان نه اُوبه تاسو لره، د هغې نه څکل دی او د هغې نه وَنے (پیدا |
| فِيْهِ تُسِيْمُوْنَ ﴿١٠﴾ يُنْۢبِتُ لَكُمْ بِهِ |
| کیږی) چه په هغے کښې تاسو څروئ (څاروو لره)۔ رازرغونوی تاسو لره په هغے سره |
| الزَّرْعَ وَالزَّيْتُوْنَ وَالنَّخِيْلَ وَالْأَعْنَابَ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ |
| فصلونه او ښونه او کجورے او انګور او د هر قسم میوو نه یقیناً پدے کښې |
| لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿١١﴾ |
| خامخا دلیل شته دپاره د قوم چه فکر کوی۔ |

**تفسیر** : د الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندے د ذکر شوی تمام احساناتو نه لوئی احسان دا دے چه هغه نیغه لاره (یعنی دین اسلام) د دوی دپاره بیان کړیده چه په هغے باندے روانیدو سره د هغه رضا حاصلولے شی، او د هغه د عذاب او سزا نه بچ کیدے شی۔

دے نه سوئ چه څومره هم دینونه او مذهبونه دی اګرکه هغه یهودیت وی یا نصرانیت، یا مجوسیت وی یا هندوازم، ټول په ټوله د نیغے لارے نه اوړیدلی دی، په هغے باندے تللو سره د الله رضا نشی حاصلیدے۔

په آیت کښې ﴿ وَمِنْهَا جَآئِرٌ ﴾ نه همدا باطل مذاهب مراد دی۔

وَعَلَى اللهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ : پدے آیت کښې ډیر تفسیرونه دی (۱) غوره تفسیر په کښې د مجاهدؒ دے چه قصد په معنیٰ د برابر سره دے او اضافت د صفت دے موصوف ته۔ (اَیْ طَرِيْقُ الْحَقِّ عَلَى اللهِ) (یعنی د حق لاره په الله باندے ده)

مطلب دا دے چه څوك په حقه لاره روان شی نو سیده به الله تعالیٰ ته ورسیږی، او دا داسے دے لکه چه مخکښې سورت کښې ذکر شو ﴿هٰذَا صِرَاطٌ عَلَیَّ مُسْتَقِیْمٌ﴾۔ (ابن کثیر)
(۲) یا مضاف حذف دے۔ [اَیْ وَعَلَی اللّٰهِ بَیَانُ السَّبِیْلِ الْمُقْتَصِدِ] یعنی په الله باندے لازم دی چه بندګانو ته به نیغه او درمیانه لاره بیانوی۔ نیغه لاره هغے ته وائی چه مقصد ته رسیدونکی وی او هغه د اسلام لاره ده۔ او د هغے بیان د رسولانو په رالیږلو او د کتابونو په نازلولو او د حجتونو او دلیلونو په قائمولو سره شویدے۔ (القرطبی وفتح والدر المنثور)
وَمِنْهَا جَآئِرٌ : یعنی بعض لارے کږے دی چه الله تعالیٰ ته رسیدو والا نهٔ دی چه هغه د کفر او شرك لارے دی۔
وَلَوْ شَآءَ لَهَدٰكُمْ اَجْمَعِیْنَ : پدے کښې الله تعالیٰ خپل مشیئت او قدرت بیانوی یعنی که الله تعالیٰ غوختلے نو ټول انسانان به ئے په نیغه لاره روان کړی وے، د هغهٔ د قدرت نه دا خبره وړاندے نهٔ وه، لیکن هغه داسے ونهٔ غوختل بلکه د خیر او شر دواړه لارے ئے بیان کړے او انسان ته ئے اختیار ورکړو چه څوك په نیغه لاره روانیږی هغهٔ ته به هغه هدایت کوی او چه څوك ګمراه کیدل غواړی نو هغه به ئے په خپل حال پریدی۔ او پدے کښې امتحان دے۔
هُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ : دا اُوم دلیل دے۔ چه پدے کښې د نباتاتو په ناشنا احوالو باندے دلیل نیولے شویدے۔ یعنی په بندګانو باندے د الله تعالیٰ د قسما قسم احساناتو نه دا هم دے چه هغه د آسمان نه باران نازلوی چه هغه انسان څکی، د هغے په ذریعه پاکی حاصلوی، او د هغے په ذریعه الله تعالیٰ قسم قسم ونے او بوټی زرغونوی، هغه ګیاه ګانے او بوټی د حیواناتو دپاره چراګاه (د څر ځای) ګرځی۔ او د هغے په ذریعه الله تعالیٰ فصلونه او زیتون او کجور او انګور او قسم قسم میوے او سبزیانے رازرغونوی۔
فِیْهِ تُسِیْمُوْنَ : اَیْ فِی الشَّجَرِ تَرْعَوْنَ مَوَاشِیَكُمْ۔ په ونو کښې تاسو خپل خاروی څره وئ۔ او شجر هر هغه بوټی او ونے ته وائی چه په زمکه رازرغونیږی۔
او ځینی وائی چه شجر هغه دے چه ستهه لری۔
اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ : یعنی د باران پدے طریقه د آسمان نه نازلیدل او د هغے په ذریعه ددے تمامو فوائدو او منافعو حاصلیدل کوم چه مخکښې ذکر شو یقیناً د الله تعالیٰ د وجود او د هغهٔ د قدرت او د هغهٔ د علم او د هغهٔ د حکمت او د هغهٔ د رحمت او د آخرت د اثبات ښکاره دلائل دی۔ او ددے خبرے تقاضا کوی چه صرف د هغهٔ عبادت وکړے شی، لیکن دا تمام دلائل او براهین هغه چا ته فائده ورکوی چه د سوچ او فکر نه کار اخلی او عبرت

حاصل کړي۔ کوم خلق چه د چارپیانو په شان ژوند تیروي او د خیر او شر ترمینځ د تمیز صلاحیت ئې ختم شوے وي هغوي ته پدے دلائلو سره هیڅ فائده نۀ رسیږي۔

وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومُ مُسَخَّرَاتٌ

او تابع کړے ئې دہ تاسو لره شپه او ورځ او نمر او سپوږمۍ، او ستوري تابع کړے شویدي

بِأَمْرِهِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿۱۲﴾

د حکم د هغۀ، یقیناً پدے کښې خامخا دلیلونه شته دپاره د هغه قوم چه عقل لري۔

وَمَا ذَرَأَ لَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُخْتَلِفًا

او (پیدا کړے ئې دي) هغه څه چه خوارۀ کړي ئې دي تاسو لره په زمکه کښې چه مختلف دي

أَلْوَانُهُ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ﴿۱۳﴾

رنګونه د هغے یقیناً پدے کښې خامخا دلیل شته دپاره د قوم چه نصیحت اخلي۔

**تفسیر** : د الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندے دا احسان هم دے چه هغه شپه د آرام او راحت حاصلولو دپاره او ورځ د کوشش او عمل او د معاش طلب کولو دپاره د یو مسلسل او منظم حرکت پابند کړیدي، کله هم د هغے خلاف ورزي نۀ کوي۔ او نمر او سپوږمۍ هم د هغه د خوښے تابع دي۔ د نمر نه رڼا او ګرمائش حاصلیږي او د سپوږمۍ د رڼا نه د ورځو، میاشتو او کلونو حساب معلومیږي۔ او ستوري هم د هغه د حکم او ارادے پابند دي، دے دپاره چه ددے په ذریعه په دریاب او اُوچه کښې لارے معلومے کړے شي او دا ستوري آسمان دُ دُنیا ته زینت هم ورکوي۔ د شپے او ورځ او نمر او سپوږمۍ او ستورو تابع کول د الله تعالیٰ د خالقیت او صرف د هغۀ د لائق د عبادت کیدو ښکاره دلائل دي، لیکن دا دلائل هغه چا ته فائده ورکوي چه د خپلو عقلونو نه کار اخلي، او ددے مخلوقاتو په اسرارو (رازونو) او حقائقو کښې سوچ او فکر کوي او د دے خالق ته رسیدو کښې کوشش کوي۔ کوم خلق چه د چارپیانو په شان دي، یا د لیونو په شان چه خپل عقلونه ئې زائل کړي وي نو هغوي ته پدے دلائلو سره هیڅ فائده نۀ رسیږي۔

لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ: هر کله چه دا څیزونه جدا جدا وو نو دے سره ئې آیات جمع ذکر کړه او هر کله چه ددے څیزونو فائدے په عقل سره معلومیږي او زور فکر ته حاجت نۀ لري نو

پدے وجه ئے دلته یَعْقِلُوْنَ لفظ ذکر کړو۔

وَمَا ذَرَأَ لَكُمْ : او د الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندے دا احسان هم دے چه هغهٔ په زمکه باندے د دوی د فائدے دپاره ډیر حیوانات او قسم قسم او رنګارنګ بوټی، جمادات او معدنیات پیدا کړیدی چه په هغے کښ قسم قسم منافع او خاصیتونه وی۔ دا عجائب او غرائب د کائناتو په خالق باندے صفا او ښکاره دلائل دی، او د انسانانو نه مطالبه کوی چه هغوی صرف د هغهٔ عبادت وکړی، لیکن دا دلیلونه هغه چا ته فائده ورکوی چه نصیحت حاصل کړی او د خپل رب په نیغه لاره باندے روان شی، د هغه د احکامو پابندی وکړی، او د بدیو او ګناهونو نه خان بچ کړی، او د هغهٔ د اطاعت او بندګیٔ په نتیجه کښ د دنیا او د آخرت سعادت او نیکبختی حاصله کړی۔

ذَرَأَ : په معنیٰ د پیدا کولو او خوره ولو سره دے۔ او دا د (سَخَّرَ لَكُمْ) یا د (خَلَقَ) دپاره مفعول دے۔

| وَهُوَ الَّذِیْ سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَأْكُلُوْا مِنْهُ |
|---|
| او الله هغه ذات دے چه تابع کړے ئے دے دریاب دے دپاره چه اُوخورئ تاسو د هغے نه |
| لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا وَتَرَى الْفُلْكَ |
| غوښه تازهٔ او راوویاسئ د هغے نه ګانړهٔ چه اغوندئ تاسو هغه او وینے به ته کشتیٔ |
| مَوَاخِرَ فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ |
| اُویه شلونکی په هغے کښ او دے دپاره چه طلب کړئ تاسو د فضل د الله تعالیٰ نه |
| وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿١٤﴾ وَأَلْقٰى فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ |
| او دے دپاره چه تاسو شکر اُوکړئ۔ او اچولی ئے دی په زمکه کښ کلك غرونه |
| أَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَأَنْهَارًا وَّسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ |
| دے دپاره چه ونهٔ خوزیږی په تاسو او نهرونه او لارے ددے دپاره چه تاسو |
| تَهْتَدُوْنَ ﴿١٥﴾ وَعَلَامَاتٍ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُوْنَ ﴿١٦﴾ |
| هدایت موندهٔ کړئ۔ او (پیدا کړے ئے دی) نخے او په (قطب) ستوری سره دوی لاره مومی |

**تفسیر** : د اُوچے د نعمتونو نه روستو اُوس د دریاب نعمتونه ذکر کیږی۔ الله تعالیٰ

درياب داسے مسخر کړے چه پدے کښې ئے غوپه وهل آسان جوړ کړيدی، خلك پرے دپاسه سورلی کولے شی، او ددے نه ښکار او ملغلرے راوباسی۔

او پدے کښې کشتيانے په پوره آسانتيا سره منډے وهی، او انسانان او د هغوی د ژوند ضروريات د يو ځای نه بل ځای ته منتقل کوی۔

لِتَاْكُلُوْا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا : دا دريابونه الله تعالیٰ ددے دپاره تابع کړی چه خلق مختلف ذرائع استعمالولو سره د مهيانو ښکار وکړی او ددے تازه غوښه وخوری۔ بعض مفسرينو ليکلی دی چه ((تازه غوښه)) پدے وجه وئيل شويده چه ماهی کله تازه وی په همغه وخت هغه خوړلے شی ځکه چه هغه زر خرابيږی او د وخت تيريدو نه روستو نقصان ده وی۔

وَتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً : او دا دريابونه ئے پدے وجه هم تابع کړی چه پدے کښې د غوپے په وهلو سره ملغلرے او نور قيمتی جواهرات لعلونه راوباسی چه د دوی دپاره او د دوی د ښځو دپاره د زيوراتو او کالو کار ورکوی، او د درياب د تابع کولو يوه فائده دا هم ده چه پدے کښې کشتيانے روانے وی چه د هغے په ذريعه انسان بغير د يرے او خطرے نه ګڼړ تجارتی سامان او د رزق اسباب اخستو سره د لرے مودے پورے ديو ښار نه بل ښار ته او د يو ملك نه بل ملك ته ځی او روزی حاصلوی۔ دا ټول د الله فضل او کرم دے، بندګانو له پکار دی چه د الله تعالیٰ دا احسانات راياد کړی او د هغهٔ شکرګذار بندګان جوړ شی۔

حِلْيَةً : ګانړه لکه ملغلرے، مرجان، کنجکے، صدفونه چه د هغے نه اميلونه وغيره جوړيږی۔

مَوَاخِرَ : جمع د مُوْخِرَةٌ ده، اُوبو لره څيرونکی، شړه ونکی۔

وَاَلْقٰى فِي الْاَرْضِ: دا بل دليل دے۔ يعنی د الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندے دا احسان هم دے چه هغهٔ په زمکه باندے لوی لوی غرونه ځوارهٔ کړيدی، دے دپاره چه په زمکه کښې حرکت پيدا نهٔ شی ځکه که زمکه خوزيږی نو پدے باندے د انسان ژوند مشکل کيږی، او په زمکه باندے الله تعالیٰ نهرونه روان کړی چه د مختلفو زمکو نه تيريږی او هغه خړوبه کوی او د انسانو د رزق سبب جوړيږی

او زمکه باندے ئے مختلفے لارے جوړے کړی چه په هغے باندے تلو سره انسان د يو ښار نه بل ښار ته ځی او د خپل ژوند ضروريات حاصلوی، او په زمکه کښې الله تعالیٰ داسے نخے ايخودی دی چه د هغے په ذريعه خلق په سفر کښې خپلے لارے پيژنی، او خپل منزل طرف ته روان وی، او په درياب او اُوچه کښې د شپے په تيارو کښې د ستورو په مدد سره خلق

صحیح سمت او طرف ته روانیږي. د کشتیانو او د جهازونو د لارخودنې دپاره چه نن صبا کوم آلات استعمالیږي د هغې په جوړخت کښې د ستورو د رڼړا نه مدد اخستې کیږي.

وَسُبُلًا : اَیْ وَجَعَلَ فِیۡهَا سُبُلًا. یعنې ګرځولې ئې دي پدې کښې لارې، او دا د الله تعالیٰ لوی نعمت دې څکه چه کله یو ځای ته لاره نۀ وي نو لنډ ځای هم انسان نه لرې ګیږي.

لَعَلَّکُمۡ تَهۡتَدُوۡنَ : یعنې ددې لارو په وجه خپلو مقاصدو ته ورسیږئ / یا دې دپاره چه د خپل رب توحید قبول کړئ او په هدایت شئ.

وَعَلٰمٰتٍ : اَیْ وَجَعَلَ فِیۡهَا عَلَامَاتٍ. او الله تعالیٰ په زمکه کښې ناشنا نخې جوړې کړیدي.

سُدّیٌ وائي : د ورځې علامات غرونه دي او د شپې علامات ستوري دي.

وَبِالنَّجۡمِ : دا د قطب ستورې دې چه مکې والو ډیر ښۀ پیژندو چه په هغې سره به ئې په سفرونو کښې خپلې لارې او سمتونه پیژندل. او دې ته د جدي او فرقدان ستورې وائي چه ددې سمت به هر چا ته ښکاره وو او په خپل مکان کښې مضبوط وو، دا په قطب باندې همیشه ګرځي نو د خلکو نه په سفر او دریابونو کښې نۀ غائبیږي. (القرطبيؒ)

| أَفَمَنۡ یَّخۡلُقُ کَمَنۡ لَّا یَخۡلُقُ |
| --- |
| آیا پس هغه څوك چه پیدائش کوي په شان د هغه چا کیدې شي چه پیدائش نشي کولې، |
| أَفَلَا تَذَکَّرُوۡنَ ﴿۱۷﴾ وَإِنۡ تَعُدُّوۡا نِعۡمَةَ اللّٰهِ |
| آیا نو نصیحت نۀ اخلئ تاسو. او که تاسو شمار شروع کړئ د نعمتونو د الله تعالیٰ |
| لَا تُحۡصُوۡهَا إِنَّ اللّٰهَ لَغَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ ﴿۱۸﴾ |
| نو نشئ راګیرولې هغه په شمار کښې، یقیناً الله بخنه کونکې رحم کونکې دې. |
| وَاللّٰهُ یَعۡلَمُ مَا تُسِرُّوۡنَ وَمَا تُعۡلِنُوۡنَ ﴿۱۹﴾ وَالَّذِیۡنَ |
| او الله پوهیږي په هغه څه چه پټوئ ئې تاسو او په هغې چه ښکاره کوئ. او هغه کسان |
| یَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ لَا یَخۡلُقُوۡنَ شَیۡئًا وَّهُمۡ یُخۡلَقُوۡنَ ﴿۲۰﴾ |
| چه دوی ئې رابلي سوئ د الله نه نشي پیدا کولې هیڅ شې او دوی خپله پیدا کړې شویدي |
| أَمۡوَاتٌ غَیۡرُ أَحۡیَآءٍ وَمَا یَشۡعُرُوۡنَ أَیَّانَ یُبۡعَثُوۡنَ ﴿۲۱﴾ |
| مړۀ دي، نۀ دي ژوندي (په دنیوي ژوند سره) او نۀ پوهیږي چه کله به راپورته کولې شي. |

| إِلٰـهُكُمْ إِلٰـهٌ وَّاحِدٌ فَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ |
|---|
| (دویاره)۔ حقدار دبندګئ ستاسو اِلٰـه یو دے، پس هغه کسان چه ایمان نهٔ لري په آخرت |
| قُلُوْبُهُمْ مُّنْكِرَةٌ وَّهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٢٢﴾ لَا جَرَمَ أَنَّ |
| زړونه ددوی انکار کونکی دی (د توحید نه) او دوی لوئی کونکی دی۔ خامخا یقیناً |
| اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ |
| الله تعالیٰ پوهیږي په هغې چه دوی ئے پټوي او په هغې چه دوی ئے ښکاره کوي |
| إِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ ﴿٢٣﴾ |
| یقیناً الله تعالیٰ نهٔ خوښوي تکبر کونکی۔ |

**تفسیر** : په مخکنو دلیلونو باندے تفریع بیانوي او مشرکانو ته زجر دے چه دوی خالق د مخلوق په شان په بندګئ کښې کرخولے دے۔ فرمائي : آیا هغه ذات چه داسے ناشنا قسمه څیزونه پیدا کولے شي په شان د هغه چا کیدے شي چه هغه هیڅ شے نشي پیدا کولے او ددے په موجودولو باندے هیڅ قدرت نهٔ لري لکه بتان او قبرونو والا۔

وَإِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ : د دریاب او د اُوچے قسم قسم نعمتونو ذکر کولو نه روستو الله تعالیٰ وفرمایل چه د هغهٔ نعمتونه بیشماره دي، او د هغهٔ احسانات ډیر دي، که انسان هغه په تول ژوند کښې شماري نو هغه نشي شمارلے، او کله چه دا نشي شمارلے نو د هغې شکر به څنګه ادا کړے شي۔ پدے وجه الله تعالیٰ د آیت په آخر کښې فرمایلي دي چه هغه ډیره معافي کونکے دے، که د بنده نه د شکر په ادا کولو کښې تقصیر او کوتاهي کیږي نو خپل بخشش او کرم نهٔ بندوي، بلکه معافي کوي او د توبے مهلت ورکوي۔ اشاره ده چه تاسو ددے نعمتونو باوجود نافرماني او شرك کولو سره د عذاب مستحق یئ: که د الله تعالیٰ بخنه او رحمت نهٔ وے۔ نو د الله د مغفرت او رحمت نه غلطه فائده مهٔ اخلئ؛

إِنَّ اللّٰهَ : سورة ابراهیم آیت (٣٤) کښې ئے ﴿إِنَّ الْإِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ﴾ وئیلي دے څکه چه هلته د انسان د ناشکرئ بیان دے نو د هغهٔ صفت ئے ذکر کړو، او دلته د مُنعم بیان دے چه الله تعالیٰ دے نو څکه ئے د الله صفت راوړو؛

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ : پدے سورت کښې د الله تعالیٰ د قدرت او د هغهٔ د علم او حکمت

او د هغهٔ د نعمتونو د مظاهرو آخری کړیٔ دا آیتِ کریمه دے چه هغه د دوی په تمامو ښکاره او پټو خبرو او د دوی په حاجتونو او ضرورتونو پو هه دے، پدے وجه دوی له هغهٔ ته سرخکته کول پکار دی، او د هغهٔ عبادت کول پکار دی، دے دپاره چه هغه د دوی ضرورتونه پوره کړی، او د هغهٔ د نعمتونو تسلسل باقی پاتے شی۔

دارنگه چونکه سیاق د کلام د مکے د مشرکانو سره متعلق دے پدے وجه پدے آیت کښې هغوی ته دهمکی هم ورکړے شویده چه د رسول الله ﷺ خلاف د دوی سازشونه د الله تعالیٰ نه پټ نهٔ دی، یوه ورځ به دا سازشونه د دوی په غاړه کښې واچولے شی، او د غارے غُوَر به نے جوړ شی۔ او زجر او تنبیه ده پدے خبره چه اِلٰه (معبود) خو هغه وی چه په پټ او ښکاره باندے پو هه وی، او دا بتان خو جمادات دی چه هیڅ شعور نهٔ لری په ښکاره څیزونو نهٔ پو هیږی نو په پټو به څه پو هه شی نو تاسو ئے څنگه عبادتونه کوئ؟!۔

وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَايَخْلُقُوْنَ:

د قریش کافرانو په باره کښې وئیلے کیږی چه کوم بتان دوی د الله تعالیٰ نه سویٰ رابللی نو هغوی خو هیڅ هم نشی پیدا کولے بلکه عبادت کونکو ئے په خپلو لاسونو سره جوړ کړیدی، گویا که د خپلو عبادت کونکو نه هم زیات کمزوری او عاجز دی، لکه ابراهیم عليه السلام خپل قوم ته وئیلی وو: ﴿ اَتَعْبُدُوْنَ مَا تَنْحِتُوْنَ ﴾ چه آیا تاسو د هغه کاڼو عبادت کوئ چه تاسو ئے په خپلو لاسونو تراشئ؟)۔ (الصافات: ۹۵)

دے نه روستو الله تعالیٰ د زیات تاکید په توگه وفرمایل چه دوی خو مړهٔ دی، نهٔ کله ژوندی وو او نهٔ به په مستقبل کښې دوی ته ژوند ورکړے شی، او دوی ته شعور (علم) هم نشته چه دوی به کله راپورته کولے شی، نو بیا دوی د الله نه سِویٰ معبودان څنگه کیدے شی؟!۔

اَمْوَاتٌ: یعنی دوی خو مړهٔ دی، او مړے علم او تصرف نهٔ لری، نو بیا ولے دوی د هغوی نه مدد غواړی۔

**تنبیه**: دا آیت د بتانو پورے خاص نهٔ دے ځکه چه الفاظ ددے آیت عام دی بلکه دا شپږ صفتونه چه ۱- پیدائش نشی کولے۔ ۲- مخلوق دی۔ ۳- مړهٔ دی۔ ٤- ژوند ترے زائل شویدے۔ ٥- شعور نهٔ لری۔ ٦- بعث بعد الموت ئے شته)۔ دا صفات حقیقةً د ذوی العقولو دپاره دی، او بتانو ته مجازاً شاملیږی او کله چه حقیقت موجود وی نو مجاز ته ضرورت نشته، او ددے وجه نه تفسیر روح المعانی ذکر کړیدی چه دا آیت شامل دے

ملائکو، انبیاء علیهم السلام او اولیاءِ کرامو ته. او د (اَمۡوَاتٌ) معنیٰ دا ده چه مرګ پرے راتلے شی او د (غَيۡرُ اَحۡيَاۤءٍ) معنیٰ دا ده چه همیشه به ژوندی نهٔ وی نو عیسیٰ عليه السلام او ملائك پدے معنیٰ سره په اموات کښ داخل دی. (احسن الکلام)

او که بتان مراد کړے شی نو د بتانو دپاره هم بعث شته چه الله تعالیٰ به ئے راپورته کړی، او په هغے کښ به روحونه واچوی چه شیطانان به ورسره وی، نو دا ټول به اُور ته ګوزار کړے شی لکه پدے باندے دلیل دا وینا د الله تعالیٰ ده:

﴿ اِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ (انبیاء: ۹۸)

(یقیناً تاسو او تاسو چه د کومو بتانو عبادت کوئ سوئ د الله تعالیٰ نه خشاك د جهنم دی)

اِلٰـهُكُمۡ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ : الله تعالیٰ په خپل وحدانیت باندے د ګنړو دلائلو د پیش کولو نه روستو اُوس نتیجه بیان کړه او د حقیقی مقصد ښکاره والے ئے وکړو چه اے انسانانو! ستاسو معبود صرف یو الله دے، چه هغه خالق دے، رازق دے، د آسمانونو او د زمکے د کارونو مُدبر (پروګرام چلونکے) دے، ژوندے کونکے او مړ کونکے دے، او ټول اسماءِ حسنیٰ (ښائسته نومونه) او صفات علیا (اُوچت صفات) هغهٔ دپاره دی.

فَالَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَةِ : الله تعالیٰ د کافرانو کفر او عناد او د هغوی د استکبار (تکبر) او په شرك باندے د همیشوالی علت او سبب بیان کړو چه دوی د ورځے د آخرت په راتللو ایمان نهٔ لری، که دوی د جزا او سزا په ورځ ایمان لرلے نو په نیغه لاره به روان شوی وے، او د الله د وحدانیت اقرار به ئے کړے وے. ځکه چه دا قانون دے چه د آخرت ورځ منل په انسان کښ ښکلے صفات پیدا کوی، د قرآن منل، توحید منل، رسولان منل او نیك نیك اعمال کول دا ټول د آخرت د عقیدے نه پیدا کیږی، ددے وجه نه قرآن او پیغمبرانو آخرت ته ډیر دعوت ورکړیدے. د لا اله الا الله غم د هغه چا سره وی چه د آخرت غم ورسره وی.

مُّنۡكِرَةٌ : اَیۡ جَاحِدَةٌ لِلۡوَحۡدَانِيَّةِ. انکار کونکی دی د الله تعالیٰ د وحدانیت نه.

مُّسۡتَكۡبِرُوۡنَ : عَنۡ قَبُوۡلِ الۡحَقِّ. د حق د قبلولو نه ځان لوی ګنړی.

لَا جَرَمَ اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ : د قیامت د منکرینو او د الله تعالیٰ د وحدانیت انکار کونکو ته دهمکی ورکړے شویده چه الله تعالیٰ د دوی تمام پټ او ښکاره اعمال په ښهٔ شان سره پیژنی، او هغه د دوی په شان تکبر کونکی بالکل نهٔ خوښوی. د دوی ځای به جهنم وی. لکه چه الله تعالیٰ په سورة غافر آیت (۶۰) کښ فرمایلی دی: ﴿ اِنَّ الَّذِيۡنَ يَسۡتَكۡبِرُوۡنَ عَنۡ

عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِيْنَ ﴾ چه کوم خلق د کبر په وجه زما د عبادت نه مخ اړوي، دوی به د ذلت او رسوائی سره جهنم ته داخلیږي.

اَلْمُسْتَكْبِرِيْنَ : علماء فرمائي : هره گناه ممکن ده چه پټه کړے شي سوئ د تکبر نه چه دا داسے جرم او فسق دے چه دا بغیر د ښکاره والي نه نۀ کیږي، او دا د ټولو نافرمانیانو جرړه ده.

امام ترمذیؒ او احمدؒ صحیح حدیث نقل کړیدے چه رسول الله ﷺ فرمائي :

[يُحْشَرُ الْمُتَكَبِّرُوْنَ اَمْثَالَ الذَّرِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيْ صُوَرِ الرِّجَالِ يَغْشَاهُمُ الذُّلُّ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ]

متکبران به د قیامت په ورځ د سرو میږانو په شان راجمع کړے شي چه شکلونه به ئے د سړو وي د هر طرفنه به د دوی دپاسه ذلت او رسوائی راځي، نو دوی به په جهنم کښې یو جیل ته ولیږلے شي چه هغے ته (بولس) وائي، د ټولو نه سخت اُور به د دوی دپاسه بلیږي، د جهنمیانو د گندونو نچوړ به په دوی باندے څکولے شي چه هغه ختمه د فساد ده.

(الترمذی ۲٤۹۲) احمد (٦٦٧٧) واسناده حسن- البانی وشعیب)

| وَإِذَا قِيْلَ لَهُمْ مَّاذَا اَنْزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوْا اَسَاطِيْرُ |
|---|
| او کله چه اُوویلے شي دوی ته څه نازل کړیدي رب ستاسو، وائي دوی دروغ قیصے دي |
| الْاَوَّلِيْنَ ﴿٢٤﴾ لِيَحْمِلُوْا اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَّوْمَ الْقِيَامَةِ وَمِنْ اَوْزَارِ |
| د پخوانو. دے دپاره چه بار کوی به دوی بوجونه خپل پوره په ورځ د قیامت او د بوجونو |
| الَّذِيْنَ يُضِلُّوْنَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ اَلَا سَآءَ |
| د هغه کسانو نه چه گمراه کوی دوی هغوی لره په غیر د دلیل نه، خبردار بد دے |
| مَا يَزِرُوْنَ ﴿٢٥﴾ قَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ |
| هغه شے چه بار کوی ئے دوی. یقیناً مکرونه کړیدي هغه کسانو چه مخکښې وو د دوی نه |
| فَاَتَى اللّٰهُ بُنْيَانَهُمْ مِّنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ |
| نو راغے الله تعالی آبادیٔ د دوی ته د بنیادونو نه نو راپریوتو په دوی باندے |
| السَّقْفُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَاَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٢٦﴾ ثُمَّ |
| چهت دپاسه د دوی نه او راغے دوی ته عذاب د هغه ځائے نه چه نۀ پوهیدل دوی. بیا به |

يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ

په ورځ د قیامت شرموی دوی لره او وائي به چه کوم ځائے دی برخه داران زما

الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ قَالَ

هغه کسان چه تاسو به چاودلئ؛ (جګړے به مو کولے) د دوی په باره کښې، وبه وائي

الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٢٧﴾

هغه کسان چه ورکړے شویدے ورته علم یقیناً شرمندګی نن ورځ او بدی په کافرانو ده۔

**تفسیر:** مفسرینو لیکلی دی چه ددے ویونکے نضر بن حارث وو چه د قرآن کریم پورے د ټوقو کولو دپاره به ئے مسلمانانو ته داسے خبرے کولے۔ دویم قول دا دے چه ددے ویونکی د مکے هغه مشرکان دی چه د بهر نه د اسلام حقیقت معلوماولو دپاره راتلونکو ته به ئے وئیل چه دا قرآن د تیرے شوے زمانے د واقعاتو مجموعه ده۔

او دریم قول دا دے چه مسلمانانو چه به کله د قرآن کریم په باره کښې د مکے د مشرکانو رائے معلوموله نو هغوی به ورته وئیل چه دا خو د تیر شوی قومونو د قصو مجموعه ده۔

الله تعالیٰ د داسے تمامو خلقو انجام دا بیان کړو چه دوی به د قیامت په ورځ په خپلو اوږو باندے خپل ټول ګناهونه پورته کړی وی او د هغه خلقو ګناهونه به ئے هم پورته کړی وی کوم چه به دوی د خپل جهالت او ناپوهئ په وجه ګمراه کول، یا کوم چه به د دوی د جهالت او ګمراهئ په وجه ګمراه کیدل، کوم ګناهونه چه دوی په سر کړی وی نو دا به ډیر بد شے وی چه دوی به جهنم ته رسوی۔ الله تعالیٰ په خپل کتاب باندے ډیر غیرت کوی۔ دے ته په غلطو نسبتونو سره بنده ته سزا ورکوی۔

**أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ:** دا مرفوع دے۔ اَیْ مَا تَدْعُوْنَ اَیُّهَا الْمُسْلِمُوْنَ اَسَاطِیْرُ الْاَوَّلِیْنَ وَاَحَادِیْثُهُمْ) یعنی اے مسلمانانو! تاسو چه کوم شی ته دعوت ورکوئ نو دا خو د پخوانو خلقو قصے او خبرے دی۔ او دا منزل کتاب نهٔ دے۔

یا تقدیر داسے دے: (اَلْمُنَزَّلُ عَلَیْکُمْ اَسَاطِیْرُهُمْ] یعنی مشرکانو به په طریقه د مسخرے سره وویل چه دا په تاسو چه کوم شے نازل شویدے دا د پخوانو قصے دی۔ نو دوی دوه جرمونه وکړل یو ئے قرآن غیر منزل وګنړلو او بل ئے د پخوانو دروغجنے قصے وګرځولے۔

**لِيَحْمِلُوا:** یعنی د دوی ددے خبرے انجام به دا شی چه دوی به بوجونه او پنډونه د

گناهونو بار کړي.
يُضِلُّونَهُمْ : یعنی یو خو دوی تکذیب وکړو بل د دوی تابعدارو د دوی د تقلید په وجه تکذیب وکړو او گمراه شول نو ځکه به دوه پیټی بار کوی لکه داسے په سورة عنکبوت (۱۳) آیت کښې ذکر دی.
كَامِلَةً : د کافرانو چونکه اسلام نشته پدے وجه د دوی هیڅ گناه نهٔ معاف کیږي
قَدْ مَكَرَ الَّذِينَ : پدے آیت کښې دنیاوی تخویف دے، او بیا د آخرت تخویف ذکر دے.
پدے آیت کښې دوه تفسیرونه دی (۱) ځینې علماء وائی چه دا آیت کنایه ده ددے نه چه د کافرانو مکرونه به ضائع کیږي. یعنی لکه څنگه چه یوه جوړه آبادي وی او ناڅاپی د هغې چهتونه راپریوزی او بنیادونه ئے وران شی، نو دغه شان به د مشرکانو او کافرانو د حق په مقابلهٔ کښې مکرونه او مضبوط تدبیرونه او پروگرامونه بربادیږي او ضائع کیږي به. او دا په هره زمانه کښې به دغه شان کیږي.
(۲) او امام شوکانیؒ او صاحب د «فتح البیان» د اکثرو مفسرینو رائے نقل کړیده چه پدے آیت کښې د مکر کونکو نه مراد نمرود بن کنعان دے چه دهٔ په بابل کښې یو ډیر اُوږد آبادے جوړ کړے وو او آسمان ته ئے ختل غوختل دے دپاره چه د آسمان والو سره جنگ وکړي، لیکن الله تعالیٰ د یوے سختے هوا په ذریعه هغه راگوزار کړو چه د هغې نه لاندے نمرود او د هغه تابعدار راگیر شو او هلاك شو. همدے نمرود ابراهیم ﷺ لره اُور ته گوزار کړے وو، او هغه د خپلے زمانے د ټولو نه غټ ظالم او جابر او متکبر انسان وو.
لیکن د مفسرینو د قاعدے مطابق د آیت دا حکم د هرے زمانے باطل پرستو او د الله د دین خلاف سازش کونکو ته عام او شامل کړیدے.
پدے وجه پدے آیتِ کریمه کښې د مکے هغه مشرکانو ته دهمکی ده چه هغوی د هجرت نه مخکښې د رسول الله ﷺ ژوند تنگ کړے وو. د انبیاؤ علیهم السلام په خلاف سازش کونکو نه الله تعالیٰ همیشه داسے سخت انتقام او بدله اخستے ده چه هغوی ئے د بیخ نه ختم کړي، او په هغوی باندے ئے دغسے ناڅاپی عذاب مسلط کړے چه هغوی ته د سوچ کولو موقعه هم نهٔ ده ملاؤ شوے.
ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ : دا خو د دوی په دنیا کښې حال شو او د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ دوی نور هم ذلیله او رسوا کوی او وائی به چه وښایئ چه چرته دی زما هغه شریکان چه د هغوی د معبود ثابتولو دپاره به تاسو د مؤمنانو سره جگړے کولے. نو هغوی به هیڅ هم

نشی وئیلے، د هغوی ژبے به گونگے شی، لیکن انبیاء او هغه علماء چه د هغوی سره مشرکانو جګړے کولے، هغوی به وائی چه نن ورځ ذلت او رسوائی او دردناك عذاب د هغه کافرانو دپاره دے چه د الله تعالیٰ سره ئے غیر شریکان جوړول۔

تُشَاقُّوْنَ : اَیْ تُخَاصِمُوْنَ الْمُؤْمِنِیْنَ فِیْهِمْ ۔ یعنی تاسو به د ایمان والو سره د هغوی په باره کښې جګړے کولے چه دوی د الله نازولی دی، او الله ورله برخه ورکړیده۔

تُشَاقُّوْنَ خپله معنیٰ ده چه تاسو به چاودلئ د هغوی په باره کښې۔ مشرك د باباګانو په باره کښې ډیر خفه کیږی کله چه د هغوی په باره کښې مؤمن څه خبره وکړی، او که څوك د الله او د رسول پورے خبرے کوی نو دومره پرواه ئے نه وی۔

اُوْتُوا الْعِلْمَ : ددے نه مراد ملائك او پیغمبران او علماء دی۔ او د علم نه مراد علم بالله دے یعنی هغه خلك چه د الله شان او قدر پیژنی۔

| |
|---|
| الَّذِیْنَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِکَةُ ظَالِمِیْٓ |
| دا هغه کسان دی چه وفات کوی دوی لره ملائك پداسے حال کښې چه ظلم کونکی وی |
| اَنْفُسِهِمْ فَاَلْقَوُا السَّلَمَ |
| په نفسونو خپلو (په شرك کولو سره) نو کیبه دی (گوزار به کړی) غاړه کیخودل (وائی به) |
| مَا کُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوْٓءٍ بَلٰٓی اِنَّ اللّٰهَ عَلِیْمٌ بِمَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۸﴾ |
| مونږ هیڅ بد عمل نه کولو، ولے نه، یقیناً الله پوهه دے په هغے عملونو چه تاسو ئے کوئ۔ |
| فَادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا فَلَبِئْسَ مَثْوَی الْمُتَکَبِّرِیْنَ ﴿۲۹﴾ |
| نو داخل شئ دروازو د جهنم ته همیشه به یئ په هغے کښې نو بد ځائے دے د لوئی کونکو۔ |

**تفسیر :** یعنی دا کافران هغه خلك دی چه ملائك کله د دوی نه ساه اخلی په داسے حال کښې چه دوی په شرك او ګناهونو سره په خپلو ځانونو باندے ظلم کونکی وو او په دغه وخت کښې به دوی الله تعالیٰ ته خپله غاړه کیږدی او عاجزی او انکسیاری به راښکاره کړی او د الله د ربوبیت او د بندګئ اقرار به وکړی او د ډیرے په وجه به د شرك نه انکار کوی او وائی به چه مونږ خو شرك نه وو کړے نو ملائك به د دوی خبره رد کولو سره وائی چه آؤ، تاسو شرك کړے وو، او الله ستاسو په عملونو ښه پوهه دے، پدے وجه په دروغ وئیلو او انکار

کولو سره تاسو ځان نشئ خلاصولے۔ اُوس تاسو د خپلو خپلو گناهونو او شرکی عملونو مطابق د جهنم مختلف طبقاتو کښ د هغے د دروازو نه داخل شئ او همیشه دپاره هلته سوزئ، چه د الله د عبادت نه مخ اړونکو دپاره بد ترین ځای د اُوسیدو دے۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه د کافرانو روحونه د مرگ نه روستو جهنم ته داخلیږی او په قبر کښ د جهنم د اُور سوزش د هغوی جسمونو ته رسیږی۔ د قیامت په ورځ به د دوی روحونه د دوی بدنونو ته دویم ځلی داخل کړے شی، او دوی به همیشه دپاره جهنم ته اُولیږلے شی۔ امام قرطبیؒ لیکی: هیڅ کافر او مناقق د دنیا نه نهٔ وځی تردے چه منقاد او تابعدار جوړیږی او غاړه ایږدی، او عاجزی او ذلت راښکاره کوی او په دغه وخت کښ دوی ته نهٔ توبه فائده ورکوی او نهٔ ایمان راوړل۔ لکه الله فرمائی :

﴿ فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ إِيْمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا﴾ (حم المؤمن : ٨٥)

(نو دوی ته د ایمان راوړو فائده ورنکړه کله نے ولیدو عذاب زمونږ)۔

**السَّلَمَ** : د سلم نه مراد استسلام یعنی غاړه ایخودل او انقیاد دے۔ یعنی د مرگ په وخت به ورته حقائق راښکاره شی خو وخت به تیروی۔ د مرگ په وخت کښ توبه او اسلام قبلول فائده نهٔ ورکوی۔

**مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوْءٍ** : د سوء نه مراد شرك دے۔ او دا خبره به دوی په طریقه د انکار او دروغو سره کوی۔ یا به یره پرے ډیره سخته وی۔ او ځینی وائی چه دا خبره د خپلے عقیدے مطابق کوی یعنی د دوی د گمان مطابق خو دوی شرك نهٔ وو کړے بلکه دا ئے نیك عمل گنړلو چه د اولیاؤ تعظیم وکړے شی هغوی ته سجده وکړے شی، او د هغوی په نوم نذر او منبسته وکړے شی لکه مشرك دے ته شرك نهٔ وائی بلکه دا بزرگی گنړی۔

**فَادْخُلُوْا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ** : یعنی دوی ته به دا خبره د مرگ په وخت کښ کیږی چه د جهنم دروازو ته داخل شئ۔ او بعض وائی چه دا دوی دپاره د قبر په عذاب باندے زیرے ورکول دی ځکه چه قبر هم د کافرانو دپاره د جهنم د دروازو نه یوه دروازه ده۔

او ځینی وائی چه د دویمے طبقے جهنمیان هغے ته نشی رسیدلے مگر دا چه اوله طبقه باندے ننوزی او دغه شان دویمه او دریمه واخله۔

یا دا چه هرے طبقے ته بیله بیله دروازه ووئیلے شوه۔ نو ځینی جهنمیان به په یوه دروازه یعنی طبقه کښ ننوزی او ځینی په بله دروازه۔ (قرطبیؒ)

| وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا مَاذَا أَنْزَلَ رَبُّكُمْ |
|---|
| او چه اُوونیلے شی هغه کسانو ته چه تقویٰ ئے کړیده څه نازل کړیدی رب ستاسو |
| قَالُوا خَيْرًا ؕ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا |
| وائی دوی (نازل کړے ئے دے) خیر لره، دپاره د هغه کسانو چه ښائسته عمل ئے کړیدے |
| فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۚ وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ ۚ وَلَنِعْمَ |
| پدے دنیا کښې ښائسته ژوند دے او خامخا کور د آخرت ډیر غوره دے (دوی لره) او ښه دے |
| دَارُ الْمُتَّقِينَ ﴿٣٠﴾ جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا تَجْرِي |
| کور د متقیانو. چه هغه جنتونه د همیشوالی دی، داخلیږی به هغے ته، بهیږی به |
| مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَاءُونَ ۚ كَذَٰلِكَ |
| لاندے د هغے نه ولے، د دوی دپاره په هغے کښې هغه څه دی چه غواړی ئے دوی، دغه شان |
| يَجْزِي اللَّهُ الْمُتَّقِينَ ﴿٣١﴾ الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ |
| بدله ورکوی الله تعالیٰ متقیانو ته. (دا) هغه کسان دی چه وفات کوی دوی لره ملائك |
| طَيِّبِينَ ۙ يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمُ |
| پداسے حال کښې چه پاك وی، وائی به دوی ته سلامتیا دے وی په تاسو باندے |
| ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٣٢﴾ |
| داخل شئ جنت ته په سبب د هغے عملونو چه تاسو به کول. |

**تفسیر** : مشرکان خو د قرآن کریم په باره کښې دا وائی چه دا قصے د پخوانو دی، د دوی په خلاف د متقیانو مسلمانانو نه چه کله تپوس کیږی چه ستاسو رب څه نازل کړیدی؟ نو دوی وائی چه زمونږ رب قرآن کریم د خیر او برکت نه ډك کتاب نازل کړیدے.

لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا : دا یا کلام د الله تعالیٰ دے چه پدے کښې صفت د متقیانو ذکر کوی او خپله هغه وعده ئے ذکر کړیده چه هغه د خپلو بندګانو سره کړیده کوم چه په دنیا کښې نیك عمل کوی، چه هغه به دوی ته په دنیا کښې ښه بدله ورکوی او په آخرت کښې چه دوی ته څه ملاویږی نو هغه به د الله ډیر لوی نعمت (جنت) وی چه د متقیانو دپاره به ډیر

ښهٔ کور وی۔ الله تعالیٰ پدے سورت (۹۷) آیت کښې فرمایلی دی: ﴿ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴾ چه څوك نیك عمل وکړی، سړے وی که ښځه، لیکن ایمان والا وی نو هغه ته به یقیناً انتهائی ښه ژوند ورکوو او د هغوی د نیك اعمالو بدله به هم دوی ته ضرور ورکوو)۔

یا لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا د دغه متقیانو کلام دے نو دا به بدل وی د (خیراً) نه۔ (زمخشری)

یعنی متقیان د خیر خبره کوی او هغه خیر خبره دا ده چه په دنیا کښې نیکی کونکی ته به ښائسته بدله او ښائسته ژوند او جنت ملاویږی۔

اَحْسَنُوْا : اَیْ اَحْسَنُوْا اَعْمَالَهُمْ بِالْاِيْمَانِ فِي الدُّنْيَا مَثُوْبَةٌ حَسَنَةٌ۔ دپاره د هغه کسانو چه هغوی په ایمان سره خپل عملونه ښائسته کړیدی په دنیا کښې د هغوی دپاره ښائسته بدله ده۔ قتادهٔ وائی : یعنی ایمان ئے راوړے وی په الله او په کتابونو او رسولانو د هغهٔ او د الله تعالیٰ په طاعت ئے حکم کړے وی او د الله بندګانو ته ئے په خیر (نیکئ) باندے تیزی ورکړی وی او هغے ته ئے رابللی وی۔

د حسنة نه مراد نصرت او فتح هم ده۔ (ضحاكؒ) مجاهدؒ وائی رزق حسن ترے مراد دے۔

خینی وائی : حیاة طیبه مراد دے چه هغه د مدح او ثناء مستحق وی۔ (فتح البیان)

اَلَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ : یعنی ددے تقویٰ والو چه په خپلو ځانونو ئے د کفر او ګناهونو په وجه ظلم نهٔ وی کړے، د مرګ په وخت کښې به د دوی حال دا وی چه کله دوی ته ملائك راشی نو د دوی د احترام او محبت دپاره به دوی ته سلام کوی او زیری ورکولو سره به ورته وائی چه تاسو د خپلو نیك عملونو په بدله کښې همیشه دپاره جنت ته داخل شئ۔ سورة فصلت آیت (۳۰) کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی : ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴾

(بیشکه کومو خلقو چه ووئیل چه زمونږ رب الله دے، بیا پدے باندے مضبوط پاتے شو، دوی ته به ملائك ددے وینا سره راځی چه تاسو هیڅ خطره او غم مهٔ کوئ، بلکه د هغه جنت زیرے واورئ چه د هغے وعده تاسو سره شویده)۔

تَتَوَفّٰهُمْ : نه معلومیږی چه تقویٰ او نیك عملی د یو خت شے نهٔ دے بلکه دا به تر مرګه پورے کولے شی۔

طَيِّبِيْنَ : ۱ - طَاهِرِيْنَ مِنْ دَنَسِ الشِّرْكِ وَالْكُفْرِ وَالنِّفَاقِ) ۔ یعنی د شرك، کفر او نفاق د خیرو نه پاك وی۔ ۲ - صَالِحِيْنَ۔ نیکی کونکی وی۔ ۳ - زَاكِيَةً اَفْعَالُهُمْ وَاَقْوَالُهُمْ) ۔ چه د هغوی

عملونه او اقوال پاك وي. (مجاهدؒ- بغويؒ) لکه سورة الحج (٢٤) آيت کښې دي :
﴿ وَهُدُوٓا إِلَى ٱلطَّيِّبِ مِنَ ٱلْقَوْلِ وَهُدُوٓا إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلْحَمِيدِ ﴾ . او ﴿ إِلَيْهِ يَصْعَدُ ٱلْكَلِمُ ٱلطَّيِّبُ وَٱلْعَمَلُ ٱلصَّٰلِحُ يَرْفَعُهُۥ ﴾ . (فاطر: ١٠) ﴿ قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّىٰهَا ﴾ (الشمس: ٩)
٤- مَنْ ظَلَمَ أَنْفُسَهُمْ بِالْمَعَاصِيْ. پاك وي د ظلم د نفسونو نه په ګناهونو سره. (بيضاويؒ)
٥- أَيْ طَيِّبِيْنَ الْوَفَاةِ . يعنى د دوى وفات به مزيدار وي يعنى دا به پرے آسان وي چه هيڅ تکليف به پرے نۀ وي، او په حالت د وفات کښې به زيرى ورکولے شي.
٦- فَرِحِيْنَ بِبِشَارَةِ الْمَلَائِكَةِ. خوشحاله به وي د ملائکو په زيرى سره. (فتح البيان)
سَلَامٌ عَلَيْكُمْ : يعنى ددے نه روستو به په تاسو باندے سلامتيا وي، تاسو ته به هيڅ قسم خفه کونکے مصيبت نۀ رسيږي.
ادْخُلُوا الْجَنَّةَ : دا په برزخ کښې جنت دے ځکه چه د دوى روحونه جنت ته ځي او چه بدے وخت کښې انسان ته د جنت زيرے ورکړے شي نو څومره به خوشحاله وي چه د دنيا د هيڅ شي پسے به خفګان نۀ کوي.
ابو حيانؒ وائي : ظاهر دا ده چه سلام او دخول الجنة په آخرت کښې مراد دے او زيرے ورله مخکښې نه ورکړے شو.

| هَلْ يَنْظُرُوْنَ إِلَّآ أَنْ تَأْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ |
|---|
| انتظار نۀ کوي دوى مګر ددے خبرے چه راشي دوى ته ملائك يا راشي حکم د رب ستا. |
| كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَمَا ظَلَمَهُمُ |
| دغه شان کار کړے وو هغه چا چه مخکښې وو د دوى نه، او ظلم نۀ دے کړے په دوى باندے |
| اللّٰهُ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٣٣﴾ فَأَصَابَهُمْ |
| الله تعالىٰ ليکن دوى په خپلو ځانونو باندے ظلم کولو. نو اورسيدلے دوى ته |
| سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَحَاقَ بِهِمْ مَّا |
| بدے سزاګانے د هغے عملونو چه دوى کړي وو او راګير به کړي دوى لره هغه څه |
| كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٣٤﴾ |
| چه دوى به هغے پورے توقے کولے. |

**تفسیر**: بیا کافرانو ته تخویف دنیوي ورکوي او هغوي ته دا خبرداري ورکول دي چه د دنیا د ژوند په دهوکه کښې پرېے نهٔ وځي او په خپل کفر او عناد کښې مخکښې لاړ نهٔ شي. که نهٔ وي د بد انجام دپاره دې تیار وسیږي.

د آیت مطلب دا دے چه دا خلك د قرآن پورے توقے کوي او ایمان نهٔ راوړي، دوي د څه خبرے په انتظار کښې ناست دي؟ آیا دوي ددے خبرے په انتظار کښې دي چه ملائك راشي او د دوي روحونه قبض کړي، یا بل داسے عذاب پرے راشي چه د دوي وجود ختم کړي، یا قیامت راشي او دوي خپل هلاکت په خپلو سترګو وویني، یعني دوي د هغه چا په شان کارونه وکړل چه په هغه باندے عذاب ثابت شوے وي او هغه ئے په انتظار کښې ناست وي. یعني دا خلك به هله ایمان راوړي چه الله تعالیٰ ورله عذاب ورکړي یا پرے قیامت راولي نو بیا به دوي ایمان راوړي لیکن دغه ایمان به دوي ته هیڅ فائده ورنکړي.

هَلْ يَنظُرُونَ: دا په تشبیه باندے حمل دے یعني تر مرګ او عذاب وخت پورے ایمان نهٔ راوړل داسے دي لکه چه یو انسان د عذاب په انتظار کښې ناست وي، ورنه کافرانو د عذاب انتظار نهٔ کولو ځکه چه هغوي خو د عذاب راتلل نهٔ منل او هیڅ خیال ئے ددے په باره کښې نهٔ کولو.

أَوْ يَأْتِيَ: (أَوْ) کلمه د مانعة الخلو دپاره ده. یعني هریو د مرګ او عذاب په دوي راتللے شي اګرکه وخت به ئے مختلف وي او په (أَوْ) سره ئے تعبیر وکړو اشاره ده چه هر یو د دوي د عذاب دپاره کافي شے دے. (ابو السعودؒ).

أَمْرُ رَبِّكَ: ددے نه استیصالي (بیخ ویستونکے) عذاب مراد دے.

كَذَٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ: یعني دغه شان پخوانو قومونو هم انتظار کولو او ایمان ئے نهٔ راوړو نو الله تعالیٰ پرے عذاب راوستو او هلاك ئے کړل نو دغه شان به دا موجوده کافران هم هلاك کړي. او د رسولانو پورے چه به ئے کومے توقے کولے د هغے سزاګانے ورته ورسیدے.

سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا: ۱- عُقُوبَاتُ مَا عَمِلُوا. یعني سزاګانے د هغه عملونو چه دوي به کول. ۲- ظاهر دا ده چه سیئات ګناهونو ته وائي. یعني خپل بد عملونه ورته ورسیدل لکه دا په محاوره کښې ذکر کیږي چه (فلاني ته خپل بد عمل ورسیدو).

تر دے ځای پورے د مشرکانو څو بد صفات دا بیان شو چه د قرآن کریم پورے توقے کوي، تکبر کوي، د الله تعالیٰ سره برخه داران جوړوي، روستو به د مشرکانو دلیل راوړي بیا به د دوي انکار د آخرت بیانوي بیا به د شرك فعلي تذکره کوي، بیا د لونړو په باره کښې د دوي

بد عمل ذکر کیږي.

| |
|---|
| وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا عَبَدْنَا |
| او وائي هغه کسان چه شرك ئې کړيدے که غوختلے الله بندګي به نۀ وے کړے موږ |
| مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ نَّحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا |
| سوئ د هغۀ نه د هيڅ شي موږه او نۀ پلارانو زموږ او نۀ به حرام کړے وے موږ |
| مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ |
| سوئ (د اذن) د الله تعالىٰ هيڅ شے. دغه شان کار کړے وو هغه کسانو چه مخکې وو د دوی نه |
| فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿۳۵﴾ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ |
| نو نشته په رسولانو باندے مګر رسول ښکاره دی. او يقيناً ليږلے دے موږ په هر |
| أُمَّةٍ رَّسُوْلًا أَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا |
| امت کښې رسول لره (پدے خبره) چه بندګي خاص کړئ د الله تعالىٰ او ځان ساتئ |
| الطَّاغُوْتَ فَمِنْهُمْ مَّنْ هَدَى اللّٰهُ |
| د بندګئ د غير الله نه، نو بعض د دوی نه هغه څوك دي چه هدايت اُوکړو هغه ته الله |
| وَمِنْهُمْ مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ فَسِيْرُوْا |
| او بعض د دوی نه هغه څوك دي چه ثابته شوه په هغه باندے ګمراهي نو اُوګرځئ |
| فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۳۶﴾ |
| په زمکه کښې نو اُوګورئ چه څنګه شو انجام د دروغجن ګڼړونکو. |

**تفسير** : پدے کښې رد دے د مشرکانو په دليل باندے. د مکے مشرکانو به د خپل کفر او شرك د جواز دپاره د الله تعالىٰ په تقدير دليل نيولو او وئيل به ئې چه که موږ د الله تعالىٰ نه سوئ د غير عبادت کوو او د خپل طرف نه څه حيواناتو ته حرام وايو، او زموږ پلارانو نيکونو به هم داسے کول نو پدے کښې زموږ او د هغوی هيڅ قصور نشته دے، دا خو د الله د مشيت او ارادے مطابق دي، که د هغه خوښه نۀ وے لکه څنګه چه د محمد (ﷺ) ګمان

دې نو مونږ به داسې نهٔ کولې، الله تعالیٰ به زمونږ سترګې ړندې کړې وې او لاسونه به ئې راله بند کړی وې او خپې به ئې راله ماتې کړې وې نو ګویا که زمونږ د هغه د خوښې مطابق داسې کار کول ددې خبرې دلیل دې چه محمد (ﷺ) دروغجن دې او الله طرف ته غلطه خبره منسوب کوی۔ (والعیاذ بالله)

او دا دلیل په سورة انعام (۱۴۸) آیت کښې هم ذکر شویدې او روستو په سورة الزخرف (۲۰) آیت کښې بیا راځی ځکه چه دوی به دا خبره بار بار کوله۔

ددې خلکو پدې خبره ذهن نهٔ وو کولاؤ چه په دنیا کښې الله تعالیٰ په انسانانو باندې زور نکوی، او دوی به ویل چه الله تعالیٰ خو طاقت والا دې چه په یو شی باندې ناراضه دې نو بیا ئې ولې نهٔ ختموی؟ معلومیږی چه الله تعالیٰ پدې کار ناراضه نهٔ دې۔

نو د هغې جواب دا دې چه یو د الله تعالیٰ مشیئت دې او بل ئې رضا ده، کائناتو کښې چه څه کارونه کیږی کفر او شرك او ایمان او نیکی، نو دا د الله تعالیٰ په مشیت باندې کیږی لیکن په بعضې کارونو باندې راضی وی په کوم باندې ئې چه امر کړې وی لکه د دین په خبرو ئې امر کړیدې، پدې راضی دې، او د څه نه ئې چه منع کړیده نو په هغې ناراضه کیږی نو غلا او زنا او شرك او کفر چه کیږی نو دا د الله په اراده سره کیږی لیکن الله تعالیٰ پرې راضی نهٔ دې۔ که ته ووائې چه الله تعالیٰ کوم ځای منع کړیده نو روستو فرمائی چه ﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا﴾ الله تعالیٰ پیغمبران رالیږلی دی او هغوی ته ئې دا خبره ورکړې وه چه ﴿ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ﴾ نو دا ښکاره دلیل دې چه الله تعالیٰ په شرك رضا نهٔ دې، ځکه که په شرك راضی وې نو بیا ئې پیغمبران د هغې د رد دپاره ولې رالیږل۔

دویمه نښه د الله تعالیٰ د نا رضا والی دا ده چه پخوانی مشرکان الله تعالیٰ په انجام کښې هلاك کړل، اول کښې ئې ورته د امتحان په طور څه نهٔ ویل، لیکن روستو زمانه کښې ئې هلاك کړل۔ که الله تعالیٰ په شرك راضی وې نو بیا ئې ولې دغه بندګان هلاکول۔

حاصل دا شو چه د پیغمبرانو راتګ او د اقوام مکذبه ؤ هلاکت دلیل دې چه الله تعالیٰ په شرك سخت نا راضه دې۔ نو پدې وجه د الله د ارادې او رضا ترمینځ فرق پیژندل ډیر ضروری دی، دا فرق قدریه او جبریه ؤ نهٔ وو پیژندلې نو پدې وجه په عقیدو کښې خطاء شو۔

قدریه وائی چه انسان د خپلو کارونو خپله پیدا کونکې دې. ولې که مونږ ووایو چه د بندګانو د کارونو خالق الله تعالیٰ دې نو ددې معنیٰ به دا جوړه شی چه دا ګناه چه مونږ کوو نو دا راباندې الله کوی۔ او جبریه وائی چه انسان بیخی مجبورِ محض دې، ددهٔ په

نیکئ او بدئ کولو کښې هیڅ اختیار نشته دا هر څه پرې الله تعالیٰ کوی. او اهل السنت وائی چه د هر شی خالق الله تعالیٰ دے او کاسب ئے بندګان دی. او حساب په کسب دے نهٔ په خلق باندے. لکه ددے تفصیل په خپل ځای کښې راځی.

**مضمون** : بیا روستو (۳۷) آیت کښې خپل نبی ته تسلی ورکوی چه په هغے کښې ډیر عنوانات راتلے شی لکه تسلی، او تصرف د رب په هدایت او ګمراه کولو د خلکو کښې. او بیان د علم د الله تعالیٰ په ګمراه کولو د خلکو کښې.

بیا پنځمه خبره د مشرکانو په ﴿وَاَقْسَمُوْا بِاللهِ﴾ کښې چه په تاکید سره د آخرت نه انکار کوی، نو د اثبات د آخرت دپاره یو حکمة او څه دلائل بیانوی، قیامت به ولے راځی، یوه وجه دا ده چه الله تعالیٰ ئے وعده کړیده او الله تعالیٰ د وعدے خلاف نکوی،

دویمه وجه : دنیا کښې اختلاف روان دے څوک د الله د رضا کارونه کوی او څوک ئے د دشمنئ کوی نو دوی ددے د اختلاف په مینځ کښې د فیصلے دپاره یوه ورځ پکار ده. که قیامت رانشی نو بیا خو به د انسانانو معاملات ګډوډ پاتې شی او الله داسے نهٔ کوی.

دریمه وجه دا ده چه الله تعالیٰ د کافرانو دروغ رابښکاره کوی چه دوی وائی قیامت به نهٔ راځی. په (٤٠) آیت کښې وائی چه قیامت راتلل الله تعالیٰ ته څه ګران دی؟، هغه الله تعالیٰ په کن فیکون طریقے سره راوستے شی. پداسے آیتونو کښې په کافرانو رد وی او د مؤمنانو رابیداروِل وی چه هرکله داسے ورځ راتللو والا ده نو هغے له تیارے وکړئ.

وَلَا حَرَّمْنَا : ددے مثال داسے دے لکه یو تن زنا کوی او بیا وائی چه الله تعالیٰ راته څه نهٔ وائی عذاب نهٔ راولی بس الله پدے کار راضی دے، او دے ته نهٔ ګوری چه په دین کښې الله تعالیٰ ددے نه منع کړیده. او دا تا ته چه څه نهٔ وائی نو دا د الله تعالیٰ بل قانون دے چه دنیا کښې بعض ګناهګارو فاسقانو ته الله تعالیٰ څه نهٔ وائی، مهلت ورکوی، او په آخر کښې به سزا ورکوی. نو صبر د الله تعالیٰ دلیل د هغه په رضا نهٔ دے. بلکه په هغے کښې نور ډیر حکمتونه دی، ځکه که الله تعالیٰ په هره ګناه سمدست رانیول کولے نو بیا خو به الله تعالیٰ دا ټول انسانان ختم کړی وے. نو نظام به درهم برهم شوے وے. نو الله تعالیٰ ددے دپاره د قیامت ورځ تیاره کړیده.

كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ : دلته وقف دے. اَىْ فَعُذِّبُوْا بِذٰلِكَ . یعنی هغوی ته عذاب ورکړے شو په دغه شرک باندے.

فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ : که څوک ووائی چه مونږ الله تعالیٰ د شرک نه نهٔ یو منع کړی نو الله

فرمائی چه پیغمبرانو د رد د شرك تبلیغ کړیدی، او هغوی عملاً په چا باندے زورنکوی چه لاسونه ورله ونیسی، دا د هغوی ذمه واری نهٔ ده۔

وَلَقَدْ بَعَثْنَا : پیغمبرانو ځنګه منع کړیده او څه مقصد دپاره دنیا ته راغلی دی؟ نو اوس اجمالاً د ټولو پیغمبرانو پدے مسئله باندے راتګ او د هغوی د دعوت خلاصه بیانوی۔

یعنی د آدم علیه السلام د زمانے نه واخله تر د نبی کریم ﷺ پورے د تمامو انبیاء کرامو یو دعوت وو چه د الله تعالیٰ نه سویٰ هیڅوك معبود نشته دے، صرف هغه د عبادت لائق دے. لکه څنګه چه الله تعالیٰ دلته آیت (۳۶) کښې بیان کړیدی چه مونږ د هر قوم دپاره یو رسول رالیږلے چه هغه دوی ته ددے خبرے تعلیم ورکړے چه د الله تعالیٰ عبادت کوئ او د شیطان او د بتانو د عبادت نه جدا اوسیږئ۔

الطَّاغُوتَ: ګمراه یا د ګمراهئ سبب۔ او باقی تشریح ئے په سورة البقره او آل عمران کښې ذکر شویده۔

فَمِنْهُمْ مَّنْ هَدَى اللَّهُ : د خیر او شر د وضاحت او صراحت نه روستو الله تعالیٰ د خپل علم غیب او تکوینی مشیت مطابق چاله چه غوختل هغه ته ئے توفیق ورکړو او چاله ئے چه غوختل په ګمراهئ کښې ئے پریخودل او سبب په هغے کښې د هغوی عناد او ضد وو۔

دلته الله تعالیٰ د هدایت نسبت ځان ته وکړو، او د ګمراهئ نسبت بندګانو ته۔ وجه دا ده چه پدے کښې ښائسته رعایت د ادب دے چه د شرونو نسبت الله تعالیٰ ته دائرك نهٔ کیږی۔

دویمه وجه دا ده چه هدایت خالص د الله تعالیٰ په فضل او احسان سره وی او ګمراهی د انسان په کسب سره وی۔

فَسِيرُوا : یعنی اول کښې به پیغمبرانو دعوت وکړو، څه کسانو به مخالفت وکړو نو الله به ورته انتظار وکړو د خپل حکمة مطابق، په آخر کښې به ئے هلاك کړل نو تاسو لاړ شئ د دغه مکذبینو انجام وګورئ۔

| إِنْ تَحْرِصْ عَلَىٰ هُدَاهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ |
|---|
| که ته حرص کوے په هدایت د دوی باندے نو یقیناً الله هدایت نکوی هغه چا ته |
| يُضِلُّ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ ﴿٣٧﴾ وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ |
| چه ګمراه کوی ئے او نشته دوی لره څوك مددګاران۔ او قسمونه کوی دوی په الله باندے |

جَهۡدَ اَيۡمَانِهِمۡ لَا يَبۡعَثُ اللّٰهُ مَنۡ يَّمُوۡتُ بَلٰى

مضبوط قسمونه خپل چه نهٔ به راپورته کوی الله تعالیٰ هغه څوک چه مری، ولے نهٔ،

وَعۡدًا عَلَيۡهِ حَقًّا وَّلٰـكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۳۸﴾ لِيُبَيِّنَ

دا وعده ده په الله باندے یقینی۔ لیکن زیات خلق نهٔ پو هیږی۔ دے پاره چه بیان کړی

لَهُمُ الَّذِىۡ يَخۡتَلِفُوۡنَ فِيۡهِ وَلِيَعۡلَمَ

دوی ته هغه څه چه اختلاف کوی دوی په هغے کښې او دے دپاره چه معلومه شی

الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اَنَّهُمۡ كَانُوۡا كٰذِبِيۡنَ ﴿۳۹﴾ اِنَّمَا قَوۡلُنَا لِشَىۡءٍ اِذَاۤ

کافرانو ته چه بیشکه دوی دروغجن وو۔ یقیناً وینا زمونږ د یو شی په باره کښې کله چه

اَرَدۡنٰهُ اَنۡ نَّقُوۡلَ لَهٗ كُنۡ فَيَكُوۡنُ ﴿۴۰﴾

اراده اُوکړو مونږ د هغے، دا ده چه اُووایو هغهٔ ته وشه نو هغه اُوشی۔

**تفسیر** : پدے کښې رسول الله ﷺ ته تسلی ده، هغه د خلکو په هدایت باندے ډیر کوشش کولو چه ټول هدایت ته راشی او د اُور نه بچ شی ځکه چه شفقت ئے ډیر وو۔ او ډیر زور کول ددے نه نقصانات پیدا کیږی ځکه چه په الله باندے د بنده بد گمانی پیدا شی، بل ځان بی ځایه په تکلیف کښې اچول دی ځکه چه الله تعالیٰ یو تن په تقدیر کښې گمراه لیکلے دے او انسان زور کوی چه زهٔ ئے هدایت والا جوړوم نو دا د تقدیر بدلول دی، او مخلوق تقدیر نشی بدلولے۔ نو پدے کښې د الله تعالیٰ د حکم تابعداری ضروری ده او هغه دا چه دعوت کوه او شفقت په خلکو کوه او نور ئے الله ته سپاره چه که الله تعالیٰ ورته هدایت غوښتل وبه ئے کړی او که نهٔ وی نو نهٔ۔ یعنی ځان ورته ډیر مهٔ ذلیله کوه چه سوال او زاری ورته کوے او بیخی ځان دے پریشانه کړے وی او خپل ژوند دِے تنگ کړے وی۔ نو دلته الله خپل مشیئت او خپله استغناء بیانوی چه که الله تعالیٰ څوک په گمراهئ باندے د خپل مشیئت او حکمة مطابق پریدی نو نبی کریم ﷺ که ډیر کوشش وکړی نو هغه په نیغه لاره نشی راوستلے او نهٔ د الله عذاب د هغه نه روستو کولے شی۔

دا حقیقت الله تعالیٰ د قرآن کریم په گڼرو آیتونو کښې بیان کړیدے۔ سورة یونس آیتونو (۹۶/۹۷) کښې فرمائیلی دی : ﴿ اِنَّ الَّذِيۡنَ حَقَّتۡ عَلَيۡهِمۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ ۞ وَلَوۡ جَآءَتۡهُمۡ كُلُّ

آيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ﴾ یقیناً د کومو خلقو په باره کښې چه ستا د رب خبره ثابته شویده هغوی ایمان نۀ راوړی اګر که دوی ته ټول دلائل راشی تر دے پورے چه دردناك عذاب وویني)۔

نو پدے آیت کښې د رسول الله ﷺ طمع قطع کول دی د هدایت د بعض کافرانو نه۔

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ : دا پنځمه نظریه د مشرکانو ده۔ د قریش کافرانو د کفر او کبر او عناد یوه نتیجه دا وه چه دوی به د قیامت د ورځے نه انکار کولو او د مرګ نه روستو دویم ځلی ژوندی کیدل به ئے یو مستحیل (ناممکن) کار ګنړلو او قسمونه به ئے خوړل، وئیل به ئے چه دا هیڅ ممکن نۀ ده چه څوك مړ شی او الله تعالیٰ هغه لره دویم ځلی راژوندے کړی۔

مشرکانو چه د بعث بعد الموت نه انکار کولو نو هغوی په ذهن کښې دوه خبرے نیولے وے، یو دا چه پدے کښې هیڅ فائده نشته، ولے الله تعالیٰ دا نظام وران کړی او دا خلك مړه کړی او بیرته ئے راژوندی کړی؟۔ دویم دا چه پدے باندے ئے ذهن کار نۀ کولو چه الله تعالیٰ پدے قادر دے چه یو تن ذره ذره شی او دا ذرات بیرته راجمع کړے شی، اګر که په عام اوقاتو کښې ئے دا اقرار کولو چه الله تعالیٰ په هر کار قادر دے۔ پدے وجه ورته الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے او د کائناتو پیدائش په دلیل کښې پیش کوی۔

د قیامت په عقیده باندے قرآن زور ځکه لګوی چه که دا ثابت نشی نو د ټولو کائناتو پیدائش عبث کیږی، او د انسانانو پیدائش او پدے کښې پیغمبران او کتابونه رالیږل او ایمان او کفر او نیك او بد عمل، د نکاح او د زنا فرق بے فائدے کیږی۔ او دا فرق خو ددے دپاره کیږی چه صبا له قیامت راروان دے او پدے عملونو حساب کتاب دے۔ نو د قیامت نۀ منونکو ته الله تعالیٰ ناپوهه وئیلی دی۔ ځکه چه پدے کښې د الله تعالیٰ د صفاتو نه انکار راځی چه هغه په بدئ باندے ناراضه نۀ دے او په نیکئ باندے راضی نۀ دے۔ نو محبت او کراهت صفت نه انکار لازمیږی۔

حَقًّا : یعنی دغه وعده ئے مضبوطه کړیده په ژبه د پیغمبرانو سره او په کتابونو کښې۔

لِيُبَيِّنَ لَهُمْ : دا متعلق دے د (يَبْعَثُ) پورے۔ یعنی الله تعالیٰ به انسانان راپورته کوی دے دپاره چه خلکو ته د هغوی اختلاف بیان کړی او هغه ورله فیصله کړی۔ په دنیا کښې چه اختلاف روان دے څوك نیك عمل کوی، د الله تعالیٰ رضا لټوی، د شپے راپاځیږی، روژے نیسی، جهادونه کوی او نور کسان د الله تعالیٰ سره شریکان جوړوی، ټول عمر ئے په غفلت کښې تیریږی او په جرمونو کښې مشغول وی، نو دے دواړو ډلو ته الله تعالیٰ بیان کوی چه

تهٔ په حقه او دا په باطله دے، ستا ځای جنت او ددهٔ ځای جهنم دے۔ که دا فرق الله ونکړی نو بیا د عبث نسبت ورته راځی۔ (تَعَالَى اللّٰهُ عَنْ ذٰلِكَ عُلُوًّا كَبِيْرًا)

وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : یعنی د کافرانو د دروغو ثابتولو دپاره او د هغوی د ضد نه به الله تعالیٰ قیامت راولی۔ هغوی وائی نهٔ به راځی نو الله تعالیٰ ئے د هغوی د قصد نه راولی۔

إِنَّمَا قَوْلُنَا : یعنی د انسانانو دویم ځلی ژوندی کول الله تعالیٰ ته انتهائی آسان دی۔ هغه چه کله د یو شی اراده کوی نو «شه» ورته وائی نو هغه شے موجود شی۔ دا ممکن نهٔ ده چه یو شے د الله ددے وینا نه روستو موجود نهٔ شی۔

| وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِي اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مَا |
|---|
| او هغه کسان چه هجرت ئے کړیدے دپاره د الله تعالیٰ روستو د هغے نه |
| ظُلِمُوْا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً |
| چه ظلم کړے شویدے په هغوی خامخا ځائے به ورکړو دوی ته په دنیا کښې ښائسته، |
| وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤١﴾ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا |
| او خامخا اجر د آخرت ډیر لوئی دے کچرے دوی پو هیږی۔ دا هغه کسان دی چه صبر ئے کړیدے |
| وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿٤٢﴾ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا |
| او په خپل رب باندے توکل کوی۔ او نهٔ دی لیږلی مونږ مخکښې ستا نه مگر سړی |
| نُّوْحِيْ إِلَيْهِمْ فَاسْئَلُوْا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٤٣﴾ |
| چه وحی به کوله مونږ دوی ته نو تپوس اُوکړه د ذکر (علم) والو نه که تاسو نهٔ پو هیږئ۔ |
| بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ |
| په ښکاره معجزو او کتابونو سره، او رالیږلے مونږ تا ته قرآن دے دپاره چه تهٔ بیان کړے |
| لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿٤٤﴾ |
| خلکو ته هغه کتاب چه نازل شویدے دوی ته او دے دپاره چه دوی پکښې فکر وکړی۔ |

**تفسیر** : پدے آیتِ کریمه کښې د الله په لاره کښې د هجرت کونکو دنیاوی او اُخروی اجر بیان شویدے، او مهاجرینو ته ترغیب دے۔

## ربط

۱- مضموني ربط: هركله چه الله تعالیٰ په شرك باندے رد وکړو او د مشرکانو دلیلونه ئے رد کړل نو دوی په مسلمانانو باندے تکلیف زیات کړو چه تاسو ولے زمونږ د آلهو بدی بیانوئ نو وهل ټکول ئے زیات کړل نو الله تعالیٰ ورته هجرت طرفته اشاره ورکړه۔
۲- نزدے سره ئے مناسبت دا دے چه اَلْبَعْثُ لِاِیْفَاءِ الْوَعْدِ۔ الله تعالیٰ به قیامت ځکه راولی چه الله تعالیٰ مهاجرینو سره وعده د جنت کړیده نو که قیامت رانشی نو بیا به دا وعده څنګه پوره شی۔ ۳- (یَخْتَلِفُوْنَ) سره متعلق دے چه دا اختلاف د انسانانو دومره سخت دے چه مؤمنان ئے په هجرت مجبوره کړیدی نو ددے فیصلے دپاره هم یوه ورځ پکار ده۔

## شان نزول

ددے آیت د شان نزول په باره کښې دوه اقوال دی: ❁ یو قول خو دا دے چه په آیت کښې ذکر شوی مهاجرینو نه مراد د مکے هغه مسلمانان دی چه د خپل قوم د ضرر ورکولو نه عاجز راغلل او د خپل ایمان د حفاظت دپاره د نبی کریم ﷺ په حکم سره حبشو ته ئے هجرت وکړو۔ د هغوی شمار د وړو ماشومانو نه سوئ درے اتیا (۸۳) وو۔ د اسلام راوړو نه روستو د الله په لاره کښې د مسلمانانو دا اولنے هجرت وو۔ ددے قول تائید ددے نه کیږی چه دا سورت مکی دے۔ ❁ دویم قول دا دے چه ددے نه د مدینے مهاجرین مراد دی، چه دوی ته الله تعالیٰ د هجرت نه مخکښې د لوئی اجر زیرے ورکړے وو۔ بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا آیت مدنی دے چه دے ته په مکی سورت کښې ځای ورکړے شویدے۔ (فتح البیان)
او ابن عاشورؒ وائی چه دواړو احتمالینو سره دا سورت مکی دے او یو اځے د مدینے مهاجرینو پورے دا وعده خاص نه ده بلکه دا ئے هم مصداق ګرځیدے شی۔

(التحریر والتنویر ۱۳/۱۲۷)

فِی اللّٰهِ: اَیْ فِیْ شَانِ اللّٰهِ وَفِیْ رِضَاهُ۔ یعنی د الله په باره کښې او د هغه د رضا په باره کښې ئے هجرت وکړو۔ او پدے لفظ کښې زیاته مبالغه ده د (فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ) نه۔
ظُلِمُوْا: اَیْ عُذِّبُوْا وَاُهِیْنُوْا۔ یعنی دوی ته عذابونه او تکلیفونه ورکړے شو او سپکاوے ئے وکړے شو۔ په زوره خلکو ویستلی دی۔
لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً : دا دلیل دے چه د نیك اعمالو بدله په دنیا کښې هم شته لکه مخکښې هم ذکر شو ﴿ لِلَّذِیْنَ اَحْسَنُوْا فِیْ هٰذِهِ الدُّنْیَا حَسَنَةٌ ﴾ ځکه چه دا د الله تعالیٰ قانون

دے چه (مَنْ تَرَكَ شَيْئًا لِلّٰهِ عَوَّضَهُ اللّٰهُ خَيْرًا مِنْهُ] - چا چه یو شے د الله دپاره پریخودو، الله تعالیٰ به د هغې نه غوره ورکړی- (احمد : ۲۰۷۶۵ باسناد صحیح) بلفظ : اِنَّكَ لَنْ تَدَعَ شَيْئًا اِتِّقَاءَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ اِلَّا اٰتَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا مِنْهُ - (ته یو شے د الله د ویرے د وجه نه نهٔ پریدے مګر الله تعالیٰ به تا ته د هغې نه غوره درکوی-

فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً: الله تعالیٰ دے مهاجرینو ته په دنیا کښې د عزت او مرتبے او د غوره رزق او فتح او مدد زیرے ورکړیدے، او دے نه روستو ئے وئیلی دی چه په آخرت کښې چه دوی ته کوم اجر ملاویږی نو ډیر غټ به وی چه د هغې تصور هم انسان پدے دنیا کښې نشی کولے-

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ: لَمَا تَأَخَّرُوْا عَنِ الْهِجْرَةِ - یعنی دوی به د هجرت کولو نه نهٔ روستو کیدلے- پدے کښې به ئے ډیرے فائدے لیدلے-

پدے آیت کښې د مکے هغه مسلمانانو ته د هجرت ترغیب هم ورکړے شویدے چه په یو دنیاوی وجه سره ئے د هجرت په کولو کښې تاخیر کولو- او کوم اجر چه مخکښې ذکر شو هغه به مهاجرینو ته پدے وجه ملاویږی چه دوی د مکے د مشرکانو په ضرر رسولو صبر کړیے، او په الله ئے بهروسه کړے وه او کورونه ئے پریخودل او هجرت ئے وکړو-

د عمر بن خطاب ﷛ نه روایت شویدے چه کله به هغه یو مهاجر مسلمان ته د هغه حصه ورکوله نو ورته وئیل به ئے، خپله حصه واخله، الله تعالیٰ دے په دے کښې تاله برکت واچوی، دا هغه مال دے چه الله تعالیٰ ئے تا سره په دنیا کښې وعده کړے وه- او د قیامت په ورځ چه تاسو ته څه ملاویږی نو هغه خو به ددے نه زیات بنه وی-

(ابن کثیرؒ والقرطبیؒ والبغویؒ وابن عاشورؒ)

۲- یا ضمیر مشرکانو ته راجع دے که دوی پو هیدے، نو دوی به مؤمنان په هجرت باندے نهٔ مجبوره کولے-

الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ : یعنی د هجرت دپاره دوه پائے او دوه اهم صفات پکار دی، یو صبر او بل توکل کول چه الله به رزق راکوی نو بیا به ورته هجرت آسانیږی-

دارنګه دا د هر داعی الی الله دپاره صفات دی چه ددے نه بغیر په خپل مشن کښې کامیابیدے نشی- سورة العنکبوت آیت (۶۰) کښې هم د هجرت په موقعه کښې دا دوه صفتونه راوړیدی-

وَمَا اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا : پدے دوه آیتونو کښې د رسول الله ﷺ د رشتینوالی بیان دے، او رد دے په بله (شبه مه) عقیده د مشرکانو باندے- د مکے مشرکانو به تعجب

کولو چه الله تعالیٰ یو انسان (سړے) څنګه خپل نبی جوړ کړو؟ د دوی ددے شبهے د رد کولو دپاره الله تعالیٰ خپل نبی کریم ﷺ مخاطب کړو ورته ئے ووېل چه ستا نه مخکښ څومره انبیاء چه موږ رالیږلی تول انسانان سړی وو، یو نبی هم ملائك نهٔ وو، او د مکے مشرکانو ته ئے ووېل چه ددے خبرے د تصدیق دپاره د یهودو او نصاراؤ نه تپوس وکړئ کوم چه تاسو هم علم او پوهے والا ګنړئ، هغوی به هم تاسو ته د خپلو کتابونو په حواله سره دا وائی چه انبیاء کرام همیشه انسانان سړی راغلی دی چه هغوی ته الله تعالیٰ د هغوی د رشتینوالی دپاره ښکاره دلائل ورکړی او د انسانانو د هدایت دپاره د کتابونو ورکولو سره ئے رالیږلی.

او پدے آیت کښ یوه بله ذهن سازی هم کیږی، رسول الله ﷺ په مکه کښ په تکلیف کښ وو او ملګری ئے هم په تکلیف کښ وونو دا وَهم کیدو چه دا څنګه د الله رسول دے چه دومره په تکلیف کښ دے؟ نو الله تعالیٰ فرمائی چه دا رسول یو سړے دے د انسانانو نه دے، او په انسانانو باندے تکالیف راځی څه ملائك نهٔ دے چه تکلیف به پرے نهٔ راځی، خو آخر کښ ئے غالبه کوی.

رِجَالًا: نهٔ ملائك وو او نهٔ زنانه وے.

اَهْلَ الذِّكْرِ: د اهل الذکر نه مراد اهل کتاب دی، او کتاب ته ذکر ځکه وائی چه دا انسان ته فائده منے خبرے رایادوی. او همدا ئے ظاهر معنیٰ ده.

د تقلید شخصی قائلینو ددے نه دلیل نیولے دے او وئیلی ئے دی چه پدے کښ الله تعالیٰ د چا سره چه علم نهٔ وی هغوی ته حکم کړیدے چه دوی د اهل علمو نه تپوس وکړی، نو ددے جواب دا دے چه د آیت سیاق او سباق دلالت کوی چه دا آیت د یو خاص موضوع په باره کښ د تپوس کولو سره متعلق دے چه د هغے د تقلید شخصی سره لرے تعلق هم نشته دے. د ابن جریرؒ، بغویؒ او اکثر مفسرینو همدا رائے ده. سیوطیؒ په خپل ((درمنثور)) کښ دا په تفصیل سره بیان کړیدے.

او که فرض کړے شی چه د آیتِ کریمه نه مراد عام سوال دے. نو د ((اهل ذکر)) نه د سوال کولو حکم شویدے او د ((ذکر)) نه مراد صرف د الله کتاب او د هغه د رسول سنت دی. یعنی د هغه خلقو نه دے تپوس وکړے شی چه د قرآن او سنت والا وی. او په جواب کښ وحی ذکر کوی او د چا نه چه تپوس وکړے شی نو هغه به په جواب کښ د الله وینا یا د رسول الله ﷺ وینا بیانوی، او تپوس کونکے به په هغے باندے عمل کوی. پدے صورت

کښې دا آیت د مقلدینو په خلاف حجت جوړ شو، ځکه چه د دوی دعوی دا ده چه د خلقو اقوال (خبرے) بغیر د دلیل غوختلو نه قبول کړے شي، حال دا چه دا آیت پدے خبره دلالت کوی چه د قرآن او سنت علم لرونکی به سوال کونکو ته د قرآن آیت یا د رسول الله ﷺ حدیث بیانوی. نو تپوس کونکے به د دلیل تابعدار جوړ شي او دے ته تقلید نشي وئیلے. او که یو مقلد د خپل امام مذهب نۀ بلکه د قرآن او سنت سوال کوی نو هغه مقلد نۀ پاتے کیږی بلکه هغه د قرآن او سنت متبع کیږی.

معلومه شوه چه دا آیت د تقلید شخصي نۀ بلکه د قرآن او سنت د اتباع دلیل دے، او د تقلید شخصي د قائلینو په خلاف دلیل او حجت دے. وبالله التوفيق. (فتح البیان وغیره)

دارنګه دلته اهل الذکر اسم جنس دے عام دے او حنفي مقلد خو د شافعي عالِم نه تپوس نکوی بلکه د هغه پسے مونځ هم جائز نۀ ګڼړی. او حنفي خو په ټولو مسئلو کښې صرف د یو امام تقلید کوی بل مذهب ته اوریدلو باندے ئے اتیا دُرے مقرر کړیدی.

بیا بعض مفسرینو لکه تفسیر قرطبیؒ دلته ویلی دی چه پدے کښې اثبات د تقلید دے او حال دا چه هغه خپله په اول جلد کښې د تقلید سخت رد کړیدے او دا ئے ویلی دی چه تقلید جهالت دے او دا علم ته رسیدونکے لاره نۀ ده. او فرمائی: [وَفِیْ هٰذَا دَلِیْلٌ عَلَی الْاَمْرِ بِاسْتِعْمَالِ حُجَجِ الْعُقُوْلِ وَاِبْطَالِ التَّقْلِیْدِ] (تفسیر سورة البقره آیت: ۲۳) یعنی تقلید باطل شے دے. [وَقُوَّةُ اَلْفَاظِ هٰذِهِ الْآیَةِ تُعْطِیْ اِبْطَالَ التَّقْلِیْدِ] (تحت آیة البقره: ۱۷۰) یعنی ددے الفاظو قوت تقلید باطل ګرځوی. [وَفِیْهِ دَلِیْلٌ عَلَی الْاَمْرِ بِالنَّظَرِ وَالْاِسْتِدْلَالِ وَاِبْطَالِ التَّقْلِیْدِ] (تحت آیة النساء: ۸۲) [وَدَلَّتْ اَیْضًا عَلٰی مَنْعِ التَّقْلِیْدِ لِعَالِمٍ اِلَّا بِحُجَّةٍ یُبَیِّنُهَا] (تحت آیة الاعراف: ۱۷۹)

دا آیت دلیل دے چه تقلید د یو عالِم منع دے مګر په دلیل سره چه هغه ئے بیان کړی. (وَکَانَ فِیْ هٰذَا زَجْرٌ عَنِ التَّقْلِیْدِ) (تحت آیة الاحزاب: ۶۷) یعنی پدے کښې د تقلید نه منع ده. وتفسیر سورة الزخرف آیة: ۲۴)

نو دے کښې وجه دا ده چه د بعض علماؤ اصطلاح دا ده چه هغوی سؤال اهل الذکر ته هم تقلید وائی یعنی د علماؤ نه تپوس کولو ته هم تقلید وائی حال دا چه دا مشهور اصطلاحی تقلید نۀ دے ځکه چه تقلید اصطلاحی [قَبُوْلُ قَوْلِ الْغَیْرِ (اَوْ اَخْذُ قَوْلِ الْغَیْرِ) مِنْ غَیْرِ حُجَّةٍ] دے. یعنی د یو چا خبره منل (یا د یو چا خبره اخستل) بغیر د دلیل نه. او په خارج کښې تقلید دے ته وائی چه په خپله غاړه کښې پړے اچول او بل له لاس کښې ورکول چه ما راکاږه زۀ به ستا د خطا او رسا تابعداریم او قرآن او حدیث چه ستا د قول په خلاف

راشی د هغې تاویل ته به تیار یم۔ او دا په واقع کښ همداسې ده، نن صبا اکثر مقلدین همداسې تقلید کوی چه آیت او حدیث چه د دوی د خپلې خوښې مذهب خلاف راشی نو په هغې کښ تاویلات شروع کړی او خپل مذهب ته ئې راتاووی نو دا سو چه گمراهی ده چه د انسان ایمان بربادوی۔ نو (سؤال اهل الذکر) د قرآن اصطلاح ده، دې ته تقلید نهٔ وئیل کیږی ځکه چه (سؤال اهل الذکر) وئیلې شی : مَعْرِفَةُ حُكْمِ اللهِ فِي الْمَسْئَلَةِ ۔ په یوه مسئله کښ د الله تعالیٰ حکم پیژندل۔ او دا خو مامور به دې او تقلید خو غیر مامور به دې، بلکه منهی عنه دې۔ ﴿ وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ﴾ (اسراء: ٣٦) د هغه څه پسې مهٔ روانیږه چه ستا په هغې باندې علم نهٔ وی۔

﴿ وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ أَحَدًا ﴾ (کهف: ٢٦) (الله تعالیٰ د خپل ځان سره په حکم (فیصله) کښ هیڅوك نهٔ شریکوی)۔ او کله چه انسان د الله تعالیٰ حکم معلوموی نو عالم له به ورشی او هغهٔ ته به ووائی چه د الله د نبی پدې کښ څه طریقه وه؟ نو هغه به ورته حدیث بیان کړی نو دا سائل به د دغه حدیث پسې روان شی نو دا د کوم ځای نه تقلید شو؟ عالم صرف ددهٔ دپاره د رڼا ذریعه شوه، د هغه شکریه پکار ده او مقصد خو د الله او د رسول خبره ده۔

دارنگه تپوس خو صرف د ژوندو علماؤ نه کیږی، نهٔ د مړو نه۔ لکه شامی وائی : ((هرچه امی دې نو د هغه هیڅ مذهب نشته بلکه د هغه مذهب د هغه د مفتی مذهب دې))۔ (حاشیة رد المحتار ٦٩/٢)

او مفتی به ورته د قرآن او حدیث نه فتویٰ ورکوی نهٔ د یو عالم د رائې۔ نو امت د رائې پسې روانول نه دی او که د قرآن او حدیث پسې۔

دارنگه سؤال اهل الذکر خو صحابه کرامو هم کړیدې چه د رسول الله ﷺ نه به ئې تپوس کولو نو آیا هغوی هم مقلدین شو؟۔ لکه بعض جاهلان هغوی ته هم مقلدین وائی۔ د تقلید مسئلې تول وهمی دی، او ځان په زوره گمراه کول دی او سره د علم نه ځان بی علمیٔ ته گوزارل دی، آیا په تول دین باندې په امت کښ صرف امام ابو حنیفهٔ پوهیدو، او امام شافعی او مالك او احمد سره د اسلام هیڅ برخه نهٔ وه؟ او آیا د هغوی تول مذهبونه خطاء دی؟ نو بیا دا څنگه امامان د دین شو؟۔ او آیا هغوی سره چه کوم حدیثونه دی نو هغه تول غلط دی؟!۔

بِالْبَيِّنَاتِ: دا متعلق دې په رِجَالًا پورې أَيْ رِجَالًا مُتَلَبِّسِيْنَ بِالْبَيِّنَاتِ ۔ یعنی داسې سړی چه

مشتمل وو په بیناتو۔ (وهو وجه حسن ذکره الزمخشری)۔
(۲) یا متعلق دے په (اَرْسَلْنَا) پورے۔ ما رالیږلی دی سرې په بیناتو سره۔ (ابن عطیة)
(۳) یا متعلق دے په (نُوْحِیْ) پورے۔
د بینات نه مراد معجزات، او عقلی دلیلونه دی، او زبر جمع د زبور :ه وحیی دلیلونه۔ او زبر هغے ته هم وائی چه په هغے کښ وعظی (د نصیحت) خبرے وی۔ نو په بیناتو سره موضوع ثابتیږی، او په زبر سره خلکو ته وعظ او نصیحت کیږی چه زړه نرمونکی خبرے وی او په عمل باندے ئے آماده کوی۔
وَاَنْزَلْنَا اِلَيْكَ الذِّكْرَ : نو ما هم تا ته (د پخوانو پیغمبرانو په شان) قرآن نازل کړو چه دا داسے کتاب دے چه خلکو ته هیرے شوے خبرے رایادوی او دوی د غفلت د خوب نه رابیداروی او دے دپاره مے نازل کړو چه ته ئ قرآن خلکو ته ښکاره بیان کړے او (وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ) او دے دپاره چه دوی هم پکښ فکر وکړی، او د هغے نه رازونه راوباسی۔
نو ددے نه دا قانون راووتو چه د رسول الله ﷺ صحیح احادیث د قرآن کریم تشریح او بیان دے، او قرآن به په احادیثو سره واضح کیږی، ددے وجه نه اهل علم لیکی چه کله د قرآن کریم او د صحیح حدیث ترمینځ په ظاهر کښ تعارض راشی نو حدیث بهٔ مقدم کولے شی په قرآن باندے ځکه چه قرآن کریم به په دغه مقام کښ اجمال کړے وی او حدیث به د هغے تشریح وی لکه دا آیت پرے دلیل دے او دا قانون دے چه مبیَّن مقدم وی په مُجمل باندے۔ (فتح البیان)
او رسول الله ﷺ چه د قرآن کوم بیان کړیدے هغه هم ورته الله تعالیٰ خودلی دی نو دا دلیل دے چه کتاب او سنت دواړه حجت دی، او سنت شارح د کتاب الله دے او بیان کونکے دے د مجمل د قرآن کریم دپاره۔ نو دا هم ثابته شوه چه بنده له دا جائز نهٔ دی چه حدیث د قرآن په خلاف کښ پیش کړی، یا قرآن د صحیح احادیثو نه مخالف وګڼړی۔
او څوك چه دا وائی چه قرآن کافی دے او احادیثو ته ضرورت نشته، ډا هم د قرآن ددے آیت خلاف خبره ده۔ آو، قرآن کافی کتاب دے خو په شرح د رسول الله ﷺ سره، یو اُمی سړے دے قرآن راواخلی په هیڅ به پو هه نشی بلکه کله ئے چه ورته عالِم بیان کړی نو بیا به پرے پو هه شی۔ نو ټول امت د رسول الله ﷺ شرح ته محتاج دے۔ نو کتاب او سنت د اسلام دوه پائے دی۔
ځینی اهل علم وائی چه (لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ) کښ د رسول الله ﷺ ذمه واری ذکر ده او په (وَلَعَلَّهُمْ

يَتَفَكَّرُوْنَ) کښې د امت ذمه واري ده چه د قرآن په آيتونو کښې به فکر او سوچ کولو سره د هدايت په لاره روانيږي او د دواړو کورونو کاميابي به حاصلوي.

وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ : دے نه دا معلوميږي چه د احاديثو نه علاوه په قرآن کريم کښې خپل فکر کول هم شته چه الله تعالىٰ ورته پدے آيت کښې دعوت ورکړيدے. بيا به د څه خبرے فکر کوي؟ نو ډير آيتونه دي چه رسول الله ﷺ د هغے بيان نۀ دے کړے ځکه چه هغه انسان په خپل عقل سره هم پيژندلے شي لکه پدے سورت کښې د ذکر شوو عقلي دليلونو تشريح خو رسول الله ﷺ نۀ ده کړے، ليکن عقلمند خلك ددے د ترجمے نه ددے مطلب حاصلولے شي. او دا تدبر په ډيرو طريقو سره کيږي چه د هغے تفصيل مونږ په تفسير د سورة النساء آيت (۸۲) کښې ذکر کړيدے هغے ته به دوباره رجوع بنۀ وي.

| |
|---|
| أَفَأَمِنَ الَّذِيْنَ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ يَّخْسِفَ اللّٰهُ |
| آيا نو په امن دي هغه کسان چه مکرونه کوي د بدو کارونو چه خښ به کړي الله تعالىٰ |
| بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٤٥﴾ |
| دوي لره په زمکه کښې يا به راشي دوي ته عذاب د داسے ځائے نه چه دوي به نۀ پوهيږي. |
| أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِيْ تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُمْ |
| يا به اُونيسي دوي لره په اوړيدو راوړيدو کښې (بستره، يا سفر) نو نۀ دي دوي |
| بِمُعْجِزِيْنَ ﴿٤٦﴾ أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلٰى تَخَوُّفٍ |
| عاجز کونکي (الله لره). يا به اُونيسي دوي لره په ويره سره |
| فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَؤُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿٤٧﴾ |
| يقيناً رب ستا ضرور شفقت کونکے رحم کونکے دے. |

**تفسير** : پدے درے آيتونو کښې سخت تخويف دے هغه کسانو ته چه شرك کوي او د نبي کريم ﷺ د نبوت نه او د قيامت د ورځے د جزا او سزا نه انکار کوي (کوم چه په مخکښې آيتونو کښې ذکر شول) او ايمان نۀ راوړي او بيا پکښې ټول مجرمان داخليږي.

مناسبت دا دے چه الله تعالىٰ رسول الله ﷺ ددے دپاره راوليږلو چه د هغه طاعت وکړے شي، اُوس يو تن رالګيږي د هغه مخالفت کوي او سيئات (ګناهونه) کوي نو د هغوي

دپاره سزا بیانیږي۔
او پدې کښې اوّلاً د مکې مشرکان یرولې شي دې دپاره چه د شرك نه توبه کړي، او د نبي کریم ﷺ په نبوت، په ورځ د قیامت او په جزا او سزا باندې ایمان راوړي۔
مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ: د مکر لفظ ئې استعمال کړو ځکه چه دا د کافرو طریقه وه چه د اسلام د ختمولو دپاره ئې پټ پټ تدبیرونه جوړول۔
۱- معنیٰ دا ده [عَمِلُوا اَوْ فَعَلُوا السَّيِّئَاتِ] چه کوي بدو عملونو لره۔ ۲- او زمخشري معنیٰ کوي: [مَكَرُوا الْمَكَرَاتِ السَّيِّئَاتِ) چه مکرونه کوي مکرونه بد بد۔
۳- یا معنیٰ دا ده: [اَفَاَمِنَ الْمَاكِرُوْنَ لِلْعُقُوْبَاتِ السَّيِّئَاتِ] آیا په امن کښې دي د بدو سزاګانو نه هغه کسان چه مکرونه جوړوي۔
٤- [اَوْ مَكَرُوْا بِالسَّيِّئَاتِ] یا مکرونه جوړوي د ناکاره کارونو۔ (فتح البیان)
د «سیئات» نه مراد هغه ټول ګناهونه دي چه د هغې به مکې والو ارتکاب کولو۔ پدې کښې د ټولو نه اول د نبي کریم ﷺ د قتل سازش، کمزورو مسلمانانو لره د ایمان نه اړولو دپاره روح اخستونکې سزاګانې ورکول، او د اسلام د بیخ ګندی دپاره سازشونه کول وو، د رسول الله ﷺ غیبتونه او سپکاوې کول، خلك كفر او شرك ته دعوت کول۔
حاصل مطلب د آیت دا دې: الله تعالیٰ فرمائي چه دا د مکې مشرکان چه شرك کوي او د نبي کریم ﷺ د نبوت او د قیامت د ورځې نه انکار کوي او د اسلام او د رسول الله ﷺ په خلاف غلط سازشونه کوي، آیا دوی ددې خبرې نه نۀ یریږي چه الله تعالیٰ به دوی په زمکه داخل کړي، یا به ناڅاپي دوی په عذاب کښې اخته کړي، یا به کوم طوفان راشي، یا کومه وباء او قحط سالي چه دوی به محتاج او فقیران کړي، یا چه کله د تجارت دپاره د یو ښار نه بل ښار ته ځي نو ناڅاپه به الله تعالیٰ دوی هلاك کړي؟ او د داسې کولو نه به دوی الله تعالیٰ نشي بندولې، یا به دوی یو بل نه روستو هلاك کړي تردې پورې چه د دوی یو فرد به هم باقي پاتې نۀ شي، لیکن الله تعالیٰ په خپلو بندګانو ډیر شفقت او رحم کونکې دې، پدې وجه هغه د مکې والو سره داسې سلوك ونکړو بلکه دوی ته ئې د توبې ویستلو او د حق طرف ته د رجوع کولو مهلت ورکړو۔
فِيْ تَقَلُّبِهِمْ: ۱- فِيْ حَالِ تَقَلُّبِهِمْ فِي اللَّيْلِ عَلٰى فُرُشِهِمْ ۔ یعني په حال د اوړیدو راوړیدو د دوی کښې د شپې په بسترو باندې۔ ۲- (فِيْ اَسْفَارِهِمْ وَمَتَاجِرِهِمْ) یعني په سفرونو کښې او په ځایونو د تجارتونو کښې۔ (فتح البیان)

۳- [فِیْ حَالِ تَقَلُّبِهِمْ فِیْ قَضَاءِ اَوْطَارِهِمْ بِوُجُوْهِ الْحِیَلِ فَیَحُوْلُ اللّٰهُ بَیْنَهُمْ وَبَیْنَ مَقَاصِدِهِمْ وَحِیَلِهِمْ] یعنی په حالت د ګرځیدو د دوی کښ په حاجتونو خپلو پسے په قسماقسم حیلو سره نو الله تعالیٰ به د دوی او د دوی د مقاصدو او حیلو ترمینځ حائل واقع شی۔

عَلٰی تَخَوُّفٍ: ۱- په یرے سره۔ یعنی همیشه به د مصیبتونو نه په یره کښ وی۔

۲- تخوف کله په معنیٰ د تَنَقُّصْ (کموالی) سره راځی یعنی په مالونو او نفسونو او میوه جاتو کښ به ئے نقصان پیدا کړی او نفری به ورله کمه کړی، وخت په وخت به ئے د یو طرف او بل طرف نه وژنی تردے چه ټول به ختم شی۔ او عرب تخوف لفظ د تنقص دپاره استعمالوی، لکه هُوَ یَتَخَوَّفُ الْمَالَ اَیْ یَتَنَقَّصُهٗ وَیَاْخُذُ مِنْ اَطْرَافِهٖ۔ فلانے مال کموی او د هغے اطراف نیسی۔ تَخَوَّفَتِ السُّفُنُ) یعنی کشتئ کمے شوے۔

عمر فاروق ﷺ یوه ورځ یو باندِچی ته وویل چه تاسو تخوف لفظ په معنیٰ د تنقص استعمالوئ آیا دا چرته په اشعارو د عربو کښ شته؟ نو هغه ورته شعر وویلو:

| تَخَوَّفَ الرَّحْلُ مِنْهَا تَامِكًا قَرِدًا | ❁ | كَمَا تَخَوَّفَ عُوْدَ النَّبْعَةِ السُّفُنُ |
|---|---|---|

(یعنی د اُوښے پالان د اُوښے اُوچت قوب کم کړو۔ لکه چه سُوان د نبعه وَنے لرګے کموی)۔

نو عمر فاروق ﷺ وفرمایل: [عَلَیْکُمْ بِدِیْوَانِکُمْ لَاتَضِلُّوْا] تاسو خپل دیوان (یعنی د جاهلیت د زمانے شعرونه) راونیسئ چه ګمراه نه شئ ځکه چه پدے کښ ستاسو د کتاب تفسیر دے او ستاسو د کلام معانی دیٔ۔ (فتح البیان)

| اَوَلَمْ یَرَوْا اِلٰی مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَیْءٍ یَّتَفَیَّؤُا |
|---|
| آیا نهٔ ګوری دوی هغه څه ته چه پیدا کړیدی الله تعالیٰ د هریو څیز نه اوړی راوړی |
| ظِلٰلُهٗ عَنِ الْیَمِیْنِ وَالشَّمَآئِلِ سُجَّدًا لِّلّٰهِ وَهُمْ |
| سوری د هغے د ښی طرف نه او د ګس طرفونو نه سجده کونکی الله تعالیٰ ته او دوی |
| دٰخِرُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَلِلّٰهِ یَسْجُدُ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی |
| عاجز وی۔ او خاص الله لره سجده کوی هغه څه چه په آسمانونو کښ دی او هغه چه په |
| الْاَرْضِ مِنْ دَآبَّةٍ وَّالْمَلٰٓئِکَةُ وَهُمْ لَا یَسْتَکْبِرُوْنَ ﴿۴۹﴾ یَخَافُوْنَ |
| زمکه کښ دی د ژوندو سر نه او ملائك هم او دوی لوئی نهٔ کوی۔ یریږی دوی |

رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ﴿٥٠﴾ (س)

د رب خپل نه چه پورته دے د دوی نه او کوئی دوی هغه چه دوی ته ئے حکم کیدے شی۔

**تفسير** : اُوس بیرته د اول د سورت په شان د الله د معرفت دلیلونه بیانیږی، دلیل وحی او دلیل نقلی بیانوی او بیا روستو په شرك باندے رد کوی۔

ربط

۱- مخکښ د مکے مشرکانو ته دهمکی ورکړے شویده نو دلته د هغے د زیات تاکید دپاره الله تعالیٰ خپل عظمت او جلال او کبریاء بیان کړیده چه دا خبره تاسو ته هغه الله کوی چه د هغه په دربار کښ پیریان، انسانان، حیوانات او جمادات او ملائك ټول په سجده پریوزی تردے چه د هر شی سورے هم صبا او بیګا په انتهائی عاجزئ او خشوع سره هغهٔ ته سجده کوی او د هغهٔ د خوښے نه نهٔ اوړی. ۲- وګورئ الله تعالیٰ څومره ډیر مخلوقات پیدا کړیدی نو الله تعالیٰ ستاسو په راتیولو هم قادر دے۔

اَوَ لَمْ يَرَوْا : یعنی دے کښ دوی فکر نهٔ کوی چه بیا هم د الله سره برخه داران جوړوی۔

يَتَفَيَّأُ : (اَیْ تَمِيْلُ وَتَدُوْرُ وَتَنْتَقِلُ مِنْ جَانِبٍ اِلٰى جَانِبٍ) یعنی مائله کیږی او ګرځی او د یو ځای نه بل ځای ته نقل کیږی۔ سهار کښ سوری په یو حال وی بیا راغونډ شی او په آخر د ورځ کښ په بل حالت وی۔

وَالشَّمَآئِلِ : شمائل ئے جمع او یمین ئے مفرد راوړو؟

۱- پدے کښ یوه نکته دا ده چه عرب کله دوه څیزونه ذکر کوی نو یو لفظ پکښ مفرد راوړی د اختصار دپاره لکه ﴿وَيُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ﴾ (القمر : ٤٥) (زمخشری)

۲- دویم دا چه د سوری شروع کیدل د یو ځای نه وی چه هغے ته نقطة الشمس وائی او هغه یوه ده او بیا شمال طرفته لړ لړ ګرځی په مختلفو حالاتو کښ۔ یعنی کله چه په زمکه واقع شی نو خواره شی نو ډیر شی۔

**فائده** : کله چه نمر د مشرق نه راخیژی او ته قبلے ته متوجه ئے نو ستا سورے به ښی طرفته وی او کله چه نمر مینځ د آسمان ته راشی نو ستا سورے به شا ته وی او کله چه نمر پریوتو طرفته مائل شی نو ستا سورے به ګس طرفته وی۔ (فتح البیان)

سُجَّدًا : یعنی دغه څیزونه او دغه سوری الله تعالیٰ ته سجده کونکی دی۔

زجاج وائی : یعنی دا څیزونه په طاعت باندے پیدا کړے شوی۔ (د الله د حکم نه هیڅ کله نافرمانی نهٔ کوی)

❁ ظاهر دا ده چه د هر شی خپله سجده ده نو سوری هم سجده کوی۔

دَاخِرُوْنَ: ټول مخلوقات خپل الله تعالیٰ پیژنی صرف یو انسان او پیرے دے چه د خپل رب نه نافرمانه دے۔ نو پدے کښ رد د شرك هم دے چه هر شے الله ته سجدے لګوی ترڅو چه ستاسو معبودان هم الله تعالیٰ ته سجدے لګوی نو بیا تاسو څنګه دغه عاجز مخلوق د الله سره شریك کوئ۔

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ: یعنی په آسمانونو کښ وسیدونکی ملائك او په زمکه کښ ګرځیدونکی چارپیان ټول د الله مخے ته د تابعدارئ سر خکته کوی، ټول د هغه د خوښے او ارادے پابند دی۔ په ژوند او مرګ او صحت او بیمارئ هر شی کښ د هغه د فیصلے پابند دی۔ خاصکر ملائك د هغهٔ د عبادت او د هغهٔ مخکښ د سجدے کولو نه هیڅ کله هم انکار نهٔ کوی، او د خپل رب نه په یره وسیږی چه د پوره عظمت او کبریاء والا دے، او تمام مخلوق د هغهٔ نه لاندے دے۔ او د الله د طرف نه چه کوم احکام او اوامر د دوی دپاره صادریږی هغه د بندګئ په پوره جذبه سره عملی کوی۔

يَسْجُدُ : ملائك او انسانان خو حقيقةً سجده کوی او باقی حیوانات الله تعالیٰ ته عاجزی کوی او د هغهٔ حکم ته غاړه ایخودونکی دی۔

وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ : پدے کښ په مشرکانو رد دے چه ملائك سره د لوی والی د جسم او مرتبے نه د الله تعالیٰ د حکم نه تکبر نهٔ کوی او الله تعالیٰ نه یره کوی او هغهٔ ته عاجزی کوی او تاسو استکبار کوئ۔ (قُلُوْبُهُمْ مُنْكِرَةٌ وَّهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ)

نو پدے کښ دعوت دے تَشَبُّه بِالْمَلَائكة ته هم چه اے مؤمنانو ! تاسو د ملائکو سره ځانونه مشابه کړئ پدے اعمالو او صفاتو کښ۔

مِّنْ فَوْقِهِمْ : ددے نه سلفو علماؤ د الله تعالیٰ دپاره د فوقیت او علو (پورته والی) صفت ثابت کړیدے چه ددے کیفیت معلوم نهٔ دے او د بندګانو د صفت (فوقیت او علو) مشابه نهٔ دے۔ (مِنْ) چه کله په (فَوْق) لفظ داخل شی نو دا د فوقیت ذاتی دپاره استعمالیږی۔ او چه (مِنْ) پرے داخل نهٔ وی نو کله د فوقیت ذاتی او کله د فوقیت رتبی او کله فوقیت قهری دپاره هم استعمالیږی۔ دلته اشاعره او ماتریدیه باطل تاویلات کوی چه کله وائی دلته مضاف پټ دے، او کله وائی چه الله پورته دے په اعتبار د مرتبے او قهر سره، او ذاتی پورته

والے ئے نهٔ منی۔ دا باطله عقیده ده۔
دلته سجده کول ضروری دی لکه په حدیث کښې راغلي ده۔ او دا رنګه د مستکبرینو د صفت نه ځان ساتل لازم دی نو چه د هغوی سره تشبه رانشی، سجده پکار ده۔

| |
|---|
| وَقَالَ اللّٰهُ لَا تَتَّخِذُوْا اِلٰـهَیْنِ اثْنَیْنِ اِنَّمَا هُوَ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ |
| او فرمایلی دی الله تعالیٰ مهٔ نیسئ حقدار د بندګئ دوه یقیناً هغه حقدار د بندګئ یو دے |
| فَاِیَّایَ فَارْهَبُوْنِ ﴿۵۱﴾ وَلَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ |
| نو خاص ما نه یره اُوکړئ۔ او د الله په اختیار کښې دی هغه څه چه په آسمانونو |
| وَالْاَرْضِ وَلَهُ الدِّیْنُ وَاصِبًا اَفَغَیْرَ اللّٰهِ تَتَّقُوْنَ ﴿۵۲﴾ |
| او زمکه کښې دی او خاص هغه لره بندګی ده لازمه آیا نو سوئ د الله تعالیٰ نه یریږئ تاسو۔ |
| وَمَا بِکُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ثُمَّ اِذَا مَسَّکُمُ |
| او هغه چه په تاسو باندے څه نعمت دے نو د طرف د الله نه دے بیا کله چه اُورسی تاسو ته |
| الضُّرُّ فَاِلَیْهِ تَجْئَرُوْنَ ﴿۵۳﴾ ثُمَّ اِذَا کَشَفَ الضُّرَّ عَنْکُمْ اِذَا فَرِیْقٌ |
| تکلیف نو خاص هغهٔ ته چغے وهئ۔ بیا کله چه لرے کړی تکلیف ستاسو نه ناڅاپه یوه ډله |
| مِّنْکُمْ بِرَبِّهِمْ یُشْرِکُوْنَ ﴿۵۴﴾ لِیَکْفُرُوْا |
| ستاسو نه د خپل رب سره برخه داران جوړوی۔ (انجام دا دے) چه ناشکری وکړی دوی |
| بِمَا اٰتَیْنٰهُمْ فَتَمَتَّعُوْا فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۵۵﴾ |
| د هغے څه چه ورکړیدی مونږ دوی ته نو مزے واخلئ نو زر دے چه پو هه به شئ تاسو۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې وحیی دلیل دے په رد د شرك باندے۔
یعنی کله چه د آسمان او زمکے تمام مخلوقات الله ته سرخکته کوی او پدے خبره اقرار کوی چه صرف هغه ذات لائق د عبادت دے، د هغهٔ نه سوئ هیڅوك حقدار د بندګئ نشته دے، نو په پیریانو او انسانانو هم لازم دی چه دوی هم په عملی توګه ددے ثبوت ورکړی، او د یو الله نه سوئ د دوه یا زیاتو معبودانو نه انکار اُوکړی۔ پدے وجه الله تعالیٰ دوی ته پدے آیت کښې حکم کړیدے چه دوی د خپل ځان دپاره دوه دروغجن معبودان جوړ

نۀ کړي، ځکه حقیقي معبود صرف یو دے، هغه د عبادت لائق دے. او صرف د هغۀ نه یریدل پکار دي. د هغۀ نه سوئ د هیڅ نه یره نۀ ده پکار. ځکه چه هرڅه د هغۀ په اختیار کښې دي. د بل چا په اختیار کښې هیڅ هم نشته دے، هغه مړ کولے، ژوندے کولے او نفع او نقصان رسولے دے. د هغه نه سوئ ټول بالکل عاجز دي، او هیڅ قدرت نۀ لري.

اثْنَيْنِ : دائے یا د تاکید دپاره ذکر کړو چه پدے کښې زیات نفرت ورکول دي د شریکانو جوړولو نه. یا ئے اثنین ورسره ددے دپاره ذکر کړو چه دا معلومه شي چه نهي راجع ده تعدد د آلهو ته نۀ جنسیت ته. یعني اصلي الوهیت خو شته او هغه الله لره ثابت دے. او (اله واحد) کښې ئے واحد زیات کړو دپاره د دفع د ګمان چه دلته به مقصد الوهیت ثابتول وي نۀ یو والے، (ځکه چه اله کښې کله د جنس معنی وي نۀ د وحدت) سره ددے نه چه د الله دپاره الوهیت خو مشرکانو هم منلو خو خلاف د مشرکانو په یو والي کښې وو.

فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ: هرکله چه مشرکان په اکثرو اوقاتو کښې د یرے په وخت کښې خپلو باطلو معبودانو ته سجدے کوي نو ددے وجه نه ئے وفرمایل : چه خاص زما نه ویریږئ. یعني إِيَّايَ ئے مقدم کړو دپاره د تخصیص، پدے کښې رد دے په هغه خلکو چه هغوی د شر په وخت کښې د بل چا نه مدد غواړي. نو دلته مقصد دا شو چه پوره یره به د الله نه کولے شي او د شرونو په دفع کولو کښې به د بل چا په قدرت اعتماد نۀ کوئ. (ابن عاشور)

رهبة : خَوْفٌ مَعَ حُزْنٍ وَاضْطِرَابٍ. دا هغه یره ده چه د غم او پریشانۍ سره وي.

او دارنګه رهبة خَوْفٌ مَعَ هَرَبٍ. هغه یره چه د تیښتے سره وي یعني چه بنده د الله تعالیٰ د یرے نه د ګناه د ځای نه تیښته کوي لکه څنګه چه راهب په یو ګوټ کښې ناست وي چه ګناه کښې واقع نشي.

وَلَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ : دا د مخکښې مضمون تاکید دے چه الله تعالیٰ د آسمان او زمکے د هر شي مالك دے، او په هر حال کښې او هر وخت کښې د هغۀ اطاعت او بندګي واجب ده، نو د هغۀ نه سوئ د بل چا نه یریدل د هغۀ په وحدانیت، خالقیت او رازقیت باندے د ایمان راوړو منافي دي. نو دا دلیل د مخکښې (فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ) دپاره شو.

وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا : یعني د الله دپاره طاعة دے همیشه. دا د الله کمال دے چه د هغه طاعت همیشه کیږي ځکه چه الله تعالیٰ همیشه ذات دے په خلاف د نورو معبودانو چه د هغوی طاعت همیشه نۀ وي ځکه چه هغوی همیشه نۀ وي، مرګ پرے راځي.

(ابن قتیبة)

الدِّيْنُ : نه مراد طاعت (عبادت) او اخلاص دے۔
وَاصِبًا : اَیْ ثَابِتًا، وَاجِبًا، دَائِمًا لَایَزُوْلُ) یعنی ثابت، لازم، همیشه چه نهٔ زائل کیږی۔
اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَتَّقُوْنَ : یعنی هرکله چه طاعت او عبادت خاص د الله دپاره کیږی نو یره هم خاص د هغه نه پکار ده، او مینه هم د هغه سره پکار ده۔ (تقوی) دلته په لغوی معنیٰ سره ده۔ یعنی یره۔
وَمَا بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ : یعنی تاسو د الله نه سویٰ د بل چا نه یره مهٔ کوئ او بندگی د هغهٔ وکرئ ځکه چه تاسو سره چه کوم نعمتونه دی هغه ټول په ټوله الله درکړیدی او کله چه تاسو ته څه تکلیف اُورسی نو د هغهٔ په دربار کښې عاجزی او ژړا کوئ، ځکه چه تاسو پوهیږئ چه د هغهٔ نه سویٰ هیڅوك دا نشی لرے کولے۔ او ستاسو په حال باندے رحم کولو سره چه کله هغه دا تکلیف لرے کوی، نو تاسو نه څه خلق د هغه سره شریکان جوړوی، او وائی چه دا زمونږ د معبودانو کرامت دے، د دوی په وجه زمونږ دا تکلیف لرے شویدے۔ او پدے طریقه دوی د الله د نعمتونو نه انکار وکړی، او په کفر او عناد کښې اخته شی۔ داسے خلقو ته الله تعالیٰ دهمکی ورکړے او وئیلی ئے دی چه څه ورځو دپاره مزے واخلئ، نزدے د قیامت په ورځ به تاسو ته خپل انجام او خپل ځای معلوم شی۔ ځکه چه نعمتونه هغهٔ درکړیدی او مصیبتونه هغه لری کوی او بندگی د بل چا کوئ دا څومره لوی ظلم دے۔
ثُمَّ إِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ : یعنی تاسو ته چه کله مصیبت ورسیږی ستاسو د گناهونو په وجه۔
تَجْئَرُوْنَ : دا جُؤَارُ الْكَلْبِ نه دے، د یخنئ د وجه نه د سپی کرونجیدو ته وائی۔ او انسان چه کله په عاجزئ سره د چا د رابللو دپاره آواز پورته کړی، دے ته جؤار وائی۔ دلته ئے معنیٰ ده : (تَتَضَرَّعُوْنَ وَتَسْتَغِيْثُوْنَ وَتَصِيْحُوْنَ) تاسو هغه ته عاجزی کوئ او د هغه نه فریاد طلب کوئ او هغه ته چغے وهئ۔
بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ : یعنی د الله سره بت او بابا او قبر والا شریك کړی، مشرکان وائی چه په ما باندے د فلانی بابا نظر وو او د هغه برکت وو ځکه چه ما د هغه دپاره نذر منلے وو۔ او فلانے بابا سمدستی د تکلیف په وخت رارسیږی۔ نو نعمت پرے الله کوی او دوی ئے نسبت غیر الله ته کوی۔ عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : پدے کښې دا هم داخل دی چه یو تن په

کشتئ کښې سوروي او تکلیف راشي او بیا ختم شي نو وائي چه [كَانَ الْمَلَّاحُ حَاذِقًا] کشتیبان ډیر هوښیار وو هغه ئې راخلاص کړو. یا ووائي:
[لَوْلَا الْبَطَّةُ فِي الدَّارِ لَآتَانَا اللُّصُوْصُ] (که په کور کښې بطه نهٔ وے نو غلهٔ به راغلي وے).
ځکه چه دے کښې هم ذهن د الله نه بل طرفته متوجه کیږي. کله ډرائیور ځان د الله سره شریکوي چه که زۀ نهٔ وے نو ټول خلك به هلاك شوي وے، ما رابچ کړل. او خلك هم دغه شان خبره کوي. البته که دیو مؤمن عقیده برابره وي او الله ته ئې توجه وي او یو شي ته نسبت وکړي نو هغه به ګناهګار نهٔ وي لکه حدیث کښې هم هغه نسبت شویدے،
(إِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ مَا يَقْتُلُ حَبَطًا) (یعنی سپرلے بعض هغه ګیاه راززغونوي چه هغه حیوان وژني) (بخاري: ٢٨٤٢) البته عقیدهٔ به دا نسبت صحیح نهٔ وي، او چه کله ئې د الله نه ذهن اوړي او په مخلوق باندے جوړیږي نو بیا به صحیح نهٔ وي.
لِيَكْفُرُوا : ١- لام د عاقبت دے یعنی ددے نعمت عاقبت دا شو چه دوي کفر وکړو یعنی ددے نعمت انجام خو دا کیدل پکار وو چه خلکو د الله احسان منلے وے او د هغهٔ بندګي ئې شروع کړے وے نو دوي د نعمت انجام دا جوړ کړو چه ناشکري ئې شروع کړه، بل ته ئې نسبت وکړو. ٢- یا لام په معنیٰ د (ګیٔ) سره. یعنی دا شرك دوي ددے دپاره کوي چه ناشکري د دغه نعمت وکړي. یعنی شرك د ناشکرئ دپاره کوي. یعنی ددے خلکو غرض زما ناشکري کول دي. اول قول غوره معلومیږي.
دا د مشرکانو اُومه غلطه خبره او عقیده وه چه نعمت الله تعالیٰ ورکړے وي او نسبت ئې بل ته کوي.

| وَيَجْعَلُوْنَ لِمَا لَا يَعْلَمُوْنَ نَصِيْبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ |
|---|
| او مقرروي دوي هغه چا لره چه نهٔ پوهیږي برخه د هغه مال نه چه ورکړیدے مونږ دوي ته، |
| تَاللّٰهِ لَتُسْأَلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَفْتَرُوْنَ ﴿٥٦﴾ |
| قسم په الله خامخا تپوس به اُوکړے شي ستاسو نه د هغې چه تاسو دروغ جوړوئ. |
| وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ الْبَنَاتِ سُبْحَانَهٗ وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٥٧﴾ |
| او مقرروي دوي الله لره لونړه، پاك دے هغه او دوي لره به هغه څه وي چه دوي ئې غواړي. |

| وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُمْ بِالْأُنْثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ |
|---|
| او کله چه زیرے ورکړے شي یو تن د دوی ته په لور سره اُوګرځی مخ ددهٔ تور او هغه |
| كَظِيمٌ ﴿٥٨﴾ يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِنْ سُوءِ مَا بُشِّرَ |
| د غم نه ډک وی۔ خان پټوی د خلقو نه د وجے د بد هغے نه چه زیرے ورکړے شویدے دهٔ ته |
| بِهِ أَيُمْسِكُهُ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُ |
| په هغے سره (سوچ کوی چه) آیا اُوساتی هغه (لور) په ذلت سره یا خخه ئے کړی |
| فِي التُّرَابِ أَلَا سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٥٩﴾ |
| په خاورو کښې، خبردار بده ده هغه فیصله چه دوی ئے کوی۔ |

**تفسیر** : او دا د مشرکانو اتمه عقیده ده۔ او پدے کښې رد د شرك في التحليل والتحريم دے۔ یعنی د مکے د مشرکانو یو بل عیب او د هغوی باطل پرستی دا هم ده چه د کومو جماداتو او شیطانانو په باره کښې چه دوی د هیڅ نه خبر نهٔ دی هغه ئے خپل معبودان جوړ کړیدی، او د هغوی د تقرب حاصلولو دپاره د الله د ورکړی رزق یوه حصه خرچ کوی، په هغوی باندے شالونه او کپړے خوروی، د هغوی په نوم نذرونه منی، او حیوانات د هغوی په نوم ذبح کوی۔ الله تعالیٰ په سورة الانعام آیت (۱۳۶) کښې فرمایلی دی :
﴿ وَجَعَلُوا لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْأَنْعَامِ نَصِيبًا ﴾ الآية چه الله چه کوم فصلونه او حیوانات پیدا کړیدی د هغے یوه حصه دوی د الله دپاره مقرر کړے، او په خپل ګمان وائی چه دا خو د الله ده او دا زمونږ د معبودانو ده)۔
الله تعالیٰ په خپل ذات باندے قسم کولو سره دوی ته وونیل چه د قیامت په ورځ به د دوی نه ددے افتراء اتو او دروغ جوړولو په باره کښې تپوس کیږی۔
**لَا يَعْلَمُونَ** : دا ضمیر یا (مَا) لفظ ته راجع دے یعنی دا بتانِ او قبرونو والا چه د هیڅ نه خبر نهٔ دی، د مشرکانو د نذرونو علم نهٔ لری۔
(۲) یا ضمیر مشرکانو ته راجع دے یعنی دوی د خپلو معبودانو د حال نه خبر نهٔ دی چه هغوی خو عاجز دی، نهٔ څه آوری او نهٔ څه وینی او نهٔ چا سره مدد کولے شی۔
**نَصِيبًا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ** : ددے تشریح په سورة الانعام آیت (۱۳۶) کښې ذکر شویده۔

رَزَقْنَاهُمْ : ددے نه مراد د خوراك او څكاك څيزونه، څاروی، غلے او کپړے وغیره د غیر الله په نوم نذر کول دی۔

تَفْتَرُونَ : یعنی تاسو چه په الله باندے کوم دروغ جوړول په دنیا کښ۔

وَيَجْعَلُونَ : نهمه عقیده د مشرکانو رد کیږی۔ د دوی د شرکی جرمونو نه یو جرم دا دے چه دوی ملائکو ته د الله لونړه وائی حال دا چه د هغهٔ نه نهٔ څوك پیدا شویدی او نهٔ هغه د چا نه پیدا شویدے، هغه خو د تمامو عیبونو او نقائصو نه بیخی پاك دے؛

او د دوی د رذالت او خسیس والی انتهاء دا ده چه په سورة النجم آیتونو (۲۱/۲۲) کښ الله فرمایلی دی: ﴿ أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَىٰ، تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ ۝ ﴾

(آیا ستاسو دپاره هلکان او د الله دپاره جینکۍ دی، دا خو ډیر دے انصافۍ تقسیم دے)۔

او په سورة الصافات آیت (۱۵۳/۱۵۴) کښ فرمایلی دی:

﴿ أَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِينَ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ۝ ﴾ (آیا الله تعالیٰ خپل ځان دپاره جینکۍ په هلکانو غوره کړیدی، تاسو له څه شویدی، څنګه فیصلے کوئ ؟!)۔

الْبَنَاتِ : مشرکانو به ورسره دا عقیده هم جوړه کړے وه چه مونږ د ملائکو ځکه تعظیم او عبادت کوو چه پلار د لور په تعظیم او اکرام باندے خوشحالیږی، او دارنګه دا به ئے هم وئیل چه د دوی میندے سَرَوَاتُ الجن دی یعنی د پیریانو سردارانے۔ لکه سورة الصافات کښ د هغے تفصیل راځی۔

وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ: پدے کښ او روستو آیت کښ د دوی نهم مرض ذکر کیږی چه دوی د ځانونو دپاره زامن وائی او لونړه بدے ګنړی نو دلته دوه مرضه شو خپل ځان له لونړه بدے ګنړی، او دویم : د الله دپاره لونړه ګنړی، نو دوی د خپلو ځانونو جانب غوره کړو په جانب د الله باندے، ځانونه ئے په الله غوره کړل۔ چه ځان له اعلیٰ شے خوښوی او الله دپاره ادنیٰ۔

او پدے جمله کښ طریقه د جواب تسلیمی اختیار شویده یعنی اول خو هیڅ اولاد نشته او که بالفرض تاسو ورله اولاد ثابتوئ بیا د لونړو په ځای ورله زامن ولے نهٔ وایئ نو د ادنیٰ شی نسبت ورته څنګه کوئ دا خو ډیر قبیح کار دے۔

وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُمْ : د عربو مشرکانو ددے خبرے زیات قباحت او شناعت ښکاره کولو دپاره الله تعالیٰ فرمائی چه خپله د دوی حال دا دے چه که د دوی نه د چا جینئ پیدا شی نو د شرم او خجالت په وجه د هغهٔ مخ توریږی او د غم او د ستومانۍ نه د هغهٔ حالت بدلیږی چه اُوس به دا خلقو سره څنګه ملاویږی، د دوه حالتونو ترمینځ حیران او پریشان وی چه دا

د خپل ځان سره وساتي او ذلت او رسوائي برداشت کړي او که ژوندۍ ئې په خاورو کښې خخه کړي.

بِالْأُنْثَىٰ: د عربو د جاهلانو طریقه دا وه چه د جینۍ په پیدائش به خفه کیدل او ددے دوه وجې وے، یو دا چه دے ته به رزق څوك ورکوي، بل به ورته شرم ښکاره کیدو، او دا خبره د دوی د عقل او نقل دواړو نه خلاف وه ځکه چه لونړه خو الله تعالیٰ ورکوي نو د انسان پکښې څه واك دے، او بل دا چه ته هم د جینۍ نه پیدا شوے ئې، که جینۍ نۀ وی نو بیا د انسانانو پیدائش څنګه کیږي او تاسو چه د خپلو ښخونه فائدے اخلئ دے ته نۀ ګورئ. او دا مرض لکه څنګه چه پخوا وو اوس هم په ډیرو خلکو کښې موجود دے چه ځان ته به ډیر نیکان هم وائي. خپلو ښخو ته بد بخته وائي چه ډیرے لونړه راوړي. بعض خلك د لور په پیدائش وهل ټکول کوي، او کله ښځه طلاقوي، او کله دغه لور له ((بله نشته)) نوم اږدي او د جینکو په نومونو کښې (بسمینه، بسۍ، بله نشته، واحده وغیره) کیخودل هم د مشرکانو ددے عقیدے نه راپیدا شویدی چه بله جینۍ پیدا نشي.

ظَلَّ : یعنی د ورځے ئے مخ داسے تور شي لکه چه شپه ده.

أَيُمْسِكُهُ: (ه) ضمیر (مَا بُشِّرَ) ته راجع دے یعنی دغه بد خبر چه لور ده ځان سره وساتي.
او ددے نه مخکښې فعل پټ دے (أَیْ یَتَفَکَّرُ) دے ځان سره فکر کوي چه څه پرے وکړي.

عَلٰى هُوْنٍ: هُوْن او هَوَان په لغت د قریشو ذلت ته وائي.
او کسائيؒ وائي چه هون بلاء (مصیبت) او مشقت ته وائي.

يَدُسُّهُ : دس یو شے په بل شي کښې پټولو ته وئیلے شي.

الله تعالیٰ فرمائي چه د دوی دا فیصله څومره خرابه ده چه کومه جینۍ د خپل ځان دپاره شرم او عار ګنړي، هغه د الله تعالیٰ دپاره ثابتوي، او خپل ځان دپاره ددے نه غوره یعنی هلك خوښوي.

| لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْآخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْأَعْلٰى |
| --- |
| دپاره د هغه کسانو چه ایمان لري په آخرت حالت ناکاره دے او الله لره صفت اوچت دے |
| وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٦٠﴾ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِمْ |
| او هغه غالبه حکمتونو والا دے. او که رانیولے الله تعالیٰ خلقو لره په ظلم د دوی |

| مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِنْ دَآبَّةٍ وَّلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ |
|---|
| (نو) نهٔ به ئې وې پریخوستې پدې زمکه کښې هیڅ حیوان لیکن روستو کوی دوی لره |
| إِلٰٓى أَجَلٍ مُّسَمًّى فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُوْنَ سَاعَةً |
| یو بې نیتې مقررې ته نو کله چه راشي نیټه د دوی نهٔ به روستو کیدې شي یو ساعت |
| وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿٦١﴾ وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ مَا يَكْرَهُوْنَ |
| او نهٔ به مخکښې کیدې شي۔ او مقرروي دوی الله لره هغه څه چه بد ګنړي ئې دوی (ځان له) |
| وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنٰى لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ |
| او بیانوي ژبې د دوی دروغ چه دوی لره ښه حالت دې خامخا دوی لره اُور دې |
| وَأَنَّهُمْ مُّفْرَطُوْنَ ﴿٦٢﴾ |
| او یقیناً دوی به په ډیکو سره اُوغور ځولې شي (اُور ته)۔ |

**تفسیر**: پدې آیت کښې دویمه موضوع د سورت ذکر ده چه هغه اثبات د آخرت دې۔
او مقصد د آیت دا دې چه په عربو مشرکانو کښې دا بد بد صفات کوم چه مخکښې ذکر شو پدې وجه راپیدا شوي وو چه دوی په آخرت ایمان نهٔ لرلو۔
مَثَلُ السَّوْءِ: مثل حالت او صفت ته وائي۔ یعنی د دغه مشرکانو دپاره چه په آخرت ایمان نهٔ لري صفت د بدئ دې چه هغه جهالت او کفر بالله دې۔ ❁ یا بد صفت د دوی دا دې چه دوی الله تعالیٰ دپاره ښځه او اولاد وائي۔ ❁ یا بد حالت د دوی دا دې چه دوی بچي ته محتاج دي چه ددوی په ځای قائم شي، ❁ دارنګه لونړه خخول د شرم نه د ځان بچ کولو دپاره او د فقر د یرې په وجه۔ ❁ یا بد حالت نه مراد عذاب او اُور دې۔ (فتح البیان)
❁ یا معنیٰ دا ده چه څوك آخرت نهٔ مني نو د هغهٔ حال بد دې۔ ځکه چه دآخرت نهٔ منل په انسان کښې ډیر بد صفات پیدا کوي لکه شرك، وَأْدُ الْبَنَات (لونړه ژوندئ خخول)، ظلم کول، بد اخلاقي، صلح رحمي قطع کول، زنا، غلا وغیره د آخرت نه د نهٔ یریدو په وجه پیدا کیږي۔ دارنګه کله چه یو پریشاني راشي نو څوك چه آخرت نهٔ مني هغه ډیر پریشانه وي او بد حالت ئې وي چه دا ولې راغله۔ او چه څوك آخرت مني نو هغه (إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ) ووائي او د آخرت د اجر طمعدار شي نو دومره پریشانه نهٔ وي۔ د آخرت په

منلو سره د انسان احوال جوړيږي. او د آخرت نهٔ منلو سره انسان په عذاب او په ضلال بعيد کښې اخته کيږي لکه الله فرمائي: ﴿بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْآخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلَالِ الْبَعِيْدِ﴾ (سبا: ٨)

وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى : او د الله دپاره خو تمام اعلیٰ ترین صفات ثابت دي، هغه د تمامو عيبونو او نقائصو نه پاك دے، هغه د ټول جهان پالونکے او د ټولو مالك دے، ټول خيرونه د هغهٔ په لاس کښې دي، او هغه په هر شي قادر دے. د هغهٔ څوك شريك نشته، نهٔ د هغه څوك مقابل شته او نهٔ د هغهٔ کوم اولاد شته. او هغه ډير زورور او لوی حکمتونو والا دے.

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ : په دے کښې تخويف دنيوی دے او دا جواب د سوال دے چه هر کله چه مشرکان دومره ظالمان دي نو الله ئې هلاکوی ولے نهٔ؟ نو جواب کوی چه الله تعالیٰ دوی ته مهلت ورکړيدے دپاره د امتحان، ځکه که هر گناهګار ته سمدست سزا ورکړے شي نو بيا نظام خرابيږي، آو، په خپل وخت به پرے راځي.

## ربط

د انسانانو د شرك او کفر او گناهونو بيانولو نه روستو، دلته الله تعالیٰ خپل انتهائي کرم، معافي او حلم او صبر بيان کړيدے، چه که الله تعالیٰ خلق د هغوی په گناهونو رانيولے نو بارانونه او بوټي به ئې بند کړي وے (سعيد بن جبيرؒ)

نو په زمکه به ئې هيڅ ذی روح باقي نهٔ پريخودلے، ليکن په دوی باندے رحم کولو سره دوی ته د مرګه پورے مهلت ورکوی، دے دپاره چه څوك بخښنه طلب کړي هغه معاف کړي او چه څوك په گناهونو باندے هميشوالے کوی د هغه په عذاب کښې زياتے وکړي. او د چا مقرر وخت چه راشي نو هغه ته به يو ساعت هم مهلت نهٔ ورکړے کيږي او نهٔ به د مقرر وخت نه هغهٔ ته مخکښې مرګ راځي.

مَا تَرَكَ عَلَيْهَا مِنْ دَآبَّةٍ : ولے به ئې حيوان نهٔ پريخودے.

١- ځکه چه الله تعالیٰ حيوانات د انسانانو دپاره پيدا کړيدي نو چه انسانان هلاك شي حيوانات به هم هلاکيږي.

٢- ابو هريره ﷺ د يو تن نه واوريدل چه وے وئيل : [اِنَّ الظَّالِمَ لَا يَضُرُّ اِلَّا نَفْسَهٗ] ظالم سړے خپل ځان ته ضرر ورکوی. نو هغه ورته وفرمايل : [بَلٰى وَاللّٰهِ اِنَّ الْحُبَارٰى لَتَمُوْتُ هُزَالًا فِيْ وَكْرِهَا مِنْ ظُلْمِ الظَّالِمِ]. (شعب الايمان للبيهقي وعبد بن حميد وابن جريرؒ)

داسې نهٔ ده، قسم په الله! زانړې (مرغۍ) په خوار والي سره په خپله ژاله کښې د ظالم د ظلم په وجه مري۔ (فتح البیان)

❁ عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: [كَادَ الْجُعَلُ اَنْ يُّهْلِكَ فِيْ جُحْرِهٖ بِخَطِيْئَةِ ابْنِ آدَمَ]

(شعب الایمان وابن ابی شیبة وابن المنذر)

نزدې ده چه ګونګټ په خپله سوړه کښې د انسان په ګناه سره هلاك شي۔

وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ مَا يَكْرَهُوْنَ: پدې کښې لسم بد صفت د مشرکانو ذکر کیږي چه دوی د الله دپاره هغه څیزونه ګنړي چه خپله ئې بد ګنړي لکه شراکت او لونړه، دوی دا نهٔ برداشت کوي چه څوك د دوی په مال او جائیداد کښې د دوی شریك شي، په تول څیزونو کښې ځان دپاره یواځې والے غواړي، او د الله سره نورو لره شریکان کوي، او د کومو جینکو نسبت چه خپل ځان طرف ته کول د ځان دپاره عیب ګنړي د هغې نسبت الله طرف ته کوي۔ او دا د مشرکانو همیشه عادت دے چه په هر څه کښې خپل ځان په الله تعالیٰ باندې وچتوي۔ که څوك ددهٔ بې ادبي کوي یا ئې نافرماني کوي په هغې خفه کیږي، او د الله بې ادبي او نافرماني کوي او هیڅ پرواه ئې نشته۔

وَتَصِفُ اَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ: یعني الله تعالیٰ باندې افتراء کوي وائي چه که بالفرض قیامت راشي نو زمونږ انجام به ښهٔ وي او الله به جنت راکوي نو د حسنیٰ نه مراد (جنت) هم دے۔ لکه چه الله تعالیٰ په سورة فصلت آیت (۵۰) کښې د قیامت د منکرینو وینا نقل کړیده: ﴿وَلَئِنْ رُّجِعْتُ اِلٰى رَبِّيْ اِنَّ لِيْ عِنْدَهٗ لَلْحُسْنٰى﴾ چه که زهٔ خپل رب طرف ته واپس کړے شم نو یقیناً ما دپاره به د هغهٔ د طرف نه ښهٔ انجام ملاویږي۔ او سورة الکهف آیت (۳۶) کښې فرمایلي دي: ﴿وَمَا اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً وَّلَئِنْ رُّدِدْتُّ اِلٰى رَبِّيْ لَاَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنْقَلَبًا﴾ یعني زهٔ ګمان نهٔ کوم چه قیامت به راشي او که زهٔ رب ته واپس شم نو ددې (دنیاوي باغ) نه به غوره انجام هلته ملاویږي)۔ یعني بد عملي کوي او الله نه د ناممکنې نتیجې تمنا کوي۔ او دارنګه دا وائي چه مونږ چه دا کوم شرك کوو مونږ ته پدې باندې ښهٔ حالت ملاویږي۔

اَنَّ لَهُمُ الْحُسْنٰى: ❁ اَيِ الْعِيْشَةَ الْحُسْنٰى اَوِ الْحَالَةَ الْحُسْنٰى - یعني زمونږ دپاره به ښهٔ ژوند او ښهٔ حالت وي۔ ❁ بله دا چه پدې سره الله تعالیٰ ته نزدې کیږو لکه دوی به ویل: ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى﴾۔ (الزمر:۳)

(مونږ د دوی بندګي نهٔ کوو مګر ددې دپاره چه مونږ الله ته په مرتبه کښې نزدې کړي)۔

❁ او حسنیٰ دا هم ده چه دوی به ویل چه دا بتان او باباګان به ز مونږ دپاره د الله په دربار کښې سفارش کوی۔ ﴿ هٰٓؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنۡدَ اللّٰهِ﴾۔ (یونس: ۱۸)
لَاجَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ: الله تعالیٰ د دوی په دے باطل ګمان او دروغجنه تمنا باندے رد کړے فرمائی چه د دوی ځای د اُوسیدو به د جهنم نه سوئ بل څه نهٔ وی، او هغے ته به دوی ډیر زر وارتولے شی۔
مُّفۡرَطُوۡنَ: ۱ – مَتۡرُوۡکُوۡنَ مَنۡسِیُّوۡنَ فِی النَّارِ ۔ (ابن الاعرابیؒ وابو عبیدة ومجاهدؒ) یعنی دوی به په اُور کښې پریخودے شی همیشه دپاره۔ لکه هیر شوے شے۔
۲ – یا د فرط نه دے مخکښې لیږلے شوی۔ مُعَجَّلُوۡنَ اِلَیۡهَا مُقَدَّمُوۡنَ فِیۡ دُخُوۡلِهَا)۔ یعنی دوی به په جلتئ سره هغے ته وروستے شی او مخکښې به پکښې داخل کړے شی۔
فارط هغه شخص ته وائی چه د ګیاه او د اُوبو د طلب کولو دپاره مخکښې ځی۔ لکه حدیث کښې دی: (اَنَا فَرَطُکُمۡ عَلَی الۡحَوۡضِ)۔ زهٔ به ستاسو نه مخکښې حوض کوثر ته تلونکے یم۔ (بخاری: ۶۵۷۵)

| |
|---|
| تَاللّٰهِ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَاۤ اِلٰۤی اُمَمٍ مِّنۡ قَبۡلِکَ فَزَیَّنَ |
| قسم په الله یقیناً لیږلی دی مونږ امتونو ته مخکښې ستا نه (رسولان) نو ښائسته کړل |
| لَهُمُ الشَّیۡطٰنُ اَعۡمَالَهُمۡ فَهُوَ وَلِیُّهُمُ الۡیَوۡمَ وَلَهُمۡ عَذَابٌ |
| دوی ته شیطان عملونه د دوی نو هغه دوست د دوی دے نن ورځ او دوی لره عذاب |
| اَلِیۡمٌ ﴿۶۳﴾ وَمَاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡکَ الۡکِتٰبَ اِلَّا |
| دردناك دے۔ او نهٔ دے رالیږلے مونږ په تا باندے دا کتاب مګر |
| لِتُبَیِّنَ لَهُمُ الَّذِی اخۡتَلَفُوۡا فِیۡهِ |
| دے دپاره چه بیان کړے تهٔ دوی ته هغه خبرے چه دوی اختلاف کړیدے په هغے کښې |
| وَهُدًی وَّرَحۡمَةً لِّقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿۶۴﴾ |
| او هدایت او رحمت دے دپاره د هغه قوم چه ایمان لری۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې رسول الله ﷺ ته تسلی ده او مشرکانو ته زجر او رټنه ده او د

دوی د گمراهئ سبب ذکر دے چه دے خلکو سره دلیل نشته خو دوی د پخوانو مشرکانو په شان دی چه د شیطان خبره منی، او هغه ورته شرك او بدعات ښائسته کړیدی چه دا کارونه کوئ او پدے کښې ثوابونه دی، او دوی ورپسے روان شویدی، او هغه ئے لیډر دے او دوی ئے تابعداری کړیده۔ نو الله تعالیٰ د تیر شوی انبیاء کرامو مثال ورکوی چه ستا نه مخکښې تیر شوی امتونو ته هم انبیاء علیهم السلام لیږلے شویدی او شیطان د هغوی کفر او شرك او گناهونه د هغوی په سترگو کښې ښائسته ښکاره کول او د هغوی د دوستئ دعوے به ئے کولے نو هغه خو به نن خپل ځان د دوی دوست ښکاره کړی او دوی به ښه گمراه کړی او مشرکان به د دوی نن بندگی وکړی، لیکن د قیامت په ورځ دردناك عذاب د دوی انتظار کوی، چه د هغے نه به دوی ځان نشی خلاصولے۔

نو د الیوم نه مراد دنیا ده۔ (۲) یا که د «الیوم» نه مراد د قیامت ورځ واخستے شی، نو د آیت مطلب به دا وی چه شیطان د دوی دوست دے نن ورځ نو چرته دے د دوی هغه دوست! نن دِ د دوی د دوستئ ثبوت ورکړی او د دوی مدد دِے وکړی؟!۔ یعنی هیڅ مدد ئے نشی کولے۔ دا نفی د نصرت د شیطان ده په کامله طریقه سره۔

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ : یعنی دا خلك ځان دیندار گنړی او حال دا چه د صحیح دین دشمنان دي۔ نو ځکه ورله عذاب الیم ذکر شو۔

عَذَابٌ أَلِيمٌ : اَیْ فِی الْآخِرَةِ۔ یعنی په آخرت کښې به د دوی دپاره دردناك عذاب وی۔

وَمَا أَنْزَلْنَا : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د قرآن د رالیږلو مقصد بیانوی چه دا خو الله تعالیٰ د شرك د رد دپاره رالیږلے دے، دا خو ددے مقصد دپاره نهٔ دے راغلے چه خلك د شیطان پسے روان شی۔

## ربط

مخکښې رسول الله ﷺ ته تسلی ورکړے شوه نو پدے آیت کښې رسول الله ﷺ ته د قرآن کریم په تبلیغ باندے تیزی ورکوی۔

مقصد د آیت دا دے : مونږ په تا باندے قرآن کریم ددے دپاره نازل کړیدے چه تهٔ د توحید او شرك او هدایت او گمراهئ او د آخرت او د احوالو د بعث په شان مسائل ښکاره بیان کړے چه په هغے کښې خلق په خپل مینځ کښې اختلاف کوی۔ او د حق نه اوړی لیکن بیا هم دا خلك راولگیدل او حق او توحید ئے پریخوستو او د شیطان پسے روان شو او هغه سره ئے دوستی جوړه کړه۔

او دا لوی کتاب د هدایت چینه او د الله تعالیٰ د رحمت چینه ده. پدې کښې صحیح عقیده، د عبادت طریقې، اسلامي آداب او اخلاق او د انساني ژوند تمام ضروري څیزونه بیان شویدي. او د هدایت او رحمت د خزانو نه هغه خلق فائده اخستې شي چه په الله تعالیٰ باندې ایمان راوړي. غیر مؤمنین به ددې نه محروم پاتې کیږي.

لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي : پدې کښې دا دعوت دې چه قرآن کریم د اختلاف د ختمولو کتاب دې او د اختلاف د راپیدا کولو کتاب نهٔ دې چه خلك ددې سره اختلاف شروع کړي او د حق نه انکار وکړي.

| |
|---|
| وَاللَّهُ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ |
| او الله تعالیٰ نازل کړیدي د آسمان نه اُوبه نو تازه کړې ئې ده په هغې سره زمکه روستو |
| مَوْتِهَا إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿٦٥﴾ وَإِنَّ لَكُمْ فِي |
| د اُوچ والي نه، یقیناً پدې کښې دلیل دې دپاره د هغه قوم چه آوري. او یقیناً تاسو لره په |
| الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً نُسْقِيكُمْ مِمَّا فِي بُطُونِهِ |
| چارپایانو کښې خامخا عبرت دې، څکوو مونږ په تاسو د هغې نه چه په خیټو ددې کښې دي |
| مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِلشَّارِبِينَ ﴿٦٦﴾ |
| د مینځ د خوشایانو او د وینې نه پئ صفا آسان تیریدونکی دپاره د څکونکو. |
| وَمِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا |
| او (پیدا کړي ئې دي) د میوو د کجورو او انګورو نه، چه جوړوئ تاسو د هغې نه سرکه |
| وَرِزْقًا حَسَنًا إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾ |
| او خوراك ښائسته، یقیناً په دې کښې لوئی دلیل دې دپاره د قوم چه عقل نه کار اخلي. |

**تفسیر**: ددې نه روستو بیا عقلي دلیلونه بیانیږي پدې کښې اشاره ده چه د شرك د رد دپاره دوه قسمه دلائل دي، نقلي دلیلونه چه هغه کتاب الله دې او بل عقلي دلیلونه دي. چه پدې کښې نعمتونه هم دي او د شرك رد هم، او د الله تعالیٰ تعارف هم دې.

وَاللَّهُ أَنْزَلَ : لکه څنګه چه الله تعالیٰ د وحی او د رسالت په ذریعه د شرك او کفر د

بیماریٔ نه مرهٔ زړونو ژوندی کولو باندے قادر دے، دغه شان هغه د خپل عظیم قدرت په ذریعه د آسمان نه باران نازلوی او مړے زمکے ته ژوند وربخی، او مختلف قسم گیاهګانے رازرغونیږی۔

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً : یقیناً دا خبرے دلیل دے چه الله تعالیٰ یو دے او د مړو په دویم خلق راژوندی کولو قادر دے، او نخه ده په معرفت د الله تعالیٰ او نخه ده ددے خبرے چه شرك نهٔ دے پکار ځکه چه ټول کارونه الله کوی نو بر خه دارانو ته ضرورت څه دے؟!

لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ : لیکن ددے دلائلو نه هغه خلقو ته فائده رسیږی چه د آسمانونو او د زمکے په پیدائش او د قرآن کریم په آیتونو کښی سوچ او فکر کوی، او پدے کښی د موجود عبرتونو او نصیحتونو نه فائده اخلی۔ نو دلته سماع د قلوبو مراد ده نهٔ سماع د آذانو۔ یعنی د زړه په غوږونو آوریدل مراد دی نهٔ د ظاهری غوږونو آوریدل۔

وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ : او هغه ذات باری تعالیٰ د خپل عظیم قدرت په ذریعه اُوښان، غواګانے، چیلیٔ او ګډان پیدا کړی۔ د دوی د پیدائش نه یو لوی عبرت دا حاصلیږی چه الله تعالیٰ د دوی د خیټو نه، د خوشیانو او وینے د مینځ نه د هغوی د تیونو نه پیٔ جاری کوی چه د وینے د سوروالی او د خوشیانو د ګندګیٔ او بد بوئی نه بیخی پاك صفا وی۔ حال دا چه درے واړه په یو لوښی کښی جمع کیږی۔ چارپایه چه کله چاره (خوراك) خوری نو د هغے یوه حصه مِعدے ته ځی چه هغے ته خوشیان وائی او یوے حصے نه وینه جوړیږی او په رګونو کښی چلیږی۔ د دواړو د مینځنیٔ حصے نه پیٔ جوړیږی او تیونو ته رسیږی، چه فائده مند او خوږهٔ وی او د سکونکی په مریٔ کښی نهٔ انخلی۔

حق خو دا ده چه انسان ته ددے نه لوی نصیحت حاصلیږی، او د الله داسے معرفت حاصلیږی چه بنده د هغه سره په بے حده محبت کولو او د هغه په اطاعت او بندګیٔ باندے خپل ځان مجبوره موندهٔ کوی۔

مِّمَّا فِي بُطُونِهِ : دلته ئے (بُطُوْنِهٖ) ضمیر د مذکر راجع کړو انعام ته او سورة المؤمنون آیت (۲۱) کښی ئے (مِمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا) مؤنث ضمیر راجع کړے دے؟ ددے وجه دا ده چه زجاجؔ او فراءؔ وائی چه انعام لفظ د جمع دے چه مذکر او مؤنث دواړه استعمالیږی، نو دواړه قسمه ضمیرونه ورته راجع کول صحیح دی۔ او دا خبره ابن العربیؔ راجح کړیده او وئیلی ئے دی چه مذکر ضمیر ورته پدے وجه راجع دے چه دا په تاویل د جمع سره دے او مؤنث والے په اعتبار د معنیٰ د جماعة سره دے۔ کسائیؔ او مبردؔ وائی چه (بُطُوْنِهٖ) کښی ضمیر

(مذکور) شی ته راجع دے۔ (فتح)

او حکمة ددے فرق دا شکاره کیږی (والله اعلم) چه دلته صرف یوه فائده د څاروی ذکر شویده نو ځکه ئے په ضمیر د مفرد سره اکتفاء کړیده او په سورة المؤمنون کښ د کثرت د فائدو د وجه نه لحاظ د جمع شویدے۔ (احسن الکلام)

لَّبَنًا خَالِصًا: پئ ډیر فائده مند شے دے چه بدن په هغے سره ښه ترقی کوی۔

سَآئِغًا : علماء وائی چه پیو کښ دا کمال دے چه هیڅکله د چا نه دی انښتی، او بل دا چه آواز صفا کوی، او د پیوو نه نور ډیر څیزونه پیدا کیږی لکه ماسته، شوملے، غوړی، قُرط وغیره۔

**حکمة** : پدے کښ د رد د شرك دپاره یو مثال ته هم اشاره ده چه اے انسانه ! لکه تهٔ چه خالص پئ څکے، که چا پکښ درته اُوبه واچولے هم هغه نهٔ خوښوے او نهٔ هغه د دکاندار نه اخلے او بیا چه کله درته پکښ خوشیان واچولے شی نو هغه نهٔ قبلوے نو دغه شان الله تعالیٰ هم ستاسو د اعمالو نه نهٔ قبلوی مگر هغه چه د هغه دپاره خالص وی د شرك او د ریاء او د مخالفة الرسول ﷺ په شان تولو مرضونو نه۔ او دارنگه عمل به د عادت او د رواج په بناء باندے هم نهٔ وی۔

وَمِن ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ : او الله تعالیٰ په خپل عظیم قدرت سره د کجورو او د انگورو میوه پیدا کړیده، چه ددے د رس نه شراب او د خوراك نور غوره څیزونه جوړیږی مثلاً میوه، د کجورو رس، کشمش (وچکے) او سرکه وغیره۔

تَتَّخِذُونَ : ابن جریرؒ وائی : تقدیر د عبارت داسے دے : (وَمِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ مَا تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا) ۔ نو دلته ما کلمه پټه ده۔ دلیل پرے (منه) کلمه ده۔ (یعنی د میوے د کجورے نه بعض هغه څه دی چه تاسو ترے سرکه جوړه وئ)

یا تقدیر داسے دے : (وَإِنَّ لَكُمْ مِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ لَعِبْرَةً) ۔ (یعنی ستاسو دپاره د میوو د کجورو او انگورو نه عبرت شته)۔ زمخشری وائی : دلته نُسْقِيكُمْ پټ دے، تقدیر داسے دے [وَنُسْقِيكُمْ مِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ] ۔ مونږ څکوو په تاسو باندے د میوو د کجورو نه الخ۔ بناء پدے به روستو (تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا) بیان ددے څکولو وی۔

(مِنْهُ) ضمیرئے مفرد راوړو دا په تاویل د مذکور سره دے۔

سَكَرًا : د جمهورو مفسرینو په نیز دلته د «سکر» نه مراد مُسکر (نشه آور) شراب دی، او دا آیت د شرابو د حرامیدو نه مخکښ نازل شوے وو۔ او دا قول د ابن عباس، ابن عمر، او

ابن مسعود رضی الله عنهم دے۔ یو دویم قول دا دے چه د سکر نه مراد خوږ او حلال رس دے
چه هغه که پریخودے شی نو نشه آور جوړیدو سره حرامیږی۔ پدے وجه ئے ورته سکر
وئیلے دے۔ دریم قول دا دے چه سکر نه مراد سرکه ده۔ په لغت د حبشو کښې۔

وَّرِزْقًا حَسَنًا : د کجورو او انګورو نه قسماقسم ترکارئانے او حلال رزقونه جوړیږی،
عربو ته ئے دیر چلونه زده وو۔

لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ : یقیناً په هغه خبرو کښې د عقل والو دپاره لویه نخه ده، د الله تعالیٰ په
قدرت، د هغهٔ په علم او د هغهٔ په رحم او کرم باندے دلالت کوی، او انسان ته دعوت
ورکوی چه هغه صرف د یو رب عبادت وکړی۔

| وَاَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِىْ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا وَّمِنَ الشَّجَرِ |
|---|
| او په زړهٔ کښې واچوله رب ستا مچۍ ته چه جوړوه د غرونو نه کورونه او د ونو نه |
| وَمِمَّا يَعْرِشُوْنَ ﴿٦٨﴾ ثُمَّ كُلِىْ مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ فَاسْلُكِىْ سُبُلَ |
| او د هغے نه چه دوی څپرونه جوړوی۔ بیا خوره د هر قسم میوو نه او روانه شه په لارو |
| رَبِّكِ ذُلُلًا يَخْرُجُ مِنْۢ بُطُوْنِهَا شَرَابٌ |
| د رب ستا چه تابع دی تا ته، (یا چه تهٔ تابع ئے) راوځی د خیټو د هغے نه د څکلو شے |
| مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ اِنَّ |
| چه مختلف دی رنګونه د هغے، په هغے کښې شفاء (علاج) دے دپاره د خلقو یقیناً |
| فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿٦٩﴾ |
| پدے کښې خامخا دلیل (د قدرت د الله) دے دپاره د هغه قوم چه فکر کوی۔ |

**تفسیر** : او د الله تعالیٰ د عظیم قدرت او د انسانانو سره د احسان یوه نخه د شهدو مچۍ
هم ده، چه ددے تفصیل پدے آیتِ کریمه کښې بیان شویدے چه الله تعالیٰ د شهدو د مچۍ
په دماغو کښې دا خبره اچولے ده چه هغه خپل عجیب او ناشنا کور چه په متساوی
اضلاعو باندے منقسم وی، په غرونو او ونو او د خلقو په کورونو کښې جوړ کړی۔ او د
هغے په دماغو کښې ئے دا خبره هم اچولے ده چه په چراګاهونو کښې ګرځی او خپله غذا

حاصلولو سره اول خپل کور جوړ کړي۔ پدے وجه د شهدو مچۍ اول خپل کور جوړوی بیا د روزۍ په تلاش کښې اوځی، او قسم قسم میوو نه رس سکی او بیرته خپل کور طرف ته راواپس کیږی، او د الله تعالیٰ د خودلے طریقو مطابق هغه رسونو نه شهد جوړوی۔
وَاَوْحٰی : وحی په ډیرو معانو سره استعمالیږی، پیغمبرانو ته هم وحی کیږی او وحی کله الهام ته وائی یعنی هغه شے چه الله تعالیٰ ئے په زړه کښې ابتداءً بغیر د ظاهری سبب نه پیدا کړی لکه ﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾ (الشمس: ۸/۷)
او وحی کله تعلیم فطری ته وئیلے شی یعنی چه الله تعالیٰ ورله فطرت په داسے طریقه جوړ کړے چه فائده مند کارونه کوی او د ضرر کارونو نه ځان ساتی۔
النَّحْلِ: اسم جنس دے، مفرد ئے نَحْلَةٌ دے، چه په اصل کښې عطیه او تحفے ته وائی او دے ته نحل ځکه وائی چه الله تعالیٰ دے ته شات په تحفه کښې ورکړیدی کوم چه ددے نه راوځی۔ او ددے مشر د یَعْسُوب په نوم باندے یادیږی۔
الله تعالیٰ د شاتو مچۍ ته ډیر زیات شعور ورکړیدے چه داسے کارونه کوی چه د انسانانو دپاره پکښې ډیر زیات عبرت پروت دے، هغه اول خپل کور جوړوی چه مسدس شکل ورله ورکوی او بیا د کور په خوله کښې بعض د حفاظت دپاره ودروی چه نور حشرات او میږان دا شهد ونهٔ خوری، یا بله مچۍ دے پیتۍ ته رانشی، که هغه راځی نو دے ئے وژنی، او دارنګه په پیتۍ باندے ئے خپل مشر مقرر کړے وی چه که ددے پیتۍ کومه مچۍ ځان سره ګند یا بد بویه بوټے راوړے وی نو هغه هم وژنی۔ او ددے د مشر دپاره دوی غذاءِ ملکه ساتلی وی هغه ورکوی چه دا تیز شهد دی چه د هغے په وجه بچی زیات راوړی او ددے ملکه په جسم کښې د نورو مچو نه لویه وی، او دا ټول ددے مشرے تابع وی، لکه د امیر او مامور په شان، او ددے ملکے کار صرف نګرانی کول دی، دا خپله شات نهٔ اچوی۔
علامه ابن عاشورؒ لیکی : د شاتو مچۍ درے قسمه دی (۱) مذکر (۲) مؤنث۔ (۳) خنثیٰ۔ مذکر پکښې خپل کورونه ساتی پدے وجه دوی همیشه د کوتو مخو ته الوزی او د کوتے مخے ته بنګار کوی او دا پکښې مؤنثات حاملے کوی چه د هغے په وجه دغه مؤنثات نور مؤنثات زیږوی۔ او مؤنثاتو ته ئے یعاسیب وئیلے شی چه دا پکښې د مذکر نه په جثه کښې غټه وی او په هره کوته کښې دغه مؤنثه یوه وی۔ (یعنی ملکه) او دا کله اولاد راوړی بغیر د نزدیکت د مذکر نه۔ لیکن په دغه وخت کښې صرف مذکر بچی راوړی نو ددے په بچو کښې د نورو بچو راوړونکو میندو دپاره هیڅ فائده نشته۔ (یعنی ددے د بچو نه نور

بچی نۀ پیدا کیږی ځکه چه اولاد خو مؤنثات راوړی)
او هرچه خنثیٰ دے نو هغه ګبین جدا جدا کوی، او دا د مذکرو نه په جثه کښې وړوکے وی او په کوتو کښې زیات وسیدونکی هم دوی وی. آه. (التحرير والتنوير ۱۶۵/۱۳)
په ﴿فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا﴾ کښې د «سُبُل» نه مراد د شهدو جوړولو طریقے دی. یا ددے نه مراد لارے دی، یعنی الله تعالیٰ د شهدو په مچیٔ کښې دا خبره ایخے ده چه د میوو د رس راخکلو دپاره که هرڅومره لرے لاړه شی لیکن بیا په آسانیٔ سره خپل کور ته واپس راځی او لاره نۀ خطا کوی.
ذُلُلًا : جمع د ذَلُول ده. تابع او مُذَلَّل ته وئیلے شی. ۱- دا یا حال دے د (النحل) نه. یعنی مذلل او تابعدار وی د تسخیر دپاره او د ګبین د راویستو دپاره د خیتو ددے نه. (ابن قتيبة)
۲- ظاهر دا ده چه دا حال دے د (سُبُلَ) نه یعنی دا لارے به تا ته آسانی وی او سختے به نۀ وی. (اختاره الزجاج وابن جرير).
يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا شَرَابٌ : دا جمله ئے مستقله راوړه دپاره د شمارلو د نعمت او هر سامع ته د تعجب ورکولو او ددے وړوکی حیوان نه عبرت اخستو دپاره.
یعنی ددے مچیو د خیتو نه د څکلو یو شے راوځی چه هغے ته شهد وئیلے شی، او د غذا د رنګ او د هغے د مزاج د اختلاف نه ددے بعض قسم سپین او بعض زیړ او بعض سرۀ وی. الله تعالیٰ دا د ډیرو مرضونو دپاره شفا جوړ کړیدی، د څه خلقو وینا ده چه دا د تمامو مرضونو دپاره شافی دی، او د څه نورو خلقو رائے ده چه دا د بعض مرضونو دپاره شافی دی، او ددے دلیل دا دے چه شفاء نکره ده چه دلته په عموم باندے دلالت نۀ کوی.
امام مجاهدؒ لیکی : په دوه څیزونو کښې شفاء ده یو په ګبین کښې او بل په قرآن کریم کښې. عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : په ګبین کښې د هر مرض شفاء ده او په قرآن کریم کښې شفاء ده د هغه مرضونو چه په سینو کښې دی. (فتح البیان)
امام شوکانیؒ لیکلی دی : د علم طب د قوانینو او تجربو نه معلومیږی چه شهد که مفرد استعمال کړے شی نو د بعض مرضونو دپاره شافی کیږی، او د نورو دوائیانو سره د ملاویدو نه روستو د ډیرو مرضونو دپاره مفید ثابتیږی، بهر حال شهد یو داسے شے دے چه غذا او دواء دواړو اعتبارونو سره ډیرو لویو فائدو والا دے. او دا دواړه خبرے د شهدو نه سوئ په بل شی کښې کم موجودیږی.
د شهدو د افادیت اندازه د ابوسعید خدری ﷺ د روایت نه کیدے شی چه بخاری او مسلم

روایت کریدے چه یو سړی ته د اسهال (دستونو) شکایت وو، د الله رسول د هغه ورور ته
ووېل چه ده' باندے شهد اُوڅکوی، هغه شهد اُوڅکول او د هغه اسهال نور هم زیات شو،
او په هر ځل به نبی ﷺ وئیل چه الله رشتینی دے او ستا د ورور خیټه دروغجنه ده، لاړ
شه په هغه باندے شهد اُوسکوه۔ نو د دریم ځل نه روستو د هغه اسهال اُودریدو او هغه
شفاء والا شو۔ (فتح القدیر)

ابن کثیرؒ لیکلی دی چه کله د هغه د خیټے نه توله فاسده ماده اُووتله نو د هغه بیماری
ختمه شوه۔ (ځکه چه په شاتو کښ یو اسهال او تلطیف صفت دے چه ماده اُویاسی او بل
پکښ د قبض صفت دے نو هرکله چه گنده ماده ووتله نو بیا ئے خیټه رابنده کړه)۔

نو دا حدیث دلیل دے چه شهد د هر مرض شفاء ده ځکه که صرف د بعضو امراضو
علاج وے نو دے شخص ته به ئے باربار امر په څکولو باندے نهٔ کولے۔ عبد الله بن عمر رضی الله عنه
به په هر درد او دانه کښ شهد مږل تردے چه دانه به پرے رابښکاره شوه نو شهد به ئے پرے
راښکل۔ ابو وجزةؒ به شهد د رانجو په ځای استعمالول او دا به ئے په پوزه کښ راښکل او
پدے سره به ئے دوائی کوله۔ (ذکره القرطبی وفتح البیان)

او بیضاویؒ وائی : په شاتو کښ د خلکو شفاء ده یا په خپله لکه په بلغمی امراضو کښ یا
چه د بلے دوائی سره ملاو شی لکه په باقی امراضو کښ ددے وجه نه (مَا مِنْ مَعْجُوْنٍ اِلَّا
وَالْعَسَلُ جُزْءٌ مِنْهُ) داسے معجون نشته مگر گبین به د هغے نه یو جزء وی۔

او دا آیت دلیل دے چه د مرضونو دپاره علاج کول جائز دی او دا د توکل خلاف نهٔ دی۔

**اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ**: بیشکه پدے تولو تفاصیلو کښ د فکر او نظر کونکو دپاره د الله تعالیٰ د
وحدانیت او د هغه د عظیم قدرت او علم دلیل موجود دے۔

| وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفّٰىكُمْ وَمِنْكُمْ |
|---|
| او الله تعالیٰ پیدا کړی یئ تاسو بیا به وفات کوی تاسو او بعض ستاسو نه هغه څوک دی |
| مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ |
| چه واپس کړے شی ذلیل عمر ته (عاقبت دا شی) چه نهٔ پوهیږی روستو د پوهے نه |
| شَيْـًٔا اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ﴿۷۰﴾ وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ |
| په هیڅ باندے، یقیناً الله پوهه دے قدرت والا دے۔ او الله غوره کړیدی بعض ستاسو نه |

| عَلٰی بَعۡضٍ فِی الرِّزۡقِ فَمَا الَّذِیۡنَ فُضِّلُوۡا |
|---|
| په بعضو باندے په رزق کښې، پس نۀ دي هغه کسان چه غوره کړے شویدي (په رزق کښې) |
| بِرَآدِّیۡ رِزۡقِهِمۡ عَلٰی مَا مَلَکَتۡ اَیۡمَانُهُمۡ |
| ورکونکي د رزق خپل هغه چا ته چه مالکان دي ښي لاسونه د دوی (غلامان خپل) |
| فَهُمۡ فِیۡهِ سَوَآءٌ اَفَبِنِعۡمَةِ اللّٰهِ یَجۡحَدُوۡنَ ﴿۷۱﴾ |
| چه دوی په هغے کښې برابر شي (په اختیار کښې)، آیا د نعمت د الله تعالیٰ نه دوی انکار کوي۔ |

**تفسیر** : مفسر ابوالسعودؒ او نیسابوریؒ لیکلي دي چه الله تعالیٰ په تیر شوي آیتونو کښې اُوښه، بوټي او چارپیان او د شهدو مچیو کښې موجود عجیبه او ناشنا څیزونو بیانولو نه روستو، پدے آیت کښې الله تعالیٰ د انسان د پیدائش متعلق عجائب بیان کړیدي چه دا د ابتداء د پیدائش نه تر آخري عمر پورے د څلورو مراحلو نه تیریږي۔ اوله مرحله د نشوونما (وروکوالي) وي، او دا تر (۳۳) کالو پورے وي چه دا آخري عمر د ځوانۍ دے۔ اودویمه مرحله د سِنُّ الْوُقُوْف ده۔ یعني د ځوانۍ ودریدل او دا د (۳۳) نه تر (۴۰) کالو پورے وي چه پدے کښې آخري درجه قوت او کامل عقل وي۔ او دریمه د کهولت (پوخ عمر) زمانه ده چه دا د (۴۰) نه تر (۶۰) پورے وي او پدے مرحله کښې انسان نقصان او زوال طرفته روان شي لیکن نقصان ئے پټ شان وي۔ او څلورمه مرحله د شیخوخة (بوډا والي) او انحطاط (خکته والي) ده او دا د شپیتو نه اخوا تر آخر د عمر پورے وي پدے کښې د بدن کمزورتیا او بے طاقتي د انسان سره لازمه شي او څومره چه ددۀ عمر زیاتیږي د هغه تمام جسماني صلاحیتونه کمزوري کیږي، او یو وخت داسے راځي چه بالکل د ماشوم په شان شي، د هغه عقل لاړ شي، لکه چه الله تعالیٰ په سورة التین آیت (۴/۵) کښې فرمایلي دي :

﴿لَقَدۡ خَلَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ فِیۡۤ اَحۡسَنِ تَقۡوِیۡمٍ ۝ ثُمَّ رَدَدۡنٰهُ اَسۡفَلَ سٰفِلِیۡنَ ۝﴾

یقیناً مونږ انسان په ډیر غوره صفت پیدا کړے، بیا مو دۀ لره د لاندو نه لاندے کړے)۔

اَرۡذَلِ الۡعُمُرِ : علي ﷺ فرمائي : دا د پنځه اویا (۷۵) کالو عمر دے۔ خیني وائي د (۸۰) کالو۔ او قتادةؒ وائي چه (۹۰) کالو عمر دے۔ ظاهر دا ده چه دا هغه عمر دے چه انسان پکښې د طاقت نه پریوزي نۀ په خبره پوهیږي او نۀ خپل قضاء حاجت ځای ته رسولے شي، او علم او پوهه ترے زائله شي، بل چا ته محتاج شي۔ او دے ته هَرَم هم وائي۔ رسول الله

ﷺ به د ارذل العمر نه پناهی غوښته. (وَاَعُوْذُ بِكَ اَنْ اَرُدَّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ) (بخاری فی الجهاد باب ۲۵، ومسلم فی الذکر حدیث : ۵۲)

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَتَأَسّٰی بِسُنَّةِ نَبِیِّكَ فَاَقُوْلُ : ((اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اَرُدَّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ)) آمین یا رب العالمین.

عکرمة وائی : [مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ لَمْ يُرَدَّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ]

چا چه قرآن کریم لوستلے وی هغه به ارذل العمر ته واپس نکړے شی.

او طاووسؒ وائی : [اَلْعَالِمُ لَا يَخْرِفُ] عالم د خرف (بے عقلئ) زمانے ته نهٔ رسیږی.

ابن ابی شیبة د عبد الملك بن عُمیرؒ نه نقل کړیدی : [كَانَ يُقَالُ اِنَّ اَبْقَى النَّاسِ عُقُوْلًا قُرَّاءُ الْقُرْآنِ] دا خبره وئیلے شویده چه په آخری عمر کښې د نورو خلکو په نسبت د قرآن د قاریانو عقلونه باقی پاتے کیږی. (یعنی په بوډاوالی کښې د دوی عقلونه نهٔ ختمیږی)

(الدر المنثور)

**لِكَیْ لَا یَعْلَمَ** : لام د تعلیل دپاره دے او کیْ حرف مصدر او ناصبه دے او (لا) نافیه دے.

خینی وائی : لام د صیرورت او عاقبت دپاره دے. یعنی انجام دا شی چه بیا په هیڅ خبره نهٔ پوهیږی.

زجاجؒ وائی چه پدے کښې د اثبات د بعث بعد الموت دلیل هم دے چه دے انسان باندے څومره احوال متغیر شو، دا انسان مخکښې عالِم وو بیا جهالت ته نقل شو نو دغه شان الله تعالیٰ قادر دے چه دا د ژوند نه مرګ ته او د مرګ نه بیرته ژوند ته نقل کړی، نو دلیل دے چه بعث بعد الموت حق دے. (فتح البیان)

لکه دا خبره په سورة یس (۶۸) آیت کښې راغلے ده ﴿وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِی الْخَلْقِ اَفَلَا یَعْقِلُوْنَ﴾. (او هغه څوك چه مونږ ورته عمر ورکړو نو هغه کمزورے کړو په اندامونو کښې آیا نو دوی عقل نه کار نهٔ اخلی)

**وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ** : ددے ځای نه بیا په شرك باندے رد ذکر کیږی سره د عقلی دلیلونو نه. او دا رد د شرك په طریقه د مثالونو سره دے. پدے رکوع کښې درے مثالونه د رد د شرك دپاره ذکر شویدی او دلیلونه ئے هم ذکر کړیدی.

الله تعالیٰ فرمائی چه هغهٔ په رزق کښې بعضو ته په بعضو باندے غوره والے ورکړیدے، څوك فقیر وی او څوك مالدار، څوك آقا وی او څوك غلام. دغه شان الله تعالیٰ د انسانانو ترمینځ د عقل او علم او فهم او پوهے او اخلاق او قوت او طاقت او صحت او بیمارئ په اعتبار سره فرق ایخودے دے. او د الله تعالیٰ پدے کښې حکمت دے چه ټول انسانان ئے یو

شان نهٔ کړل۔
فَمَا الَّذِيْنَ : او د چا په رزق کښې چه الله تعالیٰ فراخي پیدا کړیده هغه خپل دولت خپلو غلامانو ته نهٔ ورکوي دے دپاره چه دوی د هغهٔ سره برابر شي۔ نو کله چه تاسو د خپل ځان په شان انسانان غلامان د خپل ځان برابر لیدل نهٔ برداشت کوئ نو د الله غلامان د هغه څنګه برابروئ ؟ او د هغوی عبادت ولے کوئ ؟
الله تعالیٰ په سورة الروم آیت (۲۸) کښې دا حقیقت بیان کړیدے : ﴿ ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ فِيْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ ○ ﴾
(الله تعالیٰ ستاسو دپاره یو مثال خپله ستاسو نه بیان کړیدے، چه مونږ تاسو ته څه درکړیدی، آیا پدے کښې تاسو د غلامانو نه هم څوك ستاسو شریك شته چه تاسو او هغوی په دے کښې برابرے درجے والا شئ)۔
بِرَآدِّيْ : اَيْ مُعْطِيْ۔ یعني ورکونکي۔
فَهُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ : اَيْ فِي الْاِخْتِيَارِ۔سوال پیدا شو چه ډیر کرته مالکان خپلو غلامانو ته مالونه ورکوي ؟ نو جواب کوي چه داسے طریقے سره مال ورکول چه دواړه په اختیار کښې برابر شي۔ نو داسے انسانان نهٔ کوي نو بیا د الله سره څنګه بل یو کمزورے مخلوق شریکوي۔
اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ : آیا د الله تعالیٰ د نعمتونو نه دوی انکار کوي چه د هغهٔ سره د بل چا بندګي کوي او شرکونه کوي۔ نعمتونه خو ټول د الله تعالیٰ دي او دوی پکښې غیر الله دپاره برخه ورکړه او کله نسبت د نعمتونو غیر الله ته کوي چه دا نعمت فلاني بابا راکړو۔

| وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّجَعَلَ لَكُمْ |
|---|
| او الله تعالیٰ کرځولي دي تاسو لره د نفسونو ستاسو نه ښځے او کرځولي ئے دي تاسو لره |
| مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ بَنِيْنَ وَحَفَدَةً وَّرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ |
| د ښځو ستاسو نه ځامن او نوسي او خوراك ئے درکړیدے تاسو ته د پاکو څیزونو نه |
| اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ ﴿۷۲﴾ |
| آیا نو په باطل (معبود) باندے دوی ایمان لري او د نعمت د الله تعالیٰ نه دوی انکار کوي۔ |

| وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا |
|---|
| او بندګي کوي دوی سوئ د الله تعالیٰ نه د هغه چا چه اختیار نهٔ لري دوی لره د خوراك |
| مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٧٣﴾ فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ |
| د آسمانونو او د زمکے نه د هیڅ شي او نهٔ طاقت لري. نو مهٔ بیانوئ الله لره مثالونه، |
| اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٧٤﴾ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا |
| یقیناً الله پوهیږي او تاسو نهٔ پوهیږئ. بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال د بنده مریي، |
| لَّا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ وَّمَنْ رَّزَقْنٰهُ |
| چه قادر نهٔ وي په هیڅ شي باندے او هغه څوك چه رزق ورکړیدے مونږ هغه ته |
| مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَّجَهْرًا هَلْ |
| د خپل طرف نه رزق ښائسته نو دا خرچ کوي د هغې نه په پټه او په ښکاره، آیا |
| يَسْتَوٗنَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٥﴾ |
| برابر دي دوی، ټول صفتونه د کمال خاص الله لره دي بلکه اکثر خلق نهٔ پوهیږي. |

**تفسیر** : پدے کښې الله تعالیٰ بل عقلي دلیل او نعمت د بیبیانو او اولادو ذکر کړیدے او پدے سره ئے د شرك او د غیر الله د عبادت نه انکار کړیدے، چه الله د دوی د جنس نه او د دوی په شکل او صورت د دوی ښځے پیدا کړیدي دے دپاره چه د دوی ترمینځ اُنس او محبت پیدا شي، ځکه که دا پیرئ یا بل حیوان وے نو د انسان به ورسره وخت نهٔ تیریدلے او انس به پوره نهٔ پیدا کیدلے. (عجیب نعمت دے) او بیا دے ښځو نه ئے هلکان او جینکۍ او نمسي او کروسي پیدا کړي چه د هغوی د سترګو نُور او د زړونو سُرور (خوشحالي) وي، او د هغوی د خدمت دپاره هر وخت د هغوی د اشارے منتظر وي.

**بَنِيْنَ** : زامن ئے ذکر کړل ځکه چه عام خلك ورته ډیر خوشحالیږي، پدے وجه ئے جینکۍ ذکر نکړے، او د زامنو پیدا کیدو کښې ډیر نعمتونه دي چه د کور ټول کار به هغوی کوي، انسان بیغمه شي، د کور زینت دے، او خدمتونه هم پرے وړ اچولے شي. او که مړهٔ شول نو د انسان دپاره د شفاعت او د جنت ذریعه ده. او که ستا د مرګ نه روستو پاتے شو نو تا دپاره

په دعاګانې کوي. نو په هر حال کښې اولاد فائده ده کله ئې چه صحیح تربیت وکړے شي.
وَحَفَدَةً : دا جمع د حافِد ده لکه د کَمَلَةٌ او کَامِلٌ په شان. په اصل کښې اَلْمُسْرِعُ فِي الْخِدْمَة ته وئیلے شي یعنی هغه چه په خدمت کښې جلتي کوي. نو نمسي هم د نیکهٔ خدمت کښې جلتي کوي او دا انسان ته ډیر ګران وي. او پدے طریقه باندے الله تعالیٰ د انسان سلسله د نسب روانه کړي. او دا نعمت صرف انسانانو ته حاصل دے، حیوانات خپل نمسي نهٔ پیژني. او مؤنث حیوانات صرف د رضاعت د مودے پورے خپل بچے پیژني او کله چه غټ شي بیا ئې نهٔ پیژني. (ابن عاشورؒ)
او حفده لفظ مذکر او مؤنث دواړو نمسو ته شامل دے.

## د حفده مصداق

د حفده په مصداق کښې بیا ډیر څیزونه داخل دي. ۱- نمسي. ۲- اَلْخَدَمُ. (خادمان)
۳- اَلْاَعْوَانُ. مددګاران. (حسنؒ، عکرمهٔ، ضحاکؒ) ٤- اَلْاَصْهَار. سخرګنئ.
٥- اَلْاَخْتَانُ. (یعني زومان) (ابن مسعودؓ، عقلمهٔ). ٦- اَلرَّبَائِب. (پرکټیٔ).
۷- اَلْبَنَاتُ الْخَادِمَاتُ لِاَبِيْهِنَّ. هغه لونړه چه د پلار خدمتونه کوي. په لغت کښې د حفده اطلاق پدے ټولو باندے کیږي، او دا لفظ دے ټولو کښې مشترك دے، او دا ټول د الله تعالیٰ نعمتونه دي. او دلته د سیاق د وجه نه غوره مراد ئې نمسي دي.
وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبَاتِ : او پدے باندے زیات دا چه الله تعالیٰ د دوی د خوراك او څکاك دپاره غوره رزق ورکړیدے. په ټول مخلوقات کښې الله تعالیٰ انسانانو ته مزیدار خوراکونه ورکړیدي، د ټولو څیزونو خلاصه دوی خوري.
اَفَبِالْبَاطِلِ : ۱- استفهام انکاري دے د توبیخ دپاره. د باطل نه مراد باطل معبود دے، یعني د مشرکانو د ناشکریٔ حال دا دے چه په باطلو معبودانو باندے یقین کوي او ددے ټولو نعمتونو نسبت بتانو او قبرونو والو ته کوي.
۲- ابن قُتیبة وائي : [اَفَبِشَفَاعَةِ الآلِهَةِ يُؤْمِنُوْنَ] آیا دوی په شفاعت د باطلو آلهو باندے ایمان راوړي او د الله په احسان ناشکري کوي، چه نعمتونه الله تعالیٰ ورکړیدي او دوی وائي چه زمونږ معبودان شته چه هغوی به زمونږ دپاره د الله په دربار کښې سفارش کوي. اوله معنیٰ ظاهره ده.
وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللهِ : یعني د مشرکانو د ناشکریٔ بل حال دا دے چه دوی د الله نه

سوئ د هغه معبودانو عبادت کوی چه د دوی د رزق مالکان نهٔ دی۔
رِزْقًا: رزق ئے ذکر کړو؟ ځکه دا لفظ یو خو ښځه او اولاد او خوراك تول څیزونو ته شامل دے، رزق په معنیٰ د مرزوق سره دے یعنی هر هغه شے چه انسان ته ورکولے شی۔
دویمه وجه : رزق ته د انسانانو د هر شی نه حاجت زیات دے، انسانان د رزق په باره کښ ډیر پریشانه وی نو الله فرمائی چه ستاسو دا باطل معبودان ستاسو د رزق مالکان هم نهٔ دی، نهٔ د آسمان نه باران کولے شی او نهٔ د زمکے نه گیاه راتو کولے شی۔ بلکه (شَيْئًا) یعنی د هیڅ شی مالکان نهٔ دی۔
شَيْئًا: دا مفعول مطلق دے په اعتبار د موصوف محذوف سره اَیْ مِلْکًا شَیْئًا۔ یعنی هیڅ قِسمه ملکیت ئے نشته۔
فَلَا تَضْرِبُوْا: چونکه ددے نه لوی بل احسان هیرول نشی کیدے چه بنده خوری د یو او صفت د بل کوی، پدے وجه الله تعالیٰ فرمائی چه اے د آدم بچو! هیڅوك د الله شریکان مهٔ جوړوئ، او د هغه دپاره مثالونه مهٔ بیانوئ چه لکه څنگه وزیر د امیر په دربار کښ د خلقو سفارش کوی، دغه شان ستاسو دا د دروغو معبودان به د الله په دربار کښ ستاسو سفارش کوی۔ ستاسو دا شرکی اعمال څومره قبیح او بد دی ددے علم صرف الله ته دے، تاسو ته هیڅ هم معلوم نهٔ دی۔ که تاسو ته ددے صحیح اندازه کیدے نو ددے د کولو جرأت به مو نهٔ کولے۔
او دا جمله جواب د سوال دے چه مونږ چه ددے معبودانو بندگی کوو نو مونږ پدے سره الله تعالیٰ ته ځان نزدے کوو او ددے مثال دا دے لکه یو بادشاه ته په واسطو سره رسیدل کیږی، کوهی نه چه اُوبه راوباسے نو بوکه او پړے به واسطه کوے، او کوتے سر ته چه خیژے نو پوړئ (پارسنگ) به واسطه کوے۔ نو الله تعالیٰ ددے رد وکړو چه د الله تعالیٰ او د مخلوق ترمینځ فرق دے، نو د هغهٔ دپاره د مثالونو بیانولو هیڅ ضرورت نشته ځکه چه مخلوق ته خو واسطه پدے وجه کتلے شی چه هغه زمونږ د حال نه خبر نهٔ دے نو په واسطه سره خبرولے شی او الله تعالیٰ خو د بندگانو د هر حال نه په هر وخت کښ خبردار دے او په هر څه قادر دے۔ مشرکانو الله تعالیٰ د خپل ځان نه ډیر وراندے گنړلو او دا به ئے ویل چه د عالَم اِله ددے نه ډیر اُوچت دے چه زمونږ په شان کمزوری خلك د هغه عبادت وکړی نو دوی ورله وسیلے نیول شروع کړل په بتانو او ستورو او په ملائکو سره۔
فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ : ١- اَیْ لَاتُشَبِّهُوْا اللّٰهَ بِخَلْقِهٖ۔ یعنی الله تعالیٰ د مخلوق سره

مۀ مشابه کوئ۔ هغه دپاره مثالونه مۀ بیانوئ۔ ځکه چه مثال بیانونکے یو حال د بل حال سره او یوه قصه د بلې قصې سره مشابه کوی۔

۲- ابن عباس ﷺ ئے داسے تفسیر کوی : اَیْ لَاتَجْعَلُوا لِلّٰهِ الْاَکْفَاءَ۔

د الله دپاره مثل (همزولی) مۀ مقرروئ ځکه چه څوك د غیر الله بندګی کوی نو هغۀ د الله دپاره مثل مقرر کړو۔ او حال دا چه الله تعالیٰ واحد دے هیڅ مثیل (مثل) نۀ لری۔

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا : پدے کښې الله تعالیٰ رد کوی په مشرکانو او اشاره ورکوی چه تاسو الله تعالیٰ له مثالونه مۀ پیش کوئ بلکه د الله تعالیٰ مثال بیانولو ته غوږ کیږدئ۔

ددے مثال په باره کښې دوه رائے دی (۱) عوفیؒ د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدے چه دا د کافر او مؤمن مثال دے، یعنی د دواړو ترمینځ موازنه کولو سره د مؤمن فضیلت ښکاره کول مقصود دی۔ کافر ته الله تعالیٰ مال ورکړیدے لیکن هیڅ خیر ئے پکښې ونکړو او بل مؤمن دے الله تعالیٰ ورله مال ورکړو نو هغه پکښې د الله طاعت وکړو او مال ئے د الله په رضا کښې ولګولو په ښکاره او په پټه نو الله ورله په بدله کښې جنت ورکړو، دواړه برابر نۀ دی۔ (البغویؒ) لیکن دا د سیاق سره ډیر ښه نۀ لګیږی۔

(۲) غوره دا ده چه دا او روستو مثال دواړه د معبود باطل (بتانو وغیره) او معبود حق (یعنی الله تعالیٰ) ترمینځ د فرق دپاره بیان شویدی او پدے دواړو کښې رد د شرك مقصود دے۔ او همدا رایه د مجاهدؒ ده چه شوکانیؒ، صاحب د فتح البیان او جمال الدین قاسمیؒ وغیره غوره کړیده۔ امام ابن القیمؒ هم په «اعلام الموقعین» کښې ددے تائید کړیدے۔

حاصل د مثال دا دے چه یو غلام دے چه د هغۀ سره هیڅ مال نشته او د خپل مالك په مال کښې د هغۀ د اجازت نه بغیر تصرف کولو نه بالکل عاجز وی، او بل شخص آزاد انسان دے چه هغۀ ته الله تعالیٰ ښه مال او دولت ورکړیدے او په پوره آزادئ او فراخئ سره ورځ او شپه خرچ کوی، نو دا دواړه برابر نۀ دی اګرکه دواړه مخلوق دے، او دواړه انسانان دی لیکن د دواړو حالتونه برابر نۀ دی، نو دغه شان هغه الله تعالیٰ چه د تول جهان پالونکے دے، د هغه بتانو او باطلو معبودانو سره برابر نۀ دے چه د کانړو نه تراشلے شوی وی یا د نطفې نه یا د نُور یا د اُور نه پیدا وی۔ دواړه برابر څنګه کیدے شی؟۔ (القاسمیؒ)

عَبْدًا مَّمْلُوْکًا : مملوك ورسره ځکه وائی چه د عبد اطلاق په ټولو انسانانو کیږی اګرکه غلامان نۀ وی۔ نو دلته وائی چه د عبد نه مراد هغه غلام دے چه د انسان په ملکیت کښې وی۔

لَا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ : ځکه چه دغه غلام د مولیٰ (مالك) د اجازت نه بغیر هیڅ تصرف نشی کولے، که نکاح ئے وکړه نو هغه نکاح به ماتولے شی. او په حدیث کښې دی چه که د مالك د اجازت نه بغیر ئے نکاح وکړه نو دا زنا کار دے. (ابوداود: ۲۰۷۸) والترمذی (۱۱۱۲) واسنادهما حسن) او که بیع شراء ئے وکړه هغه باطله ده.

رَّزَقْنَاهُ : ځان ته ئے نسبت وکړو، اشاره ده چه دا ته چه څه ورکړے شویدی نو دا صرف د الله تعالیٰ مهربانی ده او د هغه رزق دے. او اشاره ده چه دا انسان به ئے ځکه خرچ کوی چه دا ورته الله تعالیٰ ورکړیدے.

رِزْقًا حَسَنًا : رزق حسن حلال او کثیر (ډیر) دواړو ته وائی. او بل ورسره جود او سخاء هم کوی.

هَلْ يَسْتَوُوْنَ : آیا دواړه (یعنی غلام او آزاد) چه دغه صفات لری برابر دی ؟. يَسْتَوُوْنَ ئے صیغه د جمع راوړه په اعتبار د (مَنْ) سره ځکه چه (مَنْ) لفظ ته د واحد او تثنیه او جمع، مذکر او مؤنث ټول ضمیرونه راجع کول صحیح دی. یا ددے نه مراد جنس غلام او جنس حُر دے. ځکه چه داسے مولاګان او مریان په دنیا کښې ډیر دی نو نورئے ورسره هم ملګری کړل.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ: حقیقت دا دے چه ټول د کمال صفتونه صرف الله دپاره دی، ځکه چه تمام نعمتونه هغه ورکړیدی. د کاڼړو نه جوړ شوی بتان څنګه د حمد او ثناء مستحق کیدے شی، لیکن اکثر خلق (چه شرك کوی) پدے خبره نهٔ پوهیږی. د مشرکانو همتونه کمزوری دی چه د کمزوری مخلوق نه مددونه غواړی او لوی قادر الله پریدی. د مخلوق او د خالق مرتبه نهٔ پیژنی.

| وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ اَحَدُهُمَا اَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ |
|---|
| او بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال د دوه سړو چه یو د دوی نه چاړا دے چه قدرت نهٔ لری |
| عَلٰى شَيْءٍ وَّهُوَ كَلٌّ عَلٰى مَوْلٰىهُ اَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ |
| په هیڅ شی باندے او دا بوج دے په خپل مالك باندے، کوم طرف ته ئے چه اُولیږی |
| لَا يَاْتِ بِخَيْرٍ هَلْ يَسْتَوِيْ هُوَ وَمَنْ يَّاْمُرُ بِالْعَدْلِ وَهُوَ |
| نهٔ شی راوړے هیڅ خیر آیا برابر دے دا او هغه څوك چه حکم کوی په انصاف او هغه |

| عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٧٦﴾ وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا |
|---|
| په لاره نیغه دے۔ او خاص الله لره (علم) د پټو څیزونو د آسمانونو او د زمکے دے او نهٔ دے |
| أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ |
| کار د قیامت مګر په شان د رپ د سترګے دے بلکه ددے نه هم ډیر نزدے دے۔ |
| إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٧٧﴾ وَاللّٰهُ أَخْرَجَكُمْ مِّنْ بُطُوْنِ |
| یقیناً الله تعالیٰ په هر شی باندے قدرت لری۔ او الله تعالیٰ راویستلی یئ تاسو د خېټو |
| أُمَّهٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْئًا وَّجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ |
| د میندو ستاسو نه نهٔ پوهیدئ په هیڅ شی او ګرځولی ئے دی تاسو لره غوږونه |
| وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٧٨﴾ |
| او سترګے او زړونه دے دپاره چه تاسو شکر وکړئ۔ |

**تفسیر** : ددے دویم مثال په ذریعه هم د بتانو او د الله تعالیٰ ترمینځ فرق ښکاره شویدے چه یو سړے ګونګا او ړوند دے، د خپل ما فی الضمیر (زړهٔ مقصد) نهٔ شی ادا کولے، او نهٔ د کوم فائده مندے خبرے او عمل قدرت لری، او په خپل رشته دار باندے ټول بوج شوے وی، په هیڅ وجه سره نهٔ خپل کار کولے شی، او نهٔ د بل چا۔ دا سے سړے د هغه شخص برابر کیدے شی چه د خبرو کولو پوره قدرت لری، د هوش او عقل مالك وی، خلقو ته د ښو خبرو حکم کوی هغوی ته فائده رسوی، او ښائسته اخلاقو والا او دیندار دے او خپل مقصد د آسانو او نیغو لارو نه حاصلوی؟ لکه څنګه چه دا دواړه برابر نشی کیدے نو دغه شان الله تعالیٰ چه د کائناتو خالق دے د هغهٔ برابر به هغه د کانړو بتان څنګه شی چه هغه بت پرست د یو ځای نه بل ځای ته ګرځوی، او هغه د هغه دپاره بوج جوړ شوے وی، نهٔ هغه ته فائده رسولے شی او نهٔ نقصان ؟!۔

دا مثال هم ځینی مفسرینو د ابوجهل بن هشام او د ابوبکر صدیق ﷺ سره لګولے دے۔ (عطاءؒ) او چا د عثمان بن عفان ﷺ او د هغه د یو کافر غلام سره۔ خو دا تفسیر ضعیف دے، او دلته نهٔ لګیږی۔

فوائد الالفاظ :

رَّجُلَيۡنِ : د رجلين نه مراد يو الله تعالىٰ او بل بتان دى. او په مثال كښې د الله دپاره د (رَجُل) لفظ استعمالول جائز دى لكه په حديث كښې هم د الله دپاره ذكر شويدے (رَجُلٌ بَنٰى دَارًا) (صحيح بخاري : ۷۲۸۱)

اَبۡكَمُ : بت چاړا دے. لَا يَقۡدِرُ عَلٰى شَىۡءٍ : په هيڅ شى قادر نۀ دے يعنى لاس او خپه ئے خوزېږى نۀ.

كَلٌّ عَلٰى مَوۡلٰىهُ : څوك چه د بت سره دوستى كوى په هغه باندے بوج وى، هر سهار ئے پاكوى او غوړه يى، او چه مات شى نو مرمت به ئے كولے شى. او چه يو ځاى نه ئے بل ځاى ته وړے نو په شا باندے به ئے گرځوے. لكه د عربو عادت وو چه په سفرونو كښې به ئے ځان سره د خپلو سامانو سره بت هم راپه شا كړے وو، دا پړے بل مصيبت وو. نو باطل اِلٰه ورته مصيبت جوړ شوے وو.

أَيۡنَمَا يُوَجِّههُّ : يعنى كوم طرفته ئے چه متوجه كړى د يو كار او حاجت پسے، يعنى د هغه نه دعا وغواړى او د يو كار پسے ئے متوجه كړى چه اے بت! ما ته فلانے شے راكړه.

لَا يَاۡتِ بِخَيۡرٍ : هيڅ حاجت نشى پوره كولے.

وَمَنۡ : ددے نه مراد الله تعالىٰ دے.

يَاۡمُرُ بِالۡعَدۡلِ وَهُوَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ : پدے مختصره جمله كښې ډيرو صفاتو ته اشاره ده، الله تعالىٰ هغه ذات دے چه موجود دے، بيا هغه د آمر په درجه كښې دے، تول مخلوق ئے مامور دى او آمر مشر وى، د تولو دپاسه وى، او قادر وى، او امر چه د چا وى نو هغه خبرے هم كولے شى، نو دا د (اَبۡكَمُ) په خلاف شو. بيا خبرے دوه قسمه وى، كه آمران ظالمان وى د ظلم خبرے كوى نو دلته وائى چه نۀ بلكه دا آمر د عدل خبرے كوى او خلكو ته د خير خودنه كوى. وَهُوَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ اَىۡ فِىۡ اَفۡعَالِهٖ. يعنى خپله چه كوم كار كوى نو هغه هم صحيح دے، ځكه كله نا كله يو تن خبرے صحيح كوى ليكن خپله ئے عمل گډوډ (خراب) وى. نو خبرے ئے هم د انصاف او كارونه ئے هم د حكمتونو نه ډك دى. نو چرته داسے الله تعالىٰ او چرته يو چاړا بت برابر كيدے شى.

نو هر كله چه دواړه برابر نۀ دى نو بس د دغه يو الله بندگى پكار ده، د هغۀ سره محبت ساتل او د هغه د عدل نه فائده اخستل او د هغه حقوق ادا كول پكار دى. او بتان پريده ځكه چه هغه خو تول مصيبت دے.

او دا آيت د قبر پرستو سره هم لگى چه د قبرونو والو عبادت كوى، يعنى مړے اَبۡكَمُ دے،

د خبرو قدرت نۀ لري او په هیڅ شي باندې قادر نۀ دې تردې چه خپله غسل هم نشي کولې، نۀ ځان ته کفن اچولې شي او نۀ ځان خخولې شي، او مړې بوج وي په خپل کور والو باندې چه کله خښ شي نو خلك په راحت کښې شي، بیا که دا مړې بو حاجت ته متوجه کوې او دعاګانې ترې غواړې نو هیڅ فائده نشي راوړلې. کوم ولي او بزرګ دې چه پس د مرګ نه ئې د چا حاجت پوره کړې وي، مشرکان هسې د وَهم پسې روان دي.

نو آیا دغه قبر والا او یو همیشه ژوندې ذات دواړه برابر دي؟ هیڅکله نۀ. نو ددې وجه نه مشرك لوی ظالم او لوی جاهل او ضعیف الهِمّة دې. مؤمن الله پیژندلې دې، د حاجتونو پوره کولو مرکز ئې پیژندلې دې، همت ئې اُوچت دې. مؤمن کښې طاقت وي ځکه چه طاقتور ذات پسې انختې وي. او مشرك کمزورې دې ځکه چه معبود ئې ضعیف دې.

نو د اول او د دویم مثال ترمینځ فرق دا شو چه په اول مثال کښې د باطل معبود نه نفي د تصرف وه. او په دویم مثال کښې نفي د کلام او د علم او د سمع دې سره د نفي د قدرت نه.

وَ لِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ : دا د اول د سورت (اَتٰى اَمْرُ اللهِ) سره متعلق دې. یعنې قیامت به راځي ځکه چه الله تعالیٰ عالم او طاقت والا دې، د هغۀ طاقت ته وګوره.

نو پدې کښې الله تعالیٰ د خپل کامل علم او قدرت بیان کړیدې. او کله چه یو ذات کښې علم او قدرت وي نو قیامت راوستل هغه ته هیڅ ګران نۀ وي. یا پدې آیتِ کریمه کښې د مکې مشرکانو ته جواب ورکړې شویدې چه هغوی د قیامت د راتلو په باره کښې ډیره جلتي کوله، او په دواړو صورتونو کښې دې خبرې ته اشاره ده چه د مشرکانو دروغجن معبودانو ته د غیبو هیڅ علم نشته او قیامت به کله او څنګه راځي ؟ ددې علم هم ورته نشته. نو هرکله چه الله تعالیٰ علیم او قدیر دې نو بس عبادت هم ددۀ پکار دې، نۀ د جاهل عاجز چه هیڅ قسم علم نۀ لري.

د آیت مطلب دا دې چه په آسمانونو او زمکه کښې چه د بندګانو متعلق څومره خبرې، فیصلې او احکام پټ دي د هغوی ټولو علم صرف الله ته دې. پدې ضمن کښې د قیامت علم هم دې. او کله چه د هغې وخت راشي نو د سترګې په رپ به راځي، یا ددې نه به هم تیزئ سره واقع کیږي، ځکه چه الله په هر شي قادر دې.

اَمْرُ السَّاعَةِ : قیامت د الله په امر راځي نو ځکه ورته امر وائي. یعنې کار د قیامت.

او د ساعة نه مراد هغه وخت دې چه په هغې کښې به ټول خلك د شپیلئ په وهلو سره فناه شي، یا ژوندي مړه کول په اوله شپیلئ سره او مړي راژوندي کول په دویمه شپیلئ

سره، او د ټولو کائناتو شکلونه بدلول۔
كَلَمۡحِ الۡبَصَرِ : (رپ د سترګې)۔ دا کنایه ده د سرعت او سهولت نه۔ یعنی په جلتئ او په آسانئ سره راځي۔
وَاللّٰهُ أَخۡرَجَكُمۡ : دا بل دلیل عقلي دے او پدے کښې ذکر د انعام دے په پیدائش د انسان او د هغه درے قوتونه ئے ذکر کړیدي چه هغه درے واړه اسباب د علم او د شکر دي۔ او دا امتنان الله تعالیٰ په څلورو سورتونو کښې ذکر کړیدے، دلته، بیا په سورة المؤمنون، بیا سورة الم السجده بیا ئے په سورة الملك کښې راوړیدے او ځای په ځای ئے یره ورکړیده چه څوك ددے څیزونو نه فائده نۀ اخلي الله به ئے ترے واخلي۔
غوږ، سترګه او زړه د علم اسباب دي او انسان پدے سره ژوندے کیږي، که غوږ نۀ وی نو انسان د هیڅ نه خبر نۀ وي او که سترګه ئے نۀ وه نو نیم مړ وی او که زړه او عقل ئے نۀ وی نو انسان به ختم وي یا به لیونے وی۔
وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمۡعَ : واو د جمع دپاره دے د ترتیب دپاره نۀ دے، او د پیدائش نه روستو ئے دا څیزونه ذکر کړل ځکه چه ددے څیزونو نه فائده اخستل دنیا ته د راتللو نه پس کیږي۔ د مور په خیټه کښې دا طاقتونه کار نکوی۔
لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ : یعنی الله تعالیٰ د ورکوالي نه واخله تر بودا والي پورے دا قوتونه زیاتوی دے دپاره چه تاسو دا نعمتونه راياد کړئ او د الله شکر ادا کړئ، د هغه د وحدانیت اقرار وکړئ، او د هغۀ عبادت وکړئ، ځکه چه الله تعالیٰ تاسو ته دا نعمتونه دے دپاره درکړیدي چه ددے په مدد سره د الله مخے ته په ټول ژوند کښې تابع شئ۔

| أَلَمۡ يَرَوۡا إِلَى الطَّيۡرِ مُسَخَّرَاتٍ فِيۡ جَوِّ السَّمَآءِ |
|---|
| آیا نۀ ګوري دوی مارغانو ته چه تابع کړے شویدي په فضا د آسمان کښې، |
| مَا يُمۡسِكُهُنَّ إِلَّا اللّٰهُ إِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَآيَاتٍ |
| بند نۀ ساتي دوی لره (د پریوتو نه) مګر الله تعالیٰ یقیناً په دے کښې خامخا نخے دی |
| لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿٧٩﴾ وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمۡ مِّنۡ بُيُوۡتِكُمۡ |
| دپاره د هغه قوم چه ایمان لري۔ او الله تعالیٰ پیدا کړیدي تاسو لره د کوټو ستاسو نه |

سَكَنًا وَجَعَلَ لَكُم مِّن جُلُودِ الْأَنْعَامِ بُيُوتًا

ځائے د آرم او ګرځولی ئے دی تاسو لره د څرمنو د چارپیانو نه کوټے

تَسْتَخِفُّونَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ

چه سپک ګڼرئ تاسو هغے لره په ورځ د سفر ستاسو کښں او په ورځ د ديره کيدو ستاسو

وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَا

او د وړئ د هغے نه (د ګډو نه) او د پشمونو د هغے نه (د اُوښانو نه) او د ويښتو د هغے

أَثَاثًا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴿٨٠﴾ وَاللَّهُ جَعَلَ

نه (د بزو نه) سامان د کور او د فائدے څيزونه تر يو وخته پورے۔ او الله ګرځولی دی

لَكُم مِّمَّا خَلَقَ ظِلَالًا وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْجِبَالِ

تاسو لره د هغے نه چه پيدا کړی ئے دی سوری او ګرځولی ئے دی تاسو لره د غرونو نه

أَكْنَانًا وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ

ځايونه د پټيدو (غارونه، سورنګان) او ګرځولی ئے دی تاسو لره قميصونه

تَقِيكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيلَ تَقِيكُم بَأْسَكُمْ

چه ساتی تاسو لره د ګرمئ نه او نور قميصونه چه ساتی تاسو د جنګ ستاسو نه

كَذَٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ

(يعني زغرے) دغسے پوره کوی الله تعالیٰ نعمت خپل په تاسو دے دپاره چه تاسو

تُسْلِمُونَ ﴿٨١﴾ فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٨٢﴾

د الله حکمونه ومنئ۔ نو که واوړيدل دوی نو يقيناً په تا باندے رسول دی ښکاره۔

يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللَّهِ ثُمَّ يُنكِرُونَهَا وَأَكْثَرُهُمُ الْكَافِرُونَ ﴿٨٣﴾

پيژنی دوی نعمتونه د الله تعالیٰ بيا انکار کوی د هغے نه او زيات د دوی نه کفر کوی۔

**تفسير** : د الله تعالیٰ د عظيم قدرت يو بل دليل د مارغانو پيدائش هم دے، او دا نعمت هم دے، چه په فضاء کښں بغير د کوم مادی مدد نه په اطمينان سره خلورو طرفونو ته

الوزی. دا صرف یو د الله ذات دے چه په دے کښې ئے دا قدرت ایخودے دے او هغه ئے په فضاء کښې بند ساتی. د مارغانو دپاره د هغوی د کارونو لائق وزرے ورکول او هغوی ته د هغے کولاوول او بندول ورخودل لکه څوك چه په اُوبو کښې لامبو وهی او د فضاء او هواء پدے طریقه تابع کولو کښې یقیناً د ایمان والو دپاره ډیرے نخے دی، دپاره د توحید د الله تعالیٰ او د هغهٔ د قدرت او د هغهٔ د علم، چه پدے کښې سوچ او فکر کولو سره دوی د خپل خالق د عظمت اقرار کوی او صرف د هغهٔ عبادت کوی.

**حکمة** : داسے آیت سورة الملك (۱۹) کښې هم راغلے دے چه په هغے ﴿مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمٰنُ﴾ لفظ ذکر دے څکه چه هلته مسئله د برکت ورکولو ده نو رحمٰن صفت ورسره مناسب دے او دلته مسئله د توحید او اُلوهیت شروع ده نو دلته (إِلَّا اللهُ) لفظ مناسب دے چه دا کارونه چه چا کړیدی هغه معبود دے، بندګی صرف د هغه پکار ده، او شریکان ورسره جوړول نهٔ دی پکار.

**وَاللهُ جَعَلَ لَكُمْ** : دلته نه هغه نعمتونه ذکر کیږی چه الله تعالیٰ انسان ته ورکړیدی دے دپاره چه پدے کښې سوچ او فکر کولو سره د هغه د وحدانیت اقرار وکړی. الله تعالیٰ انسانانو ته د کانړو، وینښتو او نورو څیزونو په ذریعه جوړ شوی کورونه ورکړی، دے دپاره چه پدے کښې سکون او راحت حاصل کړی. دا د الله نعمت دے.

که الله غوختلے نو دوی به ئے د آسمانی ستورو په شان هر وخت په حرکت کولو یا د زمکے په شان ساکن او بے حرکته ګرزولی وے. او دا څومره لوی نعمت دے چه که یو انسان همیشه بهر وے نو د خلکو د آوازونو او ګډون نه به پریشانه وے، خو کوټے ته ننوزی سکون ورته حاصل شی.

**وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ الْأَنْعَامِ** : د هغه چارپیانو د څرمنے نه جوړ شوی کورونه ئے درکړیدی چه هغه تاسو په سفر او حضر کښې څان سره ګرځوئ، یعنی خیمے. د خختو او ختهو نه کوټه جوړولو کښې وخت لګی او خرچه کیږی او په سفر کښې ورته د انسان ډیر وخت دپاره ضرورت نهٔ وی نو الله تعالیٰ خیمے ورکړے.

**وَمِنْ أَصْوَافِهَا** : او د هغه چارپیانو د وینښتو او د هغے نه جوړ شوی سامان او بسترے او قالینونه او کمبلے وغیره ئے ورکړی چه د هغے نه خلق تر یوے مودے پورے فائدے اخلی.

أَصْوَاف جمع د صوف ده د ګډانو وړیٔ او أَوْبَار جمع د وَبَرٌ ده د اُوښانو وینښته، او اشعار جمع د شعر ده د چیلو وینښته.

إِلَىٰ حِينٍ: یعنی تر هغه وخت پورے چه تاسو ترے حاجتونه پوره کړئ۔ یا تردے چه زاړهٔ شی او ختم شی۔ یا تر مرګه پورے۔ یا تر قیامته پورے۔

وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّمَّا خَلَقَ : دغه شان الله تعالیٰ د سوری حاصلولو نور ډیر ذرائع پیدا کړیدی دے دپاره چه که چا سره څه خیمه او کور نهٔ وی، یا په حالت د سفر کښې وی نو هغه ذرائع استعمال کړی لکه ونه، دیوال یا چترئ سره سورے حاصل کړی۔

وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْجِبَالِ : او الله تعالی په غرونو کښې غارونه جوړ کړی چه هغه انسان په ډیرو موقعو کښې د انتهائی مفیدو اغراضو دپاره استعمالوی مثلا سفر کونکے انسان کله پدے کښې د خپل دشمن، باران، د یخنئ او ګرمئ نه پناه اخلی۔

پدے زمانه کښې په غرونو کښې سُرنګان ویستلو سره د فوج او هوائی جهازونو او وسلو دپاره محفوظ ځایونه جوړیږی۔

اكنان جمع د كِنٌّ ده، د پټیدو ځایونه د باران او د یخنئ او ګرمئ نه۔ دلته ترے مراد غارونه او سُرنګان دی۔

وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ : دغه شان الله تعالیٰ د وړئ، مالوچو او کتان وغیره نه جوړ شوے لباس تیار کړیدے دے دپاره چه ددے په ذریعه د یخنئ او ګرمئ نه بچ شئ، او د وسپنے نه جوړے شوے زغرے، خُود او بکتر بند او پروف ګاړی او د وسپنے نور آلات او سامانونه ئے درکړی دی، دے دپاره انسان دا په جنګ کښې استعمالولو سره د تورو، نیزو، توپونو، راکټونو او میزائلو نه خپل ځان بچ کړئ۔ الله تعالیٰ دا تمام نعمتونه او ددے په شان نور ډیر داسے دینی او دنیاوی نعمتونه انسانانو ته ورکړیدی چه په هغے کښې انسان که سوچ وکړی نو دین اسلام به قبول کړی او د الله مخے ته به تسلیم شی۔

سَرَابِيلَ : جمع د سِرْبَالٌ ده قمیص ته وائی او هغه جامے چه د وړئ او مالوچو او کتان وغیره نه جوړے شوی وی۔ زجاج وائی : هر شے چه تهٔ اغوندے هغے ته سربال وائی۔

تَقِيكُمُ الْحَرَّ : دلته یا بل طرف (وَالْقَرَّ) پټ دے۔ (یعنی تاسو ساتی د ګرمئ او یخنئ نه) خو یخنی ئے ورسره ځکه ذکر نکړه چه دا سورت مکی دے او په مکه کښې یخنی دومره نهٔ وی اکثره زمانه ګرمی وی۔ او یو شے انسان ته نعمت نهٔ ښکاری کله چه د هغے زمانه نهٔ وی راغلی نو ځکه ئے د هغوی د حال مطابق صرف ګرمی ذکر کړه۔

یا ئے دا بل جانب پدے وجه نهٔ دے ذکر کړے چه کوم شے د ګرمئ نه ساتل کوی نو په هغے سره فی الجمله په هواء کښې یخوالے هم حاصلیږی نو د ګرمئ نه ساتل د یخنئ د

حاصلولو دپاره کیږي او دا ډیره عجیبه باریکه اشاره ده. یا دا چه د یخنۍ نه د بچاؤ سامان الله تعالیٰ مخکښې په (لَكُمْ فِيهَا دِفْءٌ) کښې ذکر کړیدے نو دلته ئې صرف د ګرمۍ جانب ذکر کړو. (فتح البیان).

نِعْمَتَهُ : ددے نه مراد ټول نعمتونه دی. اضافت د استغراق دپاره دے.

لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ : د نعمت مقابله کښې اسلام راوړل دی، اَیْ لَعَلَّكُمْ تُخْلِصُوْنَ الْوَحْدَانِيَّةَ وَالرُّبُوْبِيَّةَ وَالْعِبَادَةَ وَالطَّاعَةَ لِلّٰهِ . یعنی دے دپاره چه تاسو د الله وحدانیت او ربوبیت او عبادت هغهٔ لره خالص کړئ. لفظي معنیٰ ئې ده : دے دپاره چه تاسو منقاد شئ د حکمونو د الله تعالیٰ.

فَإِنْ تَوَلَّوْا : یعنی که ددے تمامو نعمتونو د شمارلو نه او د حق ددے ښکاره بیانولو نه پس دوی د اسلام نه مخ اړوی نو تا خپله ذمه واري پوره کړه، او اُوس د دوی سره هیڅ عذر باقي پاتې نهٔ دے. الله به ورسره حساب کوی.

يَعْرِفُوْنَ نِعْمَتَ اللّٰهِ : یعنی د مکے مشرکان پو هیږي چه د ذکر شوی ټولو نعمتونو خالق الله دے، لیکن وائی چه مونږ ته زمونږ د معبودانو په سفارشاتو سره ملاؤ شویدی نو نسبت غیر الله ته کوی، او پدے طریقه د دوی نه اکثر خلق د الله د نعمتونو نه انکار کوی او کفر کوی. د بعض مفسرینو رائے ده چه دلته د نعمت نه مراد د نبی کریم ﷺ نبوت دے. د مکے کافران پو هیدل چه نبی ﷺ د الله نبی دے، لیکن د کبر او عناد په وجه ئې انکار کولو. یا د نعمت ناشکری دا ده چه دا نعمتونه د الله تعالیٰ په رضا کښې نهٔ استعمالوی کوم دپاره چه الله تعالیٰ دا نعمتونه ورکړیدی. او د انکار یو صورت غفلت هم دے چه هیڅ نه خبر نهٔ وی چه دا نعمتونه چا راکړل.

وَأَكْثَرُهُمُ الْكَافِرُوْنَ : (۱) ضمیر د اَكْثَرُهُمْ راجع دے عامو انسانانو ته. یعنی پدے طریقه د عامو انسانانو عادت دا دے چه دوی کفر کوی او د الله د نعمتونه انکار کوی لکه څنګه چه د مکے مشرکانو دغه شان انکار وکړو. پدے معنیٰ باندے هیڅ اشکال نشته.

(۲) او که دا ضمیرونه د مکے مشرکانو ته راجع کړے شي، نو اشکال دا دے چه اول کښې وائی نعمت پیژنی بیا تریے انکار کوی نو هر کله چه دوی د نعمتونو نه انکار وکړو نو دوی خو ټول کافران شو نو بیا (اَكْثَرُهُمْ) څنګه ذکر کوی؟.

❁ نو بیا څینی مفسرین وائی چه اکثر په معنیٰ د کل سره دے.

❁ او څینی وائی چه انکار نعمتونو ته راجع دے او کفر معنیٰ دا ده چه په الله تعالیٰ باندے

کفر کوی۔

❁ یا د مکے کفار انکار په ژبه سره کوی او اکثر د دوی نه کفر او انکار په زړه سره کوی۔

❁ یا انکار په ژبه سره کوی او کفر په عمل سره کوی۔

❁ یا اکثر ئے پدے وجه وئیلے دے چه ددے نه عُقَلاء مراد دی نهٔ ماشومان او د هغوی په شان خلك۔

❁ یا د کفر نه مراد کفر الجحود دے او د تولو کفر د جحود نهٔ وو بلکه د بعضو کفر د جهالت او د بعضو په تکذیب د رسول سره وو چه الله تعالیٰ او د هغه ربوبیت ئے منلو۔ (فتح البیان)

❁ ابن عاشورؒ وائی : مشرکانو کښې دوه قسمه خلك وو، مشران۔ نو دوی دا نعمتونه پیژندلی وو او ددے اقرار به ئے هم کولو او د قرآن په دلائلو هم پوهه شوی وو نو په خپل شرکښې دین کښې ئے شك پیدا شوے وو لیکن د مشریٔ او د ریاست د محبت په وجه په شرك باندے همیشه پاتے شو، ددے وجه نه ئے ددے نه په انکار سره تعبیر وکړو کوم چه د اقرار مقابل دے او هر چه ﴿ اَكْثَرُهُمُ الْكٰفِرُوْنَ) جمله ده نو د دوی نه مراد عام مشرکان دی چه دوی اکثر وو چه عقل او سوج به ئے نهٔ کولو، د الله تعالیٰ په نعمتونو نهٔ پوهیدل، غافلان وو، ددے وجه نه ئے ددے نعمت تقاضا نهٔ پوره کوله څکه چه نعمت ددے تقاضا کوی چه انسان د الله یواځے بندگی وکړی نو د دوی شرك ډیر مضبوط وو نو څکه ئے دوی ته (اَلْكٰفِرُوْنَ) وویل۔ (التحریر والتنویر ۱۹۵/۱۳)

| وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا |
|---|
| او په کومه ورځ چه راپورته به کړو مونږ د هر امت نه گواه (بیان کونکے) |
| ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| بیا به اجازه نشی ورکیدے هغه کسانو ته چه کفر ئے کړیدے (د عذر کولو) |
| وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿۸۴﴾ |
| او نهٔ به دوی نه طلب د توبے کیدے شی۔ |

**تفسیر** : اُوس تفصیلی تخویف اُخروی بیانوی۔ د کافرانو او مشرکانو به د قیامت په

ورځ څه حال وي؟ هغه دلته بیانیږي چه په هغه ورځ به الله تعالیٰ د هر قوم نبي د هغوی مخے ته راولي چه د هغوی په حق کښ به یا خو د ایمان او یقین گواهي ورکوي، یا به د هغوی په خلاف د کفر او عناد گواهي ورکوي۔
یا به دا گواهي د نبي په خپل تبلیغ سره وي چه نبي دوی ته تبلیغ کړیدے۔
وَیَوْمَ : اَیْ وَاذْکُرْ یَوْمَ۔ رایاده کړه هغه ورځ۔
لَا یُؤْذَنُ : دلته ئے مَاذُوْن فِیْهِ شے نهٔ دے ذکر کړے دپاره د عموم ۱- لَایُؤْذَنُ لَهُمْ فِی الْاِعْتِذَارِ - (یعني دوی ته به اجازه نهٔ ورکړے کیږي دپاره د عذر پیش کولو۔ ځکه چه دوی سره به څه دلیل او عذر نهٔ وي لکه الله فرمائي : ﴿ وَلَایُؤْذَنُ لَهُمْ فَیَعْتَذِرُوْنَ ﴾ (المرسلات : ۳۶)
(یعني دوی ته به اجازه نهٔ ورکړے کیږي چه عذر پیش کړي)
۲- لَایُؤْذَنُ فِي الرُّجُوْعِ اِلَی الدُّنْیَا) دوی ته به اجازه نهٔ ورکړے کیږي چه دوی دنیا ته واپس کړے شي۔ ۳- لَایُؤْذَنُ لَهُمْ فِی الْکَلَامِ۔ د خبرو اجازه به ورته نهٔ ملاویږي۔
٤- لَایُؤْذَنُ فِي التَّوْبَةِ) د توبے اجازه به ورته نهٔ ملاویږي۔
٥- فِيْ مُعَارَضَةِ الشُّهُوْدِ) دا اجازه به ورته نهٔ ملاویږي چه دوی د گواهانو سره مقابله وکړي، او د هغوی په خلاف خبره وکړي بلکه د هغوی په خبره به اقرار کوي۔ لکه دنیا کښ یو مجرم راگیر کړے شي نو هغه ته وویل شے چه عذر پیش کړه پریدم دے۔ او دے مجرمانو ته به دا موقعه هم نهٔ ورکړے کیږي ځکه چه الله تعالیٰ ته معلومه ده چه د دوی عذر غلط دے نو ځکه ورته اجازه نهٔ ورکوي۔
(ثُمَّ) کلمه ئے راوړه پدے کښ اشاره ده چه دوی د عذر پیش کولو نه منع کول کوم چه په کلي توگه نا امیدیٔ ته اشاره ورکوي دا به په دوی باندے د انبیاو علیهم السلام د شهادت نه هم زیات سخت وي۔
وَلَا هُمْ یُسْتَعْتَبُوْنَ : د مجرم د خلاصولو دویمه طریقه دا وي چه بنه راته معلومه ده چه جرم دے کړیدے خو اُوس مے رضا کړه او توبه راته وباسه۔ نو الله به دوی ته دا خبره هم نهٔ کوي۔
یُسْتَعْتَبُوْنَ : ❁ دا د عتبیٰ نه دے، یعني رجوع کول او توبه کول۔ یعني دوی نه به دا طلب هم نهٔ کیږي چه دوی واپس شي هغه عبادتونو ته چه الله تعالی پرے راضي کیږي۔
❁ یا د عتاب نه دے په معنیٰ د ملامتیا سره او بیا پدے کښ معنیٰ د عتاب زائل کولو ده یعني رضا کول ځکه چه څوك د خپل ځان نه عتاب زائل کړي نو هغه نه مالك راضي

کیږي.

حاصل معنیٰ ئے دہ: وَلَا هُمْ يُسْتَرْضَوْنَ / وَلَا هُمْ يُسْتَتَابُوْنَ.

یعنی د دوی نه به طلب د رضا کولو د الله تعالیٰ نهٔ کیږي، چه د الله ناراضګی د خپل ځان نه لرې کړي./ یا: نهٔ به دوی نه طلب د توبې کیدې شي.

| |
|---|
| وَإِذَا رَأَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ |
| او کله چه اُووینی هغه کسان چه ظلم ئے کړیدے عذاب لره نو نهٔ به شي سپك کیدے |
| عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿٨٥﴾ وَإِذَا رَأَى الَّذِيْنَ أَشْرَكُوْا شُرَكَاءَ هُمْ |
| د دوی نه او نهٔ به دوی ته مهلت ورکیدے شي. او کله چه وینی مشرکان خپل معبودان |
| قَالُوْا رَبَّنَا هٰؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِيْنَ كُنَّا نَدْعُوْ مِنْ دُوْنِكَ |
| وائي به اے ربه زمونږ! دا معبودان زمونږ دي هغه کسان چه مونږ به رابلل سوا ستا نه |
| فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ إِنَّكُمْ لَكَاذِبُوْنَ ﴿٨٦﴾ وَأَلْقَوْا |
| نو هغوی به ګوزار کړي دوی ته خبره چه بیشکه تاسو دروغجن یئ. او وابه چوی دوی |
| إِلَى اللهِ يَوْمَئِذِ السَّلَمَ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا |
| الله ته په دغه ورځ د صلحې خبرے (غاړه کیخودل) او ورك به شي د دوی نه هغه دروغ |
| كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿٨٧﴾ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللهِ |
| چه دوی به جوړول. هغه کسان چه کفر ئے کړیدے او منع کوی (خلق) د لارے د الله نه، |
| زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا يُفْسِدُوْنَ ﴿٨٨﴾ |
| زیات به کړو مونږ دوی لره عذاب دپاسه د عذاب نه په دے وجه چه دوی فسادونه کول. |

**تفسیر**: اُوس دا بیانوی چه دغه ظالمان څوك دي؟ نو دغه لوی ظالمان مشرکان دي.

یعنی کله چه مشرکان د جهنم عذاب په خپلو سترګو ووینی نو دوی به ډیر ارمانونه کوی چه څنګه دا عذاب د دوی نه واړولے شي لیکن اوریدل خو لرے خبره ده په هغے کښ به کمے هم نهٔ کیږي او نهٔ به دوی ته د توبے مهلت ورکولے شي.

وَإِذَا رَأَى الَّذِيْنَ أَشْرَكُوْا: سوال پیدا شو چه مشرکانو خو معبودان نیولی دی هغه به

ئې خلاص کړي ؟ نو جواب کوي. یعنی کله چه مشرکانِ خپل معبُودان ووینې کوم چه به دوی په دنیا کښې د الله شریکان جوړول

(او د بخاري او مسلم متفق علیه حدیث دے چه د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ د مشرکانو سره د هغوی بتان هم راژوندي کړي او مشرکانو ته به ونیلے کیږي چه هر شخص دے د خپل معبود پسے روان شي لِيَتَّبِعْ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ (بخاری: ٤٥٨١) ومسلم: ٤٧٢)

نو دوی به آوازونه وکړي چه اے زمونږ ربه ! دا هغه معبودان دي چه مونږ به ستا نه سوئ د دوی عبادت کولو. او دوی ته به مو آوازونه کول او رامدد شه به مو وئیله. او مقصد ئې پدے اقرار کښې دا دے چه مونږ نه ورانے او زیاتے شویدے، مونږ معاف کړه.

ابو مسلم اصفهانی وائی چه مشرکان به دا خبره پدے امید سره وائي چه کیدے شي پدے طریقه د دوی نه عذاب روستو شي. یا کم نه کم سپك شي.

**فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ** : یعنی الله تعالیٰ به د مشرکانو د ذلیله کولو او رسوا کولو دپاره په هغه ورځ بتانو ته ژبه ورکړي چه د دوی تکذیب به کوي او وائي به چه مونږ خو تاسو ته نۀ وو وئیلي چه زمونږ عبادت وکړئ. لکه الله تعالیٰ په سورة الاحقاف آیت (٦) کښې فرمایلي دي :﴿ وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ ○﴾

چه (په کومه ورځ خلق په میدان محشر کښې جمع وي نو بتان به د دوی دشمنان جوړیږي او د دوی د عبادت نه به انکار کوي).

**وَأَلْقَوْا**: یعنی راپیش به کړي او د خبرے گوزار به پرے وکړي.

**إِنَّكُمْ لَكَاذِبُونَ** : یعنی تاسو زمونږ عبادت نۀ دے کړے. سوال دا دے چه مشرکانو خو رشتیا وئیلي وو چه مونږ دا معبودان د الله سره شریك کړیدي نو خپل معبودان ورته څنگه وائي چه تاسو دروغجن يئ؟

نو ددے جواب په سورة یونس آیت (٢٨/٢٩) کښې ذکر شویدے ﴿ فَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَافِلِينَ﴾ یعنی الله گواه دے چه مونږ ستاسو د عبادت نه غافل وو)

٢- لَكَاذِبُونَ فِي تَسْمِيَتِنَا آلِهَةً وَشُرَكَاءَ اللَّهِ.

یعنی تاسو پدے کښې دروغجن يئ چه مونږ ته آلهه (معبودان) وایئ، د الله تعالیٰ نه سوئ بل إله هیڅوك نشي کیدے، د هغه سره شریکان نشي کیدے.

٣- لَكَاذِبُونَ وَمَا دَعَوْنَاكُمْ إِلَىٰ عِبَادَتِنَا بَلْ عَبَدْتُمْ أَهْوَاءَكُمْ.

یعنی تاسو دروغجن يئ ځکه چه مونږ تاسو ته د خپل عبادت دعوت نۀ دے درکړے

بلکه تاسو د خپل خواهش عبادت کړیدے.

وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ : يعني هر کله چه دا مشرکان پرهٔ شول. الله تعالیٰ ته هم ملامته او خپلو معبودانو ته هم خر ستر کی شو، نو دے وخت کښې به مشرکان د الله د عذاب مخے ته تسلیمی ګوزار کړی او د عاجزیٔ او انکساریٔ مجسمه به جوړ شی. او په دنیا کښې ئے چه کوم د الله شریکان جوړول هغوی تولو نه به د یو یو نه جدا کیږی. لیکن دا بیزاری او عاجزی د قیامت په ورځ په کار نهٔ راځی دا په دنیا کښې خوند کوی.

السلم نه مراد انقیاد او خضوع او تابعداری ده.

وَضَلَّ عَنْهُمْ : هغه باطل دلیلونه چه دوی به په دنیا کښې بیانول تول به ترے هیر شی. یا ورك به شی د دوی نه شفاعت د معبودانو د دوی، او دغه معبودان به ترے غائب شی.

الَّذِينَ كَفَرُوا : پدے آیت کښې تخویف اُخروی دے هغه کافرانو ته چه نور خلك ګمراه کوی. او مخکښې د عامو مشرکانو حال وو. یعنی کوم خلق چه پدے دنیا کښې د کفر لاره اختیاروی او نور خلق هم د حق د لارے نه منع کوی نو الله تعالیٰ به دوی ته د قیامت په ورځ دوه ځله عذاب ورکوی یو خو د دوی د کفر په وجه، او دویم پدے وجه چه دوی د الله بندګان ګمراه کړی وو. په سورة الانعام آیت (۲۶) کښې الله تعالیٰ فرمائیلی دی : ﴿ وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْأَوْنَ عَنْهُ ﴾ او دوی دده نه نور خلق هم بندوی او خپله هم د هغه نه وړاندے کیږی).

دا آیت دلیل دے چه په جهنم کښې به د کافرانو د عذاب درجات وی لکه څنګه چه په جنت کښې د مؤمنانو درجات او مقامات وی.

زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ : ۱- یو په شرك او کفر باندے جهنم او بل په صد عن سبیل الله باندے ماران او لړمانان دی چه د بُختی اُوښانو او قچرو په شان به وی او دوی له به تك ورکوی چه څلویښتو کالو پورے به دغه زهر د دوی په بدن کښې وی او د هغے دردونه به مونده کوی. (سعید بن جبیرؒ)

عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی : لړمانان به وی په جهنم کښې چه د هغوی به د اُوږدو کجورو ونو په شان داړے وی.

(ابن ابی حاتم، الطبرانی، الحاکم وصححه والبیهقی فی البعث والنشور- الدر المنثور)

وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِمْ

او په کومه ورځ چه راپورته به کړو مونږ په هر امت کښې ګواه (بیان کونکے) په دوی باندے

مِنۡ اَنۡفُسِهِمۡ وَجِئۡنَا بِكَ شَهِيۡدًا عَلٰى هٰۤؤُلَاۤءِ ؕ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ

د نفسونو د دوی نه او رابه ولو تا گواه په دوی باندے او نازل کړیدے مونږ په تا باندے

الۡكِتٰبَ تِبۡيَانًا لِّكُلِّ شَىۡءٍ وَّهُدًى وَّرَحۡمَةً وَّبُشۡرٰى لِلۡمُسۡلِمِيۡنَ ﴿۸۹﴾

کتاب وضاحت کونکے د هر شي او هدایت او رحمت دے او زیرے دے دپاره د منونکو۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې تخویف اُخروی دے په ذکر کولو د گواهۍ د انبیاء علیهم السلام او د حق پرستو علماؤ په هر امت باندے۔ او دا گواهي به په تبلیغ او دعوت د حق باندے وی۔ او مخکښې (۸٤) آیت کښې هم گواهي ذکر شوه ﷺ نو یا خو پدے کښې زیات تاکید او دهمکی ده چه بندگانو باندے به گواهان پیش کیږی، د دوی په شکر او ناشکرئ باندے او بیا به ورسره حساب کیږی۔ ﷺ څینی وائی: مخکښې گواهي د اندامونو نه وه او دلته عامه ده۔ ﷺ یا هلته صرف د انبیاء علیهم السلامٗ گواهي ده په خپلو قومونو او دلته د انبیاء علیهم السلام او حق پرستو علماؤ گواهي ده نو دا ذکر د عام دے پس د خاص نه۔ ددے وجه نه ئے ورسره د رسول الله ﷺ تذکره هم کړیده چه دا به په موجوده امت باندے گواه وی۔

او پدے جمله کښې ئے ورسره (مِنۡ اَنۡفُسِهِمۡ) لفظ زیات کړو پدے کښې زیات تذکیر او عبرت دے امتونو ته چه رسولان چه په امتونو گواهي ورکوی نو امتونه به په هغے باندے هیڅ اعتراض نهٔ لری څکه چه دا رسولان د دوی د قوم خلك وو او د دوی احوال ئے لیدل نو پدے کښې د دوی عذر ختم دے او په دوی باندے حجت پوره شویدے۔ (ابن عاشورؒ وفتح البیان)

او ددے شهادت تذکره په سورة البقره (۱٤۳) او سورة النساء (٤۱) آیت کښې تفصیلًا ذکر شویده هغے ته رجوع کول به بنهٔ وی۔

**هٰۤؤُلَاۤءِ**: ددے نه مراد موجوده مشرکان دی چه د هغوی په باره کښې دا خبرے اترے روانی دی۔ اگرکه گواهي د رسول الله ﷺ په ټول امت باندے ده، لیکن بحث د هغوی سره شروع دے۔ او رسول الله ﷺ فرمائی: چه زهٔ به داسے گواهي ورکوم لکه څنګه چه عیسیٰ علیه السلام وئیلی وو: چه زهٔ په دوی باندے گواه وم ترڅو چه زهٔ په دوی کښې موجود وم او هرکله چه تا زهٔ وفات کړم نو ته د هغوی په حال باندے عالِم وے۔

**وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ الۡكِتٰبَ تِبۡيَانًا لِّكُلِّ شَىۡءٍ**: ربط ددے جملے د مخکښې سره (۱) یو دا دے چه مخکښې د قیامت د ورځے حال بیان شو نو اُوس وائی چه د هغه ورځے د عذابونو نه د

بچ کیدو دپاره ذریعه دا قرآن دے چه ځلور صفاته لري. (احسن الکلام).

(۲) ابن عاشورؒ وائي : دا جمله عطف ده په (وَجِئْنَا بِكَ شَهِيْدًا) باندے، او مطلب دا دے چه مونږ ته په مشرکانو باندے گواه رالیږلے ئے او دا کتاب مو په تا باندے ددے دپاره نازل کړے چه مسلمانان ددے نه فائده واخلي نو رسول الله ﷺ په مکذبینو باندے گواه دے، او د مؤمنانو دپاره مُرشِد (لار خودونکے) دے.

(۳) یا دا جمله مستأنفه ده، جواب د سوال دے چه رسول الله ﷺ خو په ټول امت کښې خپله نهٔ دے گرځیدلے چه هغوی ته ئے دین بیان کړے وي نو هغه به په نور امت څنګه گواه جوړ شي؟ نو الله فرمائي چه دا قرآن مونږ وضاحت د هر شي دپاره رالیږلے دے نو چا ته چه دا قرآن ورسیدو نو رسول الله ﷺ هغه ته بیان وکړو، نو څکه به پرے گواهي کوي چه ما دوی ته دین رسولے دے. لکه سورة الانعام آیت (۱۹) کښې ذکر شویدي : ﴿لِأُنْذِرَكُمْ بِهِ وَمَنْ بَلَغَ﴾ (زهٔ تاسو پدے قرآن یروم او هر هغه څوك هم چه دا قرآن ورته ورسیدو)

(٤) په کافرانو چه گواه پیش شي نو د هغوی به هیڅ حجت او عذر پاتے نهٔ شي څکه چه مونږ په تا باندے قرآن نازل کړیدے چه پدے کښې هره خبره ښکاره بیان شویده.

(الرازیؒ - القاسميؒ)

(٥) ابن کثیرؒ وائي : مقصد دا دے چه کوم ذات په تا باندے د قرآن کریم تبلیغ فرض کړیدے کوم چه ئے تا ته نازل کړیدے نو هغه به تا نه د قیامت په ورځ ددے په باره کښې تپوس کوي لکه الله تعالیٰ فرمائي : ﴿فَلَنَسْأَلَنَّ الَّذِيْنَ أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ وَلَنَسْأَلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ﴾

یعني خامخا د قومونو نه به تپوس کوو او د پیغمبرانو نه هم.) (اعراف : ٦)

❁ ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِيْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ قسم دے ستا په رب چه خامخا به د دوی ټولو نه د دوی د عملونو په باره کښې پوښتنه کوم).(الحجر :۹۲/۹۳)

حافظ ابن کثیرؒ وائي : دا غوره وجه ده. (تفسیر ابن کثیرؒ)

ابن عاشورؒ وائي چه ددے نه روستو نعمتونه په مؤمنانو باندے شمارلے کیږي چه د هغوی رهنمائي کوي، او د دوی دپاره په طاعت باندے بدلے بیانوي او ددے کتاب برکات بیانوي. (التحریر)

تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ: تبیان د مصدر صیغه ده. یعني زیات بیانونکے. زیادت د حروفو دلالت کوي په زیادت د معنیٰ.

## قرآن څنګه تبيان د هر شي دے؟

نو دے کښې دوه تفسيره دي: ۱- كُلِّ شَيْءٍ مِنْ أُمُوْرِ الضَّرُوْرَةِ الَّتِيْ يَحْتَاجُهَا الْمُكَلَّفُ) يعنې مکلف بنده چه څه ته محتاج دے هغه ټول ضروري امور پکښې ذکر دي، لکه ايمان، عمل، حلال او حرام او نکاح او طلاق ته. او دا عموم دے چه مراد ترے خصوص وي او د کل نه مراد کل عرفي ده. لکه ﴿وَأُوتِيَتْ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ﴾. (بغويّ)

۲- دويم که يواځے د مُکلف اُمور ترے وانخلے او عموم پکښې واخستے شي لکه څنګه چه د سورة الانعام په آيت (۳۸) کښې دي: ﴿مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ﴾ مونږ په دے کتاب کښې هيڅ شي په باره کښې کوتاهي نۀ ده کړے).

او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: [أُنْـزِلَ فِيْ هٰـذَا الْقُرْآنِ كُلُّ عِلْمٍ وَكُلُّ شَيْءٍ بُيِّنَ لَنَا فِي الْقُرْآنِ ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ] (الطبری). په قرآن کريم کښې هر علم او هر شے بيان شويدے.

د هغۀ په يو بل روايت کښې دي: [قَالَ: تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَلٰكِنْ عِلْمُنَا يَقْصُرُ عَمَّا بُيِّنَ لَنَا فِي الْقُرْآنِ]. په قرآن کريم کښې بيان د هر شي دے ليکن زمونږ علم کوتاه دے د هغه څيز نه چه په قرآن کښې مونږ ته بيان شويدي).

نو که عموم واخستے شي بيا هم صحيح ده او هغه په دوه طريقو يو اجمالاً طريقے سره

(۱) لکه يو د خالق او مخلوق ذکر پکښې موجود دے، آسمان او زمکه، دنيا او آخرت، جنت او جهنم، سړے او ښځه، حيوان او جماد، نيکي او بدي، ايمان او کفر او داسے نور واخله نو عالَم کښې چه څه دي د هغے ټولو ذکر پکښې شته.

او په هغے کښې به بيا د څه نه عبرت اخستل دي او څه نه خوند اخستل دي، او څه خوړل او څه څکل دي. او په څه باندے عمل کول دي او څه نه ځان ساتل دي.

(۲) دويم: قرآن کريم کښې هر شے بيان شويدے خو په بيان د رسول الله ﷺ لکه امام اوزاعیؒ فرمائي: ﴿تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ﴾ أَيْ بِالسُّنَّةِ. (ابن ابی حاتمؒ وابن کثيرؒ) يعنې په قرآن کښې په سنت سره بيان د هر شي شويدے. نو دا جواب دے منکرينو د حديثو ته چه هغوی وائي احاديثو ته ضرورت نشته ځکه چه قرآن کښې د هر شي بيان موجود دے.

جواب دا دے چه قرآن بيان د هر شي کړيدے خو چه د رسول الله ﷺ بيان او تشريح ورسره واخلے. لکه (لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ) کښې ذکر شو. لکه ددے مثال داسے دے چه قرآن کښې د مانځه حکم شته خو امي سړے پرے نۀ پوهيږي نو عالم به ئے ورته بيان کړي

نو هغه دپاره قرآن بیانونکے شو خو په بیان د عالِم سره او بیا علماء د قرآن نه احکام نشی راوستے مګر په بیان د رسول الله ﷺ نو ددے وجه نه د رسول الله ﷺ عام احادیث د قرآن کریم نه ماخوذ دی۔

امام شافعیؒ فرمائی : [وَمَا حَكَمَ بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فَهُوَ مِمَّا فَهِمَهُ مِنَ الْقُرْآنِ] رسول الله ﷺ چه کوم فیصلے کړیدی او کوم حکمونه ئے امت ته بیان کړیدی نو دائے د قرآن کریم نه فهم کړیدی)۔ نو قرآن بیان کونکے د هر شی دے خکه چه پدے کښ ډیر احکام خپله بیان شویدی او په باقی احکامو کښ ئے حواله په سنت د رسول الله ﷺ باندے ورکړیده او د رسول الله ﷺ په اتباع باندے ئے حکم کړیدے په هغه احکامو کښ چه رسول الله ﷺ امت ته راوړیدی لکه په نورو قرآنی آیتونو کښ راغلی دی۔

او د رسول الله ﷺ نه په صحیح حدیث کښ ثابت دی چه [اَلَا اِنِّیْ اُوْتِیْتُ الْقُرْآنَ وَمِثْلَهٗ مَعَهٗ] ما ته قرآن کریم او ددے سره ددے په شان بل شے راکړے شویدے (یعنی احادیث نبویه (مسند احمد : ۱۷۳۱۳/ ٤/ ۱۳۰) وابوداود (٤٦٠٤) والترمذی (٢٦٦٤) و سنده صحیح)

او ابن عاشورؒ لیکی : (كُلِّ شَيْءٍ) کښ عموم عرفی دے چه عرف کښ دینونه او شریعتونه د کوم مقاصدو دپاره راخی، هغه ټول په قرآن کریم کښ موجود دی چه اصلاح د نفوسو، تکمیل د اخلاقو، او مجتمع مدنی (سوسائټی) برابرول، حقوق بیانول، د الله په وحدانیت باندے دلیلونه پیش کول، د رسول الله ﷺ رشتینوالے بیانول، او ددے په مینځ کښ چه کوم حقائق علمیه او دقائق کونیه راخی، د امتونو حالات، د هغوی د کامیابئ او ناکامئ اسباب، د هغوی د آثارو نه په تاریخی شواهدو سره نصیحت اخستل، او د دوی په مینځ کښ چه د دوی کوم قوانین او حضارات او صنائع دی۔

او پدے ټولو کښ اسرار او نکتے دی چه هغه اصول د علومو او معارفو دی چه هغه ددے قابل دی چه که په هغے کښ تفصیل وکړے شی نو د هر شی دپاره بیان ګرځی په طریقه د عموم حقیقی سره، او بیا چه په هغے کښ د رسول الله ﷺ د تشریح نه رنړا واخستے شی، او د هغه نه روستو د هغهٔ په تابعداریٔ کښ د صحابه کرامو او د هغهٔ د امت علماؤ نه۔

بیا پدے کښ هغه خیزونه ذکر دی چه ترغیب او ترهیب ته راواپس کیږی یعنی فرمانبردارو له الله تعالیٰ څه تیار کړیدی او نافرمانو او اعراض کونکو له ئے څه، او عالم الغیب او د آخرت زندګی ئے بیان کړیده نو پدے ټولو کښ د هر شی بیان دے نو خبره د عموم عرفی نه عموم حقیقی ته نقل کړیدی په طریقه ضمنی او لوازمو سره۔ او دا ډیر

بدیع اعجاز دے۔ (التحریر والتنویر۲۰۴/۱۳)

وَهُدًى وَّرَحْمَةً وَّبُشْرٰى : دا درے څیزونه ئے خاص ذکر کړل ځکه چه دا ډیر اهم دی، په هدایت کښې اشاره ده د عقیدو برابرولو، او ذهنو سازولو ته، او د ګمراهئ نه خلاصولو ته۔ او په رحمة کښې سعادت د دنیا او د آخرت ته۔ او بشرىٰ کښې اشاره ده هغه ښائسته وعدے ته چه دنیا او آخرت پرے ښۀ کیږی۔ (ابن عاشورؒ)

یا درے واړه خاص دی د مؤمنانو پورے ځکه چه د قرآن نه فائده اخستونکی همدوی دی۔ (فتح البیان)

لِلْمُسْلِمِيْنَ : اسلام ئے ذکر کړو اشاره ده چه دا احکام او دا نعمتونه د منلو دپاره راغلی دی چه بنده دے ته غاړه کیږدی۔ او سورة البقره کښې ئے (وَبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ) وئیلی او دلته مسلمین۔ وجه دا ده چه هلته موضوع د ایمان ده او دلته انعامات ذکر دی او د انعام په مقابله کښې انقیاد ذکر کیږی چه دا د اسلام معنیٰ ده۔ لکه تفصیل ئے ابتداء د سورت کښې وشو۔

| إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيْتَاءِ |
| --- |
| یقیناً الله تعالیٰ حکم کوی په انصاف سره او په احسان کولو سره او په ورکولو (د حقونو) |
| ذِي الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ |
| خپلوانو ته او منع کوی د بے حیایئ نه او د ناروا کارونو نه او د ظلم نه، |
| يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿۹۰﴾ |
| نصیحت کوی تاسو ته دے دپاره چه تاسو نصیحت واخلئ۔ |

**تفسیر** : مخکښې آیت کښې ووئیل شو چه الله تعالیٰ قرآن کریم نازل کړے چه په دے کښې هره خبره ښکاره بیان شویده نو اوس خلاصه د دغه (كُلِّ شَيْءٍ) راوړی، یعنی په دے کښې د اسلام مطابق د ژوند تیرولو دپاره هر ضروری او بنیادی خبره بیان شویده۔ یو آیت دے خو عام دین ئے راګیر کړیدے۔

او ربط ئے د مخکښې (وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ) سره دے چه امر په عدل باندے الله تعالیٰ کوی۔ نو دا د هغے بیان دے۔ او دا مقدمه ده د یوے خبرے او قانون دپاره چه روستو ذکر کیږی۔

## د آیت فضائل

عبد الله بن عباس ؓ فرمائی : [اَجْمَعُ آيَةٍ فِی الْقُرْآنِ لِمَكَارِمِ الْاَخْلَاقِ (وَفِیْ رِوَایَةٍ : لِلْخَیْرِ وَالشَّرِّ] دا آیت په قرآن کریم کښې ډیر جامع آیت دے چه نیك اخلاق- یا خیر او شرئے راجمع کړیدے)- او همدا خبره د عبد الله بن مسعود ؓ نه حاکمؒ په مستدرك رقم (۳۳۵۸) کښې نقل کړیده باسناد صحیح-

❁ پدے وجه عمر بن عبد العزیزؒ به خپلو والیانو ته ویل چه تاسو د جمعے په خطبه کښې دا آیت وایئ دے دپاره چه خلکو ته د ټول دین دعوت په یو ځل کیږی-

❁ عکرمةؒ وائی : نبی کریم ﷺ دا آیت په ولید بن مغیره باندے ولوستو نو هغه وویل : [یَا ابْنَ اَخِیْ اَعِدْ عَلَیَّ] اے وراره ! دا ما ته دوباره ولوله- نو نبی کریم ﷺ بیا ولوستلو، نو ولید وویل : [اِنَّ لَهُ لَحَلَاوَةً وَاِنَّ عَلَیْهِ لَطَلَاوَةً وَاِنَّ اَعْلَاهُ لَمُثْمِرٌ، وَاِنَّ اَسْفَلَهُ لَمُغْدِقٌ، وَمَا هُوَ بِقَوْلِ الْبَشَرِ] - (البیهقی فی الشعب والحاکم فی المستدرك وصححه ووافقه الذهبی وقال الالبانی فی صحیح السیرة النبویة ص (۱۵۷) وهو کما قالا)-

دا خو ډیر خوندور کتاب دے او پدے باندے خو چمك دے او ددے په ظاهر کښې هم میوه ده، او ددے په جرړو کښې (معنیٰ کښې ئے) ګڼ پرانه دی (یعنی لفظ او معنیٰ دواړو کښې ئے کمال دے) او دا خو د انسان خبره نه ده- (لیکن بیا ئے هم ایمان رانه وړو)

❁ عبد الملك بن عمیرؒ وائی : هرکله چه دا آیت اکثم بن صیفی چه دا د عربو حکیم وو ورسیدو نو هغه وویل : [اِنِّیْ اَرَاهُ یَأْمُرُ بِمَكَارِمِ الْاَخْلَاقِ وَیَنْهٰی عَنْ مَلَائِمِهَا] - زه محمد وینم چه په نیکو اخلاقو حکم کوی او د بدو اخلاقو نه منع کوی- بیا ئے خپل قوم ته وویل : [كُوْنُوْا فِیْ هٰذَا الْاَمْرِ رُؤَسَاءَ وَلَا تَكُوْنُوْا اَذْنَابًا وَكُوْنُوْا فِیْهِ اَوَّلًا وَلَا تَكُوْنُوْا آخِرًا]-

تاسو پدے دین منلو کښې مشران شئ او لکئ مه جوړیږئ او دے ته مخکښې والے وکړئ او روستو مه پاتے کیږئ- (معرفة الصحابة لابی نعیمؒ وابن السکنؒ) (الدر المنثور وفتح البیان)-

❁ او ددے آیت په وجه عثمان بن مظعون ؓ ایمان راوړیدے- فرمائی : کله چه دا آیت نازلیدو نو زه د رسول الله ﷺ خوا ته ناست وم، هغه ما ته ولوستلو نو زما په زړه کښې ایمان مضبوط کیناستو او د رسول الله ﷺ سره مے محبت پیدا شو- (احمد رقم (۲۹۲) والبخاری فی الادب المفرد ( وابن ابی حاتم والطبرانی وفی اسناده شهر بن حوشب ضعیف)

پدے آیت کښې الله تعالیٰ درے اوامر او درے نواهی ذکر کړیدی، ډیر جامع آیت دے-

قتادة وائي چه د جاهليت د دور په خلقو کښې چه د ښو اخلاقو کومه خبره هم موجوده وه، د هغې الله تعالیٰ پدې آیت کښې حکم ورکړیدے، او د بدو اخلاقو چه د کومو خبرو به ئې يو بل ته شرم او پیغور ورکولو د هغه تولو نه ئې پدے کښې منع کړیده، او الله تعالیٰ د هر رذيل او بد اخلاقو نه منع کړیده۔

## د عدل مصداقات

۱- اَلتَّوۡحِیۡد۔ لکه دا په آل عمران (قَآئِمًا بِالۡقِسۡطِ) آیت (۱۸) کښې ذکر شويدي۔

۲- اَلۡاِنۡصَاف۔ د خلکو سره انصاف کول۔ (په چا ظلم ونکړے شي) او انصاف په خبرو کښې هم وي او په زوجاتو، اولادو او رعيت ترمينځ او په هر شي کښې لازم دے۔

علامه شوکانيؒ وائي د تولو نه ددے همدا لغوي معنیٰ غوره ده، يعني د افراط او تفريط په مابين کښې لاره۔ يعني په ديني کارونو کښې نهٔ غلو کول پکار دي او نهٔ کمے کول۔

۳- سفيان بن عُيينة وائي : (اِسۡتِوَآءُ السَّرِيۡرَةِ مَعَ الۡعَلَانِيَةِ) ښکاره او پټ دواړه حالتونه برابرول۔ داسے نهٔ چه د خلکو مخامخ ښه وي او په پټه گناهونه کوي۔ دا هم عدل نهٔ دے۔

## د احسان مصداقات

۱- د احسان د تولو نه غوره ددے لغوي معنیٰ ده، يعني هغه عمل صالح چه واجب نهٔ وي لکه نفلي صدقه او عبادت چه په بندگانو باندے واجب نهٔ دي۔

۲- اَنۡ تَعۡبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ ۔ د الله سره احسان دا دے چه تهٔ د الله تعالیٰ داسے بندگي وکړے لکه چه تهٔ الله ته گورے۔ دا ئې شرعي معنیٰ ده۔

۳- العفو۔ (معافي کول)۔ ٤- ورکړه کول۔ که ديني وي او که دنيوي څه شے وي۔ چا ته دين خودل، د چا خدمت کول، مدد کول۔

۵- اَنۡ تَكُوۡنَ السَّرِيۡرَةُ اَفۡضَلَ مِنَ الۡعَلَانِيَةِ۔ د انسان پټ حالت د ښکاره حالت نه ډير ښه وي۔

وَاِيۡتَآءِ ذِي الۡقُرۡبٰى : يعني خپلوانو سره د هغوي د ضروورياتو مطابق احسان کول ځکه چه د صله رحمۍ همدا تقاضا ده۔ حديث کښې دي : (بُلُّوۡا اَرۡحَامَكُمۡ وَلَوۡ بِالسَّلَامِ)۔

صله رحمي وپالئ اګرکه په سلام کولو سره وي۔

(صحيح ابن حبان، حسن لشواهده، الصحيحة (۱۷۷۷) وصحيح الجامع (۲۸۳۸)

وَيَنۡهٰى عَنِ الۡفَحۡشَآءِ : (بې حيائي او لوي گناهونه) فحشاء ئې د نورو مقابله کښې ځکه راوړه چه دا د تولو گناهونو نه زياته ده۔ د فحشاء نه مراد هره ډيره قبيح وينا او ډير قبيح کار

دے۔ یا د فحشاء نه مراد زنا / یا بخل دے۔
وَالْمُنْكَرِ : كُلُّ مَا خَالَفَ الشَّرْعَ۔ هر هغه شے چه د شریعت خلاف وی۔ فحشاء او منکر په حقوق الله کښې راځی۔
وَالْبَغْيِ : (خلکو باندے ظلم او زیاتے کول) دا په حقوق العباد کښې دی۔ اګرکه بغی په منکر کښې داخل ده۔ او د بغی نه مراد کبر هم دے۔
يَعِظُكُمْ : یعنی پدے خبرو الله تعالیٰ تاسو ته نصیحت کوی دے دپاره چه خبره رایاده کړئ او نصیحت واخلئ ځکه چه دا پوره نصیحتونه دی۔

| |
|---|
| وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدْتُمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ |
| او پوره کوئ لوظ د الله تعالیٰ کله چه لوظ کړیدے تاسو او مه ماتوئ قسمونه روستو |
| تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا |
| د مضبوطوالی د هغے نه او یقیناً ګرځولے دے تاسو الله تعالیٰ په خپل ځان ذمه وار |
| إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴿٩١﴾ وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ |
| یقیناً الله پوهیږی په هغے چه کوئ تاسو۔ او مه کیږئ په شان د هغے زنانه چه سپړدلے ئے |
| غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنْكَاثًا تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ |
| سپنړسی خپل روستو د مضبوطوالی نه ټکړے ټکړے، نیسئ تاسو قسمونه خپل |
| دَخَلًا بَيْنَكُمْ أَنْ تَكُونَ أُمَّةٌ هِيَ أَرْبَى مِنْ أُمَّةٍ |
| بیکاره په مینځ خپل کښې ددے وجه نه چه ده یوه ډله ډیره د بلے ډلے نه |
| إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللَّهُ بِهِ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ |
| یقیناً امتحان کوی په تاسو الله تعالیٰ پدے سره، او خامخا بیان به کړی تاسو ته |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٩٢﴾ |
| په ورځ د قیامت هغه څه چه تاسو په کښې اختلاف کوئ۔ |

**تفسیر** : دا هم مقدمه ده د یو حالت دپاره۔ پدے آیتونو باندے د بنۀ پوهیدو دپاره د سیرت دا حالت یاد کړه۔ د عربو عادت دا وو چه په هغوی کښې مختلف قومونه وو، هغوی

به عقدِ حلف کولو، کله به یو قوم کمزورے شو نو یو تن به لاړو هغه به د بل قوم سره لوظ وکړو چه زهٔ به ستاسو ملګرے یم، نو هغوی به ورله حفاظت هم کولو او ددهٔ هرڅه به د هغوی وو. کله چه به هغه قوم کمزورے شو او بل قوم به ورته قوی ښکاره شو نو د هغه قوم سره به ئے وعده ماته کړه او بل قوم ته به لاړو، د یوے ډلے نه به بلے ډلے ته د خپلو مفادو د خاطره اوړیدو (لکه پدے زمانه کښې هم د ووټونو د خاطره کله د یو سره ملګرتیا اعلانوی او کله د بل سره) او دا د اسلام په لحاظ غلط کار دے او وعده خلافي ده.

دا خبره خو صرف وعده خلافي وه، مګر دلته بعض کسانو ایمان راوړو د نبی کریم ﷺ ملګری شو نو وے کتل چه د قریشو ډله غټه وه، مالداره او مخوریز خلك په هغوی کښې وو، او دے خوا غریبانان (بلال، صهیب او عمار رضی الله عنهم) دی، نو دوی ته د جاهلیت رواج رایاد شو نو هغوی ته به واوړیدل او د رسول الله ﷺ ملګرتیا به ئے پریخودله (لکه ډیر خلك په مکه کښې پدے طریقه مرتد شوی وو) پدے وجه پدے آیتونو کښې په ارتداد باندے هم رد کیږی، چه دا کار مهٔ کوئ ګنے غرق او تباه به شئ او په هجرت باندے ځان مجبوره کړه مګر د ارتداد نه ځان وساته. نو ځکه ورته الله تعالیٰ پدے مخکښو آیتونو کښې مقدمه کیخوسته چه د عدل او احسان نه کار واخله او فحشاء او منکراتو او بغی نه ځان وساته او د وعدے پابند شه (چه کلمه دے ووئیله د الله سره دے وعده وکړه نو دا څنګه ماتوے)

او د چا ډیروالی ته مهٔ ګوره دا امتحان دے، او دا د هرے زمانے سره لګیږی.

او روستو ترغیب ورکوی چه په ایمان او عمل صالح کښې حیاة طیبه (مزیدار ژوند) دے.
قرآن سره تعلق وساته او په قرآن باندے د خلکو د اعتراض جواب به ذکر کوی، بیا مسئله د اکراه او هجرت او تخویف د آخرت او بیا مثال د مکے والو ذکر کوی او په آخره کښې د شرك فعلی رد دے.

وَاَوۡفُوۡا بِعَهۡدِ اللّٰهِ : نو پدے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د لوظ پوره کولو او قسمونو نهٔ ماتولو نصیحت کړیدے. بعض خلقو ددے لوظ نه د اسلام د قبلولو دپاره د نبی کریم ﷺ په لاس باندے کړے شوے بیعت مراد کړیدے، لیکن د عهد اضافت الله طرف ته کیدو نه معلومیږی چه ددے نه مراد هر هغه لوظ دے چه انسان ئے د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول او د نورو انسانانو سره کوی، او د الله تعالیٰ په نوم چه کوم قسم وکړے شی نو د هغے ماتول ممنوع دی. البته په کومو قسمونو کښې چه تاکید پیدا شوے وی، د هغے ماتول زیاته

لویه ګناه وي۔ لیکن د صحیح احادیثو نه معلومیږي چه که قسم کولو نه روستو انسان ته پته ولګي چه پدے باندے مضبوط پاتے کیدل په دیني اعتبار سره غوره نهٔ دي نو بیا به قسم مات کړي او هغه کار به وکړي کوم چه غوره وي، او د قسم کفاره به ادا کړي۔

د صحیحینو روایت دے چه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي:

((قسم په الله! که الله غواړي نو زهٔ چه هر یو قسم وکړم او بیا د هغے په ځائے بله خبره غوره اوګنړم نو زهٔ غوره کار کوم او د خپل قسم کفاره ورکوم))۔ (بخاري: ۳۱۳۳) مسلم (۴۳۵۲)

**وَلَا تَنقُضُوا الْأَيْمَانَ**: د عربو عادت دا وو چه په لوظ کښ به ئے قسم هم کولو۔

**بَعْدَ تَوْكِيدِهَا**: د قسم مضبوطوالے دا دے چه ډیر اسماء او صفات د الله تعالیٰ پکښ ذکر کړي۔ یا په یو شي باندے بار بار قسم کولو ته وئیلے شي۔

عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمائي: مضبوط قسم دا دے چه دوه کرته قسم وکړي که یو ځل ئے وکړي نو په هغه باندے کفاره نشته۔ (یعني یو کرت به د هغوي عادتي قسم وو خو چه کله به ئے دوه کرته وکړو نو دا به مضبوط قسم وو) (قرطبيؒ)

**وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا**: هغوي به د قسم په وخت کښ الله تعالیٰ ذمه وار ګرځولو نو هغه حالت ورته دلته یادوي۔ د کفیل نه مراد ګواه دے۔ یا نګهبان۔ یا ضامن (ذمه وار) دے۔

**وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي**: پدے آیت کښ تشبیه ورکوي د هغه انسان چه د ایمان نه اوړي او د الله سره د کړي لوظ نه اوړي او د کافرو ملګرے کیږي د یوے کم عقلے زنانه سره۔

## ربط

ددے آیت تعلق د تیر شوي آیت سره دے۔ یعني د الله په نوم باندے کړے شوے وعدے پوره کړئ، او خپل قسمونه مهٔ ماتوئ، ځکه که تاسو داسے وکړل نو ستاسو مثال به د هغه کم عقلے او لیونۍ ښځے په شان شي چه مضبوط او کلك تارونه جوړوي او بیا هغه سپړي او ټکړے ټکړے کوي ئے۔ بعض اهل علم وائي چه په مکه کښ رِیطَه بنت عَمْرو نومے یوه ښځه وه چه هغے به داسے کول، مالداره او کم عقله وه، نو هغے به خپلو غلامانو ته ووئیل چه د وړئ نه څرخه کښ (سوتلئ، سپنرسی) جوړ کړئ، او د ماسپښین نه روستو به ئے ورته حکم وکړو چه دا بیرته وسپړئ۔ هره ورځ به ئے پرے دا کار کولو۔ نو خپله خواري به ئے ضائع کړه۔ (هیڅ فائده به ئے ترے وانخسته) او په سیند به ئے لاهو کړه۔ نو تا

چه ایمان راوړو او دین کښې داخل شوے خواری ډېے وکړه نو اُوس په ارتداد سره هغه خواری په سینند مۀ لاهو کوه۔

نو پدے مثال کښې دے طرف ته اشاره ده چه عقل او هوش والا انسان خپل قسمونه نۀ ماتوی او کوم خلق چه داسے کوی هغه به د آحمقو او ناپوهه ښځو په ډله کښې داخلیږی۔

یو انسان پنځوس کاله کلمه وئیلې وی او عبادتونه ئے کړی وی بیا کافر راشی او د کافرو سره ملګرے شی د دنیا د یو څو روپو دپاره، خپله تو له خواری سیند ته ګوزار کړی دا څو مره لویه بی عقلی او تاوان دے۔

ځینی مفسرین وائی چه دا مثال دے اګرکه دغه زنانه ډېے په واقع کښې موجوده نۀ وی۔

**نَقَضَتْ غَزْلَهَا** : غزل اُوډلے شوی تارونه دی او نقض د هغے سپړدلو ته وئیلے شی۔

**اَنْكَاثًا** : جمع د نِکث ده، مات رامات، ټکړے ټکړے، انکاث هغه شی ته وئیلے شی چه د هغے اُودل مات کړی دے دپاره چه دوباره ئے جوړ کړی۔ نو انکاث په معنی د منکوث (سپړدل شوی) سره دے۔ او دا (اَنْكَاثًا) د (نَقَضَتْ) دپاره مفعول مطلق دے من غیر لفظہ۔

یعنی ماتولو به ئے ټوټے ټوټے۔

**تَتَّخِذُوْنَ اَيْمَانَكُمْ دَخَلًا** : اَیْ خَدِیْعَةً وَفَسَادًا وَخِیَانَةً۔ یعنی دهوکه، فساد او خیانت۔ نو پدے سره ایمان والا ددے خبرے نه منع کوی چه دوی خپل قسمونه د دهوکے او په زمکه کښې د فساد خورولو ذریعه جوړه کړی۔

**تَتَّخِذُوْنَ**: پدے کښې همزه د اِستفهام د زجر دپاره پټه ده۔

**اَنْ تَكُوْنَ اُمَّةٌ هِيَ اَرْبٰى مِنْ اُمَّةٍ** : تکون فعل تام دے، یعنی موجوده ده۔ د امة نه مراد امت د مشرکانو دے او اَرْبٰی نه مراد (اَکْثَر) ده او بل امة نه مراد مؤمنان دی، یعنی تاسو پدے وجه خپل قسمونه ماتوئ او دهوکه کوئ او پدے طریقے سره فساد خورئ چه د مشرکانو ډله درته د مؤمنانو د ډلے نه زیاته ښکاره شویده، داسے حالات الله تعالیٰ ددے دپاره راولی چه په تاسو امتحان کوی۔ روستو زمانه کښې به دجال راشی، هغه به د عامے دنیا بادشاه وی او د هغه ډله به په ظاهره کښې ډیره او زوره وره وی او مؤمنان به کمزوری وی نو آیا تۀ به د دجال ملګرتیا کوے۔ (او پدے امتحان کښې په هره زمانه کښې خلك اخته کیږی او ډیر برائے نام مسلمانان د کفارو سره ملګرتیا کوی)

**دَخَلًا** : ابوعبیدة وائی : هر هغه کار چه صَحیح نۀ وی هغے ته دخل وائی۔

ځینی وائی : دخل هغه شے دے چه په بل شی کښې ددے دپاره راداخل شی چه هغه فاسد

کړي۔ او دے کار ته ئے فساد خکه ووئیلو چه ددے په ذریعه نور مؤمنان کمزوري کیږي او د خلکو په زړونو کښې وسوسے پیدا کیږي۔

**يَبْلُوكُمُ اللهُ بِهِ** : (به) ضمیر راجع دے دیوے ډلے ډیرولو او د بلے ډلے کمولو ته۔ نو که الله تعالیٰ مؤمنان ډیر کړي وے، بیا به د دوی سره ډیر خلك بغیر د بصیرت نه ملګري کیدلے او الله تعالیٰ د بصیرت والا ایمان قبلوی۔ دارنګه داسے حالاتو پیدا کولو سره الله تعالیٰ په تاسو ازمیښت کول غواړي چه تاسو په خپل لوظ باندے باقي پاتے کیږئ او که دنیا ته په آخرت باندے ترجیح ورکولو سره لوظ ماتوئ۔

**وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ** : یعني الله تعالیٰ به حق او حق پرست ښکاره کړي او د هغوی درجات به پوره کړي او باطل او باطل پرست به ښکاره کړي نو خپل عذاب ته به ئے ورسوي۔ نو پدے کښې یره ده چه د حق مخالفت ونکړئ او باطل طرفته مائله نشئ۔ (فتح البیان)۔

| |
|---|
| وَلَوْ شَآءَ اللهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ يُضِلُّ مَنْ |
| او که غوختلے الله تعالیٰ خامخا ګرځولی به ئے وے تاسو یوه ډله لیکن ګمراه کوی چا له |
| يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ وَلَتُسْـَٔلُنَّ |
| چه وغواړي او هدایت کوی چا له چه وغواړي او خامخا تپوس به کیدے شي تاسو نه |
| عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٣﴾ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا أَيْمَانَكُمْ |
| د هغے عملونو چه تاسو ئے کوئ۔ او مه ګرځوئ قسمونه خپل بیکاره په مینځ خپل کښې |
| دَخَلًا بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوْتِهَا وَتَذُوْقُوا |
| نو وبه خوئیږي خپه ستاسو روستو د مضبو طوالی د هغے نه او وبه څکئ |
| السُّوْٓءَ بِمَا صَدَدْتُّمْ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٩٤﴾ |
| عذاب پدے وجه چه تاسو خلق واړول د لارے د الله نه او تاسو دپاره عذاب لوئی دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د امتحان فائده بیانوی چه که الله تعالیٰ غوختلے نو مؤمن او کافر ټول خلق به ئے په دین باندے جمع کړي وے لیکن د هغهٔ د حکمت تقاضا دا وه چه څوك د حق تالاش کوی او د هغے په قبلولو کښې څو مره مینه کوی هغه ته هدایت کوی او

څوك چه ګمراه كيدل خوښوي او په ګمراهئ باندے هميشه پاتے كيږي هغه په ګمراهئ كښې پريدي۔ او په دنيا كښې انسان چه څه كوي ددے په باره كښې به ددۀ نه د قيامت په ورځ ضرور تپوس كيږي۔ او ددے تپوس نه به مقصد رټنه او زورنه وي، نۀ استفسار او معلومات كول۔ ځكه چه الله تعالىٰ خو په هرڅه پوهه دے، د هغه نه هيڅ پټ نۀ دي۔

وَلَا تَتَّخِذُوٓا اَيۡمَانَكُمۡ دَخَلًا : مخكښې په ضمني توګه د قسم د ماتولو نه منع شوے وه، نو دلته د هغے نه په ښكاره توګه سره منع كوي چه مسلمانانو دپاره دا جائز نۀ دي چه د الله په نوم قسم پدے وجه كوي چه چا ته دهوكه وركړي او يو دنياوي مقصد حاصل كړي، ځكه چه دا په حق او رشتينوالي باندے د ثابت قدمئ خلاف دي۔

او څوك چه داسے كوي هغوي ته به د الله تعالىٰ د طرف نه په دنيا كښې ددے بد انجام رسيږي ځكه داسے كولو سره اسلامي دعوت ته نقصان رسي، او كومو خلقو سره چه داسے معامله كيږي هغوي به د مسلمانانو بے لوظئ اوبے وفائي كتو سره د اسلام نه اوړي۔ او نور خلق به هم د هغوي تابعداري كوي او اسلام به نۀ قبلوي۔

داسے خلقو ته الله تعالىٰ په آخرت كښې هم د لوئي عذاب دهمكي وركړيده۔

اَيۡمَانَكُمۡ : او دا قسمونه په بيع شراء او په مالي حقوقو كښې تولو ته شامليږي۔

دَخَلًا: يعني برباد او ضائع۔

فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعۡدَ ثُبُوۡتِهَا : ١– د قدم نه مراد قدم د ناقض (يعني ماتونكي) دے يعني ستا قسم به وخوئيږي پس د هغے نه چه مضبوط شوے وے، يعني اے انسانه ! ته چه نن د الله يو حكم ماتوے او صبا له بل نو بله ورځ به دِ دے قدم وخوئيږي او كافر به شے، نو د كافرو لړ لړ ملګرتوب سره انسان پوره كافر كيږي۔ (وَلَا تَرۡكَنُوٓا اِلَى الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ)

٢– يا قدم نه مراد قَدَمُ الۡاَتۡبَاعِ دے۔ يعني ستا د تابعدارو قدمونه به وخوئيږي، هغوي به وائي چه زمونږ مشر لاړو نو مونږ هم وروسے ورځو ځكه چه مشر كله خراب شي نو ډير تابعدار ورسره خرابيږي والعياذ بالله۔ لكه دا خبره په مشاهده او تجربه كښې راغلے ده۔

قدم ئے مفرد راوړو پدے كښې اشاره ده چه د يو قدم خوئيدلو كښې دومره ډير شر دے نو په ډيرو قدمونو كښې به خامخا زيات شر وي۔ او قدم خوئيدل كنايه ده د د خير د حال نه د شر حال ته نقل كيدو نه۔ او دارنګه په يو كار كښې د خطاء كيدو نه۔

وَتَذُوۡقُوا السُّوۡٓءَ : يعني بد عذاب به وڅكئ په دنيا او آخرت كښې پدے وجه چه تاسو ډير خلك د الله تعالىٰ د لارے (اسلام) نه واړول يا تاسو خپله واوريدئ۔ دارنګه يو تن د

سنت طريقو نه بدعاتو ته نقل شي د هغه به هم دا حال وي۔

وَلَا تَشْتَرُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا اِنَّمَا عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرٌ

او مهٔ اخلئ په لوظ د الله باندے قيمت لږ يقيناً هغه شے چه د الله سره دے هغه ډير غوره دے

لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۹۵﴾ مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ

تاسو لره که تاسو پوهيږئ۔ هغه څه چه تاسو سره دي ختميږي او هغه څه چه د الله سره دي

بَاقٍ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا اَجْرَهُمْ

باقي دي، او خامخا بدله به ورکړو هغه کسانو ته چه صبرئے کړيدے اجر د هغوی

بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۹۶﴾ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ

په بدله د ښائسته هغه عملونو چه دوی کول۔ چا چه عمل وکړو نيك نارينه وی

اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً

او که زنانه او هغه مؤمن وی نو خامخا ژوند به ورکړو دهٔ ته ژوند مزيدار

وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۹۷﴾

او خامخا بدله به ورکړو دوی ته د اجر د دوی په ښائسته هغه عملونو چه دوی کول۔

فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ﴿۹۸﴾

نو کله چه تهٔ لولے قرآن نو پناهي وغواړه په الله د شيطان رټلے شوی نه۔

اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى

يقيناً نشته دهٔ لره قدرت (په گمراه کولو) په هغه کسانو چه ايمان ئے راوړيدے او په

رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۹۹﴾ اِنَّمَا سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ

رب خپل ځانونه سپاری۔ يقيناً زور ددهٔ (چليږی) په هغه کسانو باندے

يَتَوَلَّوْنَهٗ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِهٖ مُشْرِكُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

چه دوستي کوی د هغه سره او هغه کسان چه دوی په سبب د شيطان مشرکان دی۔

**تفسیر** : پدے آیت کښې د ارتداد او کفارو ته د اوړیدو وجه بیانوی چه هغه د دنیا مال متاع او عهده ده۔ د قریشو خلقو به کمزوری مسلمانانو ته لالچ ورکولو چه که دوی اسلام پریږدی نو هغوی به دوی ته مال او متاع ورکړی۔ نو الله تعالیٰ داسے مسلمانانو ته خطاب کولو سره ووئیل چه د الله تعالیٰ سره کړی لوظ او د رسول الله ﷺ په لاس باندے د کړی بیعت په بدله کښې تاسو د دنیا سپك او معمولی سامان قبول نهٔ کړئ۔

**بِعَهۡدِ اللّٰهِ** : نه مراد اسلام او د اسلام کارونه دی۔

**إِنَّمَا عِنۡدَ اللّٰهِ هُوَ خَيۡرٌ** : یعنی نصرت او فتح، د غنیمت مال او ډیر رزق او په آخرت کښې د جنت په شان نهٔ زائله کیدونکے نعمت ددے عارضی سامان نه ډیر غوره دے د کوم چه قریش لالچ ورکوی۔

**مَا عِنۡدَكُمۡ يَنۡفَدُ** : پدے کښې د زیات تاکید په توګه ئے ووئیل چه تاسو سره چه د دنیا هر یو نعمت دے دا ختمیږی، او د الله جنت به همیشه باقی پاتے وی۔

**وَلَنَجۡزِيَنَّ الَّذِيۡنَ صَبَرُوۡا** : اَیۡ صَبَرُوۡا بِعَهۡدِ اللّٰهِ وَدِيۡنِهٖ ۔ یعنی کوم خلك چه د الله تعالیٰ په لوظ او د هغهٔ په دین باندے صبر کوی او د مشرکانو په تکلیفونو صبر کوی او په اسلام باندے د مضبوط پاتے کیدو دپاره تکلیفونه برداشت کوی، نو الله تعالیٰ به د دوی د صبر او د استقامت په ډیرو چندونو ښائسته بدله ورکوی۔

مفسرینو لیکلی دی چه د الله تعالیٰ دا وعده د هر هغه مسلمان دپاره ده چه په هره زمانه کښې په خپل ایمان او اسلام باندے مضبوط پاتے کیږی او د دنیا د معمولی فائدو د خاطره خپل دین نهٔ بربادوی۔ او اوله درجه کښې په کښې د مکے دور مسلمانان داخل دی۔

**بِأَحۡسَنِ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ** : احسن ئے ذکر کړو ځکه چه حَسَن مباح ته وئیلے شی او په مباح عمل کولو سره اجر نهٔ ملاویږی او احسن کښې سنت، او واجب او فرض داخل دی۔ (الرازیؒ والقرطبیؒ) ❁ یا د احسن اضافت (مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ) ته اضافت بیانیه دے، یعنی بدله به ورکړم په ډیر ښائسته شی سره چه هغه د دوی عملونه دی۔ (احسن الکلام)

❁ یا احسن صفت د جزاء دے اَیۡ بِجَزَاءٍ اَحۡسَنَ مِنۡ اَعۡمَالِهِمۡ ۔ یعنی ډیره ښائسته بدله به ورکړم د دوی د عملونو نه۔ (چه عمل به ئے لږ وی او اجر به ئے زیات وی) (القاسمیؒ)

❁ یا احسن په معنیٰ د نفس حسن سره دے۔

❁ ابن عاشورؒ وائی چه باء سببیه ده اَیۡ بِسَبَبِ عَمَلِهِمُ الۡبَالِغِ فِی الۡحُسۡنِ وَهُوَ عَمَلُ الدَّوَامِ عَلَى الۡاِسۡلَامِ ۔ یعنی په سبب د عمل د دوی چه هغه په حسن کښې اعلیٰ درجے ته رسیدلے

دے چه هغه په اسلام باندے همیشه عمل کول دی سره د برداشت کولو د تکلیفونو د مشرکانو نه۔ (التحرير)

او په احسن کښې اشاره ده چه د صبر په مینځ کښې چه د دوی نه څه جزع فزع شوی وی هغه به هم ورته معاف کوی۔ (فتح البيان)

**مَنْ عَمِلَ صَالِحًا** : پدے کښې الله تعالیٰ قانون بیانوی چه په ایمان او عمل صالح کښې دومره عجیبه فائده ده چه دا په هیڅ شی کښې نشته۔ که د یو مرتد انسان توله دنیا شوه خو د پریشانئ ژوند به ئے وی، او چا کښې چه دا راتلونکی صفات پیدا شو نو الله تعالیٰ به دنیا او آخرت دواړه ورکړی او د سکون زندګی او راحت او حلال رزق به ورکړی۔ او په آخرت کښې به په ډیرو چندونو غوره بدله ورکوی۔

## د حیات طیبه اسباب

**حَيَاةً طَيِّبَةً** : هر انسان د خپل ژوند د ښه کولو طلبګار دے څوك ئے په پیسو کښې، څوك ئے په ښځو، څوك ئے په بادشاهئ کښې ګوری، تردے چه لیونی هم د حیاة طیبه کوشش کوی، نو ددے دپاره دوه قسمه اسباب دی، انسانی او شرعی۔ عام انسانان د حیاة طیبه دپاره دغه مخکنئ لارے اختیاروی یعنی مال، ښځه، ګاړی موټرے، جائیدادونه وغیره۔ حال دا چه دا ئے اصلی سبب نهٔ دے، دغه صرف یوه نشه پیدا کوی لیکن اصلی سکون پکښې نشته، نو ددے دپاره شرعی اسباب کتل پکار دی، نو ددے څه اجمالی اسباب دی او بل تفصیلی، اجمالی اسباب ئے یو ایمان او بل عمل صالح دے۔

او تفصیلی اسباب ئے ډیر دی چه ددے آیتونو نه معلومیږی۔ ایمان، دویم القرآن۔ (د قرآن سره تعلق) لکه روستو آیت کښې دی۔ دریم اَلتَّوَکُّلُ عَلَی الرَّحْمٰنِ۔ په رحمن ذات باندے توکل کول۔ دا ناشنا حیاة طیبه دے چه انسان ته نصیب شی۔ او د احادیثو او د نورو آیتونه معلومیږی چه بل سبب الجهاد فی سبیل الله دے۔ (بَابٌ مِنْ اَبْوَابِ الْجَنَّةِ يُذْهِبُ اللّٰهُ بِهِ الْهَمَّ) (مسند احمد : رقم : ۲۲۷۷۱) باسناد حسن)

(جهاد د جنت داسے دروازه ده چه غمونه ورسره ختمیږی)، (مُلُوْكًا عَلَی الْاَسِرَّةِ) (بخاری : ۲۷۸۸) انسان به د بادشاه په شان جوړیږی۔

او بل سبب ذکر الله دے۔ (اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ) (ابراهیم : ۲۸) دے کښې ټول عبادات داخل دی۔

## د حیاة طیبه مصداقات او مطلبونه

۱- حسن بصریؒ وائی : په دنیا کښې حیاة طیبه نشته بلکه ددے نه مراد جنت دے۔

۲- اَلْقَنَاعَةُ۔ (الله به قناعت ورنصیب کړی) او دا هم ډیر مزیدار ژوند دے، عام انسانان سره د ډیروالی د مالونو نه د مالونو پسے پریشانه سرګردانه ګرځی۔

(علیؓ بن ابی طالب، وابن عباسؓ والحسن وزید بن وهبؒ ووهب بن منبهؒ)

۳- اَلرِّضَا بِالْقَضَاءِ ۔ د الله په تقدیر راضی کیدل۔ ﴿وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللَّهِ يَهْدِ قَلْبَهُ﴾ (التغابن: ۱۱) (څوک چه په الله ایمان راوړی الله به ددهٔ زړه ته هدایت وکړی)۔

٤- حَلَاوَةُ الطَّاعَةِ- (د عبادت خوند) (ابوبکر الوراقؒ)

٥- وَتَوْفِيْقُ الطَّاعَاتِ۔ (د طاعت توفیق) (ضحاکؒ)

٥- اَلرِّزْقُ الْحَلَالُ۔ (حلال رزق)۔

٦- اَلْإِسْتِغْنَاءُ عَنِ الْخَلْقِ وَالْإِفْتِقَارُ إِلَى الْحَقِّ۔ د مخلوق نه بے حاجته کیدل او الله ته محتاج کیدل۔ دا ډیر مزیدار ژوند دے چه مالدارو ته محتاج نهٔ وی بلکه مستغنی وی۔

۷- اَلْإِسْتِرَاحَةُ فِي الْقَبْرِ۔ په قبر کښې په راحت کښې کیدل۔ (سدیؒ)

لکه حدیث کښې دی : (مُسْتَرِيْحٌ أَوْ مُسْتَرَاحٌ مِنْهُ) (بخاری: ۶۵۱۲) ومسلم (۲۲٤٥)

مؤمن په قبر کښې د دنیا د مصیبتونو نه په راحت کښې شی۔

لیکن پدے کښې حقه خبره دا ده چه دا ټول مصداقات صحیح دی۔

فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ : پدے آیت کښې ترغیب دے قرآن کریم ته سره د ادب ذکر کولو نه۔

چونکه قرآن کریم د الله حق کتاب دے او په پیرانو او انسانانو کښې د شیطانانو نه د حق یو دشمن او مخالف ضرور وی چه د هغے په خلاف د خلقو په زړونو کښې شبهات پیدا کوی، پدے وجه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم وکړو چه کله تهٔ د قرآن تلاوت کوے نو په الله سره د رټلے شوی شیطان د وسوسو نه پناه غواړه۔

شوکانیؒ وائی چه هرکله د قرآن کریم د تلاوت نه مخکښې د شیطان د شر نه پناه غوختل ضروری شو نو د نورو نیکو اعمالو کولو نه مخکښې ددهٔ د شر نه پناه غوختل به په درجه اولیٰ ضروری وی۔

## ربط او مناسبت

ددے آیت ربط په ډیرو طریقو سره بیان شویدے۔

۱- مخکښې ذکر شو چه د الله په عهدونو پابندي وکړئ نو اُوس د قرآن فضیلت راوړي ځکه چه پدے کښې د عهدُ الله تذکیر دے۔
۲- امام رازیؒ وائي : مخکښې احسن عمل ذکر شو نو اُوس وائي چه بعض د احسن عمل نه قراء‌ت د قرآن کریم او تعوذ دے۔ چه پدے سره اعمال د وسوسے نه بچ کیږي۔ (فتح البیان) دا مناسبتونه بعید دي۔
۳- ابن عاشورؒ لیکي : دا متعلق دے د مخکښې ﴿ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ الۡكِتٰبَ تِبۡيَانًا لِّكُلِّ شَيۡءٍ﴾ (۸۹) آیت سره، یعني هرکله چه الله تعالیٰ احسان ذکر کړو په نبي کریم په نازلولو د داسے کتاب چه صفات کمالیو لره جامع دے او تبیان د هر شي دے او د هغے بیان ئے په یوه جامعه کلمه سره وکړو چه هغه (ان الله یأمر بالعدل) دے،
او بیا ئے په هغے باندے (وَاَوۡفُوۡا بِعَهۡدِ اللّٰهِ) عطف کړو او دا خبره ئے مضبوطه کړه نو اُوس ددے نه روستو ئے وفرمایل : چه کله چه ددے جامع او شریف کتاب په قرائت کښې شروع کوے نو تا سره به پدے کښې شیطان مقابله کوي نو په الله پورے پناه طلب کړه او مقصد پدے حکم کښې امت دے۔ دا ربط کوزاره کوي۔
٤- مګر غوره دا ده چه دا د حیاة طیبه سره لګي او دا د قرآن کریم اصول دي چه کله یو لفظ ذکر کړي چه هغه ډیر مُهم وي یا ډیر سخت وي، نو بیا روستو د هغے تشریح کوي، نو دلته سوال پیدا شو چه دا حیاة طیبه به څه شے وي؟ نو پدے دوه آیتونو کښې د هغے بیان کوي چه هغه تعلق دے د الله د کتاب سره، او توکل کول دي په الله تعالیٰ، او ایماني کیفیت دے۔ ددے تائید د سورة طه آیت (۱۲٤) دے ﴿ وَمَنۡ اَعۡرَضَ عَنۡ ذِكۡرِيۡ فَاِنَّ لَهٗ مَعِيۡشَةً ضَنۡكًا﴾۔ د قرآن کریم نه اعراض سبب د تنګ ژوند دے۔
دُ قرآن کریم سره تعلق یو په ایمان سره دے، نو د مؤمن حال د کافر نه غوره دے، بیا په قرآن باندے عمل کونکے مؤمن غوره دے د فاسق نه، بیا کوم مؤمن چه قرآن لولي غوره دے د هغه مؤمن نه چه کالبیت الخرب (لکه د وران او شاړ کور په شان) وي۔ بیا چه څوك په قرآن کښې تدبر کوي، او ددے په الفاظو او سیاق او سباق او رازونو کښې تدبر او فکر کوي نو په انسان باندے عجیب حکمتونه راکولاوېږي چه دا ډیر مزیدار ژوند دے۔
په توکل کښې ولے حیاة طیبه دے؟ وجه دا ده چه شیطان انسان لره ډیر پریشانه کوي، او ددهٔ د زړه په خوا کښې ناست وي، هر قسم وسوسے اچوي، او چه کله یو توکل والا مؤمن وي، نو د شیطان وسوسے ئے نهٔ پریشانه کوي او چه ضعیف مؤمن وي هغه ته هم وسوسے

اچوي چه فقير به شي، مال به دې هلاك شي، ملازمت او تنخواه به دې ختمه شي بيا به څه خوري نو د پريشانۍ نه مخکښې به دې پريشانه کړي نو ددې علاج توکل دې چه دا عقيده به وساتې چه زما رب موجود دې هغه به زما د کارونو پروګرام کوي، او ما نه به دشمن اړوي، شيطانه! ما مه پريشانه کوه. او په توکل سره د مؤمن زړه کښې ډيره فراخي پيدا کيږي، پريشاني ئې ختميږي.

إِنَّمَا سُلْطَانُهُ عَلَى الَّذِينَ يَتَوَلَّوْنَهُ : يعني د شيطان زور او اثر په هغه خلکو چليږي چه د شيطان سره دوستي کوي، او د هغه تابعداري کوي او د الله تعالیٰ سره شريکان جوړوي او د شيطان عبادت کوي.

بِهِ مُشْرِكُونَ : أَيْ بِسَبَبِ إِغْوَائِهِ مُشْرِكُونَ ـ يعني په سبب د شيطان سره مشرکان شويدي، د الله تعالیٰ سره ئې د هغه په وسوسه شريکان جوړ کړيدي، مشرك هميشه د شيطان په وسوسو کښې راګير وي، او هميشه په يره کښې وي چه فلانے بابا راباندے کټ وانه ړوي او مال کښې مې بې برکتي رانشي. د مشرکانو کافرانو ډيره بده زندګي ده چه نشے ګولۍ د استعمال نه بغير ورله خوب نه ورځي.

يا د (به) ضمير الله ته راجع دے يعني هغه کسان چه دوي د الله سره شرك کونکي دي.

| وَإِذَا بَدَّلْنَا آيَةً مَّكَانَ آيَةٍ وَاللهُ أَعْلَمُ بِمَا |
| --- |
| او کله چه بدل کښې راوړو مونږ يو آيت لره په ځائے د بل آيت او الله ښه پوهه دے په هغے |
| يُنَزِّلُ قَالُوا إِنَّمَا أَنتَ مُفْتَرٍ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا |
| چه نازلوي ئې، وائي دوي يقيناً ته د ځان نه جوړونکے ئې، بلکه زيات د خلقو نه نه |
| يَعْلَمُونَ ﴿١٠١﴾ قُلْ نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ مِن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ |
| پوهيږي. اُووايه نازل کړيدے دا (قرآن) پاك روح (جبريل) د رب ستا نه په رشتيا سره |
| لِيُثَبِّتَ الَّذِينَ آمَنُوا وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ﴿١٠٢﴾ |
| دے دپاره چه مضبوط کړي هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدے او هدايت او زيرے دے دپاره د منونکو. |

**تفسير** : پدے آيت کښې د مکے د مشرکانو د قرآن کريم متعلق يوه شبهه بيان کړے

شویده او ددے رد شویدے۔

په قرآن کریم کښې په بعض ځایونو کښې داسے شویدي چه الله تعالیٰ یو آیت نازل کړے، بیا د مخلوق د مصلحت په وجه هغه آیت ئې منسوخ کړے او د هغے په ځای ئې بل حکم رالیږلے دے۔ مشرکانو به د خپلے کم عقلۍ او بې ایمانۍ په وجه وئیل چه محمد ﷺ دروغجن دے، هره ورځ د خپل طرف نه یوه نوے خبره پیدا کوي، او وائي چه دا تبدیلي د الله د طرف نه ده۔ د سورة البقره آیت (١٠٦) ﴿مَا نَنۡسَخۡ مِنۡ آیَةٍ اَوۡ نُنۡسِهَا نَاۡتِ بِخَیۡرٍ مِّنۡهَا﴾ په تفسیر کښې ددے په باره کښې پوره تفصیل سره لیکل شویدي۔

هلته دا وئیل شویدي چه د قرآن په باره کښې دا شبهه یهودیانو خوره کړے وه، او دلته مفسرینو لیکلي دي چه دا شبهه د مکے مشرکانو خوره وله۔ معلومیږي چه د ټولو کافرانو دا عادت وو، او نن هم د ملحدینو او د اسلام دشمنانو همدا طریقه ده۔

ددے ټولو دا شبهه دلته زائله شویده او وئیل شویدي چه الله تعالیٰ کله د خپلو بندګانو د مصلحت د خاطره یو آیت نازلوي، بیا د حکمت د تقاضے مطابق هغه منسوخ کوي او د هغے په ځای بل حکم راولي۔ محمد ﷺ د خپل طرف نه هیڅ خبره نکوي بلکه جبریل ﷺ د خپل رب په حکم سره په حق سره او په رښتیا سره او دپاره د راښکاره کولو د حق او د توحید، دا تاسو ته رالیږلے دے، دے دپاره چه د مؤمنانو زړونه مضبوط کړي او د هغوی په ایمان او یقین کښې زیادت وشي۔ لکه د باران اُوبه کله چه په زمکه پریوزي نو هغه ژوندۍ کوي، دغه شان د قرآن کریم په نازلیدو د مؤمنانو زړونو ته ژوند ملاویږي۔ قرآن د هدایت چینه ده او مسلمانانو ته د دواړو جهانو زیرے ورکوي۔

**اَکۡثَرُهُمۡ لَا یَعۡلَمُوۡنَ** : یعني په هیڅ شی نهٔ پوهیږي۔ یا په حقیقت د قرآن نهٔ پوهیږي ځکه ئې انکار کوي۔ یا د نسخ په حکمة نهٔ پوهیږي چه دے کښې څومره مصلحت دے۔ او دا خبره خو ښکاره ده چه د جاهل سړي عیب لګولو لره هیڅ اعتبار نهٔ وي۔

(السعدی وفتح البیان)

**بِالۡحَقِّ** : هر کله چه قرآن په حق باندے مشتمل دے او نزول ئې په حق سره شویدے نو هیچا لره پدے باندے عیب لګول صحیح نهٔ دي۔ ځکه چه په حق باندے عیب لګول باطل دي۔ (سعدی)

**لِیُثَبِّتَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا** : مؤمن د قرآن په وجه په عقیده، عمل او دلیل کښې ډیر مضبوط وي، ځکه چه ددهٔ عقیده او عمل او دلیل د قرآن په رڼړا باندے روښانه وي۔

وَهُدًى : یعنی دوی ته د ځیزونو حقائق بیانوی۔ او د ګمراهئ نه ئے بچ کوی۔
﴿ وَهُدًى وَبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِیْنَ ﴾ کښې دے طرف ته اشاره ده چه دا قرآن د مسلمانانو په خلاف د اسلام د دشمنانو کفر نور هم زیاتوی او د هغوی په غم کښې زیاتے پیدا کوی۔
**فائده** : ځینی مفسرین وائی چه دلته د تبدیل الآیة نه مراد د پخوانو معجزات بدلول دی چه هغوی ته به معجزات کونیه آفاقیه ورکړے کیدل او دے نبی ته یو کتاب ورکړے شو چه هغه هدایت او رحمة او بشارت دے او د علومو چینه ده چه داسے اُمی نبی ته ورکړے شو چه نۀ ئے لوستل کړی وو او نۀ لیکل، نو دا ددے وخت سره مناسب وو۔
او پدے باندے دلیل دا پیش کوی چه دا سورت مکی دے او په مکی دور کښې هغه شان منسوخ آیتونه نۀ وو کوم چه ددے خلکو مقصد وو۔ (القاسمیؒ فی محاسن التاویل)
مګر ظاهر دا ده چه دواړه مطلبونه صحیح دی۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّهُمْ یَقُوْلُوْنَ اِنَّمَا یُعَلِّمُهٗ بَشَرٌ لِسَانُ الَّذِیْ |
| او یقیناً پو هیږو مونږ چه بیشکه دوی وائی یقیناً خودنه کوی ده ته یو انسان، ژبه د هغه کس |
| یُلْحِدُوْنَ اِلَیْهِ اَعْجَمِیٌّ وَّهٰذَا لِسَانٌ عَرَبِیٌّ مُّبِیْنٌ ﴿۱۰۳﴾ |
| چه غلط نسبت کوی دوی هغه ته عجمی (چاړئ) ده او دا قرآن ژبه عربی ده واضحه۔ |
| اِنَّ الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ لَا یَهْدِیْهِمُ اللّٰهُ |
| یقیناً هغه کسان چه ایمان نۀ راوړی په آیتونو د الله، هدایت نۀ کوی دوی ته الله تعالیٰ |
| وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۱۰۴﴾ اِنَّمَا یَفْتَرِی الْكَذِبَ الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ |
| او دوی لره عذاب دردناك دے۔ یقیناً جوړوی دروغ هغه کسان چه ایمان نۀ راوړی |
| بِاٰیٰتِ اللّٰهِ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿۱۰۵﴾ |
| په آیتونو د الله تعالیٰ او دا کسان هم دوی دروغجن دی۔ |

**تفسیر** : د مکے مشرکانو به وئیل چه دا قرآن د الله تعالیٰ د طرف نه نازل کړے شوے نۀ دے، بلکه محمد (ﷺ) د یو سړی نه زده کړے چه هغه زمونږ د دین (یعنی شرك) نه مخالف دے او بیا ئے بیانوی، او دعویٰ کوی چه په دهٔ باندے د الله د طرف نه وحی نازلیږی۔
مفسرینو ددے سړی ډیر نومونه خودلی دی۔ زیات مشهور دا دے چه ددهٔ نوم (جَبْر) وو

چه د روم نصراني وو او هغه اسلام قبول کړے وو. ځینې وائي چه نوم ئې عَایش یا یَعِیش وو چه د عامر بن الحضرمي غلام وو او عجمي کتابونه به ئې لوستل.

او بعض وائي چه د بني عامر بن لُؤَيٌ غلام وو. یا بل نصراني وو چه بلعام ئې نوم وو او تورات به ئې لوستو. ځینې عداس یادوي، او ځینې نور دوه کسان (جبر او یسار) یادوي چه دے دواړو به په مکه کښې توری تیرے کولے، او نبی کریم ﷺ به د دوی خوا ته ورتللو ځکه چه اسلام ئې راوړے وو. نو دوی پرے دغه اعتراض وکړو.

امام نحاس وائي چه ددے اقوال ترمینځ هیڅ تعارض نشته، کیدے شي چه دوی ددے ټولو په باره کښې دا وئیلي وي چه دوی ورته تعلیم ورکوي.

لِسَانُ الَّذِیُ : د لسان نه مراد دلته لغت او کلام دے.

یُلْحِدُوْنَ اِلَیْه: الحاد په معنیٰ د میلان سره دے یعني چه دوی ورته نسبت کوي او هغه ته ئې ورکړوي.

اَعْجَمِيٌّ : هر هغه شخص ته وائي چه عربي ورله نۀ ورځي او خبرے پرے نشي کولے.او وضاحت سره خبره نشي کولے برابره ده چه عربي وي او که غیر عربي. عُجمه معنیٰ ده پټوالے او چارا والے.

او فراءُ وائي چه اعجمي هغه شخص ته وائي چه اصل ئې د عجمو نه وي.

حاصل د جواب دا دے چه د کوم سړي په باره کښې چه دا مشرکان وائي چه ددۀ نه نبي کریم ﷺ زدۀ کړه کوي هغه خو عجمي دے، او قرآن فصیح او بلیغ عربي ژبه کښې دے. دا څنګه ممکن ده چه یو عجمي سړے په اعلیٰ عربي ژبه کښې داسے د حکمت خبرے وکړي او محمد ﷺ ته تعلیم ورکړي او نور عرب – چه ځان ته فُصَحاء بُلَغَاء وائي – هغه د مقابلے نه عاجز کړي. دا خو تاسو په خپل ځان رد کوئ چه مونږ دومره جاهلان یو چه داسے کتاب نشو جوړولے او یو عجمي سړے ئې جوړه ولے شي، او دا د عقل نه پریوتے خبرے دي.

اِنَّ الَّذِیْنَ لَایُؤْمِنُوْنَ : اُوس الله فرمائي چه هر کله تاسو د قرآن خلاف کوئ او دۀ ته بد بد نسبتونه کوئ، او دا دروغجن ګنړئ، نو زۀ به مو د هدایت نه محرومه کړم، د چا ضرر به وکړئ، د خپل ځانونو ضرر به وکړئ. الله تعالیٰ خو غني ذات دے.

یعني کوم خلق چه د الله د آیتونو تصدیق نۀ کوي، الله تعالیٰ حق طرف ته د هغوی لارخودنه نۀ کوي کوم چه لاره د نجات ده، او الله ته نیغه رسیدلے ده، ځکه چه الله تعالیٰ ته

د دوی بد بختی د مخکښ نه معلومه ده. او په آخرت کښ به دوی ته دردناك عذاب ملاویږی. ځکه چه د حق داعی ته ئے درد رسولے دے.

او دا داسے آیت دے لکه د ﴿ خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ﴾ په شان ځکه چه د دوی کور ته هدایت راغلے وو او دوی ورله لته ورکړه نو ځکه ترے محروم شو.

**اِنَّمَا یَفْتَرِی الْکَذِبَ:** دا جواب دے ددے وینا د مشرکانو ﴿ اِنَّمَا اَنْتَ مُفْتَرٍ﴾ چه دوی رسول الله ﷺ ته ووبل: ته دا قرآن د ځان نه جوړوے او دا دروغ دی.

فرمائی چه دروغ خو هغه خلك جوړوی چه دروغ د هغه صفت وی او د الله نه نهٔ یریږی، او د الله د قدرت نخے او د هغه وجود نهٔ منی او د هغه په شرع او آیتونو ایمان نهٔ لری. نو دا رسول به څنګه دروغ ووائی چه دا د مؤمنانو سردار دے او ایمان ته دعوت ورکونکے دے، او د ټولو نه زیات رشتینی، د ټولو نه ډیر نیك او د ایمان او د عمل په اعتبار سره د ټولو نه ښهٔ انسان دے نو هغه څنګه دروغ وئیلے شی او ستاسو په ژبه هم صادق او امین دے، او دا قانون دے چه یو تن په انسانانو باندے دروغ نهٔ وائی نو په الله به څنګه دروغ ووائی لکه دا خبره هرقل ابوسفیان ته ذکر کړے وه. خو اصل کښ خبره دا ده چه دروغ وئیل د کافرانو لازمی صفت دے او د دوی عادت دے. (اَلْمَرْءُ یَقِیْسُ عَلٰی نَفْسِهٖ) (سړے په ځان باندے نور خلك قیاس کوی) او ددے نه لوی کوم دروغ کیدے شی چه دوی د الله تعالیٰ د آیتونو تکذیب کوی.

**یَفْتَرِی الْکَذِبَ:** اَیْ عَلَی اللّٰهِ. یعنی دروغ جوړوی په الله باندے هغه خلك چه ایمان نهٔ لری. او هسے دروغ کله نا کله د مؤمن نه وئیلے کیږی لیکن زر توبه ویاسی.

زجاج وائی: معنیٰ دا ده چه دروغ هغه خلك جوړوی چه کله دوی هغه نخے (معجزے) وینی چه په هغے باندے صرف الله قادر وی نو دوی د دغه نخو پورے سخت دروغ جوړ کړی. (فتح البیان)

| |
|---|
| مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْ بَعْدِ اِيْمَانِهٖۤ اِلَّا مَنْ |
| چا چه کفر وکړو په الله تعالیٰ روستو د ایمان راوړو نه سویٰ د هغه چا نه |
| اُكْرِهَ وَقَلْبُهٗ مُطْمَئِنٌّۢ بِالْاِيْمَانِ وَلٰكِنْ مَّنْ |
| چه زور پرے وکړے شو او زړهٔ د هغه مضبوط وو په ایمان باندے لیکن چا چه |

| شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ |
|---|
| کولاوه کړه کفر ته سینه خپله نو په دوی باندے غضب د الله دے او دوی دپاره عذاب |
| عَظِيمٌ ﴿١٠٦﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ |
| لوئی دے۔ دا ددے وجے وته چه دوی خوښ کړیدے ژوند دنیوی په آخرت باندے |
| وَأَنَّ اللهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿١٠٧﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللهُ |
| او یقیناً الله هدایت نهٔ کوی قوم کافرانو ته۔ دا هغه کسان دی چه مهر وهلے دے الله تعالیٰ |
| عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ﴿١٠٨﴾ |
| په زړونو د دوی او په غوږونو د دوی او په سترګو د دوی او دا کسان دوی بے پرواه دی۔ |
| لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿١٠٩﴾ |
| خامخا دوی به په آخرت کښ تاوان والا وی۔ |

**تفسیر:** ربط او خلاصه د آیتونو

مخکښ آیت کښ په اسلام باندے د ثابت قدم کیدو حکم وشو او د لوظ ماتولو نه منع وشوه، نو اُوس هغه خلکو ته سخت وعید بیانیږی چه د اسلام د قبلولو نه روستو د یو عارضی تکلیف او مصیبت د وجه نه دویم ځلی کفر طرف ته واپس کیږی۔

ددے حکم نه ئے هغه خلق مستثنیٰ کړیدی کوم چه د ظلم او زیاتی نه تنګ شی او د ځان بچ کولو دپاره د کفر یوه کلمه په خپله ژبه راولی، لیکن د زړهٔ نه کفر نهٔ قبلوی۔

کوم خلق چه د زړهٔ نه دویم ځلی کفر قبلوی، الله تعالیٰ د هغوی په باره کښ فرمائی چه په دوی باندے به د الله غضب وی، او د قیامت په ورځ به په لوی عذاب کښ اخته کیږی، ځکه چه دوی د دنیا ژوند په آخرت باندے غوره کړو۔ او د کفر لاره اختیارولو په وجه الله تعالیٰ دوی ته هدایت هم نهٔ کوی، او د دوی په زړونو او غوږونو او سترګو باندے مهر لګوی، او دوی په غفلت کښ اخته کوی، او په دوی باندے د خیر او صلاح ټول دروازے بندوی، او معلومه ده چه په دنیا کښ د مؤمن حیثیت د تاجر دے چه د خپلو نیکیو په ذریعه د آخرت سعادت اخلی، لیکن کله چه په یو انسان کښ د محرومتیا پوره ته ذکر شوی ټول اسباب جمع شی نو هغه ته به د تاوان نه سویٰ هیڅ نهٔ ملاویږی۔

ابن عاشورؒ فرمائي : دلته څکه سخت وعید بیان شو چه په مکي دور کښې مشرکانو دا کلکه اراده کړې وه چه کوم خلك په اسلام قبلولو کښې مینه لري او یا چا چه اسلام راوړې چه دوی په فتنه کښې اخته کړي او د اسلام نه ئې بیرته راوګرځوي لکه هغه شخص چه دوی د هغه په باره کښې وئیلي وو چه محمد (ﷺ) د هغه نه قرآن زده کوي چه د هغه جَبر نوم وو، د عامر بن الحَضرمي غلام وو، هغه ته مشرکانو سزاګانې ورکړې نو هغه بیرته مرتد شو او دوی د نورو مسلمانانو نه د ارتداد مطالبه کړې وه لکه بلال، خباب بن الارت، یاسر، سمیه رضی الله عنهم خو دوی په اسلام کلك پاتې شو او بعض نورو کسانو ته ئې سزا ورکړه نو هغوی ئې هم کافر شو لکه د هغوی نه حارث بن ربیعه بن الاسود، ابو قیس بن الولید بن المغیره، علي بن امیه بن خلف، العاصي بن منبه بن الحجاج دی۔ او زما ګمان دے چه د دوی په باره کښې دا آیت نازل شویدے : ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّقُوۡلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ فَاِذَاۤ اُوۡذِىَ فِى اللّٰهِ جَعَلَ فِتۡنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللّٰهِ﴾ (العنکبوت : ۱۰)۔

(یعني بعض د خلکو نه هغه دي چه وائي مونږ په الله ایمان راوړے خو کله چه د الله په باره کښې تکلیف ورکړے شي نو د خلکو سزا د الله د عذاب په شان وګڼړي) التحریر والتنویر (۲۳۶/۱۳)

## شان نزول

د حدیث په ګڼړو کتابونو کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه دا آیت د عمار بن یاسر رضی الله عنه په باره کښې نازل شوے وو۔ کله چه د مکے مشرکانو دۀ لره په عذاب ورکولو سره مجبوره کړے وو چه هغه نبی کریم ﷺ ته بد رد ووائي او د دوی د معبودانو صفت وکړي۔ (په یو روایت کښې دي چه چا رسول الله ﷺ ته خبر ورکړو چه عمّار کفر وکړو، نو رسول الله ﷺ د هغه غائبانه ګواهي وکړه وے فرمایل : (مُلِئَ عَمَّارٌ اِيۡمَانًا اِلٰى مُشَاشِهٖ) عمار د ایمان نه تر د هډوکو پورے ډك شویدے، هغه نۀ کافر کیږي) (نسائي : ۵۰۰۷ باسناد صحیح)

بیا روستو عمار راغلو او ژړه ئې چه ما خو د کفر کلمه وئیلے ده نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: [ كَيۡفَ تَجِدُ قَلۡبَكَ ] چه ته خپل زړۀ څنګه مونده کوے؟ هغه وویل چه زۀ په خپل ایمان باندے په پوره توګه مطمئن یم، نو نبي ﷺ وفرمایل (فَاِنۡ عَادُوۡا فَعُدۡ) چه که دوی دویم ځلې تاسره داسے سلوك وکړي نو تۀ دویم ځلي دغسے کلمات استعمال کره۔

(الدر المنثور، تفسیر عبد الرزاق وابن ابی حاتم والطبری)

پدے وجه قرطبيؒ لیکلي دي چه د مفسرینو او اهل علمو اتفاق دے چه څوك د خپل ځان

دبچ کولو دپاره د کفر کلمه په ژبه راولی په هغه به هیڅ گناه نهٔ وی۔
(او دا د الله تعالیٰ ډیر رحم دے په خپلو مؤمنانو بندګانو چه په کفر کښې ئې هم ورله د استثناء صورت بیان کړو)۔
او ابن کثیرؒ لیکلی دی چه څوک په کفر کولو مجبوره شی، هغه دپاره به په ظاهری توګه د کفر کلمه ښکاره کول جائز وی۔ او دا به هم جائز وی چه انکار وکړی۔ لکه څنګه چه بلال رضی الله عنه کړی وو چه هر تکلیف ئې برداشت کولو، او اَحَد اَحَد نعرے به ئې وهلے۔ بلال وائی چه که ما ته بله کومه کلمه معلومه وے چه هغه کافران زیات غصه کوی نو هغه به ما ضرور وئیلے۔ آه۔
دارنګه د عمار بن یاسر مور (سُمیه رضی الله عنها) د ابوجهل د ضررونو په وجه شهیده شوه لیکن هیڅ کلمه د کفرئې ونهٔ وئیله، هغې په عزیمت باندے عمل وکړو۔
څینی اهل علمو وئیلی دی چه دا رخصت صرف د کفر د کلمے په وئیلو کښې دے، او هرچه کفری عمل کول دی، نو هغه په اکراه کښې نهٔ داخلیږی لکه بت ته د قتل په یره سجده کول وغیره، او دا قول د حسن بصریؒ، اوزاعیؒ، شافعیؒ او سحنونؒ دے لیکن دا د آیت د ظاهر نه خلاف دے ځکه چه په آیت کښې فرق د قول او فعل نشته۔ (فتح البیان)
**اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ** : دا استثناء ده د (مَنْ كَفَرَ) نه۔ او د اِکراه نه مراد دا دے چه په انسان باندے داسے د مجبورتیا حالت راشی چه کافرئې وژنی، یا ورته د قتل دهمکی ورکړی او هغه قادر وی ددهٔ په وژلو نو په داسے وخت کښې کلمه د کفر په ژبه وئیل جائز دی چه زړه به ئې په ایمان پوخ وی۔
**مُطْمَئِنٌّ بِالْاِيْمَانِ** : یعنی زړه کښې ئې ایمان پروت وو، عقیده ئې نهٔ وه بدله شوے۔
**وَلٰكِنْ مَّنْ شَرَحَ** : یعنی که چا کلمه د کفر ووئیله او د هغه په زړهٔ کښې هم کفر راغلو او کفرئې ښه وګڼړلو، سینه ئې ورته کولاوه کړه، نو دا به هم د الله په غضب کښې راګیر وی۔
**ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ** : یعنی د کفر وجه دا ده چه خلك دنیا په آخرت باندے غوره کړی، د دنیا معمولی مال په کفر باندے آماده کړل۔
**لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ** : یعنی داسے قسم ضدی کافر ته الله تعالیٰ هدایت نهٔ کوی ځکه چه دهٔ ته حق دین ښکاره شوے وو او بیا ئې د دنیا د وجه نه پریخے دے، دا قسم خلك اکثر د دنیا نه بی دینه ځی او الله تعالیٰ ورته د توبې توفیق هم نهٔ ورکوی۔
**طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ** : الله تعالیٰ ورله زړهٔ داسے بند کړی چه بیا د الله تعالیٰ او د ایمان او

د آخرت او د کامیابئ هیڅ فکرئے نهٔ وی، په هلاکت باندے ور روان وی او دے غافله کړئ راګرځی.

| ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا |
| --- |
| بیا یقیناً رب ستا دپاره د هغه کسانو چه هجرت ئے کړیدے روستو د هغے نه |
| فُتِنُوا ثُمَّ جَاهَدُوا وَصَبَرُوا إِنَّ رَبَّكَ |
| چه تکلیفونه ورکړے شویدی بیا ئے جهاد کړیدے او صبرئے کړیدے یقیناً رب ستا |
| مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۱۰﴾ يَوْمَ تَأْتِي |
| روستو ددے (کارونو) نه خامخا بخنه کونکے رحم کونکے دے۔ په هغه ورځ چه رابه شی |
| كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَّفْسِهَا وَتُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ |
| هر نفس چه بحث به کوی د طرفه د نفس خپل نه او پوره به ورکړے شی هر نفس ته |
| مَّا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿۱۱۱﴾ |
| هغه عمل چه کړے ئے دے او دوی باندے به ظلم نشی کیدے۔ |

**تفسیر** : په مکه کښې داسے کمزوری مسلمانان وو چه د نبی کریم ﷺ سره ئے هجرت نشو کولے۔ او کله ئے چه هجرت کول غوختل نو قریشو هغوی منع کړل او په زړه سره ئے د کفر په کلمه وئیلو مجبوره کړل، لیکن د زړهٔ نه ئے کفر یو سیکنډ دپاره هم نهٔ دے قبول کړے۔ او څه ورځے روستو دوی ته د هجرت موقعه ملاؤ شوه نو مدینے ته اورسیدل او رسول الله ﷺ سره ئے جهاد وکړو او د صبر او استقامت ثبوت ئے ورکړو۔ الله تعالیٰ ددے مسلمانانو په باره کښې فرمائی چه الله تعالیٰ به دوی د قیامت په ورځ معاف کړی او د دوی په حال به رحم وکړی۔

ثُمَّ جَاهَدُوا : دا آیتونه مکی دی او په مکه کښې جهاد په معنیٰ د قتال سره نهٔ وو نو د جهاد نه مراد مقاومت کول دی په دفاع د مشرکانو کښې چه چرته ئے د اسلام نه واړهٔ روی۔

(ابن عاشورؒ)

مګر غوره خبره دا ده چه په مکه کښې هم د قتال دپاره ذهن سازی وه اګرکه شروع شوے لا نهٔ وو لکه سورة المزمل مکی دے او په هغے کښې ﴿ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ﴾ ذکردے۔

نو رسول الله ﷺ به د ملګرو ذهن جوړولو چه داسے وخت به راځی چه مونږ به قتال شروع کوو۔

وَصَبَرُوْا: یعنی مشقتونه ئے برداشت کړیدی د کفارو نه۔

مِنْ بَعْدِهَا : اَیْ بَعْدَ الْمُهَاجَرَةِ۔ یعنی پس د هجرت نه۔

لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ : اَیْ لِمَعَاصِيْهِمْ وَمَا صَدَرَ مِنْهُمْ مِنْ كَلِمَةِ الْكُفْرِ تَقِيَّةً ۔ یعنی ددوی ګناهونه به معاف کړی، او هم هغه کلمه د کفر چه د دوی نه د ځان د بچاؤ په طریقه صادره شوے وه۔

يَوْمَ تَاْتِيْ : ۱- دا متعلق دے د غفور رحیم سره۔ یعنی الله به دوی ته بخنه وکړی او رحم به پرے وکړی په هغه ورځ چه د هر سړی سره به صرف د خپل ځان فکر وی، او په کوشش کښې به لګیا وی چه دے د اُور د عذاب نه نجات موندهٔ کړی۔

او په دنیا کښې چه هر سړی کوم خیر او شر کړے وی د هغے به ورته پوره پوره بدله ورکولے شی او په دوی به ذره برابر هم ظلم نهٔ کیږی۔

۲- یا دا مستقل کلام دے او (اُذْكُرْ) امر پټ دے یعنی رایاده کړه دغه ورځ۔ او پدے کښې بیا وعید دے دغه یره ولے شوو خلکو دپاره او وعده ده د هغه کسانو دپاره چه هغوی ته زیریے ورکړے شو۔ (ابن عاشورؒ)

كُلُّ نَفْسٍ : نه مراد شخص دے او روستو نفس نه مراد ذات دے یعنی هر شخص به د خپل ذات د طرف نه جګړه کوی۔

تُجَادِلُ : د مجادلے نه مراد (اَلسَّعْیُ فِی الْخَلَاصِ) دے، یعنی هر کوشش کول په خلاصی کښې، څوك به سفارشیان ګوری چه ما له سفارش وکړی، څوك به انکار کوی، څوك به اقرار کوی چه خیر دے معاف مے کړه۔ څوك به دعاګانے او عاجزیانے کوی، او څوك به یو خوا او څوك به بل خوا منډے تړړے وهی۔

| وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً يَّاْتِيْهَا |
|---|
| او بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال د یو کلی چه وو امن والا، په اطمینان سره، راتلهٔ به هغوی ته |
| رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا |
| رزقونه فراخه د هر ځائے نه نو کفرئے اُوکړو په نعمتونو د الله تعالیٰ نو اُوڅکوو هغے ته |
| اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ وَلَقَدْ جَآءَهُمْ |

| اللہ جامه د لوږې او د ېرې په سبب د هغې کارونو چه دوی کول۔ او یقیناً راغلے وو دوی ته |
|---|
| رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ |
| رسول د دوی د جنس نه نو دروغجن اُوګڼلو دوی هغهٔ ته نو رانیول دوی لره |
| الْعَذَابُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ فَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا |
| عذاب او دوی ظالمان وو۔ نو خورئ د هغے نه چه درکړیدے تاسو ته الله تعالیٰ حلال پاك |
| وَّاشْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۱۴﴾ |
| او شکر کوئ د نعمت د الله تعالیٰ که یئ تاسو خاص هغه لره بندګی کوئ۔ |

**تفسیر** : په دے آیت کښې الله تعالیٰ تخویف دنیوی بیان کړیدے او مکے والو ته ئے د هغوی د کلی مثال ورکړیدے۔ او بیا دا حکم عام دے۔ د مثال حاصل دا دے چه مکے والو ته الله تعالیٰ د سکون او د امن ژوند ورکړے وو، او د څلور واړو طرفونو نه به ورته د الله رزق رارسیدو لیکن کله چه دوی د الله ناشکری وکړه۔

او ناشکری د دوی یوه دا وه چه په رسول الله ﷺ باندے د ایمان راوړو نه ئے انکار وکړو، بل ئے د الله بندګی پریخوده، او بل ئے حلال او حرام د ځان نه جوړ کړل، او د الله سره ئے شریکان جوړ کړل۔ نو الله تعالیٰ د دوی دواړه حالتونه بدل کړل۔ او نبی کریم ﷺ دوی ته ښیرے وکړے [اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا عَلَيْهِمْ سِنِيْنَ كَسِنِىْ يُوْسُفَ] (بخاری: ۶۲۰۰) ومسلم (۱۵۷۴) چه اے الله! دوی د یوسف (علیه السلام) د زمانے د قحط په شان قحط کښې اخته کړه۔ نو همدغه شان وشوه، په مکه کښې داسے قحط راغلو چه هر شے ختم شو او د مردارے د خوړلو نمبر راغلو، او بیا چه کله د دوی نه نبی کریم ﷺ او صحابه کرامو مدینے ته هجرت وکړو نو دوی وخت په وخت کمیدل او د دوی په زړونو او دماغو باندے د اسلامی لښکر داسے رعب مسلط شو چه د دوی امن او سکون واخستے شو، تردے پورے چه مکه فتح شوه او هرڅه د دوی د لاسونو نه ووتل۔

مفسرین وائی چه که د ((قریة)) نه مراد مکه واخستے شی بیا هم ددے آیت حکم هر هغه قوم ته شامل دے چه هغوی ته الله تعالیٰ نعمتونه ورکړی او د زمانے په تیریدو سره د نعمت په نشه کښې داسے مست شی چه د الله تعالیٰ نافرمانی وکړی او سرکشی د هغوی فطرت جوړ شی، نو الله تعالیٰ په دوی باندے خپل عذاب مسلط کوی۔

نو پدے آیت کښې الله تعالیٰ ترغیب ورکوی شکر ته، او زورنه ورکوی په ناشکرئ چه ناشکری مهٔ کوئ ورنه داسے کار به درسره وشی لکه چه مکے والو سره وشو سره ددے نه چه دا خلك د بیت الله په گاونډ کښې وسیدل نو نور خلك به څنگه د عذاب نه بچ شی۔ او مکے والو ته هم تنبیه ورکوی چه راشئ ایمان راوړئ، په تاسو دا عذابونه ولے راځی؟، دے ته خو لږ فکر وکړئ، ددے وجه ستاسو ناشکرئ او ددے نبی نه انکار دے۔

آمِنَةً : اَیْ مِنَ الْعَدُوِّ۔ د دشمن نه په امن کښې وو۔ چا به پدے ځای حملے نشوے کولے۔

مُّطْمَئِنَّةً : اَیْ مِنَ الْجُوْعِ۔ د لوږے نه په اطمینان کښې وو۔

يَاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا: سورة القصص آیت (۵۷) کښې دی : ﴿يُجْبٰى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ مِّنْ لَّدُنَّا﴾۔ (مکے ته راوړے شی میوے د هر شی زمونږ د طرفنه)۔

فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ : ابن راوندی یو کافر وو په قرآن ئے اعتراض وکړو چه د لوږے لباس خو څکلے کیږی نهٔ ؟ نو ابن الاعرابی امام اللغة والادب ورته جواب ورکړو (اَيُّهَا النَّسْنَاسُ) اے جاهله ! آیا محمد ﷺ عربی نهٔ وو څه۔ ذوق په لغت د عربئ کښې د مباشرت او مماست دپاره استعمالیږی (ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ) او دلته ئے لباس لفظ څکه استعمال کړیدے چه لوږه دوه قسمه ده، یوه لږه لوږه چه دا صرف په فَمِ مِعْدَه باندے درد راولی او کله چه لوږه زیاته شی نو ټول بدن باندے د هغے اثر وشی او ټول بدن باندے راتاؤ شی، او بدن تپ او خوار شی نو داسے شی لکه چه څادر او جامه د لوږے ورته اچولے شویده۔ نو پدے کښې کاملے لوږے او خوف ته اشاره ده۔ او دا د قرآن کمال دے۔

فَاَذَاقَهَا : ذوق (څکل) لفظ ئے ورله استعمال کړو اشاره ده چه د دنیا عذاب د آخرت د عذاب په نسبت لږ وی، هسے څکه وی۔

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ : دا د مخکنی مثال تکمیل (پوره والے) دے چه د مکے مشرکانو د هدایت دپاره د دوی نه یو رسول راغلو چه د هغهٔ حسب او نسب دوی پیژندلو، هغه رسول دوی ته د نیکئ حکم وکړو او د بدئ نه ئے منع کړل نو دوی د هغه تکذیب وکړو او وے وئیل چه تهٔ رسول نهٔ ئے، نو د الله عذاب دوی لره راونیول او دوی لوی ظالمان وو چه د خپل ځان دپاره د همیشه عذاب سبب جوړ شو او نور خلق ئے هم د حقے لارے نه منع کړل۔

فَكَذَّبُوْهُ : دا د (فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ) تفسیر دے او (فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ) تفسیر دے د (فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ) دپاره۔ یا د عذاب نه مراد په بدر کښې د هغوی وهل او قید کیدل دی۔ مگر

اول غورہ دے۔
فَكُلُوْا مِمَّا : مضمون: ددے آیت نه روستو د مشرکانو د ځان نه په حلال حرامو جوړولو باندے رد ذکر کیږی او بیا څلور څیزونه ذکرکوی چه دا اتفاقی حرام دی، دا به حلال نهٔ ګنړئ، نو دا څیزونه حرام دی او دوی ئے حلال ګنړی او بحیرے او سائبے الله تعالیٰ حلالے کړیدی او دوی ورته مردار او حرام وائی، دا د دوی ناشکری او په الله باندے دروغ جوړول شو، بیا سوال پیدا شو چه په یهودیانو باندے بعض حیوانات حرام وو په تورات کښې؟ نو جواب به وشی چه په یهودیانو دا څیزونه په تورات کښې د هغوی د ظلم په وجه حرام شوی وو۔ یعنی تورات به په دلیل کښې نهٔ پیش کوئ ځکه چه دغه تحریم د هغوی د خصوصیاتو نه وو۔ بیا مختصره واقعه د ابراهیم ﷺ راوړی چه د هغه پکښې پنځه صفات او پنځه انعامات ذکر دی او مقصد پکښې دعوت دے د هغه اتباع ته په شکر کولو د نعمتونو کښې لکه (شَاكِرًا لِّاَنْعُمِهٖ) کښې ورته اشاره ده۔ او هغه شرک کونکے نهٔ وو۔
بیا سوال پیدا شو چه د ابراهیم ﷺ په دین کښې خو د خالی ورځے تعظیم لازم وو او کاروبار پکښې حرام وو او د رسول الله ﷺ په دین کښې خو ددے تعظیم نشته ؟ نو جواب کوی چه دا حکم صرف په یهودیانو پورے خاص وو او دا د ابراهیم ﷺ په دین کښې نهٔ وو۔ بلکه د جُمعے د ورځے تعظیم وو چه هغه الله تعالیٰ دے امت ته هم ورکړیدے۔ او په آخر د سورت کښې به د دعوت آداب بیانوی په درے طریقو سره، بیا د انسانانو تقسیم او نور آداب : مُعَاقبه، صبر، تقویٰ او احسان ئے ذکر کړیدی چه پدے سره کامیابی ملاویږی۔
فَكُلُوْا : فاء ئے راوړه ځکه چه دا په مخکښې باندے تفریع ده، اَیْ اِذَا كَانَ الْاَمْرُ كَذٰلِكَ ۔ یعنی کله چه خبره داسے شوه چه الله تعالیٰ تاسو ته په ناشکرئ عذابونه درکوی نو ناشکری مهٔ کوئ او د الله حلال حلال وګنړئ۔
یا دا خطاب مسلمانانو ته دے نو معنیٰ دا ده : [اِنَّكُمْ لَمَّا اٰمَنْتُمْ وَتَرَكْتُمُ الْكُفْرَ فَكُلُوا الْحَلَالَ الطَّيِّبَ] تاسو چه کله ایمان راوړو او کفر مو پریخودو نو د الله په لاره کښې د جهاد کولو په وجه چه کوم د غنیمت مال ستاسو لاس ته راشی نو هغه خورئ، هغه ستاسو دپاره حلال دے او خبائث یعنی مرداره او وینه وغیره خوړل پریدئ او که واقعی تاسو صرف د الله عبادت کوئ نو د الله د نعمتونو شکر ادا کړئ او د هغه حق وپیژنئ۔
فَكُلُوْا : یعنی حلال ئے وګنړئ۔ او د ځان نه ئے د باباګانو او بتانو په نوم مهٔ حراموئ۔
اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ: اشاره ده چه شکر د عبادت نه دے او عبادت عین شکر دے۔

| |
|---|
| إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ |
| یقیناً الله حرام کړیده په تاسو مرداره او وینه او غوښه د خنزیر او هغه چه آواز پورته کړے شی |
| لِغَيْرِ اللهِ بِهِ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ |
| د نذر د غیر الله دپاره په هغے سره نو څوك چه مجبوره شو چه نهٔ دے طلب کونکے د مزے |
| وَّلَا عَادٍ فَإِنَّ اللهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٥﴾ وَلَا تَقُولُوا لِمَا |
| او نهٔ دے زیاتے کونکے نو یقیناً بخونکے رحم کونکے دے۔ او مهٔ وایئ هغه شی ته |
| تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلَالٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوا |
| چه بیانوی ژبے ستاسو دروغ چه دا شے حلال دے او دا حرام دے، دے دپاره چه جوړ کړئ تاسو |
| عَلَى اللهِ الْكَذِبَ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴿١١٦﴾ |
| په الله باندے دروغ، یقیناً هغه کسان چه جوړوی په الله باندے دروغ نشی بچ کیدے (د |
| مَتَاعٌ قَلِيلٌ وَّلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١١٧﴾ |
| عذاب نه)۔ (دوی لره) مزه ده لږه او دوی لره عذاب دردناك دے۔ |

**تفسیر** : دا د مخکښی آیت تتمه ده دے دپاره چه د طیب او خبیث ترمینځ تمییز وشی۔ یعنی د الله حرامو ته حرام ووایئ او د الله حلال خورئ۔ دا محرمات په سورة البقره، مائده او انعام کښې ذکر شویدی، بار بار بیانولو نه مقصد د مسلمانانو په ذهن کښې ددے د حرمت سختوالے کینول دی ځکه چه مشرکانو به دا څیزونه بنهٔ په شوق سره استعمالول۔

**إِنَّمَا حَرَّمَ** : د حصر معنیٰ دا ده چه [مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ تِلْكَ الْأَشْيَاءَ الَّتِي تُحَرِّمُونَهَا بَلْ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ] په تاسو دغه څیزونه نهٔ دی حرام کوم چه تاسو د ځان نه حرام ګنړئ بلکه دا څلور څیزونه ئے حرام کړیدی، دلته او بقره کښې ئے څلور او په انعام کښې ئے لس محرمات بیان کړیدی ځکه چه هلته کښې (مُنْخَنِقَه، مَوْقُوْذَه، مُتَرَدِّيَه، نَطِيْحَه او مَا أَكَلَ السَّبُعُ) ئے په میته کښې داخل کړیدی۔

**فَمَنِ اضْطُرَّ** : که یو شخص ته د سختے لوږے په وجه د مرګ خطره راشی، نو د هغهٔ دپاره د ضرورت په اندازه ددے محرماتو نه خوړل د خپل ځان بچ کولو دپاره جائز دی۔ الله

تعالیٰ به دا معاف کوی۔
غَيْرَ بَاغٍ : چه نهٔ دے طلبګار د لذت (خوند)۔
او وَّلَا عَادٍ : نهٔ دے تجاوز کونکے د حدودو نه په خوراك کښې۔
او هدایت د آیت دا دے چه په دین کښې محرمات ډیر کم دی او بیا ددے کمو نه هم استثناء موجوده ده چه په وخت د اضطرار کښې دا هم استعمالولے شی نو د ځان نه حرام جوړولو ته هیڅ ضرورت نشته، دا د الله مقابله ده۔ او ډیر انسانان د ځان نه حلال څیزونه او خوراکونه حراموی دا لوی مجرمان دی۔
وَلَا تَقُولُوا لِمَا تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ: لام اجلیه او ما مصدریه دے اَیْ لِاَجْلِ وَصْفِ اَلْسِنَتِكُمُ الْكَذِبَ ۔ مهٔ وایئ په وجه د بیانولو د ژبو ستاسو دروغو لره۔ یعنی ستاسو ژبے په دروغو بیانولو عادت دی نو داسے مهٔ وایئ چه دا حلال دی او دا حرام، او مطلب دا دے چه هیڅ انسان ته دا اختیار نشته چه هغه د خپل طرف نه یو شے حلال او یو شے حرام کړی، دا ټول مخلوق د الله تعالیٰ دے۔ هغه چه کوم شے حلال غوختلو هغه ئے حلال کړو او کوم ئے چه حرام غوختو هغه ئے حرام کړو لیکن د عربو د مشرکانو دا دستور وو چه دوی بعض حیوانات د خپل طرف نه حرام ګرځولی وو۔ لکه بحیره، سائبه، وصیله او حام وغیره حیوانات۔ دوی به دا د خپلو بتانو په نوم پریخودل او د دوی غوښه خوړل به ئے حرام ګڼړل۔
لِتَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ : سوال پیدا شو چه مونږ خو دا وایو چه دا شے حلال او دا حرام او دا جائز دے او دا ناجائز، نو آیا دا خبره هم ګناه ده؟
**جواب** دا دے چه دا خبره په هغه وخت کښې ناروا ده چه تاسو په الله باندے دروغ جوړوئ او چه کله یو تن په قرآن او په حدیث حواله ورکوی نو بیا خو دهٔ د ځان نه حرام او حلال جوړ نکړل۔
مَتَاعٌ قَلِيلٌ : اَیْ لَهُمْ مَتَاعٌ : د دوی دپاره فائدے دی لږے په دنیا کښې یعنی که داسے خلق په دنیا کښې څه خوراك څکاك وکړی او په ظاهری توګه باندے مزے وکړی نو پدے سره دے څوك نهٔ دهوکه کیږی چه ګڼے دوی ډیر کامیاب دی۔ دا خو د دنیا بالکل عارضی شے دے۔ د مرګ نه روستو دردناك عذاب د دوی انتظار کوی۔
ابن ابی حاتمؒ د ابو نضرةؒ وینا نقل کړیده چه ما د کله نه د سورة النحل دا آیت لوستلے دے نو د فتوے ورکولو نه یریږم۔
صاحب د «فتح البیان» د دوی ددے وینا نقل کولو نه روستو وئیلی دی چه دوی رشتیا

وئیلی دی، الله ورپرے رحم وکړی۔ ځکه چه دا آیت کریمه هر هغه مفتی ته شامل دے چه د الله د کتاب یا د رسول الله ﷺ د سنت خلاف فتویٰ ورکوی، لکه چه ډیر خلق داسے کوی چه د یو امام رائے ته د رسول الله ﷺ په حدیث باندے ترجیح ورکوی، یا هغه خلق چه د قرآن او سنت د علم نه بے برخے وی۔

| وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا مَا |
|---|
| او په هغه کسانو باندے چه یهودیان دی حرام کړیدی مونږ هغه څه |
| قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَـٰكِنْ |
| چه بیان کړیدی مونږ تا ته مخکښې ددینه او ظلم نهٔ دے کړے مونږ په دوی باندے لیکن |
| كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿۱۱۸﴾ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُوا السُّوءَ |
| دوی د نفسونو خپلو سره ظلم کولو۔ بیا یقیناً رب ستا هغه کسانو لره چه کړے ده بدی |
| بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا |
| په ناپوهئ سره بیا ئے توبه وېستلے ده روستو ددے نه او عمل ئے برابر کړے |
| إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿۱۱۹﴾ |
| یقیناً رب ستا روستو ددے نه خامخا بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : جواب د سوال دے چه ته وائے ددے خلورو څیزونو نه علاوه نور څیزونه حلال دی نو په تورات کښې چه راغلی دی چه د اوښانو غوښه حرامه ده او هغه هم د الله کتاب دے او تهٔ ورته حلاله وائے ؟ جواب : دا خاص په یهودیانو باندے د هغوی د ظلم او ګناهونو د وجه نه حرام شوی وو، الله په هغوی ظلم نهٔ وو کړے، او دغه محرمات په هر چا باندے حرام نهٔ دی۔ دغه تحریم د څه وخت پورے وو روستو د عیسیٰ علیه السلام او د محمد رسول الله ﷺ په دین کښې حلال کړے شو۔

په بل تعبیر سره داسے هم وئیلے شی چه مخکښې هغه محرمات بیان شو چه په شریعت اسلامیه کښې حرام وی، نو اوس هغه محرماتو ته اشاره کوی چه د یهودو په شریعت کښې حرام وو، او پدے کښې مقصد دا بیانول دی چه عربو مشرکانو چه کوم حیوانات د خپل طرف نه حرام کړیدی، ددے حرمت په آسمانی دین کښې ثابت نهٔ دے۔ دا خالص د دوی

افتراء او دروغ ونیل دی۔

قَصَصْنَا عَلَيْكَ : دا حواله ده په سورة الانعام آیت (١٤٦) او سورة النساء آیت (١٦٠) باندے۔

وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ : سوال پیدا شو چه دا پرے ولے حرام شوی وو؟ نو الله فرمائی : دا تحریم په دوی باندے په سبب د ظلم او گناهونو د هغوی سره وو چه هغوی ددے اسباب اختیار کړل، د پیغمبرانو نافرمانی به ئے همیشه کوله او هغوی به ئے وژل۔ نو مونږ پرے د سزا په طریقه حرام کړل او پدے کښې مونږ په دوی باندے ظلم نۀ دے کړے۔

ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ : که څوك ووائی چه مونږ خو تر اوسه پورے حرام او حلال د ځان نه جوړ کړیدی او په الله باندے مو افتراء کړیده او د هغه د حکمونو خلاف مو کړیدے؟ نو الله دعوت ورکوی چه تر څو پورے تۀ ژوندے ئے ستا علاج کیږی، هغه دا چه توبه ویاسه او خپل عمل آینده دپاره برابر کړه بخنه به درته وشی۔

نو دا سورت په آخر کښې دعوت ورکوی هغه خلکو ته چه شرك او د نبی کریم ﷺ مخالفت ئے کړیدے او د دوباره ژوند نه ئے انکار کړے او د الله ناشکری ئے کړیده چه راشیٔ اوس توبه وباسیٔ، د الله تعالیٰ په وحدانیت او د رسول الله ﷺ په رسالت او دوباره ژوندی کیدو باندے ایمان راوړیٔ او د خپل نیت او خپلو اعمالو او احوالو اصلاح وکړیٔ نو الله به دربانده رحم وکړی او گناهونه به مو معاف کړی گویا که دا د قرآن په ژبه د کافرانو دپاره ډیر د خوشحالیٔ خبر دے۔

السُّوْءَ : دا هر قبیح فعل ته وئیلے شی نو ددے لاندے کفر او ټول گناهونه داخلیږی۔

بِجَهَالَةٍ : یعنی د الله نه او د هغه د عقاب (سزا) نه نا خبره وو او په انجام کښې ئے هیڅ سوچ او فکر نۀ کولو، شهواتو پرے غلبه کړے وه۔

بعض سلف وائی : هر هغه څوك چه د الله نافرمانی کوی هغه جاهل دے۔

بَعْدِ ذٰلِكَ: یعنی پس د بد عمل نه۔

مِنْ بَعْدِهَا : یعنی روستو د توبے نه۔

| إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا لِلّٰهِ حَنِيفًا وَلَمْ يَكُ مِنَ |
|---|
| یقیناً ابراهیم (علیه السلام) وو امت (پیشوا) تابعدار د الله تعالیٰ، کللك موحد وو او نۀ وو د |

| |
|---|
| الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۲۰﴾ شَاكِرًا لِأَنْعُمِهِ اجْتَبَاهُ |
| مشرکانو نه۔ شکر کونکے وو د نعمتونو د الله تعالیٰ، غوره کړے ئے وو هغهٔ لره |
| وَهَدَاهُ إِلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿۱۲۱﴾ وَآتَيْنَاهُ فِي الدُّنْيَا |
| او هدایت ئے ورته کړے وو لارے نیغے ته۔ او ورکړے وو مونږ هغهٔ ته په دنیا کښ |
| حَسَنَةً وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴿۱۲۲﴾ ثُمَّ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ |
| ښائسته ژوند او یقیناً هغه به په آخرت کښ د نیکانو نه وی۔ بیا وحی وکړه مونږ تا ته |
| أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَّمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۲۳﴾ |
| چه روان شه د دین د ابراهیم پسے چه کلك موحد وو او نهٔ وو د مشرکانو نه۔ |

**تفسیر** : د ابراهیم علیه السلام واقعه د درے غرضونو دپاره راوړی ۱- یَذْكُرُ شُكْرَهُ رَدًّا عَلَى كُفْرِهِمْ۔ د ابراهیم علیه السلام شکر گزاری بیانوی دپاره د رد په کفر او ناشکرئ د مشرکانو۔ وَاقْتِدَاءُ إِبْرَاهِيمَ فِي الشُّكْرِ۔ اے مشرکانو! ابراهیم علیه السلام خپل مشر گنړئ نو د هغه تابعداری وکړئ په شکر کښ۔ مشرکان په مکه کښ د بیت الله په خوا کښ وسیدل او د بیت الله د برکاتونه به ئے فائدے اخستلے او حال دا چه د الله بندگی ئے نهٔ کوله بلکه بتانو دپاره به ئے کوله۔ (۲) دویم ددے مناسبت د مخکښ محرماتو سره دے۔ یعنی دغه ذکر شوی محرمات په دین د ابراهیم علیه السلام کښ حرام وو او تاسو ئے جائز گنړئ او تاسو چه کوم څیزونه حراموئ دا په دین ابراهیمی کښ حرام نهٔ وو لکه بحیره سائبه، وصیله او حام۔ یا اُوښان وغیره۔ نو تاسو د هغه خلاف ولے کوئ او د ځان نه ئے حراموئ۔

(۳) دارنګه بل غرض پدے واقعه کښ د مکے مشرکان، یهود او نصاریٰ په خپله دعویٰ کښ دروغجن کول دی۔ ځکه چه د مکے مشرکانو به وئیل چه مونږ د خپل نیکهٔ ابراهیم علیه السلام په دین باندے یو، چه هغه د الله کور جوړ کړے وو، د حج اعمال ئے بیان کړی وو او د خانه کعبے نه گیر چاپیر علاقے ئے حرم گرځولی وو، او یهودو او نصاراو به هم د هغهٔ د دین د تابعدارئ دعوے کولے او حال دا چه تولو د اسلام نه انکار کولو کوم چه په حقیقت کښ د ابراهیم علیه السلام راوړے دین وو۔ نو پدے وجه دلته الله تعالیٰ د ابراهیم علیه السلام روحانی او دینی ژوند بیانوی او مشرکانو او یهود او نصاراؤ ته آئینه (شیشه) ورښائی، دے دپاره چه د دوی

نه هره يوه ډله خپله خپله ځيره پكښې وينې او وپيژنې چه آيا دوى واقعي په دين ابراهيمي ولاړ دي؟!۔

بيا پدې آيتونو كښې پنځه خصال (صفتونه) د ابراهيم ﷺ او بيا په هغې باندې پنځه انعامات بيانيږي۔

أُمَّةً: ۱- مجاهد وائي: مُؤْمِنًا وَحْدَهُ۔ يواځې مؤمن وو۔

۲- غوره دا ده چه: قَائِمًا مَقَامَ أُمَّةٍ ۔ داسې كمالات او غوره اخلاق او خيرونه پكښې الله اچولي وو چه د لوى امت په ځاى ئې كار وركولو۔ يو تن وو ډير كارئې كولو، خير ترې ډير خوريدو۔ ددې نه بل تعبير قرطبيؒ په (جَامِعًا لِلْخَيْرِ) سره كړيدې۔ يعنې د خير صفتونو لره راجمع كونكې وو۔

۳- مُعَلِّمًا لِلْخَيْرِ۔ (ابن مسعودؓ) د خير تعليم وركونكې وو۔

٤- مقتدئ: اَلَّذِيْ يُؤْتَمُّ بِهِ۔ چه د هغه اقتداء او تابعداري كيږي۔ (اِنِّيْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا) مُعَلِّم د خير او مقتدئ يو شې دې ځكه چه څوك د خير تعليم وركوي د هغه په وجه پوره امت جوړيږي، حلال حرام، جائز ناجائز، ايمان توحيد، عقائد نظريات او تربيت كول دا صفت د علماؤ دې۔ عبد الله بن مسعود ﷺ يوه ورځ وويل: اِنَّ مُعَاذًا كَانَ أُمَّةً۔

معاذ بن جبل ﷺ (د ابراهيم ﷺ په شان) معلم د خير وو۔

قَانِتًا: ۱- مُطِيْعًا لِلّٰهِ۔ د الله طاعت والا۔

۲- قَائِمًا بِأَمْرِ اللّٰهِ۔ د الله په حكم باندې مضبوط ولاړ۔ عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي: [كَانَ عَلَى الْاِسْلَامِ وَلَمْ يَكُنْ فِيْ زَمَانِهٖ مِنْ قَوْمِهٖ اَحَدٌ عَلَى الْاِسْلَامِ غَيْرَهٗ] په اسلام باندې ولاړ وو او ددهٔ په زمانه كښې ددهٔ د قوم نه هيڅوك په اسلام نهٔ وو نو ځكه الله (أُمَّةً قَانِتًا لِلّٰهِ) وويل۔

د قنوت معنىٰ په سورة البقره آيت (۲۳۸) كښې تفصيلًا ذكر شويده۔

او پدې آيتونو كښې مونږ ته دعوتونه دي چه دغه صفات تاسو ځان كښې پيدا كړئ۔

حَنِيْفًا: يعنې مائل وو د باطلو دينونو نه حق دين ته۔ يا كلك ولاړ وو په دين اسلام باندې۔

وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ: دې كښې ډيره مبالغه ده په نسبت ددې چه (لَمْ يَكُنْ مُشْرِكًا) (هغه مشرك نهٔ وو) يعنې شرك څه چه د مشركانو په ډله كښې ئې هم ځان نهٔ شمارلو پاتې لا شرك كول۔

اِجْتَبَاهُ: ددې ځاى نه اُوس د ابراهيم ﷺ انعامات بيانيږي۔ يعنې الله تعالىٰ غوره كړې

وو د اُوچتو کارونو دپاره چه هغه نبوت دے او خپل طاعت دے۔
وَهَدَاهُ : یعنی الله مقصد ته رسولے وو۔

## حسنه څه شے دے؟

فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً : ١ - تَوْفِيْقُ الْحَسَنَات۔ (د نیکیانو توفیق) ٢ - اَلرِّسَالَة۔ (پیغمبری)
٣ - لِسَانُ صِدْقٍ۔ (ښائسته شهرت)
٤ - اَلثَّنَاءُ الْحَسَن۔ (ښه صفتونه به ئے خلکو کول)۔
٥ - اَلْقَبُوْلُ الْعَامُّ۔ (ټولو دینونو والا ته مقبول وو)۔
٦ - اَوْلَادٌ اَبْرَار۔ (نیکان اولاد الله تعالیٰ ورکړی وو) او دا ټول ابراهیم عليه السلام ته حاصل وو ځکه چه دا د الله تعالیٰ اصول دی چه څوك نیك عمل کوی نو الله ورله دنیا هم ښه کوی لکه دے سورت کښې درے کرته دا خبره راغله۔ ﴿لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ﴾ (٣٠آیت) ﴿فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً﴾ (٩٧ آیت) ﴿لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً﴾ (٤١ آیت)۔
نو په دین کښې یواځے آخرت نهٔ دے۔
ثُمَّ اَوْحَيْنَا : دا پنځم انعام دے په ابراهیم عليه السلام۔ هغه دا چه د غوره نبی محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم دپاره مقتدیٰ وګرځولے شو۔ او د ابراهیم عليه السلام په تابعداریٔ ورته حکم وشو۔
بیا د ابراهیم عليه السلام تابعداری په کومو خبرو کښې وه؟۔
ځینی مفسرین وائی چه دا په توحید او دعوت د توحید کښې وه۔
ابن جریرؒ وائی چه د بتانو نه په بیزاریٔ کښې او په دین اسلام باندے عمل کولو کښې۔
او ځینی وائی چه په کارونو د حج کښې تابعداری وه۔
بعض وائی چه په اصولو کښې وه نهٔ په فروعو کښې۔ ابوالسعودؒ وائی چه په اصول او عقائدو او اکثرو فروعو کښې وه نهٔ په بعض هغه احکامو کښې چه د زمانو په بدلون سره په هغے کښې تبدیلی راځی۔ ظاهر دا ده چه په ټولو احکامو کښې د تابعداریٔ حکم وو سویٔ د هغے نه چه کوم منسوخ شوی وو۔ (فتح البیان وابن جریر وابو السعود)

## د ملة او د دین فرق

ملة نوم دے د هغه شریعت چه الله تعالیٰ د بندګانو دپاره په ژبه د یو نبی باندے بیان کړے وی۔ او دے ته دین هم وائی لیکن په اعتبار د طاعت سره۔ ١ - یعنی څوك چه ئے د الله د

طرفـنـه بـنـدګانو ته بيانوي ملة ورته وائي او چه څوك ئے قائموي او عمل پرے كوي نو بيا ورتـه ديـن وائـي. ۲- د مـلة اضـافـت نبـي ته كيـږي، نهٔ الله ته او نه نورو خلكو ته. او د دين اضـافـت الله ته هم كيږي. ۳- د ملة په مكمل شريعت باندے اطلاق كيږي او د شريعت په انفرادي احكامو ئے اطلاق نهٔ كيږي. (راغب)

| إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا |
|---|
| يقيناً مقرر كړے شوے وو (تعظيم) د خالي په هغه كسانو چه اختلاف ئے كړے وو |
| فِيْهِ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ |
| په هغے كښې او يقيناً رب ستا به خامخا فيصله كوي په مينځ د دوي كښې په ورځ |
| الْقِيَامَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۲۴﴾ اُدْعُ إِلٰى سَبِيْلِ |
| د قيامت په هغه څه كښې چه دوي په هغے كښې اختلاف كوي. دعوت وركوه لارے |
| رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ |
| د رب ستا ته په حكمت سره او نصيحت ښائسته سره او جګړه كوه (بحث كوه) د دوي سره |
| بِالَّتِيْ هِيَ أَحْسَنُ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ |
| په هغه طريقه چه ښائسته ده يقيناً رب ستا ښهٔ پو هه دے په هغه چا چه ګمراه كيږي |
| عَنْ سَبِيْلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۲۵﴾ |
| د لارے د هغهٔ نه او هغه ښهٔ پو هه دے په هدايت والو باندے. |

**تفسير**: سوال پيدا شو چه د ابراهيم عليه السلام په دين كښې خو تعظيم د خالي د ورځے وو او دا رسول ئے نهٔ كوي نو دا څنګه د هغه په دين روان دے؟ نو دلتـه مشركانو ته جواب كوي په داسے جامعے طريقے سره چه په يهودو باندے پكښې رد هم وشي. او په يهودو باندے رد څكه كوي چه هغوي دا اعتراض په رسول الله ﷺ باندے كړے وو چه تهٔ د خالي د ورځے تعظيم نهٔ كوے نو تهٔ د ابراهيم عليه السلام په دين باندے نهٔ ئے.

حـاصـل د جـواب دا دے چه تعظيم د خالي نهٔ د ابراهيم عليه السلام د ديـن حصه وه، نهٔ د بل كوم نبي د ديـن. بلكه دا الله تعالىٰ په هغه يهوديانو باندے فرض كړے وو چه هغوي پدے كښې

اختلاف کړے وو. ددے اختلاف تفصیل دا دے چه موسیٰ ﷺ دوی ته وویل چه یوه ورځ د الله د بندګئ دپاره خاص کړئ او هغه درته زهٔ ښایم چه د جُمعے ورځ غوره ده، نو دوی په عناد کښې راغلل وے وئیل چه د خالی ورځ غوره ده. (ځکه چه پدے ورځ باندے الله تعالیٰ مخلوقات نهٔ دی پیدا کړی نو مونږ تشبه بِالْاِلٰه کوو -پدے وجه دے ورځے ته په پښتو کښې هم خالی وائی) نو دوی د موسیٰ ﷺ سره اختلاف وکړو. خپله رایه ئے په لوی پیغمبر اُوچته کړه. (الله پرے عذاب ورنکړو ځکه چه دوی ته پدے کار کښې اختیار ورکړے شوے وو) الله تعالیٰ موسیٰ ﷺ ته ووئیل چه دوی په خپل حال پریده.

دویم د اختلاف صورت دا وو چه د خالی ورځ په دوی مقرر شوه نو بیا دوی په کښې په روستو زمانه کښې هیڅ تعظیم ونکړو، ښکارونه ئے پکښې شروع کړل، او د دنیا کارونه به ئے پکښې کول، نو دا اختلاف دے په ترك د تعظیم (تعظیم پریخودو) سره. او پدے باندے به دوی ته سزا ملاویږی.

دریم صورت دا هم دے چه الله تعالیٰ یهود او نصاراو ته حکم وکړو چه دوی په هفته کښې د یوے ورځے تعظیم وکړی.نو دوی په خپل مینځ کښې اختلاف اوکړو، یهودیانو د خالی ورځ غوره کړه، ځکه الله تعالیٰ په همدے ورځ د تمامو مخلوقاتو د پیدائش نه فارغ شوے وو. او نصاراو د اتوار ورځ غوره کړه ځکه چه الله تعالیٰ په همدے ورځ تمام مخلوقات پیدا کول شروع کړی وو. نو الله تعالیٰ د دواړو دپاره د دوی د خوښ کړے شوے ورځے تعظیم په دوی لازم کړو. او ددے امت دپاره هغه په خپل فضل او کرم سره د جُمعے ورځ خوښه کړه، چه د دوی دپاره په هره طریقه د برکت والا ورځ ثابته شوه. لکه دا خبره په حدیث د صحیحینو کښې راغلے ده.

اخْتَلَفُوْا فِيْهِ: ١- بِتَفْضِيْلِ السَّبْتِ عَلَى الْجُمُعَةِ. چه د خالی ورځ ئے په جمعه باندے غوره کړه. ٢- بِتَرْكِ تَعْظِيْمِهِ. د خالی د ورځے د تعظیم لحاظ ئے ونهٔ ساتلو.

٣- اِخْتَلَفُوْا فِيْمَا بَيْنَهُمْ . د یهودو او نصاراو ددے په مینځ کښې اختلاف شو چه یهودو د خالی ورځے تعظیم قبول کړو او نصاراو روستو زمانه کښې د اتوار ورځ واخسته.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ : دا د دویم صورت سره ښه لګی چه دوی یو ځل د خالی تعظیم قبول کړو بیا ئے پکښې مخالفتونه شروع کړل نو الله به ورته سزا ورکوی.

كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ: په دین کښې په اختلاف کولو، او په زمکه کښې په فساد خورولو او

د حقې لارې نه د اوړېدو بدله ضرور ورکوي.

ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ : پدې آيتِ کريمه کښې تيزي ورکوي په دعوت باندې او تر آخره د سورت پورې د هغې آداب او طريقې بيانيږي.

## مناسبت

هر کله چه دا خلك (يهود، نصارىٰ او مشرکان) په ګډوډو روان دي، نو د دوى علاج دعوت دې. د شرك او د بدعت علاج دعوت الى الله دې.

ځينې مفسرينو وئيلي دي چه دا آيت منسوخ دې ځکه چه مشرکانو او يهودو ته اوس دعوت نشته بلکه هغوى سره قتال دې، دا خبره خطاء ده ځکه چه د جهاد خاص موقعې وي، او دعوت اوس هم شته او دا آيت د عُصَاةُ الْمُوَحِّدِيْن (ګناهګارو موحدينو) په باره کښې هم دې.

پدې آيتونو کښې د دعوت دوه آدابه بيان شويدي چه تقوىٰ او احسان ځان کښې پيدا کړئ او پنځه طريقې د دعوت دي. اول حکمة سره دعوت، دويم موعظې سره، او دريم مجادلې سره او څلورم معاقبې سره او پنځم صبر کول.

إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ : د الله لاره اسلام، التوحيد، القرآن، اتباع الرسول ﷺ دې.

بِالْحِكْمَةِ: په پوهې سره.

## حکمة څه شې دې ؟

ددې جامع تعريف دا دې ١- وَضْعُ الْاَشْيَاءِ فِيْ مَوَاضِعِهَا اللَّائِقَةِ بِهَا . څيزونه په خپلو لائقو ځايونو کښې کېښودل حکمة دې. حکيم انسان هغه دې چه يو شې په خپل ځاى کښې استعمالوي، او دا حاصليږي په درې خبرو (١) مَعْرِفَةُ حَالِ الْمَدْعُوِّ اِلَيْهِ .(چا ته چه دعوت کيدې شي د هغه حالت پيژندل) يعنې شخص شناسي. (٢) موقعه شناسي.

٣- کلام شناسي. يعنې شخص او موقعه او خبره پيژندل. تفصيل ئې دا دې چه يو امي شخص ته به دعوت په ډير ساده الفاظو ورکولې شي، او کومه خبره ددهٔ سره مناسبه ده، ددهٔ حال څه دې؟ مثلًا يو شخص بيلمازه دې نو هغه ته به د انس بالله او د هغې نکتې او باريکات نهٔ بيانوي، د بې موقعې خبرې کولو نه ډير فساد پيدا کيږي. او د کلام ترتيب هم پيژندل پکار دي ځکه چه بې ترتيبه خبره کول اثر نهٔ لري. مثلًا کله به د شکايت شکل وي د هغه نه، کله به د ترغيب شکل ورکوي، او کله د افسوس او کله د قصې په شکل لکه

دا د نبي كريم ﷺ طريقه وه. كله به ئې ديو تن صفت وكړو، كله به ئې زجر او رټنه وركړه او كله به ئې منع وكړه. او كله به ئې د آخرت عذاب بيان كړو. او چا كښې چه اخلاص وي نو الله تعالیٰ ئې هغه ته په خپله موقعه كښې ور نصيب كوي.

۲- ابن جرير وائي چه د ((حكمة)) نه مراد قرآن او سنت دي. يعني د دعوت طريقه به ددې دواړو په رڼا كښې متعين كړي. ددې رجوع هم مخكښې كلام شناسي ته كيږي.

۳- صاحب د ((فتح البيان)) وائي چه د ((حكمت)) نه مراد داسې صحيح او ښكاره خبره ده چه حق په ډاګه كړي او هر شك او شبهه زائله كړي. ددې رجوع مخكښې ته كيږي.

ځيني خلك مداهنت (حق نۀ بيانولو) ته حكمة وائي. دا غلط تطبيق دې.

٤- حكمة هغه دلائلو ته هم وائي چه يقيني وي. (فتح البيان)

٥- ابن عاشور وائي: حكمة: مُحكم معرفت (يعني مضبوطې پوهې) ته وئيلې شي چه حق ته رسيدونكې وي او د خطائې او جهالت نه خالي وي په تعليم او تهذيب د خلكو كښې. نو په جهالت سره خلكو ته دعوت كول جائز نۀ دي. (التحرير والتنوير)

او د ((موعظه)) نه مراد داسې ښائسته خبرې اترې دي چه هغې له آوريدونكې خوښ كړي او د هغې نه فائده واخلي. او ددې نه تخويف او بشارت مراد دې. يعني هغوي ته د يرې او د زيرې خبرې وكړه. ابن عاشور وائي: دا هغه خبرې دي چه چا ته وئيلې كيږي نو د هغه زړه د نيك عمل دپاره نرموي.

**حكمة** : د موعظه سره ئې (حسنه) لفظ راوړو نۀ د حكمة سره. ددې حكمة دا دې چه موعظه كښې مقصد د خلكو د بدو اعمالو نه منع كول وو نو ګمان كيدې شو چه د واعظ د طرفنه پدې كښې سختي وكړې شي او د خلكو په زړونو كښې ماتوالې او خفګان راشي نو پدې وجه ئې دا ادب وخودلو چه موعظه به په ښائسته طريقه سره وي. يعني په نرمه وينا سره او په ترغيب الى الخير سره. او هرچه حكمة دې نو دا د هغه مُعلم د طرفنه وي چه د طلابو د تعليم اهتمام كوي كوم چه د كمال طلب كونكې وي نو دا خپله په ښائسته حالت كښې وي نو حسنه ذكر كولو ته ئې ضرورت نشته، آه. (ابن عاشور)

وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ : (مجادله) يعني په اخلاقي انداز كښې دوي سره بحث كول او مجادله ذِكْرُ الْاَدِلَةِ الْاِلْزَامِيَّة ته وئيلې شي، يعني الزامي دليلونه ذكر كول، او مناظرانه اسلوب (طرز) اختيارول، دا په هغه وخت كښې چه د داعي واسطه د سخت جګړه مار مخالف سره راشي. يعني په نرمئ سره داسې مُدَلَّله خبره وكړي چه د هغه شر لرې شي

او حق قبلولو ته تیار شي.

بِالَّتِیۡ هِیَ اَحۡسَنُ کښې دا سبق پروت دے چه د جانب مقابل سره به هم بد اخلاقي او بد او فاحش الفاظ نهٔ استعمالوي. نو په درے طریقو سره دعوت شو یو په علم سره او بل په ترغیب او ترهیب سره او دریم په دلیلونو سره.

څینی علماء فرمائي: چه درے طریقے څکه ذکر شویدي چه انسانان درے قسمه دي، علماؤ ته به حکمة بیانوي، او عوامو ته به موعظه حسنه او معاندینو (ضدیانو) سره به مجادله کوي. او دا درے واړه یو شخص ته په یو ځاي جمع کول هم منافات نهٔ لري. او دا هم ضروري نهٔ ده چه یو کلام به په درے واړو خبرو مشتمل وي.

او قرآن کریم چه کوم دعوت پیش کړیدے نو پدے درے واړو طریقو باندے مشتمل دے. او دارنګه رسول الله ﷺ چه کله خلکو ته په غیر د قرآن نه په خطبو او تقریرونو او ارشاداتو سره خلکو ته کوم دعوت کړیدے هغه هم پدے درے طریقو مشتمل دے د احوالو مطابق. (ابن عاشورؒ)

ابن عاشورؒ دا هم وائي چه پدے آیت کښې د استدلال عقلي اُصول ثلاثه – چه برهان، خطابه، او جدل دي – ذکر دي چه دے ته په علم المنطق کښې مقبول صناعات وائي. او هر چه سَفۡسَطه او شعر دے نو هغے نه رشتیني حُکماء اعراض کوي پاتے لا انبیاء او مرسلین. آه. د شعر نه مراد هغه کلام دے چه د خیالاتو او وهمیاتو نه جوړ وي.

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعۡلَمُ: یعني که یو شخص د حق دعوت نهٔ قبلوي نو ته مهٔ پریشانه کیږه، څکه هدایت ورکول ستا کار نهٔ دے. الله ښه پوهیږي چه په ګمراهۍ باندے څوك باقي پاتے کیږي او څوك هدایت قبلوي، او هغه به د قیامت په ورځ هر یو ته د هغهٔ د هدایت یا ګمراهۍ مطابق بدله ورکوي. تا ته د دعوت کولو حکم ددے دپاره درکړے شویدے چه حجت پوره شي او د کافرانو دپاره څه عذر باقي پاتے نهٔ شي.

| وَاِنۡ عَاقَبۡتُمۡ فَعَاقِبُوۡا بِمِثۡلِ مَا عُوۡقِبۡتُمۡ |
|---|
| او که بدله اخلئ تاسو نو بدله واخلئ په مثل د هغے تکلیف چه درکړے شوے وي تاسو ته |
| بِهٖ وَلَئِنۡ صَبَرۡتُمۡ لَهُوَ خَيۡرٌ لِّلصّٰبِرِيۡنَ ﴿۱۲۶﴾ |
| هغه او که صبر کوئ تاسو نو خامخا دا ډیر غوره دے صبر کونکو لره. |

**تفسیر** : کله د دعوت په باب کښې دا کار هم کیږي چه جانب مقابل په جوش او غصه کښې راشي او کنځلے شروع کړي او وهل ټکول وکړي نو الله تعالیٰ دلته اجازه ورکوي چه د داعي دپاره د هغے بدله اخستل جائز دي خو زیاتے به پکښې نۀ کوي۔

ځینې مفسرینو دا آیت مدني ګرځولے دے او د اُحد د غزا سره ئے لګولے دے چه کله مشرکانو حمزه ﷺ مُثله کړو (یعني شکل او صورت ئے ورله خراب کړو) نو رسول الله ﷺ ووئیل چه زۀ به د مشرکانو اویا کسان مُثله کوم نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه صرف یو تن مُثله کړئ او زیادت جائز نۀ دے۔

او د اُبي بن کعبؓ نه روایت دے چه په جنګ اُحد کښې څلور شپیته انصار او شپږ مهاجرین شهیدان شول، په هغوی کښې حمزه ﷺ هم وو۔ کافرانو ددے مقتول صحابه کرامو مُثله وکړه۔ انصارو ووئیل چه په کومه ورځ چه مونږ ته موقعه ملاؤ شي نو د دوی سره به دغسے کوو۔ کله چه مکه فتح شوه نو دا آیت نازل شو۔ نو نبي ﷺ وفرمایل مونږ به صبر کوو او انتقام به نۀ اخلو۔ او صحابه کرامو ته ئے ووئیل چه تاسو د څلورو سرو نه سوئ بل چا ته تعرض مۀ کوئ (ترمذی، زوائد مسند احمد، والحاکم وصححه ووافقه الذهبی وقال الالبانی وهو کما قالا، الضعیفة رقم : (550) ۔ محدث البانیؒ دے ته صحیح وئیلے)۔

دا قول ظاهر نۀ دے اګرکه په عموم د الفاظو کښې دغه قصه هم داخلیږي۔ مګر ظاهر دا ده چه دا آیت مکي دے او دا خبره د دعوت په باره کښې ده چه د هرے زمانے سره تعلق لري مثلاً یو تن به تا ته په موبائل کښې کنځل وکړي، یا به درته مخامخ کنځل وکړي نو تۀ به کنټرول کوے او زیادت به نۀ کوے۔ حافظ ابن جریرؒ وائي چه دا آیت پدے باره کښې نازل شویدے چه که یو مظلوم ظالم موندۀ کړي او د هغۀ د بدلے په اخستو قادر شي نو په بدله اخستو کښې دے زیاتے نۀ کوي۔

لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّابِرِيْنَ : په صبر کښې ۱- یو خیر دا دے چه اجر به دے وشي۔

۲- دویم دا چه دشمن به مانوس شي چه زۀ کنځل کوم او هغه نرمي کوي نو حق ته به مائل شي۔

۳- دعوت به مخکښې روان وي او چه بدله واخستے شي نو جګړه جوړیدو سره د دعوت مخه بندیږي۔

او کوم علماء چه دا وائي چه دا آیت په هغه آیتونو سره منسوخ شویدے چه په هغے کښې د کافرانو سره د قتال کولو حکم ورکړے شویدے۔ نو شوکانيؒ وائي چه ددے قول

دلیل نشته دے۔

| وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللّٰهِ وَلَا تَحْزَنْ |
| --- |
| او صبر کوه او نهٔ دے صبر ستا مګر په مدد د الله تعالیٰ سره دے او مهٔ غمجن کیږه |
| عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا |
| په دوی باندے او مهٔ کیږه په تنګسیا کښې د هغے نه |
| يَمْكُرُوْنَ ﴿١٢٧﴾ إِنَّ اللّٰهَ مَعَ الَّذِيْنَ |
| چه دوی څه مکرونه (چلونه) جوړوی۔ یقیناً الله تعالیٰ ملګرے دے د هغه کسانو سره |
| اتَّقَوْا وَّالَّذِيْنَ هُمْ مُّحْسِنُوْنَ ﴿١٢٨﴾ |
| چه تقویٰ کوی او هغه کسان چه دوی ښائسته عملونه کوی۔ |

**تفسیر**: ځینی اهل علمو پدے آیت کښې دا اشکال کړیدے چه مخکښې وائی چه داعی صبر وکړی نو په هغے کښې خیر دے او صبر کول مستحب دی، او دلته وائی چه صبر به خامخا کوے؟ نو بیائے فرق داسے کړیدے چه مخکښے خطاب عوامو داعیانو ته دے او دا د ﴿وَاصْبِرْ﴾ خطاب رسول الله ﷺ او امیرانو ته دے، په عوامو صبر واجب نهٔ دے بدله اخستل جائز دی او په رسول الله ﷺ او په امیر باندے صبر واجب دے۔ دا فرق د اصولو د اسلام مطابق نهٔ دے ځکه چه په اصولو د اسلام کښې د رسول الله ﷺ دپاره هم بدله اخستل جائز وو او عوام الناس دپاره هم او دا پابندی په رسول الله ﷺ او امیر باندے نهٔ ده راغلے چه هغه به بدله نهٔ اخلی او صبر به کوی، بلکه رسول الله ﷺ د نور امت سره په عامو احکامو کښې شریک دے، سوئ د یو څو کارونو نه، او په هغے کښې دا نشته۔

نو ظاهر مطلب د آیت دا دے چه دلته ئے (وَاصْبِرْ) حکم د روستو (وَمَا صَبْرُكَ) د وجه نه راواپس کړیدے۔ نو دلته د داعی ذهن سازی کوی چه تا له بدله اخستل جائز دی مګر که تهٔ صبر وکړے درله غوره ده او کله چه صبر کوے نو بیا ګمان ونکړے چه زهٔ ډیر اُوچت انسان یم چه په باب د دعوت کښې مے ډیر صبرونه کړیدی او ډیر تکلیفونه مے برداشت کړیدی بلکه ستا صبر د الله په توفیق او د الله په مدد سره حاصلیږی، زړه کښې لوئی رانهٔ ولے، بلکه الله ته متوجه شه چه هغه تا ته توفیق درکړو۔

د ځینی مفسرینو د کلام نه تطبیق داسې معلومیږی چه مخکښې صبر په باره د انتقام اخستو کښې وو، او دلته الله تعالیٰ خپل رسول ته تسلی ورکوی او حکم کوی په صبر کولو باندې په دعوت کولو سره۔ نو مطلب دا دې چه که د مکې مشرکان اسلام نۀ قبلوی نو تۀ غم مۀ کوه او د دوی د سازشونو په سوچ سوچ سره زړۀ مه تنګوه۔ الله ستا د پاره کافی او ستا حمایت کونکې او مددګار دې، ځکه چه هغه همیشه د خپلو بندګانو مُعِین او مددګار وی کوم چه د خیر په لاره روانیږی د هغوی حفاظت کوی، او هغوی ته په دشمنانو غلبه ورکوی۔

**وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللهِ**: اَیْ بِنُصْرَةِ اللّٰهِ لَا بِقُوَّتِكَ۔ یعنی ستا صبر کول د الله په مدد سره دی نۀ ستا په قوت سره۔

**وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ**: اَیْ عَلٰی اِعْرَاضِهِمْ وَاسْتِحْقَاقِهِمْ لِلْعَذَابِ الدَّائِمِ ۔ د دوی په اعراض (او ایمان نۀ راوړو) باندې خفګان مۀ کوه، او مۀ د دوی په همیشه عذاب باندې۔ (فتح البیان)

**وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ** : اَیْ لَایَکُنِ الضِّیْقُ بِكَ۔ یعنی په تا کښې دې تنګوالې رانشی۔ خو عکس وشو پدې کښې مبالغه ده چه دا تنګوالې دې دومره ډیر نشی چه تۀ پکښې دننه ننوزې۔ یعنی ددې خلکو په چلونو او پلانونو زړه مۀ تنګوه او ټول کارونه الله ته وسپاره، الله ستا مددګار دې۔ (فتح) او ددې ضیق نه مراد د خلکو د چلونو او فریبونو نه تنګ راتلل دی چه بیا بیان پریدی او مخکښې خفګان د هغوی په ایمان نۀ راوړو وو۔

**ضَيْقٍ**: په زور د ضاد سره هغه ځیز ته وائی چه د هغې نه سینه تنګیږی او په زیر د ضاد سره هغه تنګی ته وائی چه په فراخه ځیز کښې راځی لکه کور یا جامه۔ (فرآء)

**نکته :**

(لَا تَكُ) کښې ئې دلته نون حذف کړو او په سورة النمل آیت (۷۰) کښې ئې ذکر کړیدې ځکه چه دلته خلاف القیاس کار وشو دپاره د مبالغه په تسلیٔ کښې، یا دا چه دلته حزن زیات وو او هلته حزن دومره نۀ وو۔

**إِنَّ اللهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا** : پدې کښې زیرې دې داعی ته چه تا ته به غلبه او مدد ملاویږی پدې شرط چه تقویٰ او احسان در کښې راشی۔

**مُّحْسِنُونَ** : ۱ - مُحْسِنُوْنَ بِالْعَفْوِ۔ (خلکو ته معافی کوی)۔

۲ - اَلدَّاعُوْنَ اِلَی اللّٰهِ بِالطَّرِیْقَةِ الْحَسَنَةِ۔ (په ښائسته طریقې سره الله ته دعوت ورکوی)۔

۳– اَلَّذِيْنَ يَعْبُدُوْنَ اللّٰهَ كَاَنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ ۔ د الله تعالیٰ پداسے طریقه بندګی کوی لکه چه الله ته ګوری۔

## د تقویٰ او د احسان فرق

❁ تقویٰ کښې تعظیم د امر الله دے او په محسنون کښې اشاره ده شفقت علی عباد الله ته۔ یعنی دوی د الله د امر تعظیم کوی او د الله په بندګانو شفقت کوی۔
❁ یا تقویٰ د الله په حکمونو عمل کول دی او احسان هغه په ښائسته طریقه سره ادا کول دی۔ ❁ یا تقویٰ د حرامو نه ده او احسان په فرائضو عمل کول دی (حسن بصریؒ) لیکن عموم غوره دے۔

**فائده** : هرم بن حیانؒ ته د هغه د وفات په وخت ووئیل شو چه ته څه وصیت وکړه نو هغه ووئیل چه وصیت د مال وی، او ما سره مال نشته، البته زۀ تاسو ته د سورة النحل د آخری آیتونو په یاد ساتلو سره نصیحت کوم۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات او خصوصیات

۱– پدے سورت کښې كَثْرَةُ الْاَدِلَّةِ الْعَقْلِيَّه زیات بیان شویدی په اول او په مینځ او په آخر کښې۔ ۲– عقائد المشرکین په کښې زیات بیان شویدی چه هغه دولس دی۔
۳– او کثرة الامثله لرد الشرك۔ (د شرك د رد دپاره زیات مثالونه)
٤– او (اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُ بِالْعَدْلِ) والا جامع آیت پکښې ذکر دے۔
٥– فَضِيْلَةُ الْهِجْرَةِ وَالرَّدِّ عَلَى الْاِرْتِدَادِ وَالْمُرْتَدِّيْنَ ۔ (د هجرت فضیلت او په ارتداد او مرتدینو رد)
٦– د شکر بیان او د دعوت الله الی طریقه په حکمة او موعظه حسنه سره۔

ختم شو تفسیر د سورة النحل په مدد او خصوصی رحم د رب العالمین صباح یوم الجمعة ٦ : ٤٠ بجے، تاریخ : 6 جمادی الثانیة سنه 1436 هـ الموافق : 26/3/2015 ء شیخ آباد پشاور۔
وکتبه ابوزهیر سیف الله غفر له۔

بسم الله الرحمن الرحيم

| آیاتها (۱۱۱) | (۱۷) سورة بنی اسرائیل مکیة (۵۰) | رکوعاتها (۱۲) |
| --- | --- | --- |

سورة بني اسرائیل مکی دہ، پدے کښ یوسل یولس آیتونه او دولس رکوع دی۔

## تفسير سوره بنی اسرائیل

**نوم**: ددے نوم (بنی اسرائیل) ددے آیت (٤) ﴿ وَقَضَيْنَا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ فِي الْكِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ﴾ نه اخستے شویدے۔ دے ته سورة ((اسراء)) او ((سورة سبحان)) هم وائی۔

## فضائل

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی: [بَنِي إِسْرَائِيلَ وَالْكَهْفُ وَمَرْيَمُ إِنَّهُنَّ مِنَ الْعِتَاقِ الْأُوَلِ وَهُنَّ مِنْ تِلَادِي] (بخاری: ٤٧٠٨) باب (١٨٧) بترقيم فتح الباری) بنی اسرائیل، کهف او مریم غوره پخوانی سورتونه دی (چه په مکه کښ نازل شوی) او دا زما زوړ مال دے۔

❁ او نبی کریم ﷺ فرمائی: دا سورتونه ما ته د انجیل په مقابله کښ راکړے شویدی چه دے ته مئین وائی۔ (مسند احمد: ١٧٠٢٣ باسناد حسن)

❁ او په یو صحیح حدیث کښ دا هم راغلی دی [وَكَانَ يَقْرَأُ كُلَّ لَيْلَةٍ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَالزُّمَرَ) چه رسول الله ﷺ به هره شپه سورة بنی اسرائیل او سورة الزمر لوستلو۔

(صحیح ابن خزیمة رقم: ١١٦٣) واحمد (٢٤٩٥٢) وابن نصر (٦٩) وابن السنی (٢١٨) واسناده صحیح (البانی) وحسنه شعیب الارنوط)

## مناسبت

١- مخکښ رد د شرك وو نو اوس د رسول الله ﷺ شان بیانوی۔

٢- مخکښ ترغیب وو هجرت ته نو دلته د رسول الله ﷺ مدینے ته هجرت او د هغے مقدمات بیانوی چه دا نبی به هم خلك تنګوی او دے به هم هجرت کوی۔

٣- هلته د الله تعالیٰ د معرفت او د مشرکینو د غلطو نظریاتو د رد عقلی دلیلونه زیات وو نو دلته د بنی اسرائیلو نه نقلی دلیل بیانوی۔

٤- مخکښې سورت کښې شفاء په عسل سره ذکر وو نو دلته شفاء په قرآن سره ذکر کوی۔
٥- مخکښې سورت کښې دعوت کښې حکمة ذکر شو نو پدے سورت کښې (٢٥) احکام د حکمة راوړی چه دا تفسیر د حکمة دے۔ ﴿ ذٰلِكَ مِمَّا اَوْحٰى اِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ ﴾ (٣٩) آیت۔

**د نزول زمانه**: د ابن عباس ﷺ په نیز دا ټول سورت مکی دے۔ د ابن الزبیرؓ هم دغه قول دے، لیکن هغه درے آیتونو ته مدنی وئیلی دی یعنی ﴿اِنَّ رَبَّكَ اَحَاطَ بِالنَّاسِ ﴾ (الاسراء: ٨٠) او ﴿ وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ ﴾ (الاسراء: ٧٦) او ﴿ وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ ﴾ (الاسراء: ٨٠)۔ او مقاتلؒ آیت (١٠٧) ﴿ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖ ﴾ ته هم مدنی وئیلے دے۔
ددے اولنے آیت وائی چه دا سورت د معراج د واقعے نه روستو نازل شوے وو۔ او د صحیح احادیثو نه دا خبره ثابته ده چه «معراج» د نبی کریم ﷺ د مدینے د هجرت نه صرف یو کال مخکښې واقع شوے وو گویا که دا سورت د مکی دور په آخر کښې نازل شوے وو۔

## موضوع او دعوىٰ د سورت

١- زمونږ ځینی مشائخ وائی چه دے سورت کښې څلور مقاصد بیانیږی چه په دے سره سورت څلورو حصو کښې تقسیمیږی (١) اول د توحید نه انکار سبب د عذاب دے او دا بیانیږی تر (٥٨) آیت پورے۔
(٢) انکار د معجزاتو نه سبب د عذاب دے۔ لکه ﴿ وَمَا مَنَعَنَا اَنْ نُّرْسِلَ بِالْاٰيٰتِ کښې بیانیږی۔
(٣) اِخْرَاجُ الرُّسُل - رسولان د کلو نه ویستل او شړل سبب د عذاب دے، په (٧٦) آیت کښې۔
(٤) او د سلم آیت نه روستو بیانیږی چه استهزاء بِالرُّسُل (د پیغمبرانو پسے توقے کول) سبب د عذاب دے۔
٢- لیکن د تدبر نه روستو دا خبره ښکاره کیږی چه پدے سورت کښې په عمومی توگه عِظَمَةُ شَانِ الرَّسُوْلِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَة بیانیږی، یعنی د رسول الله ﷺ قدر او مرتبه په دنیا او په آخرت کښې۔ او د هغه کمالات او د هغه په اتباع کښې خیرونه او په هغه باندے په اعتراضاتو او استهزاء کښې شرونه او عذابونه دی۔ په دنیا کښې ئے شان دا دے چه الله تعالیٰ آسمانونو ته پورته کړو او په آخرت کښې ئے شان دا دے چه ﴿اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا﴾ دۀ ته به مقام محمود ورکوی۔

او ورسره به دا خبرے ملګرے کوی چه اَلشُّکْرُ عَلٰی هٰذِهِ النِّعْمَةِ ۔ پدے نعمت (د رسالت) باندے شکر پکار دے چه تاسو ته ئے رسول راولیږلو۔ ﴿اِنَّهٗ كَانَ عَبْدًا شَكُوْرًا﴾ ﴿فَاَبٰىٓ اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا﴾ او ددے سره بیا ډیرے خبرے ملګری دی۔

چه ددے نعمت انکار او پدے پورے استهزاء کول جائز نهٔ دی بلکه څوك چه انکار او استهزاء کوی نو هغوی ته به الله دنیا او آخرت کښې عذابونه ورکوی۔

بیا د قرآن طریقه دا ده چه د رسول د عظمت سره د رسول راوړے شوے خبرے عظمت هم بیانوی لکه رسول الله ﷺ امت ته د الله تعارف پیش کړیدے نو ددے وجه نه کوم خلك چه د الله سره برخه داران جوړوی، نو هغوی د نبی د دعوت نه انکار کوی نو د هغوی هلاکت به هم بیانیږی۔ لکه د بنی اسرائیلو حال ته وګورئ۔

او کوم خلك چه ددے نعمت قدر نهٔ پیژنی او د هغه نه انکار کوی او تکبر کوی نو دوی د ابلیس مشابه دی لکه روستو به د مشرکانو مشابهت د ابلیس سره ورکړی۔ دارنګه مشرکان د فرعون سره مشابه دی چه فرعون موسیٰ علیه السلام ته وئیلی وو چه په تا جادو شویدے نو دغه شان مشرکانو هم وئیلی وو۔ ﴿اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا﴾۔

فرعون اراده کړے وه چه بنی اسرائیل د زمکے نه وشړی ﴿فَاَرَادَ اَنْ يَّسْتَفِزَّهُمْ﴾ نو دغه شان مشرکانو د رسول الله ﷺ د شړلو اراده کړے وه ﴿وَاِنْ كَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ﴾ فرعون الله غرق کړو نو دغه شان به د مشرکانو حال وی۔

او ورسره ورسره به الله تعالیٰ خپل رسول ته د ترقئ دپاره څه عملونه او آداب وربښائی لکه ﴿اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوْكِ﴾ او تهجد او دعاګانے غواړه او دعوت ورکوه۔

او د نبی کریم ﷺ دعوت ئے ذکر کړیدے د ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ﴾ نه۔

لنډه دا چه پدے سورت کښې د یوے یوے خبرے نه د رسول الله ﷺ شان راواخله۔

## خلاصه د یومے رکوع

د اول نه ئے شان د رسول الله ﷺ داسے شروع کړیدے چه دا داسے لوی قدر والا نبی دے چه الله تعالیٰ آسمانونو ته خیژولے دے، او دا بعیده مهٔ ګنړئ څکه چه موسیٰ علیه السلام باندے هم الله تعالیٰ داسے کار کړے وو نو د هغه کتاب په طریقه د دلیل نقلی پیش کوی او په ﴿ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا﴾ کښې شکر ته ترغیب دے۔ بیا په ﴿وَقَضَيْنَآ اِلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ کښې درے عذابونه د بنی اسرائیلو ذکر دی چه دوه پرے راغلی دی او د یو ئے ورسره وعده کړیده۔ روستو پرے

هغه هم نازل شوې دي او دا په دوی باندې په سبب د مخالفت د رسولانو راغلي وو. (نو ددې نبي خلاف کښې مه ودرېږئ غرق به شئ) بيا ئې ترغيب قرآن کريم ته ورکړې دې چه دې نبي ته ورکړې شوې دې. ترركوع پورې بيا د رکوع نه روستو نور عنوانات راځي.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

| سُبۡحَانَ الَّذِىۡۤ اَسۡرٰى بِعَبۡدِهٖ لَيۡلًا مِّنَ الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ |
|---|
| پاکي ده الله تعالىٰ لره هغه ذات دې چه بوتلې ئې بنده خپل د شپې د مسجد حرام نه |
| اِلَى الۡمَسۡجِدِ الۡاَقۡصَا الَّذِىۡ بٰرَكۡنَا حَوۡلَهٗ |
| مسجد اقصىٰ پورې هغه چه برکت اچولې دې مونږ کير چاپيره د هغې نه |
| لِنُرِيَهٗ مِنۡ اٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيۡعُ الۡبَصِيۡرُ ﴿۱﴾ |
| دې دپاره چه اُوښايو دهٔ ته د نخود قدرت خپل نه يقيناً الله آوريدونکې، ليدونکې دې. |

**تفسير**: په عربي ژبه کښې (سبحان) د سَبَّحَ يُسَبِّحُ مصدر دې چه ددې معنىٰ ده التنزيه الكامل. پوره پاکي بيانول او ددې وجه نه دا صرف د الله دپاره استعماليږي، کوم شاعر چه "سُبۡحَانَ مِنۡ عَلۡقَمَةِ الۡفَاخِرِ" وئيلي دي نو هغه ئې بې ځای استعمال کړې دې. په قرآن کريم کښې دا لفظ ډير زيات د الله تعالىٰ د لوئي، او د تمامو عيبونو نه د هغه د پاکي بيانولو دپاره استعمال شوې دې. دلته دا لفظ د الله تعالىٰ د عظمت او د هغه د کبرياء بيانولو دپاره راغلې دې چه هغه ذات په داسې څيزونو قادر دې چه په هغې بل څوك قادر نهٔ دې.

او ددې مظهر د اسراء او معراج واقعه ده چه هغه خپل بنده لره صرف په يو ساعت کښې د مسجد حرام نه مسجد اقصىٰ ته بوتلو چه دا مسافت په عامو حالاتو کښې يو مسافر په څلويښتو شپو کښې کوي.

اُسۡرٰى : اِسۡراء : د شپې بوتللو ته وئيلې شي. او روستو ئې وريسې (لَيۡلًا) وويلو پدې کښې اشاره ده تقليل ته، يعني توله شپه نهٔ وه بلکه د شپې څه حصه وه.

بِعَبۡدِهٖ: په اتفاق د مفسرينو د «عبد» نه مراد رسول الله ﷺ دې. اهل علم وائي چه که د نبي ﷺ دپاره د عبد يعني بنده نه غوره کوم نوم د الله په نيز وې نو پدې آيت کښې به ئې ضرور هغه ياد کړې وې ځکه چه دا مقام د هغهٔ د عظمت بيانولو دې، نو پدې کښې اشاره شوه چه د انسان د مراتبو نه اشرفه مرتبه د هغهٔ عبوديت (بندګي) ده، ځکه چه د الله او د

بنده تعلق پدے سره قائمیږي۔

مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ : دلته وائي چه رسول الله ﷺ د معراج په شپه د مسجد حرام نه بوتللے شو۔ او په احادیثو کښې دي چه نبي کریم ﷺ د ام هانیء رضی الله عنها د کور نه بوتللے شوے وو او د سحر مانځه نه مخکښې واپس راغلے وو۔ پدے وجه ډیرو مفسرینو لیکلي دي چه نبي ﷺ د ام هانیؓ د کور نه د خانه کعبے خوا ته بوتللے شو۔ هلته د نبي ﷺ زړه د زمزم په اُوبو سره ووینځلے شو، او هغه د ایمان او د حکمت نه ډک کړے شو، او بیا د هغه ځای نه مسجد اقصیٰ ته بوتلے شو۔

او ظاهر دا ده چه ددے ترمینځ هیڅ منافات نشته ځکه چه په قرآن کریم کښې د مسجد حرام اطلاق په ټول حرم باندے هم کیږي چه دا تقریباً ټولو طرفونو ته (۳۵) میله علاقه ده۔

الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى : ددے نه مراد بیت المقدس دے، او دے ته اقصیٰ ولے وائي؟ (۱) نو دا لرے دے په اعتبار د مرتبے سره یعني اُوچت مسجد۔ (۲) یعني بعید دے د مسجد حرام نه ځکه چه دا د څلویښتو شپو د مسافت په اندازه د مسجد حرام نه وړاندے دے۔ او د رسول الله ﷺ دویمه قبله ده او بهترین مسجد دے۔

﴿ الَّذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ ﴾ ظاهري او باطني برکات۔ یعني لرے هغه مسجد چه د هغه نه گیر چاپیره الله تعالیٰ د دین او د دنیا بیشماره برکتونه ایخودي دي، چه هلته لوی لوی اولو العزم انبیاء علیهم السلام راغلي دي، او د بیشماره اولیاؤ او صالحینو مسکن پاتے شویدے او په هغے کښې قسم قسم میوے او خوراکي څیزونه او صحتمنده آب و هواء پیدا کیږي۔

دارنگه زمونږ د نبي قبله ده، او عام انسانان به د قیامت په ورځ هغے ته راجمع کیږي۔

(فتح البیان)

لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا : ۱- الحِسِّيَة ۲- وَالعَقْلِيَة۔ چه ظاهري نخښے هم ویني او عقلي هم۔ لکه د سورة النجم په (۱۸) آیت کښې دي: ﴿ لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى ﴾ (د خپل رب لوی لوی نخښے ئے ولیدلے)

ددے (اسراء او معراج) مقصد دا بیان شو چه الله تعالیٰ خپل بنده ته د خپلو عظیمونو آیتونو او نخښو مشاهده کول غواړي، چه هغه نبي کریم ﷺ د شپے صرف په یو ساعت کښې د څلویښتو شپو مسافت وهل، د بیت المقدس مشاهده، انبیاء کرام د هغه مخے ته راتلل، او هغوی ته امامت کول او د انبیاء کرامو اُوچت او اعلیٰ مقامات لیدل، او بیا د

آسمانونو دروازے کولاویدل او د جنت او جهنم وغیره لیدل کول.

مـن آیاتنا کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ ئې نهٔ دے لیدلے، بلکه د هغه د قدرت نخے ئې لیدلی دی، البته الله تعالیٰ ئې لیدلے خو په زړه سره نهٔ په ظاهري سترګو سره.

دا آیات ئې ورتـه ولے خودل دے کښې څه راز وو؟ ❁ نـو وجـه دا ده چـه ابراهیم علیه السلام ته الله تـعالیٰ دغسې خودلي وو ﴿ وَكَذٰلِكَ نُرِيْ إِبْرَاهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ﴾ (انعام: ۷۵) الله ورتـه د آسـمـانونو او د زمکے بادشاهي او عجائب د قدرت خودلي وو دے دپاره چه یقین ئې ډیر شي). نو دغسے الله خپل نبي له هم یقین مضبوطولو.

بیا یقین ورله ولے مضبوطوی ؟ د هغے وجه دا ده چه رسول الله ﷺ د امت داعي دے او د داعـي یقین چه کمزورے وي نو مخاطبین ئې هم کمزوري وي، او چه یقین مضبوط وي نو په خبره کښې ئې اثر زیات وي لکـه د رسول الله ﷺ خبرے څومره مخکښې زمانه کښې شویدي او تر اوسـه بلکـه تر قیامتـه پورے په کښې اثر موجود دے. ځکه چه کله ایمان بالغیب په ایمان بالشهادة بدل شي نو بیا به څومره قوي خبره کوي

❁ او بلـه دا چـه په دهٔ باندے به د قوم د طرفنه سختے راځي نو دے به فکر کوي چه هغه الله چه زهٔ ئې بره بوتلے وم د هغه دپاره دا مصیبتونه برداشت کوم نو خبره به ورته آسانیږي.

بـعـض عـلـمـاؤ لکه تفتازاني لیکلي دي چه قرآن کریم کښې اسراء ذکر ده (چه داتر بیت الـمـقـدس پورے ده) او معراج په کښې نهٔ دے ذکر (کوم چه آسمانونو ته شویدے) او هغه په احـادیثو کښې راغلے دے. بیا ئې وئیلي دي چه که څوک د اسراء نه انکار وکړو نو کافر دے او که د مـعـراج نه انکار وکړي نو کافر نهٔ دے (ځکه چه احادیث ظني ګڼړي) لیکن مونږ وایو چه دواړه خبرے قرآن کـریـم کښې ذکر دي، اسراء پدے آیت کښې راغله او معراج په سورة النجم (۱۳) آیت کښې ذکر دے ﴿ وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى﴾ لیـکـن هغه ته دا مسئله نهٔ وه ښکاره شوے. بله دا چه دا په متواترو احادیثو سره ثابت دے او د ټولو مسلمانانو پدے اجماع ده لکه تفسیر قرطبیؒ هغه تواتر نقل کړیدے. او د تواتر نه انکار بالاتفاق کفر دے.

## د معراج واقعه بدني وه او که صرف د خوب؟

مسـئـلـه: البتـه پدے کـښې لږ شان اختلاف وو چه آیا رسول الله ﷺ په خوب کښې بره آسمـانـونو ته تلے وو او که په ویښـه ؟ د بعض احادیثو نه داسے معلومیږي چه [بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ] چـه کـلـه دا واقعه راپیښـه شوه نو زهٔ اُوده وم. یـا د قرآن کریم د آیت ﴿ وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِيْ

اَرَیۡنٰكَ ﴾ (الاسراء: ٦٠) نه ئې دلیل نیولې دې چه دې ته رؤیا (خوب) وئیلې شوېدې.
او ابن اسحاقؒ د عائشه او معاویه رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه د رسول الله ﷺ جسم مبارك د خپل ځای نه ورك شوې نۀ وو.
لیکن دا رایه مرجوحه ده، وجه دا ده چه په خوب کښې خو هر شخص آسمانونو او جنت او جهنم ته تللې شي نو بیا زمونږ او د هغۀ فرق په څه شو. په خوب کښې تلل خو دومره کمال نۀ دې. ❁ دویمه وجه مشرکانو پدې کار باندې شور ولې جوړولو او چغه ئې خلکو ته ولې کوله ځکه چه هغوی هم دا وئیلې شو چه په خوب کښې مونږ هم تللې شو، دا خو سبب د انکار نۀ ګرځی، هغوی ته اشکال پدې راغلې وو چه په ویښه باندې انسان څنګه آسمانونو ته په دومره لږ وخت کښې وخیژی او بیرته راکوز شي. او عبد الله بن عباس ﷺ په دغه آیت (الرُّؤۡیَا) کښې وئیلی دی چه [رُؤۡیَا عَیۡنٍ اُرِیۡهَا رَسُوۡلُ اللّٰهِ ﷺ مِنَ الۡعَجَائِبِ] دا د سترګو لیدل وو چه رسول الله ﷺ ته دغه عجائبات خودلې شوی وو. او بل قرآن کریم پرې دلیل دې ﴿مَا زَاغَ الۡبَصَرُ وَمَا طَغٰی﴾ (النجم: ١٧) رسول الله چه څه په سترګو کتل نو د هغې نه ئې نظر کوږ شوې نۀ وو او نۀ ترې اخوا اوړیدلې وو)
د سلفو او خلفو د اکثرو علماؤ هم دا رائې ده چه نبی کریم ﷺ د جسم او روح دواړو سره بیت المقدس او بیا آسمانونو ته تشریف وړې وو. د ابن عباس، جابر، انس، حذیفه، عمر، ابو هریره، مالك بن صعصعه، ابوحبه البدری، ابن مسعود (ﷺ)، د ضحاك، سعید بن جبیر، قتاده، سعید بن المسیب، ابن شهاب، ابن زید، حسن، مسروق، مجاهد، عکرمه او ابن جریج (رحمهم الله) همدا قول دې. د طبریؒ، احمد بن حنبلؒ او اکثرو متأخرینو فقهاء او محدثینو او متکلمین مفسرینو هم دا قول دې.
قاضی عیاضؒ په خپل کتاب «الشفاء» کښې لیکلی دی چه حق او صحیح ان شاء الله دا ده چه د معراج واقعه د نبی ﷺ د جسم او روح دواړو سره راپیښه شوې وه. د آیت کریمه او صحیح احادیث او د سوچ او فکر نه همدا خبره ثابتیږی. او ظاهری معنیٰ پریخودلو سره د تاویل لاره په هغه وخت اختیاریږی کله چه ظاهری معنیٰ مراد کول ممکن نۀ وی. او د جسم سره په حالت د بیداریٔ کښې د معراج واقع کیدل د الله د قدرت نه وړاندې نۀ دی. که روحانی سفر وې نو الله تعالیٰ به د «بِعَبۡدِهٖ» په ځای «بِرُوۡحِ عَبۡدِهٖ» وئیلې، او که د خوب سفر وې نو پدې کښې نۀ نخښه کیده او نۀ څه معجزه، او نۀ به کافرانو دا د عقل نه بعیده خبره ګڼړلې او نۀ به ئې ددې انکار کولې، او نۀ به پدې سره ضعیف مسلمانان مرتد کیدلې او په

فتنه کښې واقع کیدلے۔ ځکه چه د داسے خوبونو نه خو انکار نشی کیدے۔ بلکه دا چه که دا د خوب واقعه وے نو د هغے دپاره ((اَسْرٰی)) لفظ نهٔ استعمالیږی۔ آه۔

(القاسمیؒ فی محاسن التاویل)

ځینی علماؤ وئیلی دی چه د رسول الله ﷺ معراج په ویښه یو کرت شویدے او په خوب کښې بار بار شویدے۔

## د معراج واقعه کله راپیښه شوه؟

پدے کښې اختلاف د علماؤ دے؟ مګر د اکثرو مفسرینو رائے ده چه د معراج واقعه د هجرت نه یو کال مخکښې واقع شوے وه۔ د زهریؒ او ابن سعدؒ وغیره هم دا قول دے۔ د امام نوویؒ په نیز هم دا صحیح ده۔ امام ابن حزمؒ خو د مبالغے نه کار اخستے دے او پدے باندے ئے اجماع نقل کړیده، او وئیلی ئے دی چه معراج په رجب میاشت سنه (۱۲ ھ) نبوی کښې واقع شوے وو۔ حافظ عبد الغنی مقدسیؒ اووه ویشتم (۲۷) تاریخ د رجب ته ترجیح ورکړیده او وئیلی ئے دی چه د خلقو په همدے عمل دے۔

بیا په حدیث د معراج کښې دی چه نبی ﷺ انبیاء کرامو (علیهم السلام) ته په بیت المقدس کښې مونځ وکړو۔ آه۔ هلته ورته الله تعالیٰ یو لاکهـ څلیریشت زره انبیاء علیهم السلام راجمع کړی وو، دا جماعت کول یا په واپسئ کښې وو یا ددے طرف نه وو، ظاهر دا ده چه ددے طرف نه وو، بیا د هغے نه روستو بره آسمانونو ته د جبریل علیه السلام په براق وختلو او هلته ئے د انبیاء علیهم السلام په ترتیب د حروفو د (اَعْیَا هُمَّا) سره ملاقات وکړو یعنی (آدم، عیسی، یوسف ویحیٰی، ادریس، هارون، موسیٰ او ابراهیم علیهم السلام)

بیا به پدے باندے خپل عقل نهٔ چلوے چه بیت المقدس کښې یو لاکه څلیریشت زره پیغمبران څنګه راجمع شی، هغه خو ددے نه وړوکے دے، یا دغه علاقه کښې خو یهود او نصاریٰ هم موجود وو، هغوی څنګه نهٔ لیدل۔ نو دا معجزه ده پدے باندے قیاسونه نشی کیدے۔ او داسے وینا به غلطه وی چه وګوره مړی دی او په دنیا کښې ګرځی راګرځی، خلکو سره مددونه کولے شی دا شرک ته لاره کولاوه ول دی۔

بیا رسول الله ﷺ د اووه آسمانونو نه بره شو نو دغه ځای کښې ترے جبریل علیه السلام پاتے شو تردے چه رسول الله ﷺ داسے علاقے ته ورغلو فرمائی چه (مُسْتَوًی اَسْمَعُ فِيْهِ صَرِيْفَ الْاَقْلَامِ) هواره علاقه وه چه ما په هغے کښې د قلمونو کشارے آوریدو۔ الله تعالیٰ سره براؤ

راسته مخامخ ملاقات ونشو ځکه چه دا د الله تعالیٰ د کبریاء تقاضا ده او په دنیا کښې بنده ته الله تعالیٰ دا طاقت نهٔ دے ورکړے چه الله په خپلو سترګو سره ویني. خو په زړه باندے ئے ولیدو او الله تعالیٰ ورسره خبرے وکړے او جنت او جهنم او اشخاص ئے پرے ولیدل او دغسے نور ډیر عجائبات ئے پرے ولیدل او په واپسئ کښې ورته الله تعالیٰ درے خبرے ورکړے پنځوس مونځونه، خواتیم د سورة البقره او (وَغُفِرَ لِأُمَّتِهِ الْمُقْحِمَاتِ) او د هغه امت ته ئے کبیره ګناهونه معاف کړل. دا درے واړه انتهائي قیمتي خبرے دي چه هر مؤمن له پدے باندے واه واه وئیل پکار دي او الله ته سجده د شکر پکار ده.

رسول الله ﷺ په واپسئ کښې په موسیٰ علیه السلام باندے راتیر شو، هغه ترے تپوس وکړو: [مَا فَرَضَ اللّٰهُ عَلٰى أُمَّتِكَ] ستا په امت باندے الله تعالیٰ څو مونځونه فرض کړل، وے وئیل پنځوس. ورته ئے وفرمایل: ستا امت ددے طاقت نهٔ لري، هغه لاړو پنځه ئے کم کړل بیا لاړو پنځه ئے کم کړل بیا لاړو آخر دا چه پنځه پاتے شو، بیا ئے ولیږلو چه دا هم پرے کم کړه ځکه چه زما په امت باندے د پنځو مونځونو نه کم فرض وو (څلور مونځونه وو) نو ستا امت به ئے څه وکړي؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: [أَرْضٰى وَأُسَلِّمُ] زهٔ پدے راضي یم او الله ته تسلیم یم. نو الله وفرمایل: [أَمْضَيْتُ فَرِيْضَتِيْ وَخَفَّفْتُ عَنْ عِبَادِيْ]

ما خپله فریضه نافذه کړه او په خپلو بندګانو مے آساني راوسته، او تاسو ته به په بدله د پنځو مونځونو کښې د پنځوس مونځونو ثواب درکوم. بیا صبا له ورپسے جبریل علیه السلام راغلو او د مونځونو اوقات ئے ورته وخودل. په اوله ورځ ئے ورته اول وخت او په دویمه ورځ ئے ورته آخر وخت د مونځونو وخودلو. دا وه مختصره واقعه د معراج چه تفصیل ئے زمونږ په کتاب ((سیرت الرسول – ﷺ)) کښې کتلے شئ.

بیا دلته عجیبه خبره دا ده چه الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته حکم وکړو چه دا واقعه چه په تیره شوه دا به مشرکانو ته بیانوے، او دا ډیر لوی امتحان دے چه په هغه زمانه کښې جدید آلات نهٔ وو موجود، په هوا باندے الوتلو سره هیڅوک مانوس نهٔ وو، او مخاطبین مشرکان دي چه ایمان هم پکښې نشته او کافر ته داسے وائي چه ما داسے کار کړیدے نو دا خو د هغه په زوره ګمراه کول دي.

نو په روایت د مسند احمد کښې راغلي دي چه رسول الله ﷺ سهار په مسجد حرام کښې ناست وو نو ابوجهل پرے اول راتیر شو، ورته ئے وویل چه اے وراره! څنګه خفه ناست ئے، بیا درته څه وحي شویده او که څنګه؟ تو قے ئے ورپورے وکړے. نو رسول الله ﷺ وفرمایل

: آؤ، زۀ خو بیگاه بیت المقدس ته تلے وم او د هغه ځای نه آسمانونو ته ختلے او بیرته واپس راغلے یم، هغه وویل : دا ټول په یوه شپه کښ؟ هغه وویل : آؤ په یوه شپه کښ. نو ابوجهل سمدست تکذیب ونکړو بلکه رسول الله ﷺ نے پدے خبره مضبوطولو (د هغه نور خلك ګمراه کول مقصد وو) آیا تۀ دا خبره بل چا ته هم کولے شے ؟ نو هغه وویل : آؤ، نو ابوجهل خلکو ته آواز وکړو چه محمد (ﷺ) تاسو ته یوه ناشنا خبره کوی۔

بیا ئے هغه ته وویل چه ما ته ډیے کومه خبره وکړه دا دوی ته وکړه۔ نبی کریم ﷺ ورته دغه واقعه بیانه کړه۔ (مسند احمد: ۲۸۲۰)

نو پدے وخت کښ بعض ضعیف مسلمانان بی ایمانه شو، دے ته امتحان وائی، د دوی په زړونو کښ دا خبره راغله چه دے محمد (ﷺ) به اوُسه پورے داسے خبرے کولے چه عقل به منلے اوُس داسے خبرے کوی چه عقل ئے نۀ منی، نو دا صحیح نۀ ښکاره کیږی لکه چه الله تعالیٰ روستو فرمایلی دی : ﴿ وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِيْ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾ دا فتنه شوه۔ مشرکانو خنداګانے شروع کړے چه مونږ به ویل چه دماغ ئے خراب دی دا خو رشتیا ده۔

ابوجهل روان شو دے دپاره چه ابوبکر صدیق ؓ ته ترے واړوی، (داعی د ګمراهئ وو) ابوبکر ؓ سره ملاؤ شو (ابوبکر ؓ لا ددے واقعے نه خبر نۀ دے) ورته ئے وویل چه آیا تا ته پته شته چه ستا یار څه وئیلی دی ؟ څه ئے ویلی دی ؟ وے ویل چه دا وائی چه زۀ بیت المقدس ته بیا آسمانونو ته په یوه شپه کښ تلے راغلے یم۔ نو ابوبکر صدیق ؓ وفرمایل: (اِنِّیْ لَاُصَدِّقُهٗ فِیْ اَسْرَعَ مِنْ ذٰلِكَ) زۀ ددۀ تصدیق کوم په زیات تیزئ سره ددے نه هم۔ هغه حیران شو او د ابوجهل خبره ئے په خوله کښ اوُچه کړه۔ دے ته صدیق اکبر ؓ وائی۔

پدے وخت کښ مشرکانو اعتراضونه شروع کړل، اول اعتراض چه که تۀ پدے خبره کښ رشتینے ئے نو دا راته وښایه چه د بیت المقدس څو دروازے او څو کړکئ او څو ستنے دی؟ دا بی ځایه اعتراضونه دی، د هدایت اراده ئے نشته صرف د حق داعی تنګول او د هغۀ خبره خامخا دروغجنه ګنړل۔ رسول الله ﷺ فرمائی : زۀ پدے وخت کښ ډیر پریشانه شوم (ځکه چه زۀ خو بیت المقدس ته ددے شمار دپاره نۀ وم تلے) او مشرکانو ته دا د مخکښ نه معلومه وه چه رسول الله ﷺ بیت المقدس مخکښ نۀ دے لیدلے، نو الله تعالیٰ ما ته بیت المقدس راپورته کړو او زۀ په حطیم کښ ولاړ وم او ما هغے ته کتل او د مشرکانو جوابونه به مے ورکول (دا بله معجزه شوه) نو ټول لاجوابه خړ شو لیکن بیا ئے هم انکار کولو۔

بله معجزه مے دا بیانه کړه چه ستاسو یوه قافله ده چه په فلانی علاقه کښ روانه ده او

په فلانئ ورځ به رارسیږي او د هغوی په قافله ژۀ د شپے راتیر شوم او د هغوی په لوښي کښې اوبه پرتے وے چه سر پرے پروت وو، ما ترے دغه اوبه وڅکلے او لوښے مے همغه شان کیخودو، کله چه قافله راغله نو په همغه ورځ راورسیده په کومه ورځ چه رسول الله ﷺ خودلے وه نو هغوی نه ئے دغه شان تپوس وکړو، هغوی ددے اقرار وکړو چه آؤ دغه لوښے خالي شوے وو بغیر د اوړیدو نه.

لیکن ددے معجزے د لیدو سره هم ددے ضدیانو کفر نور مضبوطیدو.

د معراج په واقعه کښې ډیر فوائد دي، زمونږ د رسول الله ﷺ عزت دے، د مانځه فضیلت دے، د رسول الله ﷺ د یقین مضبوطول دي، هغه په خپلو سترګو جنت او جهنم ولیدل او هغه رشتینی دے، مونږ ته ئے حال وویلو، خبره حقه شوه نو امت له پکار ده چه پدے خبره یقین وکړي، پدے واقعه کښې د الله د قدرت نخے او د دعوت طریقه هم خودلے شویده. او په حق کښې هر قسم مشکلات راتللے شي.

| |
|---|
| وَآتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ وَجَعَلْنَاهُ هُدًى لِّبَنِي إِسْرَائِيلَ |
| او ورکړے وو مونږ موسیٰ ته کتاب او ګرځولے وو مونږ هغه هدایت دپاره د بنی اسرائیلو |
| أَلَّا تَتَّخِذُوا مِن دُونِي وَكِيلًا ﴿٢﴾ ذُرِّيَّةَ مَنْ |
| (پدے خبره) چه مۀ نیسئ سوی زما نه کارساز. اے اولاد د هغه چا |
| حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا ﴿٣﴾ |
| چه مونږ سوارۀ کړی وو د نوح (علیه السلام) سره یقیناً هغه وو بنده شکر ګذار. |

**تفسیر** : د نبی کریم ﷺ او د معراج ذکر کرلو نه روستو د موسیٰ کلیم الله علیه السلام او د هغۀ کتاب تورات ذکر کوی. نو دا ګویا که دلیل نقلی دے د موسیٰ علیه السلام نه چه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام لره طور ته راغوختے وو او دا د هغۀ معراج وو او کتاب ئے ورته ورکړے وو نو دغه شان ئے خپل نبی بانده معراج وکړو او کتاب ئے هم ورته ورکړو د دواړو کتابونو مقصد د راتللو د توحید دپاره دی او خلاصه ئے دا ده چه د الله نه سوی هیڅ کارساز اوذمه وار او معبود مۀ جوړوئ.

هُدًى: یعنی تورات هدایت وو نو نهم آیت کښې وائی ﴿إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ

اَقْوَمُ﴾ دا قرآن هم هدایت دے۔

وَکِیْلًا: ۱- اَیْ مُتَوَکِّلِیْنَ عَلَیْهِ فِیْ اُمُوْرِهِمْ۔ چه په خپلو کارونو کښې په هغه توکل کوئ او هغه ته کارونه سپارئ پدے نیت چه دا ستاسو کارساز دے۔

۲- کَفِیْلًا بِاُمُوْرِهِمْ۔ ذمه وار د هغوی د کارونو۔ (فراء)

۳- شریك۔ (قرطبی وفتح البیان)

ذُرِّیَّةَ مَنْ حَمَلْنَا : پدے کښې شکر ته ترغیب ورکوی۔ ذُرِّیَّةَ منصوب دے حرف منادیٰ پټه ده (یَا ذُرِّیَّةَ) او په آخر کښې (اُشْکُرُوْا) لفظ پټ دے۔ او په ذُرِّیَّةَ لفظ ذکر کولو کښې د انعام احساس ورکوی چه ستاسو مخکنے نیکه ئے په دریاب کښې د ډوبیدو نه بچ کړے وو، که هغه نه وے نو تاسو به هم اوس نه وے نو دا ستاسو سره احسان شو نو ستاسو نیکه (نوح ﷺ) خو شکر گزار بنده وو نو تاسو به هم شکر کوئ۔ نو مونږ له په دوه څیزونو شکر پکار دے یو دا چه مونږ ته الله تعالیٰ محمد رسول الله ﷺ راولیږلو او قرآن ئے راکړو او دویم په وجود باندے چه مونږ نشت وو او بیا ئے دنیا ته راوستو۔

ابن مردویه د عبد الله بن زید الانصاری ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ دا آیت ولوستلو او بیا ئے وفرمایل: د نوح ﷺ صرف څلور اولاد وو، حام، سام، یافث او کوش نو دغه اولادو نه روستنی انسانان پیدا شو» (فتح البیان)

عَبْدًا شَکُوْرًا : ابن ابی الدنیا په «کتاب الشکر» کښې ذکر کړیدی : [کَانَ اِذَا اَکَلَ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَاِذَا شَرِبَ وَاِذَا رَکِبَ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ] - چه کله به ئے خوراك څکاك او سوریدل کول نو الحمد به ئے ویله۔ یعنی هر حالت کښې۔

| وَقَضَیْنَا اِلٰی بَنِیْ اِسْرَاءِیْلَ فِی الْکِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِی |
| --- |
| او فیصله آورولے وه مونږ بنی اسرائیلو ته په کتاب کښې خامخا فساد به کوئ په |
| الْاَرْضِ مَرَّتَیْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا کَبِیْرًا ﴿٤﴾ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ |
| زمکه کښې دوه کرته او لوئی به کوئ تاسو په لوئی غټے سره۔ نو هرکله چه راغله وعده |
| اُوْلٰهُمَا بَعَثْنَا عَلَیْکُمْ عِبَادًا لَّنَا |
| اولنئ: زمونږ (د فساد د دوی) نو راولیږل مونږ په تاسو باندے بندګان زمونږ |

أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا خِلَالَ الدِّيَارِ وَكَانَ وَعْدًا مَفْعُولًا ﴿٥﴾

چه ډیر سخت جنګ والا وو نو ننوتل دوی مینځ د کورونو ته او وه دا وعده پوره کړے شوے۔

ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنَاكُمْ بِأَمْوَالٍ

بیا راواپس کړه مونږ تاسو ته غلبه په دوی باندے او زیات کړل مونږ ستاسو مالونه

وَبَنِينَ وَجَعَلْنَاكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا ﴿٦﴾ إِنْ أَحْسَنْتُمْ أَحْسَنْتُمْ

او ځامن او وګرځول مونږ تاسو ډیرے ډلے والا۔ که نیکی کوئ تاسو نو نیکی کوئ تاسو

لِأَنْفُسِكُمْ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا فَإِذَا

د خپلو نفسونو د فائدے دپاره او که تاسو بدی کوئ نو ضرر به ئے په هغے وی نو هر کله

جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ لِيَسُوءُوا

چه راغله وعده روستنئ (نو راولیږل مونږ په تاسو ظالمان) دے دپاره چه بد کړی (خفه

وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ

کړی) مخونه ستاسو او دے دپاره چه داخل شی مسجد ته لکه چه داخل شوی وو اول

مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا مَا عَلَوْا تَتْبِيرًا ﴿٧﴾

ځل او دے دپاره چه هلاك کړی هغه شے چه د دوی پرے وس بر شی په هلاکولو سره۔

عَسَى رَبُّكُمْ أَنْ يَرْحَمَكُمْ وَإِنْ عُدْتُمْ

نزدے ده چه رب ستاسو به رحم وکړی په تاسو او که تاسو راواپس شوئ (فساد ته)

عُدْنَا وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ حَصِيرًا ﴿٨﴾

مونږ به راواپس شو (ستاسو سزا ته) او ګرځولے دے مونږ جهنم کافرانو لره جیل خانه۔

**تفسیر**: دا تخویف دے په ذکر د قصه د بنی اسرائیلو سره، چه بنی اسرائیلو د پیغمبرانو دشمنی کړیده نو الله څنګه ذلیله کړیدی نو که تاسو د محمد ﷺ په مقابله کښې ودریدئ نو دغه شان به ذلیله کیږئ۔ او دغه شان وشوه چه صحابه کرامؓ د هغوی کورونو ته سیده ورننوتل او هغوی خره سترګی شو لکه چه یهودو سره دغه شان کار شوے وو۔

وَقَضَيْنَا : (اَیْ اَخْبَرْنَا) یعنی مونږ خبر ورکړے وو۔ او خبر ته ئے قضاء (فیصله) لفظ استعمال کړو ځکه چه دا یواځې خبر نهٔ وو بلکه ددې فیصله شوې وه۔ یعنی الله تعالیٰ په تورات کښې د بنی اسرائیلو په باره کښې دا خبر ورکړے وو چه دا خلق به ګناهونه کوی او په زمکه کښې به فساد خوروی، د الله د قوانینو نافرمانی به کوی، او په خلقو به ظلمونه کوی۔ نو دوی همدغسې وکړل او زمکه ئے د ظلم او فساد نه ډکه کړه، نو الله تعالیٰ په دوی باندې داسې خلق مسلط کړل چه ډیر زیات طاقتور او ظلم او زیاتی والا وو۔ دوی د هغوی کورونو ته ننوتل او بنه قتل او لوټ مارئے وکړو او هغوی ئے غلامان جوړ کړل۔ کله چه دوی د خپلو ګناهونو نه توبه وویستله نو الله تعالیٰ دوی ته دویم ځلی اولاد او مال او دولت ورکړو او د دوی په اولادو کښې ئے بنه برکت واچولو تردې چه د دوی شمار ډیر زیات شو۔

لَتُفْسِدُنَّ : دا دوه مرضه (العلو والفساد) په فرعون کښې هم وو لکه په سورة القصص کښې به راشی ان شاء الله۔ او دا په یهودیانو کښې هم وو او د مکې په مشرکانو کښې هم وو او دا زمونږ د زمانې په مشرکانو او اهل بدعو کښې هم موجود دی۔

## د فساد او علو مصداقات

فساد : ۱ – حقوق الله بربادول دی او علو حقوق العباد بربادول دی۔

۲ – فساد صد عن سبیل الله ته وائی او علو خپله حق نهٔ منل او حق له دیکه ورکول۔

بیا دلته د فساد نه مراد څه شې دې؟ : اَیْ لَتُخَالِفُنَّ شَرِیْعَتَیْنِ ۔ د دوه شریعتونو مخالفت به کوئ یو د موسیٰ علیه السلام شریعت او بل د عیسیٰ علیه السلام شریعت۔

او دا فساد په کفر او ګناهونو سره وو۔ (قاسمیؒ)

فِي الْاَرْضِ: د زمکې نه مراد زمکه د فلسطین بیت المقدس ده چه هغه مبارکه ده۔

مَرَّتَيْنِ: یعنی تاسو به د پیغمبرانو په خلاف کښې دوه ځله ودریږئ نو الله به په تاسو دوه عذابونه راولی۔ نو پدې کښې اشاره ده چه د نبی خلاف دومره بد شې دې چه عذابونه پرې راځی۔

## د بنی اسرائیلو د حالاتو بعض تفصیلی

د قرآن کریم غرض مقصد ته اشارات ورکول دی، تفصیل د قصې نهٔ کوی، نو ددې اجمال د زیاتې پوهې دپاره معمولی شان تفصیل ضروری دې۔ وائی چه د عیسیٰ علیه السلام نه تقریباً څه دپاسه نهه سوه کاله مخکښې د سلیمان علیه السلام د مرګ نه روستو د هغه ځوی د حکومت

واکے سنبال کړے چه هغه د خپل قوم دپاره د بتانو عبادت جائز وګرځولو۔ نو د هغه د پنځه کاله حکومت کولو نه روستو د مصر بادشاه په بیت المقدس باندے حمله وکړه او هیکل سلیمانی یعنی د مسجد اقصیٰ خزانے ئے لوټ کړے۔ او حالت دے ته اُورسیدو چه ملك دوه ټکړے شو۔ د یو نوم مملکت د یهوذا شو چه هغه د یهوذا او د بنیامین په اولادو مشتمل وو۔ او د دویم نوم مملکت د اسرائیلو شو چه د یعقوب علیه السلام د نورو لسو اولاود نه جوړ وو۔ د مملکتِ اسرائیل اولنے بادشاه یربعام شو چه هغه د سرو زرو دوه سخی جوړ کړل او خپل رعیت ته ئے د هغے د عبادت کولو حکم وکړو دے دپاره چه د دوی بیت المقدس ته تلل رانهٔ شی۔ ځکه چه هغه یریدو چه هلته په تلو سره د یهوذا د مملکت بادشاه (یعنی د سلیمان ځوی) تائید ونهٔ کړی۔ دے خلقو دوه نیم سوه کالو پورے حکومت وکړو۔ پدے مینځ کښں د دوی بعض بادشاهانو د بت پرستیٔ ختمولو کوشش وکړو لیکن بیرته اولنے حالت راواپس شوے وو۔

کله چه د دوی ګناه نوره زیاته شوه نو الله تعالیٰ په دوی باندے د آشور بادشاه مسلط کړو چه د هغه په لاسونو د مملکتِ اسرائیل خاتمه اُوشوه۔ دے نه روستو د یهوذا مملکت د شلو کالو نه زیاتو ورځو پورے باقی پاتے وو۔ آخر د دوی بادشاه یو لوئی خبیث او مشرك سړے شو چه د هغه د ګناهونو په وجه الله تعالیٰ په دوی باندے د بابل بادشاه بخت نصر مسلط کړو چه هغه ذ دوی نه ډیر کسان غلامان کړل۔ دا د دوی اولنے ذلت او رسوائی وه چه دے ته قرآن اشاره کړیده۔

دے نه روستو ددهٔ ځوی بادشاه جوړشو چه د خپل پلار په شان شری وو۔ دهٔ ته د بابل حکومت راواپس کړے شو او فلسطین ئے آزاد کړو لیکن د اته کالو نه روستو دوباره بخت نصر بیا په دوی باندے حمله وکړه او ښه لوټ مارئے وکړو او ډیرئے غلامان کړل۔دا د دوی دویم ځلو ذلت او رسوائی وه۔

د دوی آخری بادشاه د ټولو مخکنو بادشاهانو نه زیات خراب وو، پدے وجه الله تعالیٰ دریم ځلی د بابل بادشاه د دوی په خلاف په فوج لیږلو راپورته کړو، هغه د بیت المقدس محاصره وکړه، بادشاه ئے په زنځیرونو کښں وتړلو، ښار او هیکل سلیمانی ئے وسیزلو، او د څه مسکینانو نه سوئ ټول یهوذا قوم ئے غلامان کړل، او دوی ئے د حیواناتو په شان راځکل او بابل ته ئے بوتلل او د یهوذا د مملکت خاتمه وشوه۔

دا د دوی دریم ځلی ذلت او رسوائی وه۔

اویا (۷۰) کاله روستو چه کله د غلامئ نه آزاد شول نو دویم ځلې فلسطین ته راغلل او هلته آباد شول او بیت المقدس ئې دوباره تعمیر کړو او هیکل ئې ودرولو.
لیکن دے نه روستو همیشه د یو نه یو اثر لاندے وسیدلی دی.
د فارس او یونان او د روم بادشاهانو دوی کله هم چین او سکون ته نهٔ دی پریخی، تردے پورے چه عمر بن خطاب ﷺ بیت المقدس فتح کړو او د صخرے نه قبلے طرف ته ئې مسجد تعمیر کړو (چه دا د قسطنطین بادشاه د مور هیلانه په حکم سره د کندونو ډیران جوړ شوے وو. عمر فاروق ﷺ دغه کندونه صفا کړل او قبلے طرفته ئې پرے مسجد جوړ کړو چه هغه دویم ځلې ولید بن عبد الملك په زوړ بنیاد جوړ کړو او قبة الصخره ئې هم جوړه کړه او تر اُوسه پورے باقي دے. (محاسن التاویل للقاسمیؒ)
دا وو هغه تفصیل چه قرآن کریم ورته په جامعو الفاظو کښې اشاره کړے وه.
فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ أُولَٰهُمَا : عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : اول فساد د دوی قتل د زکریا ﷺ وو نو الله په دوی باندے د نبطو بادشاه راولیږلو. بیا بني اسرائیلو تیارے وکړو او د نبطیانو سره ئې جنګ وکړو نو هغوی ته ئې ماتے ورکړه لکه الله تعالیٰ په ﴿ثُمَّ رَدَدۡنَا لَكُمُ ٱلۡكَرَّةَ عَلَيۡهِمۡ﴾ کښې ذکر کړیدی.
ﷺ عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي په اول ځل په دوی باندے جالوت راغلے دے (د کوم واقعه چه په سورة البقره کښې ذکر شویده) او په دویم ځل باندے په دوی باندے بختنصر راولیږلو نو بیا الله تعالیٰ په هغوی باندے ددے امت مؤمنان مسلط کړل. (فتح البیان ٤/١٠٥)
او بعض وائي چه دا دویم ځلې حمله آور قُسۡطُنۡطِينُ ٱلۡمَلِكُ دے چه دا اول یهودي وو مور ئې نصرانیه شوه نو دا هم نصرانیت ته راواوړیدو نو بیا ئې یهودیانو ته سختے سزاګانے ورکړے او دین ئې هم ورله برباد کړو بیا ئې د نصارا او دین هم خراب کړو.
عِبَادًا لَّنَا : دا ضروري نهٔ ده چه دا به نیکان بندګان وي یعنی د الله غلامان دي.
أُوْلِي بَأۡسٖ شَدِيدٖ : مفسرین دلته مختلف قسمه خلك ذکر کوي څوك بختنصر او د هغه لښکر، او څوك جالوت او څوك د فارس والو لښکر، او څوك د بابل والو او څوك سنحاریب د نینویٰ علاقے، نو دے خلکو د بني اسرائیلو علماء قتل کړل او تورات ئې وسیزلو او مسجد اقصیٰ ئې وران کړو او د دوی نه ئې اویا زره کسان قیدیان کړل.
(فتح البیان)
فَجَاسُواْ خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِ : جاس کډو د ګرځیدو ته وائي. او زجاج وائي چه جَوۡس طَلَبُ

الشَّیْءِ بِاسْتِقْصَائِهٖ تـه وائـی : یـعـنـی یو شے په پوره طریقے سره طلب کول۔ اَیْ طَافُوْا هَلْ بَقِیَ اَحَدٌ لَمْ یَقْتُلُوْهُ۔ یعنی وګرځیدل ددے دپاره چه آیا څوك به پاتے وی چه دوی نهٔ وی وژلے۔
او دا ډیر سخت عذاب دے چه ستا په مخامخ ستا دشمن ستا کور ته بیغمه راننوزی او ستا او ستا د کور بیعزتی کوی۔
**وَعْدًا مَّفْعُوْلًا:** یعنی دا وعده د الله په تقدیر کښ پوره کړے شویده۔
**رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ:** اَیْ فِیْ زَمَنِ طَالُوْتَ۔ د طالوت په زمانه کښ الله تعالیٰ بنی اسرائیلو ته غلبه ورکړه او جالوت ئے د داود علیه السلام په لاس قتل کړو۔
**اَلْكَرَّةَ:** اَلدَّوْلَةَ وَالْغَلَبَةَ وَالرَّجْعَةَ۔ (حکومة، غلبه، واپسی)۔
**اَكْثَرَ نَفِیْرًا:** په جهادونو کښ دا برکت وی چه څومره شهادتونه زیاتیږی هغومره نفری د مؤمنانو زیاتیږی۔
**اِنْ اَحْسَنْتُمْ:** ۱- یعنی مونږ هغوی ته وئیلی وو چه که تاسو نیکی وکړه۔
۲- اَیْ اَفْعَالَكُمْ وَاَقْوَالَكُمْ۔ یعنی که تاسو خپل عملونه او خبرے نیکے کړے۔
**لِاَنْفُسِكُمْ** : دا د قرآن کریم عام قانون دے چه د هر سړی نیکی خپل ځان دپاره فائده ده۔
﴿ وَمَنْ یَّشْكُرْ فَاِنَّمَا یَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ ﴾ (النمل : ٤٠) ﴿ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ وَمَنْ اَسَاءَ فَعَلَیْهَا ﴾ (فصلت : ٤٦). ﴿ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَیْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ﴾ (البقرہ : ١٣٤)
او دا علت دے دپاره د مخکنئ خبرے یعنی الله تعالیٰ داسے پدے وجه وکړل چه بنی اسرائیلو ته معلومه شی چه که دوی توبه وباسی او د خپلو عملونو اصلاح وکړی نو ددے نتیجه به ښه راوځی او که په خپلو ګناهونو باندے همیشوالے وکړی نو دوی ته به بد انجام رسیږی، لکه چه دوی کله ښه وو نو الله دوی ته نعمتونه ورکول او کله چه سرکشه شو نو بیا ئے پرے طاقتور بندګان مسلط کړل او نعمتونه ئے ترے واخستل۔
**لِیَسُوْٓءُوْا** : دے دپاره چه بد کړی/ خفه کړی مخونه ستاسو۔ یعنی داسے کارونه دربانددے وکړی چه ستاسو مخونه خفه کړی چه د هغے آثار ستاسو په مخونو کښ راښکاره شی۔ حاصل معنیٰ ئے ده : بی عزته کړی ستاسو عزتمند خلك۔ نو د وجوه نه مراد به سرداران شی۔
**اَلْمَسْجِدَ** : ددے نه مراد بیت المقدس دے چه دے ته داخل شی د خرابوالی دپاره۔
**كَمَا دَخَلُوْهُ اَوَّلَ مَرَّةٍ:** لکه چه د اول فساد په وخت دوی ورته داخل شوی وو او هغه ئے خراب کړے وو۔ اول کښ جالوتیانو او بیا روستو بختنصر او قسطنطین ونیولو۔

وَلِيُتَبِّرُوْا : چه هلاك کړی،/ اوتس نس کړی۔
مَا عَلَوْا: یعنی په څه باندے ئے چه وس بر شی/ په څه باندے چه غالبه شی۔
عَسٰی رَبُّکُمْ : پدے آیت کښې اشاره شویده چه د دوی سره چه څه وشو نو د دوی د بدو عملونو نتیجه وه، او ددے دپاره وشو چه دوی دویم ځلی الله طرف ته رجوع وکړی، د خپلو گناهونو نه توبه وباسی، او د تورات مطابق خپل ژوند تیر کړی۔ ځکه چه اُوس خو دوی ته معلومه شوه چه د الله تعالیٰ عذاب د گناهونو په وجه سره راځی، او نجات د توبے په ذریعه ملاویږی۔ خو تاریخ گواه دے چه بنی اسرائیل په خپله توبه باندے پاتے نهٔ شو او دریم ځل ئے د تمرد او سرکشئ ژوند اختیار کړو، په محمد ﷺ ئے هم تکذیب وکړو او په تورات او انجیل کښې د هغه ذکر شوی صفات ئے پټ کړل، نو الله تعالیٰ دریم ځلی په دوی باندے عرب مسلط کړل، نو بنو قریظه او نضیر او بنو قینقاع او خیبر والو ته ئے د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو په لاس سزا ورکړه او په دوی باندے ئے جزیه مقرر کړه او د ذلت او رسوائی سره مخامخ شو۔
عُدْتُمْ : اَیْ اِلَی الْمَعْصِیَةِ ثَالِثًا۔ یعنی که تاسو دریم ځلی نافرمانئ ته راواپس شوئ۔
عُدْنَا: اِلٰی عُقُوْبَتِکُمْ۔ مونږ به ستاسو سزا ته بیا راواپس شو۔
وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ: یعنی دا خو د دنیا سزا او په آخرت کښې خو جهنم د دوی دپاره پوره جیل خانه ده۔

| إِنَّ هٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِيْ لِلَّتِيْ هِيَ أَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِيْنَ |
|---|
| یقیناً دا قرآن خودنه کوی هغے لارے ته چه ډیره برابره ده او زیرے ورکوی مؤمنانو ته |
| الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيْرًا ﴿٩﴾ وَأَنَّ الَّذِيْنَ |
| هغه کسان چه عملونه کوی نیك یقیناً دوی لره اجر دے لوئی۔ او یقیناً هغه کسان |
| لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْآخِرَةِ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيْمًا ﴿١٠﴾ |
| چه ایمان نهٔ لری په آخرت، تیار کړیدے مونږ دوی لره عذاب دردناك۔ |

**تفسیر** : د قرآن کریم فضیلت راوړی۔

ددے یو مناسبت د دویم آیت سره دے، یعنی د کتاب د موسیٰ علیه السلام سره یعنی هغه له مے

تورات ورکړے وو نو تا له مے قرآن درکړو۔ دویم پدے کښې په امت باندے امتنان (احسان ذکر کول) دی په قرآن سره او مخکښې په رسول رالیږلو سره وو۔ او دریم ددے مخکښې واقعے سره ئے هم تعلق دے چه دا واقعه چه بیانه شوه نو دا قرآن بیانه کړیده او قرآن هدایت کوی نو په دغه واقعه کښې هم هدایت پروت دے۔

دارنګه ترغیب دے قرآن ته دپاره د بچ کیدو د ذلت او د عذاب نه او دعوت دے بنی اسرائیلو ته چه تاسو د عذابونو او ذلتونو نه به هله بچ کیږئ چه اُوس ددے قرآن تابعداری شروع کړئ۔

لِلَّتِيْ هِيَ أَقْوَمُ : دلته ئے موصوف رانهٔ وړو چه (طریقه یا کلمه ده) دپاره د تعمیم پیدا کولو هر موصوف ته چه هغه لاره، کلمه، ملت، اخلاق، عقائد او نظریات او حالات وغیره دی۔ یعنی دا قرآن د ټولو نه غوره حالت یا د ټولو نه غوره ملت یا غوره لارے او عقیدے او نظریاتو طرف ته لارخودنه کوی، او هغه د دین اسلام لاره ده چه د هغے په اتباع کښې د انسانانو دپاره د دنیا او د آخرت هر خیر دے۔

وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِيْنَ: او دا قرآن هغه خلکو ته د جنت زیرے ورکوی چه څوک په خپل ایمان کښې مخلص وی او عمل صالح کوی او د ګناهونو نه پرهیز کوی، او کوم خلق چه په بعث بعد الموت او په آخرت کښې په جزا او سزا باندے ایمان نهٔ لری، هغوی ته ددے خبرے خبر ورکوی چه الله د دوی دپاره د اُور عذاب تیار کړیدے۔

وأَنَّ الَّذِيْنَ : دا عطف دے په (اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا) باندے۔ او ددے نه مخکښې (يُنْذِرُ) یا (يُخْبِرُ) پټ دے۔ او دا دواړه حکمتونه تفصیلا د سورة الکهف په اول کښې ذکر شویدی۔ دلته هم قرآن او آخرت یو ځای ذکر کړے شویدی۔

| وَيَدْعُ الْإِنْسَانُ بِالشَّرِّ دُعَاءَهُ بِالْخَيْرِ وَكَانَ الْإِنْسَانُ عَجُوْلًا ﴿١١﴾ |
|---|
| او غواړی انسان بدئ (عذاب) لره پشان د غوختلو ددهٔ خیر لره او دے انسان تلوار کړن |
| وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ آيَتَيْنِ |
| (جلتی کونکے)۔ او ګرځولی دی مونږ شپه او ورځ دوه نخے (د قدرت) |
| فَمَحَوْنَا آيَةَ اللَّيْلِ وَجَعَلْنَا آيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً |
| نو محوه کړیده مونږ نخه د شپے او ګرځولے ده مونږ نخه د ورځے رڼا والا. |

| لِتَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوْا |
|---|
| دپاره ددے چه طلب کړئ فضل د طرف د رب ستاسو نه او دے دپاره چه پو هه شئ |
| عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنٰهُ تَفْصِيْلًا ﴿۱۲﴾ |
| په شمار د کلونو او په حساب او هر یو شے بیان کړیدے مونږ په واضح بیانولو سره۔ |

**تفسیر** : زجر دے انسان ته په استعجال (جلتئ سره غوختو) د عذاب سره۔ یعنی څوك چه عذابونه په جلتئ سره غواړی هغوی ته زورنه ورکوی او مطلب دا دے چه د قرآن نه هدایت اخستل پکار دی، او ددے نعمت شکر پکار دے لیکن مشرکان د هغے په مقابله کښ شر (عذاب) غواړی لکه په سورة الانفال (۲۲) آیت کښ راغلی دی۔ ﴿إِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً﴾ ۔ (اے الله ! که دا قرآن حق وی ستا د طرف نه نو په مونږ باندے د کانړو باران وکړه)۔

مناسبت

۱ - مشرکانو وئیلی وو چه ته عذابونه یادوے نو مونږ باندے ئے راوله۔

۲ - دارنګه دا د مخکښ سره لګی آی وَيَدْعُ الْإِنْسَانُ بِالْأَعْمَالِ السَّيِّئَةِ یعنی انسان بد عملونه کوی نو دے غواړی چه په دهٔ عذاب راشي۔

۳ - مفسر ابو السعودؒ لیکلی دی چه قرآن چه هادی (لاره خودونکے) دے، ددے د حال بیانولو نه روستو، اوس د انسان چه مهتدی (لاره موندونکے) دے د هغه حال بیانیږی۔ او ددے دواړو ترمینځ چه کوم تباین او منافات موجود دے هغه ئے رابشکاره کړیدے۔

روستو آیت کښ الله تعالیٰ د خپل قدرت دلیل بیانوی چه الله تعالیٰ ستا په عذاب قادر دے اے انسانه !، بیا کله به راځی نو الله فرمائی : ﴿وَكُلَّ إِنْسَانٍ﴾ یعنی د هر انسان دپاره خپل خپل قسمت او خپل وخت لیکلے شویدے او د حساب ورځ شته۔

بیا قانون بیانوی چه الله تعالیٰ د رسول د رالیږلو نه مخکښ چا ته عذاب نهٔ ورکوی، بیا تخویف دے او د دنیا تږ هید دے او د آخرت عظمت ئے بیان کړیدے بیا روستو احکام د حکمة ذکر کیږی چه مناسبت به ئے په خپل ځای کښ راشي۔

الْإِنْسَانُ : نه مراد جنس انسان دے چه د هغهٔ د بعضو افرادو حال دلته بیان شویدے، یا د بعض احوالو حال ئے بیان شویدے۔ او ظاهر دا ده چه دلته دا آیت په رد د مشرکانو کښ

دے۔

دے کښې بیا درې تفسیره دي (۱) د شر نه مراد عذاب دے او د دعاء نه مراد په جلتۍ سره غوښتل دي یعنی دا مشرکان د نبی کریم ﷺ نه او دارنګه د حق داعی نه په جلتۍ سره عذاب غواړي چه عذاب ډِے راوله لکه څنګه چه د خپل رب نه د ځان او د بچو دپاره خیر په جلتۍ سره غواړي۔ لیکن دا انسان تلوارګرن، جلدباز دے، بې فکره دے، دا سوچ نکوی چه که عذاب راشي ما سره د هغې د دفع کولو څه اسباب دي۔

(۲) دا تفسیر هم جائز دے۔ وَيَدْعُ الْإِنْسَانُ بِالْأَعْمَالِ السَّيِّئَةِ

یعنی انسان په بدو اعمالو سره عذاب غواړي یعنی ددهٔ بد اعمال سبب د عذاب راتللو دے لکه څنګه چه دے په خوله سره خیر غواړي د الله نه۔

(۳) پدے کښې دا هم داخلیږي چه انسان خپل ځان او خپل اولاد ته ښیرے کوي چه اے الله ! ما یا زما بچی هلاك کړے او لعنت پرے وکړے۔ لیکن که الله ورله دعا قبوله کړي، هلاك به شي مګر الله تعالیٰ ورله ښیرے زر نهٔ قبلوي، دا د هغهٔ احسان او رحم دے لکه څنګه چه ورله زر دعا قبلوي دا هم د الله رحم دے۔ دا هم پدے آیت کښې داخلیږي لیکن اصل مقصد د آیت په مشرکانو رد کول دي لکه چه مخکښې بیان شو۔

**عَجُوْلًا** : اَیْ مَطْبُوْعًا عَلَى الْعَجَلَةِ۔ پیدا کړے شوے په جلتۍ دے، هرڅه چه ددهٔ په زړه کښې تیریږي هغې ته جلتي کوي او د هغې عاقبت ته نهٔ ګوري او د هغه د جلتۍ نه دا ده چه د خیر په شان شر هم په جلتۍ سره غواړي۔ ابن عباس رضی الله عنه فرمائي : [ضَجِرًا لَا صَبْرَ لَهٗ عَلٰى سَرَّاءَ وَلَا ضَرَّاءَ] انسان زړه تنګے دے چه په خوشحالۍ او په تکلیف کښې بې صبره کیږي۔ (فتح البیان) او د حالاتو د بدلیدو انتظار نهٔ کوي۔

**وَجَعَلْنَا الَّيْلَ** : پدے آیت کښې بیان د قدرت د الله تعالیٰ دے۔

## مناسبت

۱- هٰذَا مِنْ بَعْضِ وُجُوْهِ هِدَايَةِ الْقُرْآنِ ۔ دا د قرآن کریم بعض طریقے د هدایت دي یعنی قرآن انسان ته څنګه هدایت کوي؟ نو هغه داسې چه د الله تعالیٰ د توحید او د قدرت دلائل ورته ښائي چه انسان پدے مجبوره کوي چه دا قرآن حق دے او د هغهٔ رسول حق دے۔

۲- ظاهر دا ده چه پدے کښې الله تعالیٰ اظهار د خپل قدرت کوي په راتیولو د دشمنانو ځکه چه الله تعالیٰ داسې قدرتونو والا دے۔ لکه دا د قرآن طریقه ده چه مخکښې عذاب ذکر

شي نو روستو الله تعالیٰ خپل قدرت ذکر کوي۔
آیَتَیۡنِ : یعنی دا دواړه نخې د قدرت د الله تعالیٰ دي، او په وجود د خپل خالق باندې دلالت کوي او پدې چه دا دواړه د الله په حکم چلیږي، په یو ترتیب سره روان وي۔ او پدې دواړو کښې چه کوم عجائب د قدرت د الله تعالیٰ دي چه عقلونه ورته حیرانیږي۔
دغه شان الله تعالیٰ د شپې دپاره سپوږمئ مقرر کړیده چه د هغې په رڼا کښې په قلاروالے وي او د ورځې دپاره ئې نمر مقرر کړیدے چه د هغه په رڼا کښې تیزي وي، دے دپاره چه انسان د معاش په تلاش کښې په آسانئ سره حرکت وکړي۔ او ددې دواړو لویه فائده دا هم ده چه ددې په راتلو او ورکوالي او غتوالي کښې او د مسلسل حرکت په ذریعه د ورځې او شپې ګینتهو، اوقاتو، هفتو او میاشتو او کلونو حساب معلومیږي۔ که الله دا نۀ وې پیدا کړې نو دا حسابونه به نۀ معلومیدے او د خلقو معاملات به تپ کیدلے۔
(۱) پدې کښې ظاهر تفسیر دا دے چه آیتین نه مراد خپله شپه او ورځ دي او د (مَحَوۡنَا) نه مراد تیارۀ کول دي۔ یعنی د شپې نخه دا ده چه دا مونږ تیارۀ والا ګرځولے ده او ددې رڼا مو ختمه کړیده او د آیة النهار نه مراد رڼا د ورځ ده یعنی ورځ مو رڼا والا وګرځوله چه خلك پکښې کتل کولے شي۔
(۲) مطلب دا دے چه مونږ د شپې او د ورځې دپاره دوه نخې ګرځولي دي د شپې نخه سپوږمئ ده او د ورځې نخه نمر دے او د محو نه مراد رڼا کمول دي نۀ بیخي ختمول ځکه چه په سپوږمئ کښې الله تعالیٰ لږ توروالے هم اچولے دے۔ دا تاویلي تفسیر دے۔
وَكُلَّ شَيۡءٍ فَصَّلۡنَاهُ تَفۡصِيلًا : الله تعالیٰ د قرآن کریم عظمت په ذهنونو کښې زیات کینولو دپاره فرمائي چه مونږ په قرآن کښې هر هغه خبره بیان کړیده چه د هغې انسان ته د دین او دنیا په برابرولو کښې ضرورت راتلے شي۔ لکه چه الله تعالیٰ سورة النحل آیت (۸۹) کښې فرمایلي دي : ﴿وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ الۡكِتَابَ تِبۡيَانًا لِّكُلِّ شَيۡءٍ﴾ چه مونږ په تا باندې قرآن نازل کړیدے چه په دې کښې د هر شي تفصیل موجود دے۔ او باقي تفصیل د سورة النحل د دغه آیت لاندې وګوره۔

| وَكُلَّ إِنسَانٍ أَلۡزَمۡنَاهُ طَائِرَهُ فِي عُنُقِهِ |
| --- |
| او هر انسان سره لازم کړیدے مونږ عملنامه (یا نصیب) ددۀ په څټ ددۀ کښې |

| وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كِتَابًا يَلْقَاهُ مَنْشُورًا ﴿١٣﴾ |
|---|
| او راویه باسو دهٔ لره په ورځ د قیامت کښې عملنامه چه مخامخ به شي ورسره خوره وره به وي |
| اقْرَأْ كِتَابَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ﴿١٤﴾ مَنِ |
| اُولوله عملنامه خپله کافی دے نفس ستا نن ورځ په تا باندے حساب کونکے۔ چا چه |
| اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ وَمَنْ ضَلَّ |
| هدایت اُوموندلو نو یقیناً هدایت ئے اُوموندو دپاره د ځان خپل او څوک چه گمراه شو |
| فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ |
| نو یقیناً گمراه کیږی چه وبال به ئے په ده باندے وی او نهٔ پورته کوی یو پورته کونکے |
| وِزْرَ أُخْرَىٰ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا ﴿١٥﴾ |
| بوج د بل چا او نهٔ یو مونږ عذاب ورکونکی تردے چه اُولیږو رسول۔ |

**تفسیر** : اُوس سوال پیدا شو چه الله تعالیٰ په دغه عذاب راوستو قادر دے نو دا به کله راځي؟ نو الله فرمائی چه د هر شي وخت مقرر دے او د حساب ورځ حقه ده۔

وَكُلَّ إِنْسَانٍ أَلْزَمْنَاهُ طَائِرَهُ : د طائر (مارغه) نه مراد بخت او قسمت دے او عرب د قسمت نه په طائر سره تعبیر کوی ځکه چه د هغوی عادت دا وو چه کله به ئے قسمت او نصیب معلومولو نو مارغه به ئے پاڅولو، که ښی طرفته به لاړو نو وئیل به ئے چه کار کیږی۔

(۱) بیا د قسمت نه مراد عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : مَا قُدِّرَ لَهُ مِنَ الشَّقَاوَةِ وَالسَّعَادَةِ بِعَمَلِهٖ) دے، یعنی دهٔ له چه ددهٔ په عمل سره کومه بد بختی او نیك بختی لیکلے شویده دا به ورسره لازمه وی، ددے نه به نشی جدا کیدے۔ مثلاً الله تعالیٰ په تقدیر کښې دا لیکلی دی چه فلانے شخص به په فلانئ ورځ داسے بد عمل کوی یا به کفر کوی نو عذاب به پرے راولم، او فلانے به دا نیك عمل کوی نو نیك بخته به وی۔ نو الله فرمائی چه دغه عمل به ددے انسان نه ضرور کیږی او د هغے مطابق به دهٔ ته سزا او جزا ملاویږی۔

نو دا قسمت به دے انسان ته ضرور رسیږی د هغے نه خلاصیدے نشی نو معلومه شوه چه د عذابونو، دارنګه د نعمتونو اوقات مقرر دی۔

(۲) یا د طائر نه مراد عمل د انسان دے۔ یعنی هر سړے چه په خپله خوښه او اختیار سره هر نیك یا بد عمل کوی د هغے نه به هغه نشی خلاصیدے، د هغه سره به عمل داسے لګیدلے وی لکه څنګه چه د څټ سره طوق لګیدلے وی۔ د هغه نه به په هیڅ حال کښ نهٔ جدا کیږی۔ او د هغه عمل مطابق به سعادت او نیك بختی یا شقاوت او بد بختی د هغه سره لګیدلی وی۔ د هغے نه هغه خلاصے نشی موندلے۔ که بدبخته وی نو جهنم او که نیك بخته وی نو جنت به د هغه ځای وی۔ او د قیامت په ورځ به هر سړے خپله عملنامه خپلے مخے ته خوره وره مونده کوی، او دهٔ ته به ونیلے کیږی چه خپله عملنامه لوله چه پدے کښ ستا واړه او غټ تول اعمال درج دی۔ او نن به ته خپله د خپلو عملونو حساب کوے او ګواه به جوړیږے چه تا دا عملونه کړی وو۔

فِيْ عُنُقِهٖ : دا کنایه ده د لزوم نه اَیْ لَایُفَارِقُهٗ۔ چه دا قسمت به ددهٔ نه نهٔ جدا کیږی۔

كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ : انسان چه کله خپله عملنامه خرابه وګوری نو ځان به ملامته کړی او خپله به الله ته ووائی چه زهٔ د جهنم مستحق یم ما جهنم ته بوځه۔

حَسِيْبًا: اَیْ حَاسِبًا اَوْ كَافِيًا۔ حساب کونکے یا کافی۔

حسن بصریؒ فرمایلی دی : [لَقَدْ عَدَلَ عَلَيْكَ مَنْ جَعَلَكَ حَسِيْبَ نَفْسِكَ] هغه ذات خو ډیر عدل وکړو چه ته ئے د خپل ځان حساب کونکے وګرځولے۔

مَنِ اهْتَدٰى : ربط

۱– ددے تعلق د مخکښ ﴿اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَهْدِىْ﴾ سره دے، قرآن هدایت کوی نو چا چه ترے هدایت واخستو نو د ځان فائده ئے وکړه۔ ۲– دویم متعلق دے د ﴿وَجَعَلْنَا الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ سره چه د لیل او نهار نه چه چا عبرت او هدایت واخستو الخ۔

۳–دریم د (اِقْرَأْ) سره متعلق دے چه دغه عملنامه لوستونکی به دوه قسمه خلك وی، هدایت والا یا ګمراهان۔

وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى : یعنی په قیامت کښ به هیڅوك د بل چا بوج نهٔ پورته کوی، هر چا باندے به خپل بوج بار وی، هیڅوك به د بل په ګناه نهٔ رانیولے کیږی۔ او همدا معنیٰ د ﴿وَكُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ فِىْ عُنُقِهٖ﴾ ده،

او کوم آیت کښ چه راغلی دی ﴿لِيَحْمِلُوْٓا اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ وَمِنْ اَوْزَارِ الَّذِيْنَ يُضِلُّوْنَهُمْ﴾ (النحل : ۲۵) نو د هغے مطلب دا دے چه بل ئے ګمراه کړے وی نو دا هم ددهٔ عمل دے چه د هغے بوج به هم په دهٔ باندے وی۔

او دارد دے پـه هـغـه چا چه عمل کوی او وائی چه ما ته فلانی وئیلی وو نو آزار او گناه به ئے په هغه باندے وی۔

وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا : پدے جمله کښې الله تعالیٰ د انسانانو دپاره خپل فضل او کرم او د دوی سره عدل او انصاف بیان کړیدے چه هغه هیڅ کله یو قوم ته د رسول لیږلو نه مخکښې عذاب نۀ ورکوی، کله چه خپل رسول لیږلو سره حق او باطل هغوی ته ښکاره کړی او حُجت پرے قائم شی، او بیا هم ایمان رانۀ وړی نو په هغوی باندے عذاب نازلوی۔ لکه چه الله تعالیٰ په سورة طه آیت (۱۳٤) کښې فرمایلی دی:

﴿وَلَوْ اَنَّـا اَهْلَكْنَاهُمْ بِعَذَابٍ مِنْ قَبْلِهٖ لَقَالُوْا رَبَّنَا لَوْلَا اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ نَذِلَّ وَنَخْزٰى﴾ چه (کـه مونږ ددے نه مخکښې دوی په عذاب سره هلاك کړی وے نو یقیناً دا به ئے وئیلے چه اے زمونږه ربه! تا مونږ ته رسول ولے نۀ رالیږلو چه مونږ ستا د آیتونو تابعداری کړے وے ددے نه مخکښې چه مونږ ذلیل او خوار شو)۔

ددے نـه سیویٰ هم په قرآن کریم کښې ډیر آیتونه دی چه پدے خبره باندے دلالت کوی چه الله تـعـالیٰ چـه تـرڅـو پورے رسول لیږلو سره حجت تمام نۀ کړی، نۀ په دنیا کښې کوم قوم هلاکوی او نۀ په آخرت کښې چا ته عذاب ورکوی۔

اشـاعـره او مـاتـریـدیـه ۏ دا آیت د دنیـا د عذاب پورے خاص کړیدے، او وائی چه د آخرت عـذاب پـه عقل سره دے چه که چا کښې عقل وی او توحید ئے نۀ وی منلے (یعنی دعوت نۀ وی ورسیـدلے) نـو هغه باندے به په آخرت کښې عذاب وی ځکه چه توحید په عقل باندے پیـژنـدل واجب دی، اګرکـه شریعت ئے بیان ونکړی۔ لیکن حقه دا ده چه دلته عموم مراد دے، الله تـعـالیٰ پـکـښې هیـڅ قیـد نـۀ دے لګولے۔ نو که یو تن داسے ځای کښې وسیږی چه هـلـتـه نبی نـۀ وی ورغلے، نۀ کوم عالِم ورغلے وی او نۀ هغه د انسانانو خواله راغلے وی چه هـلـتـه دیـن مـعـلـوم کـړی، او دے راولـګی کفر او شرك وکړی نو دوی ته به نۀ د دنیا عذاب ملاویږی او نۀ د آخرت، دے خلکو ته اصحاب الفترة وائی۔

یـو حـدیـث کـښې دی چـه قیامت کښې به لیونے، ماشوم، کونړ او جاهل، الله تعالیٰ ته وائی چه مونږ جنت ته ولے نۀ بوځے مونږ خو معذوره وو؟ نو الله به پرے د قیامت په ورځ امتحان وکـړی چـه نبی به ورتـه راولیږی چه دا جهنم دے دے ته داخل شئ، که هلتـه څوك ورداخل شی نـو هـغـه بـه پـرے یخ او سلامتیا والا وګرځی او که نۀ وی نو الله به ئے په امتحان کښې ناکام کړی بیا به ئے حقیقةً جهنم ته داخل کړی۔

(صحيح ابن حبان :۷۳۵۷ والطبراني في الكبير (۸٤۱) وصحيح الجامع (۸۸۱)۔

| وَإِذَا أَرَدْنَا أَنْ نُهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا |
|---|
| او كله چه اراده اُوكړو مونږ چه هلاك كړو يو كلي نو حكم اُوكړو مونږ |
| مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ |
| مستانو (مشرانو) د هغې ته (په طاعت) نو نافرماني اُوكړې په هغې كښې نو ثابته شي |
| عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيرًا ﴿١٦﴾ |
| په هغې باندې وينا (د عذاب) نو هلاك كړو مونږ هغې لره په هلاكولو۔ |

**تفسير** : پدې آيت كښې تخويف دنيوي دې او دا تفصيل دې د مخكنې آيت۔ او د مخكنې عذاب سبب بيانيږي۔

**أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا**: (۱) د آيت يوه معنیٰ دا ده [اَيْ أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا بِالتَّوْحِيْدِ وَالطَّاعَةِ] چه كله مونږ يو قوم د عذاب په ذريعه هلاك كول غواړو نو د هغې عيش پرست او په ناز او نعمتونو كښې ډوبو خلقو ته د خپل رسول په ژبه په توحيد سره د اطاعت او بندګئ حكم وكړو۔ ليكن هغه خلق زمونږ د حكم مخالفت وكړي او سركشي او تمرد د هغوي خوئي جوړ شي، نو په دوي باندې عذاب نازليدل ثابت شي، بيا مونږ دوي په يو ځل تباه او برباد كړو، لكه څنګه چه د بيت المقدس والو سره وشو چه كله يهوديانو د الله دين خپل شا ته ګوزار كړو نو د دوي دشمنان ئې په دوي مسلط كړل۔

او پدې كښې يره ده مكې والو ته چه تاسو ته هم رسول راغلو او د طاعت حكم ئې درته وكړو نو اُوس ئې كه نۀ منئ نو د عذاب حقدار شوئ۔

مفسرين ليكي چه اګركه د الله حكم تمامو خلقو ته شامليږي ليكن دلته د عيش پرستو ذكر ئې پدې وجه كړيدې چه په دنيا كښې شر او فساد خورونكي په حقيقت كښې همدا خلق وي، بيا نور خلق د دوي تابعداري كوي۔ او دا دليل دې چه كله مشران خراب شي نو عمومي عذابونه راځي۔ او دا تفسير ابن جرير الطبريؒ راجح ګرځولے دے۔

مګر دا تفسير حافظ ابن القيمؒ په ډيرو وجوهو سره ضعيف ګرځولے دے، او دا ئې وئيلي دي چه كله لفظ د امر نه روستو فاء راشي نو دا روستو شے په مخكښې امر باندې مرتب

وی. لکه (اَمَرْتُهٗ فَرَكِبَ) یعنی ما ورته حکم وکړو نو هغه سور شو. یعنی ما ورته د سوریدو حکم وکړو نو هغه سور شو. (لیکن بعض اهل علمو وئیلی دی چه (اَمَرْتُهٗ فَعَصَانِیْ) سره دا خبره معارض ده. ځکه چه معصیت د امر بالمعصیة منافی دے).
دویم دا چه د طاعت امر خو الله تعالیٰ یواځے مترفینو ته نهٔ کوی بلکه ټولو خلکو ته ئے کوی نو ددے تخصیص څه فائده ده؟!
(۲) نو غوره دا ده چه دلته امر کونی / تکوینی مراد دے. اَیْ اَمَرْنَاهُمْ اَمْرًا قَدَرِیًّا (ابن کثیرؒ) یعنی دوی ته تقدیری حکم وکړو. / تقدیری فیصله پرے وکړو. یعنی په تقدیر کښ داسے لیکل چه دا فلانے به داسے کار کوی لکه د لوی کافرانو د لاسونو نه الله تعالیٰ ظلمونه او فسقونه صادروی دا د هغه د هلاکت دپاره تقدیری فیصله وی. نو معنیٰ د آیت دا ده: چه کله مونږ یو قوم د عذاب په ذریعه هلاك کول غواړو نو هغوی کښ مشران او جابره خلکو ته د فسق حکم وکړو په امر تکوینی قدری سره (د هغوی د فسق د وجه نه چه الله ته د مخکښ نه معلوم وی) نو هغوی د فسق کارونه شروع کړی نو الله تعالیٰ پرے عذاب نازل کړی. دا تفسیر زمخشری په کشاف کښ په تفصیل سره ذکر کړیدے.
(۳) دریم تفسیر دا دے چه امر لفظ کله په عربئ ژبه کښ د ډیروالی دپاره راځی لکه امام بخاریؒ وئیلی دی: د (اَمِرَ بَنُوْ فُلَانٍ) معنیٰ ده: د فلانی ځامن زیات شو. نو معنیٰ دا ده: اَیْ اَكْثَرْنَا فُسَّاقَهَا. مونږ د دغه کلی فاسقان او فاجران خلك زیات کړو (یعنی مالونه او اولاد ورله په طریقه د استدراج سره زیات کړو) نو هغوی فسقونه شروع کړی. او دا تفسیر د ابوالدرداء ﷺ او قتادةؒ نه نقل دے. (ابن ابی حاتمؒ والدر المنثور) او ابن جریرؒ د ابن عباسؓ، عکرمةؒ او حسن بصریؒ نه نقل کړیدے.
فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ : اَیْ ثَبَتَ عَلَيْهِمْ قَوْلُ الْعَذَابِ. په دوی باندے ثابته (موجوده) شی فیصله د عذاب.
فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيْرًا : تدمیر، هغه هلاکت ته وائی چه عذاب په یو قوم باندے په یو ځای راشی. او تتبیر عام دے که لږ لږ عذاب وی او که په یو ځای وی.

| وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ وَكَفٰى بِرَبِّكَ |
| --- |
| او ډیر هلاك کړیدی مونږ د پیړو نه روستو د نوح (علیه السلام) نه او کافی دے رب ستا |

| بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًا بَصِيْرًا ﴿۱۷﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ |
|---|
| په ګناهونو د بندګانو خپلو خبردار ليدونکے۔ څوک چه اراده لري د دنيا |
| عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ |
| نو په جلتئ به ورکړو دهٔ لره په دے کښې څو مره چه اوغواړو مونږ د چا دپاره چه اوغواړو، |
| ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ يَصْلٰهَا مَذْمُوْمًا |
| بيا ګرځوو مونږ هغه لره جهنم چه داخليږي به هغے ته بد وئيلے شوے (بد حالے) |
| مَّدْحُوْرًا ﴿۱۸﴾ وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا |
| رټلے شوے۔ او څوک چه اراده لري د آخرت او کوشش کوي هغے دپاره |
| سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿۱۹﴾ |
| کوشش د هغے مناسب او دے مؤمن وي نو دا کسان دے کوشش د دوي قبول کړے شوے۔ |
| كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ وَهٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ |
| هر يو ته ورکوو مونږ ددے دنيا والو نه او ددے نيکانو نه د بخشش (ورکړے) د رب ستا نه۔ |
| وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُوْرًا ﴿۲۰﴾ اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا |
| او نهٔ دے بخشش د رب ستا منع کړے شوے۔ اوګوره چه څنګه غوره والے ورکړيدے مونږ |
| بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ وَّاَكْبَرُ |
| بعضو د دوي ته په بعضو او خامخا آخرت ډيرو لويو درجو والا دے او ډير لوئي |
| تَفْضِيْلًا ﴿۲۱﴾ لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا ﴿۲۲﴾. |
| فضيلت والا دے۔ مهٔ ګرځوه د الله سره حقدار د بندګئ بل نو کيبه نے بد وئيلے شوے شرمولے شوے۔ |

**تفسير**: دا تخويف دنيوي دے، پدے کښې د پخوانو اقوامو نمونه د عذاب ذکر کوي او خپل عادت ذکر کوي د پخوانو اقوامو سره۔ نو موجوده کفاريروي چه په تاسو باندے به هم د پخوانو په شان عذاب راولي ځکه چه تاسو کښې هم ګناهونه او د رسولانو

مخالفتونه موجود دی۔

وَكَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوبِ : یعنی ستا رب د خپلو بندګانو د ګناهونو نه ښهٔ خبردار دے، پدے وجه دوی له یریدل پکار دی چه چرته د دوی ګناه د دوی د هلاکت سبب جوړ نهٔ شی، ځکه چه د قومونو د هلاکت خبرے ذکر کولو نه روستو د ګناهونو ذکر کول دے خبرے ته اشاره ده چه یو قوم د هغوی د ګناهونو په وجه هلاك کیږی۔

مَّنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ : پدے آیت کښ د دنیا بی رغبتی او د آخرت یره بیانوی۔

ربط :

۱- تعلق ئے د نزدے آیت سره دے چه ګناهونه بندګان ولے کوی؟ نو سبب د هغه ګناهونو د دنیا محبت دے۔ ۲- قاسمیؒ لیکی چه دا د (كُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ) سره هم متعلق کیدے شی یعنی د کوم سړی د ژوند مقصد چه دنیا طلبی وی نو هغه ګویا که خپل ځان دپاره د قسمت شومتیا ته دعوت ورکوی، او د چا مقصد چه د آخرت ژوند دپاره تیاری وی نو هغه د خپل ځان دپاره سعادت او نیك بختی اختیاروی۔

(۱) ددے یو تفسیر دا دے: چا چه دنیا نصب العین ګرځولی وی او ټول عملونه ئے صرف د دنیا د خاطره وی چه دنیا ورته ملاؤ شی او پدے کښ مزے وکړی نو الله به ئے ورته ورکړی مګر بیا هم د الله تعالیٰ خوښه ده، چه څومره ورکوی او چا ته ئے ورکوی۔ خو غالباً د الله قانون دا دے چه الله تعالیٰ د چا خواری نهٔ ضائع کوی۔

(۲) تفسیر: یا څوك چه په نیك عمل سره او د آخرت په عمل سره دنیا طلب کوی، او دے ته ئے عاجله پدے وجه وویله چه د آخرت په اعتبار سره دنیا په جلتئ سره ختمیږی۔ نو مونږ به ورته په دنیا کښ اجرونه ورکړو لیکن په آخرت کښ به برباد وی او جهنم ته به داخلیږی۔

ځینی مفسرین وائی چه دا آیت د هغه منافقانو په باره کښ نازل وو چه مسلمانانو سره به غزا ته تلل، غرض ئے یو ریاکاری وه او بل غنیمتونه طلب کول۔ (فتح البیان)

عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ : یوه معنیٰ مخکښ ذکر شوه چه د دنیا فائدے به ورته ورکړو۔ او دویم مطلب دا دے چه په جلتئ سره به ورکړو دهٔ ته عذاب څومره چه زمونږ خوښه وی او چا ته چه مو خوښوی یعنی پدے کښ به ځینی خلك په دنیا کښ فوراً هلاك کړم، او ځینی به امتحاناً پریدم چه د دنیا نه مزے واخلی بیا به جهنم ته داخلیږی۔

مَذْمُوْمًا : ۱- بد حالے۔ ۲- مَلُوْمًا مِنَ الْخَلْقِ ۔ د مخلوق دطرفنه بد ونیلے شوے/ ملامته کړے شوے۔
مَدْحُوْرًا : اَیْ مَطْرُوْدًا مِنْ رَحْمَةِ اللّٰهِ مُبْعَدًا عَنْهَا) د الله د رحمت نه شړلے شوے/ لرے کړے شوے۔
وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ : دا د مخکښ جانب مقابل شخص دپاره زیرے ورکوی په درے شرطونو سره۔
سَعْیُهُمْ : یعنی داسے کوشش چه لائق وی د آخرت سره۔ او آخرت پرے کټلے کیږی، داسے نهٔ چه یو شخص چکرے وهی او هسے مزے کوی او دا هم د آخرت کوشش ګڼړی۔
مَشْكُوْرًا : د عمل د قبولیت دپاره (۱) اول شرط اراده د آخرت ده په خپل عمل سره، هر عمل به پدے نیت کوی چه زما آخرت برابر شی۔
(۲) اَلسَّعْیُ الْمُوَافِقُ لِلشَّرْعِ ۔ د شریعت مطابق سعی چه هغه عبادات کول دی په طریقه د رسول الله ﷺ باندے۔ (۳) الایمان۔ چه ایمان به پکښ وی، که یو شے پدے کښ نهٔ وی نو عمل قبول نهٔ دے۔ (٤) او څلورم شرط هم پکښ ضمناً ذکر دے هغه دا چه صرف عمل نهٔ بلکه سعی به کوی، خپل عمل کښ به کوشش کوی او د عمل اهتمام به کوی، یعنی عادتی نیك عمل به نهٔ وی۔
كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ : یعنی هرچه دنیاوی ژوند دے، نو د الله تعالیٰ رحمت او مهربانی د هغه تولو بندګانو ته شامل ده، برابره ده مؤمن وی او که کافر۔ هغه دواړه قسمه خلقوته د ژوند آخری لمحو پورے رزق رسوی۔ البته د مرګ نه روستو د دواړو احوال به مختلف وی۔ د چا د ژوند مقصد چه صرف دنیا طلبی وی، هغه به جهنم طرف ته راخکلے شی او څوك چه د آخرت طلبګاروی هغه ته به په جنت کښ ځای ملاویږی۔ په دنیا کښ د یو کافر کفر او د یو نافرمان نافرمانی د الله د رزق نه په کلی توګه د محرومیٔ سبب نهٔ جوړیږی۔ (اګرکه بی برکتی به ضرور وی)۔
كُلًّا : اَیْ كُلَّ وَاحِدٍ مِنَ الْفَرِیْقَیْنِ۔ هر یو د دواړو ډلو نه۔ یعنی د دنیا والو او آخرت والو نه۔
نُمِدُّ : اَیْ نَزِیْدُهٗ مِنْ عَطَائِنَا عَلٰی تَلَاحُقٍ مِنْ غَیْرِ انْقِطَاعٍ) یعنی هر ته مونږ زیات متواتر بغیر د قطع کیدو نه رزق ورکوو۔ سعدی شیرازیؒ فرمائی :

| اے کریمے که از خزانهٔ غیب | ❁ | گبر وترسا وظیفه خور دارے |
|---|---|---|

| دوستان | راکجا | کنی | محروم | ❁ | تو | که | با | دشمنان | نظر | دارے |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

هٰٓؤُلَآءِ وَهٰٓؤُلَآءِ : دا بدل دے د مفعول نه چه هغه (کُلًّا) دے۔

مِنۡ عَطَآءِ رَبِّكَ : دا متعلق دے د (نُمِدُّ) پورے او پدے کښې اشاره ده چه دا خالص د الله احسان دے۔

مَحۡظُوۡرًا : [اَیۡ مَمۡنُوۡعًا عَنۡ اَحَدٍ ] (ضحاك) یعنی د هیچا نه منع نۀ ده۔

د آیت مقصد دا دے چه دواړو ډلو ته رزق ورکوم۔ ولے ؟ [لِئَلَّا یَحۡتَجَّ الۡکَافِرُ بِعَدَمِ الرِّزۡقِ عَلٰی عَدَمِ الۡعَمَلِ] ۔ دے دپاره چه کافر د رزق نشتوالے په نۀ عمل باندے دلیل جوړ نکړی۔ الله ته به وائی چه اے الله ! مونږ ستا دپاره عمل ځکه نۀ دے کړے چه تا مونږ له رزق نۀ وو راکړے نو مونږ خپل سیر وړو پسے ورك وو۔ نو ځنګه مو ایمان راوړے او عبادت مو کړے وے۔ نو الله مؤمن ته هم رزق ورکړو او کافر ته هم نبه فراخه چه څوك بهانه ونکړی۔ د الله ذمه واری فارغه، اُوس به تاسو خپله ذمه واری ادا کوئ۔

او پدے کښې رد د شرك هم دے چه کافر ته هم الله رزق ورکوی او حاجتونه ئے پوره کوی، بیا ئے دوی د غیر الله نه غواړی او غلط اسباب لټوی۔

او د وَمَا کَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحۡظُوۡرًا بـل مطلب دا هم دے چه د آخرت عطیه په چا باندے بنده نۀ ده بلکه هر څوك ئے ګټلے شی که څوك د هغې دپاره تیارے کوی۔ بلکه الله تعالیٰ ټولو ته د آخرت د تیارئ دعوت ورکړیدے۔ اول مطلب ئے ښکاره دے چه دا د دنیا سره لګی۔

اُنۡظُرۡ کَیۡفَ فَضَّلۡنَا بَعۡضَهُمۡ عَلٰی بَعۡضٍ : په دے آیت کښې نبی کریم ﷺ مخاطب کوی او بیا ټولو انسانانو ته وئیلے کیږی چه الله تعالیٰ د دنیا د نعمتونو په تقسیم کښې د خپل حکمت په بنیاد باندے یو لره په بل باندے فوقیت ورکوی، چا ته زیات ورکوی او چا ته کم، څوك قوی وی او څوك کمزورے، څوك صحت مند وی او څوك بیمار۔ لیکن په آخرت کښې د درجاتو کمے زیاتے او په یو بل باندے پورته والے به زیات ښکاره وی، خاصکر د مؤمن او د کافر ترمینځ دا تفریق به زیات ښکاره مخے ته راځی چه مؤمن به د الله تعالیٰ په فضل او کرم سره جنت ته داخلیږی او کافر به جهنم ته دیکه کولے شی۔

او پدے آیت کښې صراحةً رد دے په اشتراکی نظام او په مساوات والو باندے چه دنیا کښې الله تعالیٰ د انسانانو په رزقونو مالدارئ او غریبئ کښې فرق کړیدے نۀ مساوات، او پدے کښې بیشماره حکمتونه دی۔

وَلَلْآخِرَةُ أَكْبَرُ: ددې جملې فائده دا ده چه دنيا کښې خو په مالونو او رزقونو کښې د انسانانو تفاوت او فرق شته خو دومره زیات نهٔ دے، خو په آخرت کښې چه الله تعالیٰ يو تن غريب کړي او بل مالداره کړي نو دے کښې ډير زيات فرق دے، نو د هغې غم پکار دے۔

په دنيا کښې ئې دومره اثر نهٔ ښکاره کيږي ځکه چه مالداره هم يو قطره روټۍ خوري او غريب هم، خو صرف يو به ئې غوره خوري او بل به ئې سپوره، او دا دومره فرق نهٔ دے۔ بلکه ډيرکرته په دنيا کښې غريبانان د مالدارو نه په بعض نعمتونو استعمالولو کښې غوره وي۔ او په آخرت کښې فرق زيات دے، د آخرت مالداره به جنت کښې وي او غريب به ئې په جهنم کښې نو څومره فرق شو؟!۔ (فتح البيان)

دارنګه څوك چه په جنت کښې لاندے درجو والا وي او څوك پورته درجو والا نو د دوی ترمينځ به هم ډير فرق وي، لکه په حديث د صحيحينو کښې دي :

[إِنَّ أَهْلَ الدَّرَجَاتِ الْعُلَى لَيَرَوْنَ أَهْلَ عِلِّيِّينَ كَمَا تَرَوْنَ الْكَوْكَبَ الْغَابِرَ فِي أُفُقِ السَّمَاءِ]

(بخاری بدء الخلق باب : ۸) ومسلم فی الجنة حدیث ۱۱)

يقيناً اُوچتو درجو والا به عليين والا (يعنى ډير اُوچتو درجو والا) داسے پورته وينی لکه څنګه چه تاسو د آسمان لرے ستوری ته ګورئ۔

نو دے آيت کښې دعوت دے چه په خپلو نيکو اعمالو باندے آخرت وګټئ۔

لَا تَجْعَلْ مَعَ اللهِ إِلٰهًا : ربط او مناسبت

۱- مخکښې درجات ذکر شو نو اُوس هغه اسباب ذکرکوی چه په هغې سره دغه درجات په آخرت کښې حاصليږي، نو د هغې نه ئې يو سبب پدے آيت کښې ذکر کړيدے چه هغه د الله توحيد قبلول او د شرك نه بچ کيدل دي۔ ۲- دا د (سَعْيَهَا) سره متعلق دے۔ دغه لفظ مُهم وو چه د آخرت دپاره څنګه خواري وکړو او د آخرت به لائق کوشش څنګه وي؟ نو دلته فرماني چه راشئ دا روستو کارونه وکړئ دا د آخرت لائق کوشش دے۔ يعنی شرك مهٔ کوه، د الله بندګی کوه، د مور پلار سره احسان کوه۔ خپلوانو سره احسان کوه، اسراف مهٔ کوه، مسکينانو سره احسان وکړه، د قتل نه ځان وساته، د زنا نه، د يتيمانانو مال مهٔ خوره، وفاداری کوه، تول اوناپ کښې نقصان مهٔ پيدا کوه۔ غلطې خبرې په خوله مه راوله۔ تکبر مهٔ کوه جنت پدے باندے حاصليږي۔ دا پنځه ويشت احکام دي څه اصلی او څه فرعی، او دے ته احکام الحکمة وائی۔ او دا د ﴿ إِنَّ هٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ ﴾

(۱۰ آیت) تشریح هم ده. دا د قرآن کریم هدایتونه دي.

فَتَقْعُدَ : دلته تَقْعُدَ په معنیٰ د تَصِیرُ سره دے. یعني وبه ګرځے لکه عرب وائي : شَحَذَ الشَّفْرَةَ حَتّٰى قَعَدَتْ كَاَنَّهَا حَرْبَةٌ. چاړه ئے تیره کړه تردے چه وګرځیده لکه چه نیزه ده.

او بعض وائي چه دا کنایه ده د نهٔ قدرت نه په حاصلولو د خیرونو. یعني داسے به شے لکه چه یو تن شل دے او څه خیرونه نشي حاصلولے.

مَذْمُوْمًا: بد ونیلے شوے د مخلوق د طرفنه. او مَخْذُوْلًا: شرمولے شے د طرف د الله نه.

او مخذول هغه چا ته وائي چه په وخت د ضرورت کښ هغه خپل دوست او مددګار پریخودلے وي. نو دغه شان الله تعالیٰ به د مشرك نه خپل تائید او نصرت راکاږي.

| وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْا اِلَّا اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ |
|---|
| او فیصله کړیده رب ستا چه بندګي مهٔ کوئ سوئ د الله تعالیٰ نه او د مور او پلار سره |
| اِحْسَانًا اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَا اَوْ كِلٰهُمَا فَلَا تَقُلْ |
| احسان کوئ، کچرے اُورسي تا سره بوډاوالي ته یو ددے دواړو نه یا دواړه نو مهٔ وایه |
| لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا ﴿۲۳﴾ وَاخْفِضْ |
| دواړو ته اُف قدرے او مهٔ رټه دوی لره او وایه دوی ته وینا عزتمنه. (ادبناکه). او خکته کړه |
| لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا |
| دواړو ته وزر د عاجزئ د وجے د رحم (شفقت) نه، او وایه اے ربه زما ! رحم اُوکړه په دوی |
| كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا ﴿۲٤﴾ |
| لکه څنګه چه تربیت کړیدے دواړو زما په وړوکوالي کښ. |

**تفسیر** : د شرك نه د منع نه روستو دلته الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ ته خطاب وکړو او ښکاره ئے د توحید حکم ورته وکړو.

وَقَضٰى : دلته په معنیٰ د (اَمَرَ وَاَوْجَبَ وَوَصّٰى وَاَوْحٰى) سره دے. یعني الله حکم کړیدے، او دا خبره ئے لازمه کړیده، او پدے خبره ئے وصیت کړیدے او ددے خبرے وحی ئے کړیده چه بندګي به صرف د یو الله تعالیٰ کوئ. (مجاهد وغیره)

وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا: د والدینو سره ئے احسان باندے حکم وکړو پدے کښ اشاره ده چه د

الله تعالیٰ د توحید او د هغه د حقوقو د ادائیګۍ نه روستو په دنیا کښې د والدینو د حقوقو نه لوئی حق بل نشته. او ددې وجه غالباً دا ده چه الله تعالیٰ د انسان خالق او موجِد دے، پدے وجه د هغهٔ عبادت ضروری شو، او د مور په رَحِم کښې د پلار د نطفې ځای نیولو نه روستو مور د هغه بوج نهه میاشتو پورے په ډیرو تکلیفونو برداشت کولو. او کله چه د الله په قدرت سره د مور د خیټې نه بچے پیدا کیږی نو هغه بالکل عاجز او کمزورے وی، په هغه کښې د حرکت کولو هم صلاحیت نهٔ وی.

د هغه وخت نه مور او پلار د الله نه روستو د هغه مددګار جوړیږی، د هغهٔ د حفاظت دپاره د ورځې آرام او د شپے سکون دلاسه ورکړی او په هره طریقه د هغهٔ خیال ساتی، هغه د خپل شفقت د سترګو د سوری لاندے پالی. نو ګویا که د هغهٔ د وجود او بقاء دپاره د الله د قدرت او ربوبیت نه روستو ددے دواړو شفقت او محبت کار کوی. د مور او پلار سره د احسان کولو ښه طریقه دا ده چه انسان د خپلو والدینو اکرام او تعظیم وکړی او د هغوی په خدمت کښې هیڅ کوتاهی ونکړی، او کله چه دواړه یا د دوی نه یو بوډا شی نو په هغه باندے د شفقت او محبت نظر واچوی، د هغوی په خدمت کښې قلبی راحت محسوس کړی، او د دوی په خدمت کښې که کوم تکلیف اُورسی نو اُف پورے دے ورته نهٔ وائی. په سخته لهجه کښې دے ورته خبره نهٔ کوی، آواز دے اُوچت نهٔ کړی.

**اَلْکِبَرَ** : بوډا والے ئے ذکر کړو ځکه چه بچے د مور او پلار په بوډا والی کښې سپکاوے کوی. نور د مور او پلار مخالفت او سپکاوے په هیڅ وخت کښې جائز نهٔ دے.

**فَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا: د اف او انتهار فرق**

۱ - اف ادنیٰ درجه ده او نهر سخته درجه ده. دا ترقی د ادنیٰ نه اعلیٰ ته شویده.

۲ - اف اِظْهَارُ التَّضَجُّرُ ته وائی یعنی چه انسان ځان تنګ وکړی د هغوی د عمل نه او داسے لفظ د خولے نه وباسی چه اُف دا کار ولے وشو ؟! اګرکه هغوی ته څه بده خبره نهٔ وائی. او انتهار د هغوی مخالفت کول او په هغوی باندے رد کول دی.

د حسین بن علیؓ نه مرفوعا نقل دی چه که الله تعالیٰ ته د مور او پلار د نافرمانۍ نه د اف نه علاوه بل ادنیٰ شے معلوم وے نو هغه به ئے هم حرام کړے وے.

(فتح البیان ۱۱۹/٤) والفردوس بمأثور الخطاب لابی شجاع الدیلمی الهمذانی رقم الحدیث : ۵۰۶۳)

ابن کثیرؒ لیکی چه ددے نه مراد لاسو پورته کول دی په هغوی باندے په غصے سره او

هغوی ته بدې خبرې کول او د زورنې کلمات وئیل دي.

مجاهد وائي چه کله د هغوی نه کومه ګندګي لرې کوې نو هغه وخت کښې ورته اُف هم مهٔ وایه لکه څنګه چه دې دواړو به ستا نه د ګندګی د لرې کولو په وخت زړه نهٔ تنګولو. اصمعیؒ وائي : اُف د غوږ خیرې ته وائي.

ابو عمرو بن العلاءؒ وائي : اُف د نوکونو ترمینځ خیرو ته وئیلې شي. یعنې د هغوی نه د یوې داسې خبرې موندلو په وخت چه د انسان زړه تنګوي اُف ویل هم حرام دي. نو وهل او کنځل کول او د هغوی سپکاوې خو په طریق اولیٰ حرام دې.

قفالؒ د ﴿ وَاخۡفِضۡ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ ﴾ لاندې لیکلي دي چه لکه څنګه چه مارغه د انتهائي حفاظت په وجه خپلو بچو ته خپلې وزرې خوروي او کله چه د پرواز نه فارغ شي په زمکه باندې کوزیدل غواړي نو خپل وزر راغوند کړي، دغه شان هلك چه کله ځوان شي او والدین بوډاګان شي نو هر وخت دې د هغوی حفاظت کوي او د هغوی مخې ته دې په انتهائي عاجزئ او خشوع سره وسیږي. پدې کښې تواضع او انکسارئ طرف ته یوه بلیغه اشاره ده. سعید بن جبیرؒ ددې تفسیر دا بیان کړیدې چه اې انسانه ! تهٔ د خپلو والدینو دپاره داسې تواضع او انکساري ښکاره کړه لکه څنګه چه غلام د خپل سخت مزاج او سخت راګیرونکي آقا مخې ته کوي. (فتح البیان)

مِنَ الرَّحۡمَةِ : دا ورسره ځکه وائي چه مخلوق ته عاجزي او ځان ذلیله کول حرام دي نو دلته وائي چه دا عاجزي به په هغوی باندې د رحم او شفقت کولو دپاره وي ځکه چه بوډاګان دي، او په هغوی باندې به تکبر او لوئي نهٔ کوي.

نو عاجزي دوه قسمه شوه (ذُلُّ الْعُبُوْدِيَّة) د بندګئ عاجزي،

او بل (ذُلّ الرَّحْمَة) دې. دا په ماشومانو او بوډاګانو او کمزورو باندې کیږي.

وَقُل رَّبِّ ارۡحَمۡهُمَا : دا دعا ئې ددې دپاره راوړه چه اې الله ! د دوی په ما دومره ډیر حق دې چه زهٔ ئې پوره نشم ادا کولې نو بس ته ئې ورله ادا کړه. او پدې کښې اشاره ده چه بندګان د مور او پلار حق نشي پوره کولې نو دا دعاء به د هغې په ځای قائم شي.

كَمَا رَبَّيَانِي : ربیاني په اصل کښې رَبَّبَانِيْ وو د تخفیف دپاره یوه باء په یاء سره بدله شوه.

یعنې دې دواړو زما تربیت کړې وو په وړوکوالي کښې چه زهٔ د ځای نه هم نشوم خوزیدلې او زما ډیر ګندونه ئې په شفقت او محبت سره پاك کړیدي.

اهل علم وائي چه بچې هیڅکله د مور او پلار حق نشي ادا کولې ځکه چه مور او پلار د

بچی په مصیبت باندے خفگان کښې وو او د هغه د صحت او عافیت دعا به ئے کوله او کله چه مور او پلار بیماران شی نو بچے پرے تنګ وی او د هغوی د وفات کیدو جلتی کوی.
تردے ځای پورے پنځه خبرے د مور او پلار په حقوقو کښې بیان شوے.

| رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ إِنْ تَكُونُوا |
|---|
| رب ستاسو ښهٔ پوهه دے په هغه څه چه په زړونو ستاسو کښې دی که یئ تاسو |
| صَالِحِينَ فَإِنَّهُ كَانَ لِلْأَوَّابِينَ غَفُورًا ﴿٢٥﴾ |
| نیك عمله نو یقیناً الله دے دپاره د هغه چا چه راګرځیدونکی دی (الله ته) بخنه کونکے. |

**تفسیر** : پدے کښې د مور او پلار په احسان کښې د نیت صحیح کولو ته اشاره ده. الله تعالیٰ ستاسو د زړونو په خبرو ښه پوهه دے. کوم شخص چه د والدینو دپاره نیك جذبات لری نو الله هغه ښه پیژنی او که کوم شخص چه د هغوی نه د نفرت جذبه لری او هغوی بوج ګنړی نو هغه هم الله تعالیٰ ته ښهٔ معلوم دے. او دواړو سره به د هغوی د نیت مطابق معامله کوی.

تَكُونُوا صَالِحِينَ: اَیْ فَاَنْتُمْ اَوَّابُوْنَ. یعنی که تاسو نیکان شوئ نو تاسو به اوابون (الله ته راګرځیدونکی) شئ او الله تعالیٰ اوابینو ته بخنه کوی.

### اوّاب چاته وائی؟

لِلْأَوَّابِينَ: اوابین جمع د اوّاب ده. ۱ - اَلَّذِیْ یُذْنِبُ ثُمَّ یَتُوْبُ ثُمَّ یُذْنِبُ ثُمَّ یَتُوْبُ) (سعید بن المسیب) هغه شخص چه ګناه وکړی بیا توبه وباسی بیا ګناه وکړی بیا توبه وباسی. زر زر الله ته راګرځی. ۲ - اَلرَّجَّاعُ اِلَی اللّٰهِ فِیْمَا یُحْزِنُهٗ وَیَنُوْبُهٗ) الله تعالیٰ ته په هغه مصیبتونو کښې راواپس کیږی چه دے غمجن کوی او دهٔ باندے راځی.

۳ - اَیِ الرَّجَّاعِیْنَ عَنِ الذُّنُوْبِ اِلَی التَّوْبَةِ وَمِنَ السَّیِّئَاتِ اِلَی الْحَسَنَاتِ وَمِنَ الْعُقُوْقِ اِلَی الْبِرِّ وَمِنْ عَدَمِ الْاِخْلَاصِ اِلٰی مَحْضِ الْاِخْلَاصِ. هغه کسان چه د ګناهونو نه توبے ته او د بدو نه نیکیانو ته او د نافرمانئ نه نیکئ او احسان ته او د بی اخلاصئ نه اخلاص ته راواپس کیږی. ٤ - ابن عباس رضی الله عنه فرمائی : اَلْاَوَّابِیْنَ : اَلْمُطِیْعِیْنَ الْمُحْسِنِیْنَ التَّوَّابِیْنَ)

اوابین : تابعدارو، احسان کونکو او توبه ویستونکو ته وئیلے شی. (فتح البیان)

او په صحيح حديث كښې دي چه صلاة الاوابين په هغه وخت كښې دي چه زمكه په نمر باندے داسے گرمه شي چه د اُوښانو د بچو خپے سوزوي (مسلم: ۱۷۸۰)

او هغه وخت د ضحىٰ (څاښت) دے۔ (يعنې دا د اوابينو نښه شوه چه دے وخت كښې به مونځ كوي) نو دا خبره چه په عوامو كښې مشهوره ده چه صلاة الاوابين د ماښام نه روستو نفل كول دي، غلطه ده۔

د سعيد بن جبيرؒ نه نقل دي چه په آيت كښې دے ته هم اشاره ده چه بنۀ نيت او په عام حالاتو كښې د والدينو سره ښه سلوك كولو سره كه كله يو تقصير وشي او په هغې باندے انسان پښيمانه وي نو الله تعالىٰ د هغه گناه معاف كوي او عذاب نۀ وركوي۔

| وَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَلَا تُبَذِّرْ |
|---|
| او وركړه خپلوان ته حق د هغه او مسكين ته او مسافر ته او مۀ خرچ كوه مال |
| تَبْذِيرًا ﴿٢٦﴾ إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ وَكَانَ |
| په بے ځايه خرچ كولو سره۔ يقيناً بے ځايه خرچ كونكي دي ورونه د شيطانانو او دے |
| الشَّيْطَانُ لِرَبِّهِ كَفُورًا ﴿٢٧﴾ وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ |
| شيطان د رب خپل نه ناشكره۔ او كه ته مخ اړوے د دوی نه دپاره د طلب كولو د رحمت |
| مِّن رَّبِّكَ تَرْجُوهَا فَقُل لَّهُمْ قَوْلًا مَّيْسُورًا ﴿٢٨﴾ وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً |
| د رب ستا چه اميد ئے لرے ته نو وايه دوی ته وينا نرمه۔ او مۀ گرځوه لاس خپل تړلے شوے |
| إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَّحْسُورًا ﴿٢٩﴾ |
| څټ سره او مۀ كولاوه دا په پوره كولاوولو سره نو كيبه نے ملامته كړے شوے ستومانه شوے |

**تفسير** : د والدينو نه روستو د خپلوانو او فقيرانو او د مسافرو د حقوقو خيال ساتلو حكم شويدے۔ مفسرينو ليكلي دي چه دلته ئے د قريب په ځاى «ذو القربىٰ» لفظ ويلو پدے كښې دے طرفته اشاره مقصود ده چه كه د چا سره ادنىٰ قرابت او خپلولي هم وي، نو د هغه خيال ساتل پكار دي۔ او د صحيح حديث نه ثابته ده چه خپلوانو ته په صدقه وركولو كښې دوه اجره دي يو د صله رحمۍ او بل د صدقې اجر ملاويږي۔

(صحيح بخاري: ۱٤٦٦)

Scanned by CamScanner

وَلَا تُبَذِّرۡ تَبۡذِيۡرًا : پدے کښې د فضول خرچۍ نه منع شویده، تبذیر دے ته وائی (اِنۡفَاقُ الۡمَالِ فِيۡ غَيۡرِ حَقِّهٖ) (ابن عباسؓ وابن مسعود ؓ) یعنی یو سړے خپل مال په ناجائز کارونو کښې خرچ کړی، (لکه په نذر د غیر الله کښې خرچ کول او په بدعاتو او رسمونو کښې خرچ کول) یا په هغه خلقو باندے خرچ کړی چه د شرعی اصولو مطابق مستحق نهٔ وی۔

دارنګه تبذیر دے ته هم وائی چه انسان په غیر ضروری څیزونو کښې مال خرچ کړی۔

که یو انسان خپل ټول مال په حق کښې ولګوی نو هغه تبذیر نهٔ دے، او که یوه روپۍ په باطل کښې خرچ کړی نو دا تبذیر دے۔

او څینی اهل علم وائی چه تبذیر: (اِنۡفَاقُ الۡمَالِ فِي الۡعِمَارَةِ عَلٰى وَجۡهِ السَّرَفِ) مال په آبادۍ کښې خرچ کول په طریقه د اسراف (زیادت) سره۔ او دا مرض پدے زمانه کښې څومره زیات دے چه خلك په بیت الخلاء باندے څومره فضول مالونه لګوی، ددے نه اندازه کیږی چه ددے خلکو مالونه اکثر د حرامو وی ځکه ئے ترے الله تعالیٰ پداسے ګنده ځایونو کښې لګوی۔

ابو اسحاق السبیعی رحمه الله یو کور ولیدو (بُنِيَتۡ بِالۡجَصِّ) په چونے سره بنائسته جوړ شوے وو نو هغه وفرمایل: (هٰذَا مِنَ التَّبۡذِيۡرِ) دا هم په تبذیر (فضول خرچۍ) کښې داخل دے۔

څینی نیکانو په خیر کښې ډیر مال خرچ کړو نو ملګرے ورته وویل چه (لَا خَيۡرَ فِي السَّرَفِ) په اسراف کښې خیر نهٔ وی۔ نو هغه ورته جواب ورکړو: (لَا سَرَفَ فِي الۡخَيۡرِ) په خیر کښې استعمال د مال اسراف نهٔ دے۔ او آیت دے ټولو ته شامل دے۔

زمخشری په «کشاف» کښې لیکلی دی چه د جاهلیت په دور کښې به خلقو اُوښان ذبح کول او د خپلے مالدارۍ خودنه به ئے کوله، او د فخر او یارکارۍ په نورو کارونو کښې به ئے مال خرچ کولو، او په خپلو اشعارو کښې به ئے هغه ذکر کول۔

پدے آیت کښې الله تعالیٰ دوی ته حکم وکړو چه دوی خپل مال په داسے کارونو کښې خرچ کړی چه دوی الله تعالیٰ ته نزدے کړی۔

اِنَّ الۡمُبَذِّرِيۡنَ كَانُوۡۤا اِخۡوَانَ الشَّيٰطِيۡنِ : دا د مخکښې نهی د تبذیر دپاره علت دے،

❁ یعنی مُبذرین د شیطانانو سره په ناشکرۍ کښې پوره مشابه دی، او د شیطان د مشابهت نه ځان ساتل واجب دی۔ او دا ډیره سخته بدی ده ځکه چه د شیطان نه بل شری نشته۔ په اسلام کښې د مال ډیر قدر دے، ددے په باره کښې به الله تعالیٰ تپوس کوی۔

❁ یا مطلب دا دے چه فضول خرچ کونکی خلق به په جهنم کښې د شیطان ملګری وی۔

وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِرَبِّهٖ كَفُوْرًا : پدے کښې د تیر شوی علت تکمیل دے چه شیطان نه لوئی د الله بل ناشکره بنده نشته دے، ځکه چه الله تعالیٰ دهٔ ته ځو مره صلاحیتونه ورکړیدی هغه ټول هغه په ګناهونو، زمکه کښې په فساد خورولو او د خلقو په ګمراه کولو او کفر طرف ته رابللو کښې لګولی دی۔ دغه شان که یو سړے د الله ورکړی نعمتونه د الله د بندګئ په ځای په ناجائزو کارونو کښې خرچ کوی نو ګویا که هغه د شیطان په شان دے۔

كَفُوْرًا : دا قیاسی شکل دے (اَلْمُبَذِّرُوْنَ اِخْوَانُ الشَّيَاطِيْنِ وَالشَّيْطَانُ لِرَبِّهٖ كَفُوْرٌ فَالْمُبَذِّرُ كَفُوْرٌ)۔ (یعنی مبذرین د شیطان ورونه دی او شیطان خو د خپل رب ناشکره دے نو مبذر هم ناشکره دے)۔

وَاِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَآءَ رَحْمَةٍ : دا متعلق دے د (وَآتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ) سره۔ او پدے آیت کښې دوه تفسیره دی (۱) یعنی کوم خلق چه مخکښې ذکر شو که د دوی نه څوك ستا مخے ته خپل ضرورت پیش کړی او تا سره د هغه د ورکولو دپاره مال نهٔ وی، نو تا له پکار دی چه هغه غوختونکے مایوس نهٔ کړے، د هغه سره په سخته لهجه کښې خبره ونکړے او ددے وعدے سره هغه واپس کړے چه که الله تعالیٰ وسع راکړو نو ستا مدد به وکړم۔

یا ورته په بنه شان سره عذر وکړه او دعاء ورته وکړه چه الله دې مونږ او تا ته د خپلے مهربانئ نه حلال مال راکړی۔ نو د (اِبْتِغَاءَ رَحْمَةٍ) نه مراد مال راتلل دی یعنی که روستو مال راغلو بیا به ئے درکړم۔ نو د اعراض نه مراد د مخ اړول نهٔ دی۔ په ښائسته شان سره سائل واپس کول هم نیکی ده۔

(۲) تفسیر : بعض خپلوان مفسدان وی، مال په فساد کښې لګوی، تې وی پرے اخلی، زنا باندے ئے لګوی، چرس پرے څکی نو هغوی ته به مال د الله د رضا د وجه نه نهٔ ورکوے ځکه چه د مجرمانو سره بائیکاټ ضروری دے، نو بیا به هغه په نرمه وینا سره رخصت کړے چه زهٔ ددے طاقت نهٔ لرم۔ خو مال ورله مهٔ ورکوه۔ اوله معنیٰ ظاهره ده او دویمه معنیٰ د نورو دلائلو نه معلومیږی۔

وَلَا تَجْعَلْ : مخکښې د تبذیر نه منع وشوه نو اُوس د انفاق ادب بیانوی۔

مَغْلُوْلَةً اِلٰى عُنُقِكَ : دا کنایه وی د بخل نه۔ نو دلته د بخیل د هغهٔ سړی سره تشبیه ورکړے شویده چه د هغهٔ دواړه لاسونه د هغهٔ د څټ پورے تړلے شوی وی چه په هغه لاسونو سره دا نهٔ څوك نیولے شی او نهٔ د هغے په ذریعه چا له څه شے ورکولے شی۔ او دا

ډیره مبالغه ده. او دا خطاب نبي کریم ﷺ ته اول دے او مقصد پکښې مؤمنانو ته نصیحت کول دي، او هرچه رسول الله ﷺ وو نو (كَانَ اَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ). هغه د ټولو خلکو نه زیات سخي وو. (بخاري رقم: ٦)

كُلَّ الْبَسْطِ : ١- یو په تبذیر سره لاس پوره فراخه کول مراد دي. چه بې ځایه ډیر لګوي. ٢- ظاهر دا ده چه پدے کښې صدقه هم مراد ده چه انسان د وس نه بهر صدقے کوي، یا ټول مال لګوي دا هم د عامو مؤمنانو دپاره صحیح نهٔ ده ځکه چه بیا بنده بل ته محتاج کیږي، او د بال بچ حق ضائع کیږي. کعب بن مالك ﷺ وفرمایل: زهٔ ټول مال خیرات کوم. رسول الله ﷺ وفرمایل: (اَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكَ) بعض مال ځان سره وساته، دا ستا دپاره غوره ده. هغه وویل : (فَاِنِّيْ اُمْسِكُ سَهْمِيَ الَّذِيْ بِخَيْبَرَ) زهٔ به خپله هغه برخه چه په خیبر کښې ده وساتم). (بخاري ١٤٢٥ ومسلم: ٧١٩٢)

فَتَقْعُدَ مَلُوْمًا مَّحْسُوْرًا: مَلُوْمًا بِالْبُخْلِ. مَحْسُوْرًا بِالتَّبْذِيْرِ وَالْبَسْطِ.

د بخل په صورت کښې به دِے خلك ملامته کوي چه مال درسره شته او نهٔ ئے لګوي، او د فضول خرچۍ په وجه سره به ټول مال ضائع شي نو بیا به ستومانه ئے او افسوسونه به کوے او د بل لاس ته به ګورے. دا د الله تعالیٰ ډیر د عقل او حکمة خبرے دي، درمیانه خرچه وکړه. د دنیا او د آخرت دواړو خیال ساته.

فَتَقْعُدَ کښې اشاره ده چه د داسے انسان حالت به د هغه اُوښ وی چه په لاره باندے تلو سره ستړے شي او هار اُوبیلے کیني، مخکښې نشي تلے، نو د هغه مالك هغه هملته پریدی او ترے لاړ شي.

| إِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ |
|---|
| یقیناً رب ستا فراخوی رزق چا لره چه وغواړي او کموی ئے یقیناً الله دے په بندګانو خپلو |
| خَبِيْرًا بَصِيْرًا ﴿٣٠﴾ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ |
| خبردار، لیدونکے. او مهٔ وژنئ اولاد خپل د ویرے د لوږے (فقر) نه مونږ رزق ورکوو دوی ته |
| وَإِيَّاكُمْ إِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْئًا كَبِيْرًا ﴿٣١﴾ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً |
| او تاسو ته یقیناً وژل د دوی ګناه ده لویه. او مهٔ نږدے کیږئ زنا ته یقیناً دا بے حیائی ده |

| وَسَآءَ سَبِيۡلًا ﴿٣٢﴾ وَلَا تَقۡتُلُوا النَّفۡسَ الَّتِيۡ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالۡحَقِّ |
|---|
| او بده لاره ده۔ او مۀ وژنئ نفس هغه چه حرام کړيدے الله (وژل د هغۀ) مګر په حق سره |
| وَمَنۡ قُتِلَ مَظۡلُوۡمًا فَقَدۡ جَعَلۡنَا لِوَلِيِّهٖ |
| او څوك چه اُووژلے شو په ظلم سره نو يقيناً ګرځولے دے مونږ د وارث د هغۀ دپاره |
| سُلۡطٰنًا فَلَا يُسۡرِفۡ فِّي الۡقَتۡلِ اِنَّهٗ كَانَ مَنۡصُوۡرًا ﴿٣٣﴾ |
| طاقت نو زياتے دے نۀ کوی په وژلو کښې يقيناً دۀ سره مدد کړے شويدے۔ |

**تفسير** : پدے کښې رسول الله ﷺ او مؤمنانو ته تسلي ورکوی چه دوی باندے ئے چه کومه پابندی ولګوله په زيات مال خرچ کولو کښې نو هغه پدے وجه نۀ ده چه ګنې د الله په خزانو کښې به کمے راشي بلکه پدے کښې د الله تعالىٰ حکمت دے او د انسانانو فائده ده۔

﴿ وَلَوۡ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزۡقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوۡا فِي الۡاَرۡضِ ﴾ (فتح البيان والدر المنثور)

يعني د بندګانو په رزق کښې فراخي او تنګي د الله د تعالىٰ د مشيت تابع ده۔ هغه د انسانانو په ظاهر او باطن ښه پوهيږی او د خپل حکمت د تقاضا مطابق چه چا له غواړی رزق فراخوی او چه چا له غواړی کموی، نو د چا رزق چه ئے فراخه کړو دا دليل نۀ دے چه ګنې دے د الله په نيز عزتمند دے او په چا چه ئے تنګوی راوسته چه ګنې دے د الله په نيز سپك دے۔ ❁ او پدے کښې دا مطلب هم دے چه فراخي او تنګي ورکول د الله په امر دی او د هغۀ خزانے نۀ ختميږی او هرچه بندګان دی نو هغوی باندے لازم ده چه اقتصاد (درميانه روي) وکړی۔

اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيۡرًا بَصِيۡرًا : حسن بصريؒ فرمائی : الله تعالىٰ ګوری، چا له چه مالداري غوره وی نو مالداره ئے ګرځوی او که فقر ورله غوره وی نو فقير ئے جوړوی۔

❁ حسنؒ دا هم وئيلی دی : [يَبۡسُطُ لِهٰذَا مَكۡرًا بِهٖ وَيَقۡدِرُ لِهٰذَا نَظَرًا لَّهٗ] د يو تن مال فراخه کوی، د هغۀ استدراج (په دمه دمه رانيول مقصد) وی او د بل مال تنګوی د هغه (د ايمان) خيال ساتی۔ که مالداره شي سرکشه کيږی۔ (ابن ابی حاتم والدر المنثور)

او الله تعالىٰ د انسانانو مزاجونه پيژنی، د چا د ايمان حفاظت په مال سره کوی او د چا په غريبئ سره، که غريب مالداره شي خرابيږی، او سرکشه کيږی، او که مالداره غريب شي نو بيا ئے په الله باندے بدګمانی پيدا کيږی۔ او دا د الله تعالىٰ عجيب حکمة دے۔

وَلَا تَقْتُلُوٓا اَوْلَادَكُمْ :

ربط :

۱- د مخکښې آيت نه معلومه شوه چه الله تعالىٰ روزي رسان دے، هغه د هر چا د رزق ذمه واري اخستے ده، نو پدے وجه ئے دلته اولادو لره د فقر او محتاجئ په يره سره د وژلو نه منع وکره.

۲- مخکښې حفاظت وو د ارواحو د مساکينو نو اوس بيانوي حفاظت د ارواحو د اولادو.

حكمة

وَلَا تَقْتُلُوٓا : دا خطاب دے مالدارو ته پدے وجه ئے دلته (خَشْيَةَ) وويلو يعني آينده دپاره يريږے چه دوي ته به رزق ځوك ورکوي. او په سورة الانعام آيت (۱۵۱) کښې خطاب وو غريبانو ته چه هغوي في الحال وږل پدے وجه ئے هلته (مِنْ اِمْلَاقٍ) لفظ ووئيلو. او پدے وجه ئے دلته (نَرْزُقُهُمْ) په (وَاِيَّاكُمْ) مخکښې کړو. ځکه چه مالدارو سره د اولادو فکر وو. او په انعام کښې ئے (نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ) ووئيلو ځکه چه غريبانو سره خپل فکر وو. فتدبر.

د جاهليت په دور کښې به بعض قبيلو خپل اولاد د محتاجئ په يره قتل کول. الله وائي چه دوي او تاسو ټولو ته مونږ روزي درکوو، پدے وجه د لوږے او محتاجئ په يره سره دوي قتل نهٔ کړئ. داسے کار کول لويه ګناه ده، ځکه چه دا د انساني نسل د ختميدلو سبب جوړيدے شي. او د قتل الاولاد پوره تشريح په تفسير د سورة الانعام کښې ذکر شويده هغے ته به رجوع بنه وي.

خِطْئًا كَبِيْرًا : دا دليل دے چه د خطاء اطلاق کله په ګناه کبيره هم کيږي.

وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰى: دا د خپل او د بل د عزت د حفاظت دپاره حکم دے. ځکه چه زنا د نسب د ګډوډ کيدو او په آخر کښې د انساني نسل د تباهئ سبب جوړيږي.

زنا هغه بد فعل دے چه د سليم فطرت او د عقل او د شريعت په هر اعتبار سره لويه ګناه ده، او په معاشره د مسلمانانو باندے ددے نهايت خطرناك او بد اثرات مرتب کيږي. د مسلمانانو سړو او ښځو عزت محفوظ نهٔ پاتے کيږي، د دوي نسب او د دوي نسل په خطره کښې پريوزي، او پاکه او صفا معاشره د اخلاقي اُور ښکار کيږي، او ځوك چه دا کار کوي نو د الله تعالىٰ د فرمان مطابق په آخرت کښې به ددهٔ ځاي جهنم وي.

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ: پدے آيت کښې دبې ګناه انسان د قتل نه منع شويده.

إِلَّا بِالْحَقِّ : یعنی سویٔ د هغه شخص نه چه د هغهٔ په شرعی توګه سره قتل کول ضروری شی لکه هغه په حدیث کښې راغلی دی چه یو د درے کارونو په وجه. (إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ) لکه یو تن مرتد شی، یا د واده کولو نه روستو زنا وکړی، یا بل سړے په ناحقه قتل کړی (نو قصاصاً به وژلے شی) (بخاری : ٦٨٧٨) مسلم (٤٤٦٨)

وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُومًا : یعنی که یو تن بل شخص لره په قصد او په ناحقه سره قتل کړو نو د هغهٔ ولی ته پوره اختیار دے، که غواړی نو قاتل نه به د وخت د حاکم په ذریعه د قصاص مطالبه وکړی، یا به دیت واخلی، یا که غواړی نو د الله دپاره دے معاف کړی، او په قصاص اخستو کښې به د حد نه تجاوز نهٔ کوی، د قاتل نه سویٔ بل څوك به نهٔ قتلوی، که قاتل یو وی نو دوه یا زیات د دوو نه به نهٔ قتلوی، لکه څنګه چه به د جاهلیت په زمانه کښې کیدل چه د یو په بدله کښې به ئے ډیر قتلول. پدے وجه الله تعالیٰ قصاص واجب کړو او د مقتول د اولیاؤ مدد ئے وکړو. او کومه مناسبه بدله چه کیدل پکار وو هغه ئے مقرر کړه، پدے وجه د الله د حکم نه تجاوز کول نهٔ دی پکار.

لِوَلِيِّهٖ سُلْطَانًا : یعنی د وارث د مقتول دپاره مونږ قدرت او قوت او ولایت د قصاص ګرځولے دے په سبب د بادشاه سره چه هغه به ورسره مدد کوی او قاتل به ورته حاضره وی، بیا ددے اولیاؤ خوښه ده په دغه درے خبرو کښې چه کومه اختیاروی.

فَلَا يُسْرِفْ فِّي الْقَتْلِ : یعنی ولی د مقتول به اسراف نهٔ کوی په قتل کښې د حدودو د قصاص نه. چه مُثله وکړی یا زیات قتل کړی، یا د قاتل ورور یا پلار وغیره قتل کړی.

كَانَ مَنْصُورًا: یعنی دے ولی د مقتول سره به مدد کولے شی د طرف د مؤمنانو نه.

د ضحاك نه نقل دی چه دا آیت په مکه کښې نازل شوے وو په کوم وخت کښې چه د الله نبی په مکه کښې وو او دا د قتل په باره کښې اولنے آیت دے. د مکے مشرکانو به د رسول الله ﷺ په ملګرو باندے پټے حملے کولے نو الله وفرمایل چه که مشرکانو تاسو نه څوك قتل کړی نو ددے قتل په بدله کښې د هغه پلار یا ورور یا بل یو تن د هغه د قبیلے نه مهٔ وژنئ اګرکه هغوی مشرکان دی بلکه صرف قاتل قتل کړئ. او دا په هغه وخت کښې وو چه کله سورة براءة نازل شوے نهٔ وو او د مشرکانو په قتال باندے حکم نهٔ وو شوے. (فتح البیان)

وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّى

او مهٔ نزدے کیږئ مال د یتیم ته مګر په هغه طریقه چه هغه ښائسته ده تر دے

| |
|---|
| يَبْلُغَ أَشُدَّهُ ۥ وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْؤُولًا ﴿٣٤﴾ |
| چه اُورسیږي ځواني ته، او پوره والے اُوکړئ په لوظ یقیناً د لوظ تپوس به کیدے شي۔ |
| وَأَوْفُوا الْكَيْلَ إِذَا كِلْتُمْ وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ |
| او پوره کوئ پیمانه کله چه پیمانه کوئ، او تول کوئ په تله برابره سره |
| ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴿٣٥﴾ |
| دا ډیر غوره کار دے او ښائسته انجام والا دے۔ |

**تفسیر** : د نفس د حفاظت حکم کولو نه روستو اُوس د مال د حفاظت حکم کیږي او چونکه د یتیم د الله تعالیٰ نه سوئ بل کوم مضبوط مددګار نهٔ وي، پدے وجه د هغهٔ په مال باندے د بدنیته خلقو نظر همیشه لګی۔ پدے وجه د تولو نه اول د هغهٔ د مال د حفاظت حکم وکړے شو، او پدے باره کښې د انتهائی احتیاط تعلیم ورکولو دپاره الله تعالیٰ وفرمایل چه د یتیم مال ته نژدے هم مهٔ ورځئ، آو، که نیت دا وي چه د هغهٔ خدمت وکړے شي، په تجارت کولو سره هغے ته ترقي ورکړے شي، نو بیا پدے کښې تصرف کول جائز دي، تردے پورے چه یتیم بالغ شي او په عقلي توګه باندے په خپل مال کښې د صحیح تصرف کولو قابل شي۔ او همدا معنیٰ د (اِلَّا بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ) ده۔

وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ : یعنی د خلقو سره چه ستاسو کوم عقود او معاهدے وي، د هغے پابندي کوئ او دهوکه مهٔ کوئ، ځکه چه د قیامت په ورځ به د بندګانو نه د لوظونو او عهودو په باره کښې هم تپوس کیږي او که چا په غیر د سبب نه لوظ مات کړو نو په هغه ورځ به د هغے سزا برداشت کوي۔

كَانَ مَسْؤُولًا: اَیْ عَنْهُ۔ یعني ددے په باره کښې به تپوس کیږي۔

وَأَوْفُوا الْكَيْلَ : مسلمانانو ته حکم کیږي چه په ناپ او تول کښې کمي ونکړي، کله چه د چا دپاره تول او وزن کوي نو پوره دے تلي او وزن دے صحیح کړي، نو صحیح تلے سره دے وزن کوي، ډنډے دے نهٔ وهي، او دهوکه دے نهٔ کوي، پدے کښې هر خیر دے او د انجام په اعتبار سره همدا بهتره ده، ځکه چه په معاملاتو کښې د رشتینوالي په وجه سره الله تعالیٰ د هغه په روزي کښې برکت اچوي، او د قیامت په ورځ به یو مظلوم ددهٔ نه د خپل حق مطالبه نهٔ کوي۔

**بِالْقِسْطَاسِ** : زجاج وائي : مِيْزَانُ الْعَدْلِ ـ يعني د انصاف تله، وړه وي او که غټه، د دَرَاهِمُو وي او که د بل څه۔ او په لغت د رومې کښې قسطاس عدل ته وئيلے شي، او دا عربي لفظ دے ليکن په عربئ کښې مشهور نهٔ وو او د روميانو لفظ د عربئ سره موافق شو۔

او داسے نهٔ ده چه دا لغت د روميانو نه اخستے شويدے ځکه چه قرآن خالص عربي کتاب دے، پدے کښې عجمي الفاظ نشته، او کوموته عجمي وئيلے کيږي هغه په دغه معنیٰ چه موافقت د لغاتو راغلے وي۔

**ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّأَحْسَنُ تَأْوِيْلًا** : دا په دنيا کښې غوره دے ځکه چه حلال مال دے وګټلو او عبادات به دے قبليږي، او انجام ئے هم ښه دے، ځکه چه الله تعالیٰ به درسره حساب نهٔ کوي۔ مال به دے په خير او دين باندے لګيږي، اولاد به دے نيکان کيږي۔

| وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ |
|---|
| او مهٔ روانيږه د هغے پسے چه نهٔ وي تا سره په هغے باندے علم (دليل) يقيناً غوږ او سترګه |
| وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولٰٓئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُوْلًا ﴿٣٦﴾ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ |
| او زړه، ددے ټولو په باره کښې به تپوس کيدے شي۔ او مهٔ ګرځه په زمکه کښې |
| مَرَحًا إِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُوْلًا ﴿٣٧﴾ كُلُّ ذٰلِكَ |
| په تکبر يقيناً تهٔ نشې شلولے زمکه او نشې رسيدلے غرونو ته په اُوږدوالي۔ دا ټول |
| كَانَ سَيِّئُهٗ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوْهًا ﴿٣٨﴾ ذٰلِكَ مِمَّا |
| پدے کښې بد کارونه په نيز د رب ستا ناروا دي۔ دا چه ذکر شول د هغے نه دي |
| أَوْحٰٓى إِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ |
| چه وحي کړيده تا ته رب ستا د حکمت د خبرونه، او مهٔ ګرځوه د الله سره معبود بل |
| فَتُلْقٰى فِيْ جَهَنَّمَ مَلُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿٣٩﴾ |
| نو ګوزار به شے په جهنم کښې ملامته کړے شوے رټلے شوے۔ |

**تفسير** : پدے آيت کريمه کښې الله تعالیٰ سړی لره د داسے خبرے کولو او د داسے خبرے پسے د روانيدو نه منع کړيدے چه هغه سره د هغے علم نهٔ وي۔ که چا پدے يو آيت عمل

وکړو نو متقي به شي او ډیره زیاته اصلاح به ئې وشي۔

وَلَا تَقْفُ : دا د قفا نه ماخوذ دے د چا د شا پسے ورتللو او روانيدو ته وئيلے شي نو د لاتقف معنیٰ ده (لَاتَتَّبِعْ) مه روانیږه د هغه کار او هغه خبره پسے چه ستا پرے علم نهٔ وي مطلب ئې دا دے چه هغه بیانوه هم مهٔ او کوه ئې هم۔

## ددے ډیر مصداقات او مطلبونه دي

۱- قتادةؒ وائي : [لَاتَقُلْ رَأَيْتُ وَلَمْ تَرَ، وَسَمِعْتُ وَلَمْ تَسْمَعْ، وَعَلِمْتُ وَلَمْ تَعْلَمْ]۔ داسے مهٔ وایه چه ما لیدلي دي او حال دا چه تا نهٔ وي لیدلي، ما آوریدلي او تا نهٔ وي آوریدلي او زهٔ پوهه یم او تهٔ پرے پوهه نهٔ ئې۔

۲- مجاهدؒ وائي : دا د بهتان معنیٰ ورکوي : [لَا تَرْمِ اَحَدًا بِمَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ]۔

چا باندے تهمت مهٔ لګوه چه ستا پرے علم نهٔ وي۔ (چا ته غل، ډاکو، جاسوس وئیل بغیر د ثبوت او دلیل نه جائز نهٔ دي)۔ (او دا خبره د ابن عباسؓ نه ابن جریرؒ نقل کړیده)۔

۳- [اَلْقَوْلُ فِي الْاَسْمَاءِ وَالصِّفَاتِ] د الله په اسماء او صفاتو کښې د ځان نه خبرے کول، ید، استواء علی العرش وغیره صفاتو نه انکار کول۔

٤- [لَاتَتَكَلَّمْ بِالظَّنِّ وَالْحَدْسِ]۔ خبره په ظن (ګمان) او حدس سره مهٔ کوه۔

٥- قاسميؒ وائي : [وَيَدْخُلُ فِيْ ذٰلِكَ الْكَذِبُ] پدے کښې دروغ هم داخلیږي۔

شوکانيؒ وائي چه دا آیت قاعده کلیه ده چه ددے په ضمن کښې هغه تمام اقوال او افعال داخل دي چه د هغے د رشتینوالي او حقانیت انسان ته علم نهٔ وي۔ مثلاً د دروغو ګواهي ورکول، بغیر د ثبوت نه د چا بدي بیانول، پاکدامنو سړو او ښځو باندے بهتان تړل، بغیر د شرعي دلیل نه یو شے حلالول او یو شے حرامول۔ (دارنګه شرك كول)

علامه قاسميؒ او زمخشري وئیلي دي : [وَيَدْخُلُ فِيْهِ النَّهْيُ عَنِ التَّقْلِيْدِ دُخُوْلًا ظَاهِرًا، لِاَنَّهٗ اِتِّبَاعٌ لِمَا لَايَعْلَمُ صِحَّتَهٗ مِنْ فَسَادِهٖ، انتهى]۔

او پدے نهي کښې تقلید هم داخل دے په ښکاره طریقے سره ځکه چه تقلید کښې هم مقلد روانیږي د هغه وینا او عمل پسے چه د هغے صحت او فساد ورته معلوم نهٔ دے۔

(مقلد ته د خپل امام او عالم د خبرے دلیل نهٔ وي معلوم، او هسے ورپسے روان وي او په ګمان لګیا وي چه کیدے شي چه هغهٔ سره به دلیل وي نو د همدغه کار نه د قرآن دا آیت منع کوي که څوك ضد نکوي نو د قرآن دا یو آیت هم د هغه دپاره د تقلید په پریخودو

کښې کافي دلیل دے).
آیت او حدیث ښکاره موجود دے او دے د وهمي خبره پسے روانیږي دا کوم عقل دے، دا تول د کیدے شي پسے روان وي او په ډیرو مسائلو کښې ظاهري نصوص پریدي.
شوکانيؒ دا هم وائي : کله چه د کتاب یا د سنت دلیل موجود وي او یو انسان په رأی د یو عالِم باندے عمل کوي، نو دا پدے نهی کښې په اوله درجه کښې داخل دے. بیا وائي : ددے نه ښکاره معلومیږي چه دا کوم آراء چه په کتابونو د فرعو کښې لیکلے شویدي نو دا د شریعت نه په هیڅ برخه کښې نهٔ دي او پدے باندے عمل کونکے (او آیت او حدیث پریخودونکے) د هلاکت په کنده باندے ولاړ دے. او کوم خلك چه دا وائي چه دا آیت خاص دے په عقائدو پورے نو د هغه سره هیڅ دلیل نشته. انتهیٰ.
(فتح البیان وفتح القدیر والقاسمی والبیضاوی والمنار ۱۱/۲۰۳)
إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ: ددے ممانعت علت ئې دا بیان کړو چه د قیامت په ورځ به د انسان نه د هغهٔ د غوږ او د سترګے او د زړهٔ د ټولو اعمالو په باره کښې تپوس کیږي. او دے سره به حساب کیږي او سخته سزا به ورکوي.
ددے یو بل مطلب دا هم بیان شویدے چه الله تعالیٰ به دے اندامونو ته د خبرو کولو طاقت ورکوي، او ددے نه به تپوس کوي چه ددے په ذریعه کوم کوم ګناهونو کړے شوي وو.
وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا : الله تعالیٰ انسان ته نصیحت کریدے چه په زمکه باندے د کبر او غرور سره په تکبر نهٔ ګرځي، ځکه داسے کولو سره دا نهٔ شي پورته کیدے، لکه څنګه چه مخکښې وو همغه شان به پاتے وي، پدے وجه الله تعالیٰ دے نه روستو وفرمایل چه د کبر او غرور په وجه په زمکه ګرځیدو سره هغه په زمکه کښې سورے نشي کولے، او نهٔ په تکبر ګرځیدو سره د غر په شان پورته کیدے شي. پدے وجه انسان له پکار دي چه تواضع او انکساري اختیار کړي، ځکه کبر او غرور د حماقت او کم عقلۍ نخه ده.
مَرَحًا : ۱- دا شِدَّةُ الْفَرَحِ ته وئیلے شي یعنې سخته خوشحالي کول چه د هغے په وجه انسان په تکبر او غرور کښې راشي او نور خلك سپك ګڼړي.
۲- ځیني وائي : دا په مزل کښې تکبر کول دي.
۳- او بعض وائي : (تَجَاوُزُ الْإِنْسَانِ قَدْرَهُ) د انسان د خپلے اندازے او مرتبے نه بهر کیدل دي. دلته ترے مراد تکبر دے او دا د مصدر صیغه ده، اصل کښې داسے ده (ذَا مَرَحٍ او مَارِحًا)

(تکبر والا) لیکن د زیات تاکید په طور مصدر په ځای د صفت واقع شویدے۔
قرطبیؒ لیکي چه پدے کښ د ډمو ګډا وغیره داخله ده۔ دنیا کښ دومره خوشحالي نه ده پکار چه روستو درپسے قبر او حشر راروان دے۔
علماء لیکي چه د سختے خوشحالئ د وجه نه درے مرضونه پیدا کیږي۔
(۱) تکبر کول۔ (۲) تَحْقِيْرُ الْمُسْلِمِيْنَ۔ (د مسلمانانو سپك ګنړل)۔
(۳) اَلْغَفْلَةُ۔ (غافله کیدل)۔ پدے وجه ترے شریعت منع کریده۔
إِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْأَرْضَ : ددے یو مطلب دا هم دے چه [إِنَّكَ مُحَاطٌ بِالتُّرَابِ وَالْأَحْجَارِ] ستا نه خاوره او کانړي راتاؤ دي او ته د دوی ترمینځ راګیر ئے بلکه ضعیف انسان ئے د نورو مخلوق په شان، بلکه د هغوی نه هم کمزورے ئے، نو ستا سره کبر څنګه لائق دے؟!۔
كَانَ سَيِّئُهٗ : یعنی پدے مذکوره کارونو کښ چه کوم بد بد کارونه دي هغه ستا د رب په نیز باندے حرام دي۔
مَكْرُوْهًا : مکروه د کراهت نه دے بد ګنړلو ته وائي۔ مکروه په قرآن او حدیث کښ په معنیٰ د حرام سره استعمالیږي۔ او مکروه لفظ ئے ذکر کړو سره ددے نه چه په دغه منهیاتو کښ کبیره ګناهونه ذکر دي، اشاره ده دے ته چه نفس بد ګنړل د الله تعالیٰ دا سبب ددے دے چه انسان ترے منع او جدا شي۔ او مکروه د فقهاؤ په نیز کله په معنیٰ د حرامو وي او کله تنزیهي وي۔ او (مَا ثَبَتَ بِدَلِيْلٍ فِيْهِ شُبْهَةٌ ) ته وئیلے شي یعني یو شے په دلیل سره ثابت شي چه په هغه دلیل کښ شبهه وي۔
ذٰلِكَ مِمَّا أَوْحٰى إِلَيْكَ : په دے آیت کښ نبی کریم ﷺ ته خطاب کوي، فرمائي چه په تیر شوی آیتونو کښ چه د کومو ښائسته اخلاقو حکم شویدے او د کومو بدو صفاتو نه چه منع شویده د حکمت دا تولے خبرے الله تا ته په ذریعه د وحي خودلي دي۔
الْحِكْمَةِ : مخکښ سورت کښ چه کوم حکمة ذکر شو هغه دا کارونه دي۔
حکمة : اَلْعِلْمُ الْمُحْكَمُ۔ (مضبوط علم) او په سورت بقره کښ د حکمة تعریف مونږ د ابن دریدؒ نه نقل کړیدے هغه دلته مراد دے۔ هر هغه کلمه چه تا ته وعظ وکړي، یا دے یو نیك خصلت ته راوبلي یا دے د یو بد کار نه منع کړي نو دغه حکمة دے۔
وَلَا تَجْعَلْ : ددے احکامو ابتداء ئے هم د توحید نه وکړه او اختتام ئے هم په توحید سره۔ پدے کښ بندګانو ته دا احساس ورکوي چه د تمامو حکمتونو اصل او بنیاد د الله تعالیٰ

توحيد دے، دا وجه ده چه مشرك به پرمخے جهنم ته گوزارلے شی، په هغه وخت به خپل ځان ملامته کوی، او د الله تعالیٰ تمام مخلوقات به ئے هم ملامته کوی۔ او د الله تعالیٰ ذ رحمت نه به همیشه دپاره لرے کولے شی۔ دارنګه مخکښې ئے وویل چه شرك په دنیا کښې هم بد شے دے او دلته وائی چه شرك په آخرت کښې د جهنم سبب دے۔

| أَفَأَصْفَاكُمْ رَبُّكُم بِالْبَنِينَ وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلَٰئِكَةِ |
|---|
| آیانو غوره کړی یئ تاسو رب ستاسو په ځامنو او نیولی ئے دی (ځان له) د ملائکو نه |
| إِنَاثًا إِنَّكُمْ لَتَقُولُونَ قَوْلًا عَظِيمًا ﴿٤٠﴾ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ |
| لونړه، یقیناً تاسو خامخا وایئ وینا لویه۔ او یقیناً بیان کړیدی مونږ پدے قرآن کښې |
| لِيَذَّكَّرُوا وَمَا يَزِيدُهُمْ |
| (قسماقسم مثالونه او عبرتونه) دے دپاره چه دوی نصیحت واخلی او نهٔ زیاتوی دا قرآن دوی لره |
| إِلَّا نُفُورًا ﴿٤١﴾ قُل لَّوْ كَانَ مَعَهُ آلِهَةٌ كَمَا يَقُولُونَ إِذًا |
| مګر نفرت۔ اُووایه که وے د الله سره معبودان لکه چه وائی دوی، په دغه وخت به |
| لَّابْتَغَوْا إِلَىٰ ذِي الْعَرْشِ سَبِيلًا ﴿٤٢﴾ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا |
| خامخا دوی طلب کړے وے خاوند د عرش ته لاره۔ پاك دے الله او اُوچت دے د هغے نه |
| يَقُولُونَ عُلُوًّا كَبِيرًا ﴿٤٣﴾ تُسَبِّحُ لَهُ السَّمَاوَاتُ السَّبْعُ وَالْأَرْضُ |
| چه وائی دوی په اُوچتوالی ډیر سره۔ پاکی وائی هغه لره آسمانونه اُووه او زمکه |
| وَمَن فِيهِنَّ وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ |
| او هغه څوك چه پدے کښې دی او نشته هیڅ شے مګر پاکی وائی سره د صفتونو د هغهٔ نه |
| وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴿٤٤﴾ |
| لیکن تاسو نهٔ پو هیږئ په تسبیح د هوی، یقیناً الله تعالیٰ صبرناك دے، بخونکے دے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کریمه کښې د هغه عربو مشرکانو رد دے چه ملائك به ئے د الله لونړهٔ ګنړلے او د هغوی عبادت به ئے کولو حال دا چه هغه خو د الله بندګان دی، چه هغه الله د

خپلے تسبيح او تحميد او نورو کارونو د عالَم دپاره پيدا کړيدی۔
الله فرمائی چه آيا هغه ستاسو دپاره د تولو نه غوره اولاد يعنی هلك خوښ کړيدے او خپل ځان دپاره ئے خکته اولاد يعنی لونړهٔ خوښے کړيدی، چه هغه تاسو د خپل ځان دپاره نهٔ برداشت کویٔ بلکه ژوندیٔ ئے په خاورو کښ خخویٔ ؟
دا څومره د عقل او حکمت نه خلاف خبره ده چه مالك خپلو غلامانو ته د تولو نه غوره شے ورکړی او ځان له ناقص شے خوښ کړی۔ حقيقت دا دے چه د بندګانو د خُلو نه د خپل خالق او مالك په باره کښ دا خبره ډيره بده ده، چه يو خو د الله دپاره اولاد ثابتوی، او هغه هم داسے اولاد چه دوی خپل ځان دپاره نهٔ خوښوی۔
او د ملائکو په باره کښ ئے دا غلطه عقيده وه چه دا زنانه دی او بيا د الله لونړه دی، او بيا ئے دا وئيل چه زمونږ دپاره لونړه نيے نهٔ دی او زمونږ دپاره بد شے دے۔
قَوْلًا عَظِيمًا: اَیْ بِاِعْتِبَارِ الْقُبْحِ۔ يعنی د قباحت او بدیٔ په اعتبار سره ډيره لويه خبره ده۔
وَلَقَدْ صَرَّفْنَا : الله تعالیٰ قرآن کريم ته ترغيب او معرضينو د قرآن ته زجر ورکوی بيا رد کوی په شرك باندے، بيا معرضين د قرآن او د هغوی د آخرت نه انکار بيانيږی۔
د (صَرَّفْنَا) دپاره ئے مفعول نهٔ دے ذکر کړے (اَیِ الْعِبَرَ وَالْاَمْثَالَ وَالْحُجَجَ)
يعنی مونږ په قرآن کريم کښ عبرتونه او مثالونه او ډير دليلونه د حق د اثبات دپاره بيان کړيدی دا ددے دپاره چه خلق نصيحت حاصل کړی، الله طرف ته رجوع وکړی، او د شرك د تمامو اقسامو نه د پاك کيدو عقيده وساتی ليکن د کافرانو حال دا دے چه دوی قرآن اوری نو خفه کيږی او د حق نه اعراض کوی۔
تصريف : بيانولو او بار بار ذکر کولو ته وئيلے شی۔ يعنی په قرآن کريم کښ قسماقسم طريقو سره بيان د عبرتونو او حکمونو او دليلونو او قصو او اخبارونو او اوامرو او نواهيو شويدے۔
لِيَذَّكَّرُوْا: ځکه چه څوك د وعيد نه عبرت اخلی او څوك د وعد نه، او څوك د قصے نه او څوك د امر او نهی نه، او څوك د اخلاقو او آدابو نه۔
نُفُوْرًا: (اَیْ نُفُوْرًا عَنْ تَوْحِيْدِ اللّٰهِ) د الله تعالیٰ د توحيد نه ئے نفرت زياتوی۔ (وَتَبَاعُدًا عَنِ الْحَقِّ وَغَفْلَةً عَنِ النَّظَرِ فِی الصَّوَابِ) يعنی وراندے والے د حق نه او غفلت کول د فکر کولو نه په حق کښ۔ ځکه چه د دوی عقيده ده چه قرآن جادو او کهانت او شعر دے۔ (القرطبیؒ)
سفيان ثوریؒ چه به کله دا آيت لوستلو نو روستو به ئے ورسره داسے وئيل : (زَادَنِیْ لَكَ

خُضُوعًا مَا زَادَ اَعْدَاءَ كَ نُفُوْرًا) مـا تـه ستا هغه کتاب ستا دپاره عاجزی زیاتوی کوم چه ستا دشمنانو لره نفرت زیاتوی)۔ (فتح البیان)

**قُلْ لَّوْ كَانَ :** ربط :

دا د مخکښې نفرت بیان دے چه په قرآن سره د دوی نفرت د توحید نه زیاتیږی نو دلته د هغې تردید بیانوی په ذکر کولو د عاجز والی د باطلو معبودانو۔

**لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِى الْعَرْشِ سَبِيْلًا :** دے کښې دوه مصداقه دی۔ (۱) سَبِيْلَ الْجِدَالِ۔ یعنی که د دوی د معبودانو د الله تعالیٰ سره په الوهیت کښې څه برخه وے نو دوی به د الله تعالیٰ نه چه خاوند د عرش دے د خپلې برخې مطالبه کولے او پدے سره به ضرور د دوی جدال (جګړه) پیدا کیدلے لکه په سورة المؤمنون (۹۱) آیت کښې دی ﴿ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ﴾ بعض به په بعضو باندے غالبه کیدلے۔ دا تفسیر هلته ښه لګی ځکه چه هلته جدا مثال دے۔

ابن عباس ﷺ ددے نه داسے تعبیر کړیدے : [لَـطَـلَبُوْا مَعَ اللّٰهِ مُنَازَعَةً وَقِتَالًا كَمَا تَفْعَلُ مُلُوْكُ الْاَرْضِ بَعْضُهُمْ بِبَعْضٍ] (القرطبی) یعنی خامخا دوی به د الله سره جګړه طلب کړے وے لکه څنګه چه د دنیا بادشاهان په یو بل باندے حمله کوی۔

(۲) حافظ ابن القیمؒ په ((بدائع التفسیر)) کښې دا غوره کړیده چه دلته د سبیل نه مراد (سَبِيْلُ الْقُرْبَةِ وَالزُّلْفٰى) دے۔ او دا تفسیر د قتادةؒ دے، کما قال القرطبیؒ۔ یعنی مشرکانو به دا وئیل چه مونږ ددے معبودانو عبادت ددے دپاره کوو چه الله تعالیٰ ته پرے ځان نزدے کوو او دوی به زمونږ سفارش کوی او سفارش والا الله ته نزدے وی (لکه دوی به دا عقیده ساتله چه د دوی بتان الله ته محتاج دی) نو الله فرمائی هرکله چه ستاسو آلهه هم الله تعالیٰ ته ځان نزدے کوی نو تاسو له هم پکار ده چه راشئ او الله ته ځان نزدے کړئ په توحید او عبادت سره۔ او هرکله چه څوك نزدیکت طلب کونکے وی نو هغه خو عاجز وی نو اِلٰه نشی کیدے۔ او ددے توجیه غوره والے د روستو (۵۷) آیت نه هم معلومیږی چه په هغې کښې د مشرکانو د نیکانو معبودانو ذکر دے۔ او بل لفظ د (كَمَا يَقُوْلُوْنَ) هم پرے دلیل دے۔

او ددے توجیه مطلب دا دے چه اول خو د الله تعالیٰ سره بل اِلٰه نشته او که بالفرض راشی بیا به هم الله ته عاجزی کوی نو اِلٰه به پاتے نشی۔ نو په هر حال کښې شریك د باری تعالیٰ ممتنع دے۔ او په آسمان او زمکه کښې د هغه نه سوئ هیڅ معبود نشته چه د هغهٔ بندګی وکړے شی او د الله تعالیٰ او د بندګانو ترمینځ واسطه جوړه شی۔

صاحب د فتح البیان اول تفسیر غوره کړیدے۔
سُبۡحَانَهٗ وَتَعَالٰی : یعنی هر کله چه د الله سره نور آلهه نشته او دا نسبت کول هغه ته عیب دے او هغه د تمامو عیبونو او نقصانونو نه پاك دے، او مشرکان چه وړسے څه وائی د هغې نه ډیر اوچت دے۔
تُسَبِّحُ لَهُ السَّمَاوَاتُ: دا د الله د لوی والی دلیل دے۔ یعنی ټول آسمانونه او زمکے او په هغې کښې موجوده مخلوقات د الله پاکی بیانوی او د هغه ټولو عیبونو او نقصانونو نه هغه پورته او اوچت ګنړی کوم چه مشرکان هغهٔ طرف ته منسوب کوی، او ټول په ټوله ددے خبرے ګواهی ورکوی چه په صفت د ربوبیت او الوهیت کښې د هغهٔ شریك نهٔ دی۔
ابن جریرؒ دلته لیکلی دی: (وَاَنۡتُمۡ تَفۡتَرُوۡنَ عَلَیۡهِ اَیُّهَا الۡمُشۡرِکُوۡنَ) کائنات د الله تسبیحات بیانوی او تاسو پرے دروغ جوړه وئ اے مشرکانو !۔

## د هر شی تسبیح څنګه ده؟

وَاِنۡ مِّنۡ شَیۡءٍ اِلَّا یُسَبِّحُ بِحَمۡدِهٖ: د زیات تاکید په توګه فرمائی چه هر شے د الله تسبیح بیانوی، حیوانات، بوټی او جمادات ټول د هغهٔ تسبیح بیانوی، لیکن خلق د هغوی په تسبیحاتو نهٔ پو هیږی۔ حافظ ابن کثیرؒ په خپل تفسیر کښې او راغب اصفهانیؒ په خپل کتاب ((المفردات)) کښې همدے رائے ته ترجیح ورکړیده۔
دے کښې بعض مفسرین دا وائی چه دا په حقیقةً تسبیح باندے حمل نهٔ دے بلکه مقصد دا دے چه آسمان او زمکه او ټول کائنات د الله په تسبیح ګواه دی یعنی تسبیح حالی ده نهٔ تسبیح مقالی۔ دا معنیٰ به هله صحیح وی چه تسبیح قولی هم ورسره ومنلے شی۔ ټول مخلوق کښې الله تعالیٰ د خپل ذکر شعور اچولے دے، رسول الله ﷺ به د کاڼرو ذکر آوریدو او صحابه کرامو د کاسے نه او نوړیٔ نه تسبیحات آوریدلی دی، او د ونے ژړائے آوریدلے ده۔ الله تعالیٰ په هر شی قادر دے۔ په جبل اُحد کښې الله تعالیٰ دا شعور اچولے وو چه رسول الله ﷺ فرمائی : دا غر مونږ سره مینه کوی او مونږ د هغه سره مینه کوو. (صحیح بخاری: ۱۴۸۲) او د یو حدیث نه معلومیږی چه یو غر په بل غر باندے فخر کوی چه کله پرے کوم ذاکر تیر شی۔ (وفی سنده مقال) او دا خبره علاء الدین الخازنؒ په خپل ((تفسیر الخازن)) کښې په ګڼړو احادیثو سره ثابته کړیده چه دا تسبیح په خپل عموم او حقیقت باندے بناء ده۔ او دلیل پرے ﴿ وَلٰکِنۡ لَّا تَفۡقَهُوۡنَ تَسۡبِیۡحَهُمۡ ﴾ هم دے څکه چه په تسبیح الدلالة خو هر

خوك پوهیږي. یعنی دا علم خو عامو مؤمنانو شته چه دا ټول څیزونه د الله په تسبیح او پاکئ باندې دلالت کوي. او د قرآن نور آیتونه هم دلیل دے ﴿إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ﴾ (ص: ۳۸) (مونږ د داود علیه السلام سره غرونه تابع کړي وو چه بیګا او صبا به ئې تسبیحات ونیل) (فتح البیان)

وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ : دا وروسته څکه ذکر کوي چه پدے کښې د مشرکانو توبیخ او رټنې ته اشاره کوي چه دوی د الله د شریکانو پسے روان دی حال دا چه دغه شریکان هم د الله تسبیح وائی نو اے مشرکانو ! ستا معبودان هم د الله تسبیح وائی، الله ته محتاج دی نو څنګه به د الله سره شریکان جوړ شي، حقیقت دا دے چه تاسو لوی بې وقوفه یئ.

إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا : دا وروسته څکه وائی چه ستاسو د کفر او سرکشئ تقاضا دا ده چه په تاسو باندے په جلتئ عذاب نازل شی لیکن الله تعالیٰ ډیر حلیم (صبرناك) ذات دے، امتحاناً ئې درته صبر کړیدے. او غفور دے چه که څوك د هغهٔ په دربار کښې عاجزی کوی او د خپلو ګناهونو معافی غواړي نو هغه ئې معاف کوی. پدے کښې هم دوی ته دعوت دے.

| وَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِينَ |
|---|
| او کله چه لولې ته قرآن لره ګرځوو مونږ په مینځ ستا او په مینځ د هغه کسانو کښې |
| لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ حِجَابًا مَّسْتُورًا ﴿٤٥﴾ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً |
| چه ایمان نهٔ لري په آخرت پرده پټه.او ګرځولی دی مونږ په زړونو د دوی پردے |
| أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا وَإِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ |
| چه پوهه نشي په قرآن، او په غوږونو د دوی کښې بوج لره او کله چه یاد کړے ته رب خپل |
| فِي الْقُرْآنِ وَحْدَهُ وَلَّوْا عَلَىٰ أَدْبَارِهِمْ نُفُورًا ﴿٤٦﴾ |
| په قرآن کښې په یو والی سره نو واوړی دوی په شاګانو خپلو نفرت کونکی. |

**تفسیر**: دا په مخکښې آیت کښې د ذکر شوی نفرت بیان دے.

پدے آیت کریمه کښې الله تعالیٰ خبر ورکړیدے چه نبی کریم ﷺ کله د قرآن کریم تلاوت کوی نو کوم مشرکان چه په ورځ د قیامت ایمان نهٔ لري هغوی ددے نه هیڅ فائده نهٔ حاصلوی. د دوی کفر او تمرّد او د قرآن نه د تغافل (ځان غافل کولو) په وجه الله تعالیٰ د

رسول الله ﷺ او د دوی ترمینځ یوه پرده حائل کوی چه د هغے په وجه دوی رسول الله ﷺ نهٔ وینی۔

## شان نزول

حافظ سیوطیؒ لیکلی دی چه دا آیت د هغه مشرکانو په باره کښې نازل شوے وو چه د رسول الله ﷺ قتل کول ئے غوختلی وو لکه ابوجهل او د ابولهب ښځه ام جمیل وغیره۔

اَلْقُرْآنَ : او دلته د قرآن نه مراد یا خو مطلق دے، یا د سورة النحل، الکهف او الجاثیه مشهور درے آیتونه : ﴿ أُولٰئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ ﴾ (النحل :۱۰۸) ﴿ جَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ يَّفْقَهُوْهُ ﴾ (الکهف :۵۷) ﴿ أَفَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلٰهَهٗ هَوَاهُ وَأَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ ﴾ (الجاثیه : ۲۳) خطیبؒ لیکلی دی چه ددے آیتونو د برکته الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ لره د مشرکانو د سترګونه پټ کړے وو۔

قرطبیؒ ددے آیتونو سره د سورة یس ابتدائی آیتونه ﴿ فَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ﴾ پورے اضافه کړیده، ځکه چه د روایاتو نه ثابته ده چه د هجرت په شپه د خپل کور نه د وتلو په وخت نبی ﷺ ددے آیتونو تلاوت کولو او د دشمنانو په سرونو ئے خاورے اچولے او اُووتو او هیچا هغه لره ونهٔ لیدو۔ (فتح البیان)

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ : دا آیت دلیل دے چه د قرآن نه هغه څوك فائده نشی اخستے چه په آخرت باندے ایمان نهٔ لری، او د آخرت نه ئے یره نهٔ وی، الله به ئے ترے محرومه کوی۔ نو د مؤمنانو ایمان شته نو هغوی ترے فائده اخلی، څوك ډیر یریږی نو ډیره فائده اخلی او څوك لږ نو لږه۔

حِجَابًا مَّسْتُوْرًا : ۱- مستور په خپله معنیٰ دے أَيْ مَسْتُوْرًا عَنِ الْعِبَادِ ۔ د خلکو نه پټه کړے شوے پرده ده۔ یعنی د بی ایمانه انسان او د قرآن ترمینځ الله تعالیٰ لویه پرده اچولی وی چه هیڅ فائده د قرآن نه نشی اخستے۔ ۲- دا تاویل کول چه مستور په معنیٰ د ساتر (پټونکی) سره دے لکه اخفشؒ وئیلی دی چه فاعل کله د مفعول په لفظ سره راځی نو دا د قرآن کریم ظاهر پریخودل دی۔

او د حِجَابًا مَّسْتُوْرًا مطلب دا دے : يَحْجِبُ قُلُوْبَهُمْ عَنْ فَهْمِهٖ وَالْاِنْتِفَاعِ بِهٖ) (فتح البیان) یعنی الله تعالیٰ د دوی زړونه د قرآن د پوهے نه او د هغے نه د فائدے اخستو نه آړوی۔

او څوك چه په آخرت ایمان لری نو الله تعالیٰ ورله په زړونو کښې استعداد اچوی نو د

هغے په وجه د قرآن رڼرا پکښې پریوزی او پو هیږی او فائده ترے اخلی۔ او چه په آخرت ئے
ایمان نهٔ وی نو زړهٔ خراب شی او استعداد ئے ختم شی۔

وَجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ : دا تشریح شوه د مخکښې (حِجَابًا مَّسْتُوْرًا) دپاره۔ یعنی الله تعالیٰ
د کافرانو په زړونو باندے ډیره پیره پرده اچوی دے دپاره چه دوی قرآن باندے پو هه نشی او
د دوی غوږونه کڼروی بوج پکښې اچوی دے دپاره چه دوی قرآن وانهٔ وری۔ او دا څکه چه دا
خلك د ضد او عناد په وجه الله تعالیٰ نهٔ غواړی چه خپل پاك کلام باندے دوی پو هه کړی
او د هغے نه فائده واخلی۔ دا د دوی د ضد سزا شوه لکه د خَتَمَ اللهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ په شان۔

اَنْ يَّفْقَهُوْهُ : اَیْ كَرَاهَةَ اَنْ يَّفْقَهُوْهُ/ لِئَلَّا يَفْقَهُوْهُ۔ دے دپاره چه پو هه نشی۔

وَاِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ فِي الْقُرْاٰنِ : د کافرانو یو بد ترین خصلت دا هم وو چه دوی الله
تعالیٰ سره د خپلو بتانو ذکر هم آوریدل خوښول، پدے وجه په کوم مجلس کښې چه به
صرف د الله نوم یادیدو نو هغه به ئے نهٔ خوښولو او هلته نه به تلل۔ او دا د مخکښې (وَمَا
يَزِيْدُهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا) تشریح ده۔ په مشرکانو باندے په هره زمانه کښې توحید ډیر بد لګی او
دے ته تنکیږی۔

ددے وجه نه ابو الجوزاۂ ددے آیت لاندے وئیلی دی چه (اَلشَّيْطَانُ لَا يَفِرُّ مِنَ الْقَلْبِ اِلَّا بِلَا
اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ) شیطان د زړه نه په لا اله الا الله وئیلو سره تښتی څکه چه هغه هم مشرك دے،
د توحید سره ئے سخت ضد دے۔

| |
|---|
| نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُوْنَ بِهٖٓ اِذْ |
| مونږ ښهٔ پو هیږو په هغه نیت چه دوی غوږ ږدی په هغے سره کله چه |
| يَسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ وَاِذْ هُمْ نَجْوٰٓى اِذْ يَقُوْلُ الظّٰلِمُوْنَ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ |
| دوی غوږ ږدی تا ته او کله چه دوی جرګے کوی کله چه وائی ظالمان تابعداری نکوئ تاسو |
| اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا ﴿٤٧﴾ اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ |
| مګر د هغه سړی چه جادو پرے شویدے۔ اُوګوره چه څه رنګ بیانوی دوی ستا دپاره |
| الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا ﴿٤٨﴾ وَقَالُوْٓا ءَاِذَا |
| مثالونه (بد) پس ګمراه شو نو طاقت نهٔ لری دوی د سمے لارے۔ او وائی دوی آیا کله چه |

| كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَ إِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿٤٩﴾ قُلْ |
|---|
| شو مونږ هډوکي او ذره ذره، آیا مونږ به ژوندي کړے شو په پیدائش نوي سره۔ اُووایه |
| كُوْنُوْا حِجَارَةً أَوْ حَدِيْدًا ﴿٥٠﴾ أَوْ خَلْقًا مِّمَّا يَكْبُرُ فِيْ صُدُوْرِكُمْ |
| شئ کانړي یا اُوسپنه یا بل مخلوق د هغے نه چه لوئي ښکاره کیږي په سینو ستاسو کښ |
| فَسَيَقُوْلُوْنَ مَنْ يُّعِيْدُنَا قُلِ الَّذِيْ |
| نو زردے چه وائي به دوي څوک دے چه دوباره به مونږ راژوندي کړي، ته اُووایه هغه ذات |
| فَطَرَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَسَيُنْغِضُوْنَ إِلَيْكَ رُءُوْسَهُمْ وَيَقُوْلُوْنَ |
| چه پیدا کړي یئ تاسو اول ځل نو زردے چه ویه خوزوي دوي تا ته سرونه خپل او وائي به |
| مَتٰى هُوَ قُلْ عَسٰى أَنْ يَّكُوْنَ قَرِيْبًا ﴿٥١﴾ يَوْمَ |
| چه کله به وي دا، ته اُووایه نزدے ده چه وي به دا نزدے۔ په کومه ورځ چه |
| يَدْعُوْكُمْ فَتَسْتَجِيْبُوْنَ بِحَمْدِهٖ |
| آواز به وکړي تاسو ته نو تاسو به قبول والے وکړئ (د هغه د حکم) سره د حمدو ثیلو د هغه نه، |
| وَتَظُنُّوْنَ إِنْ لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيْلًا ﴿٥٢﴾ |
| او ګمان به کوئ تاسو چه نه وئ ایسار شوي تاسو مګر لږه موده۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښ زجر دے په انکار د رسول سره۔ مشرکان به کله نا کله راتلل د رسول الله ﷺ بیان به ئے آوریدو او د شپے د تهجدو په وخت کښ به پټ پټ راتلل چه دا څه وائي نو الله تعالیٰ هغه حالت بیانوي چه که مشرکان کله قرآن آوري هم نو خپل مینځ کښ په ناسته سره ددے پورے توقے کوي، یا چه به روستو د یو بل سره ملاؤ شو نو وئیل به ئے دا چه دا خو صحیح خبرے نه دي بلکه جادو دے۔ یعني د دوي مقصد د علم او معرفت حاصلول او حق پیژندل نه وي۔

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُوْنَ : یعني مونږ پوهیږو په هغه حال او هغه نیت چه دوي غوږ ږدي قرآن ته په هغے چه هغه حال او نیت د تکذیب، اعتراض او د لغو او سپکوالي او توقو دے په تا او په قرآن پورے۔ نو سخته سزا به ورکړم۔

وَإِذْ هُمْ نَجْوٰى : یعنی دوی د رسول الله ﷺ پورې په مجلس کښې هم توقې کولې او بیا به روستو په خپل مینځ کښې کیناستل او دا توقې به ئې کولې او دا فتویٰ به ئې لګوله چه دا خو جادو دے۔

إِنْ تَتَّبِعُوْنَ إِلَّا رَجُلًا : یعنی یو بل ته وائی چه تاسو که ددهٔ پسے روان شئ نو تاسو به د یو جادوګر پسے روان شئ۔ مقصد ئې منع کول وو چه د جادوګرو پسے خلك نهٔ روانیږی۔ او همدا صحیح مطلب دے۔ بعض وائی چه دا خطاب وو مؤمنانو ته چه تاسو خو د جادوګرو پسے روان یئ۔

مَّسْحُوْرًا : ۱- یعنی جادو پرے شویدے چه د هغے په وجه سره په دهٔ باندے لیونتوب راغلے دے او عقل ئې خراب شویدے او ګډے وډے خبرے کوی۔ (العیاذ بالله)

۲- ابن الاعرابیؒ وائی : مسحور ذَاهِبُ الْعَقْل ته وائی یعنی چه عقل ئې خراب شوے وی۔

۳- مسحور کله په معنیٰ د مَخْدُوْع (دوکه کړے شوی) سره وی، ځکه چه جادو هم چل او دهوکه وی، لکه د دوی دا عقیده وه چه محمد (ﷺ) د بعض خلکو نه زده کړه کوی او هغوی دهٔ لره پدے تعلیم سره دهوکه کوی۔

٤- ابوعبیدةؒ وائی : ذُوْ سُحْرِيَةٍ ۔ هغه شخص چه پرپوس لری یعنی خوراك څکاك کوی، مطلب ئې دا وو چه دے ستاسو په شان دے۔ (ابن قتیبةؒ پدے تاویل باندے رد کړیدے)

## تنبیه او د اشکال جواب

دا آیت د بعض جاهلانو دپاره فتنه ګرځیدلے ده، په صحیح حدیث د بخاری باب السحر (٥٠) رقم (٥٧٦٦) کښې راغلی دی چه په رسول الله ﷺ باندے جادو شوے وو، د دنیاوی کارونو په باره کښې دومره اثر پرے شوے وو چه بیبیانو سره به ئې نزدیکت کړے وو دا ګمان به ئې وو چه نهٔ ئې دے کړے۔ او بل طرفته صحیح احادیث موجود دی چه جادو اثر کوی۔

نو ځینی پکښې وائی چه په نبی کریم ﷺ جادو نهٔ وو شوے، او بعض پکښې وائی چه جادو د سَرَه اثر نکوی۔ دوی ته تعارض ښکاره کیږی چه که مونږ ومنو چه په رسول الله ﷺ جادو شویدے بیا خو د کافرانو خبره صحیح کیږی چه په رسول الله ﷺ جادو شویدے او که په نبی کریم ﷺ باندے جادو ونهٔ منو نو بیا به حدیث رد کوے۔ نو ډیر پکښې د حدیث نه منکر شو۔ او پخوانی مفسرین په آیت کښې دغه مخکښې تاویلات کوی۔ لیکن حقه دا ده چه مسحور په خپله اوله معنیٰ باندے دے او د مشرکانو مطلب

جدا دے او حدیث کښې جدا سحر دے۔

د مشرکانو مطلب دا وو چه دے شخص باندے چا جادو کړیدے چه د هغے په وجه ئے ورله دماغ خراب کړیدی، لیونے شویدے، عقل ئے کار نکوی ځکه په دعوت الی الله باندے شپه او ورځ لګیا دے، ستړے کیږی نۀ، او نۀ خپل عزت ته ګوری او دا کار ورته د لیونو ښکاره کیدو۔ او دوی دا په مکه کښې وئیلی وواو په رسول الله ﷺ باندے جادو په مدینه کښې شوے وو۔ دویم دا چه په هغه جادو باندے د رسول الله ﷺ دماغ نۀ وو خراب شوی بلکه هرڅه ئے برابر وو صرف په یاداشت کښې ئے معمولی شان فرق راغلے وو او د خپلو بیبیانو نه ئے بند کړے وو، یعنی (سحر الربط) پرے شوے وو۔ یهودو پرے کړے وو ځکه چه هغوی له غصه ورتلله چه دا نبی څنګه زیر ودونه کوی، نو هغه جادو د یوے بیمارئ په درجه کښې وو، او په دعوت د دین کښې ئے هیڅ نقصان نۀ وو راغلے، د جُمعے خطبه به ئے ورکوله او صحابه کرامو ته به ئے مونځونه کول۔ نو د مشرکانو مطلب دا وو چه دا لیونے دے او حدیث کښې دا دی چه رسول الله ﷺ باندے د جادو په وجه یوه بیماری راغلے وه۔ او پدے دوارو خبرو کښې د زمکے او د آسمان فرق دے که څوک پو هیږی۔

**اُنظُرۡ كَيۡفَ ضَرَبُوۡا لَكَ الۡاَمۡثَالَ:** الله تعالیٰ د دوی پدے قول باندے د تعجب کولو په توګه وو ئیل چه ته دے ظالمانو ته وګوره چه دوی ستا دپاره غلط مثالونه (یعنی صفتونه) بیانوی، تا ته شاعر، ساحر او مجنون وائی۔

**فَضَلُّوۡا فَلَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ سَبِيۡلًا :** نو دوی د حقے لارے نه بالکل اوړیدلی دی، او حق ته د رسیدلو هیڅ لاره نۀ مومی۔ ځکه چه د هدایت او حق لاره صرف د رسول الله ﷺ وه او په هغے چه چا اعتراض وکړو نو د هدایت لاره ئے بنده شوه، ځکه چه په نبی اعتراض وکړی نو هدایت به ورته د کوم ځای نه وشی؟۔

یا مطلب دا دے چه دا خلق په تا کښې داسے کوم عیب نشی راویستے چه دنیا ئے ومنی۔ یا لاره ترے ورکه شویده ځکه مختلفے فتوے لګوی چه ساحر، کاهن، مجنون او شاعر دے۔

**وَقَالُوۡا ءَ اِذَا كُنَّا عِظَامًا :** ربط :

مخکښې د توحید او د رسالت په باره کښې د مکے د مشرکانو د شبهاتو رد وشو اُوس د بعث بعد الموت په باره کښې د هغوی شبهات رد کیږی۔ دوی به وئیل چه سړے کله مړ شی نو د هغه هډوکی ذره ذره شی دا خبره د عقل نه لرے ده چه د مخکنی جسم اجزاء

دوباره را جمع شی او په هغې کښې ژوند راواپس شی؟ الله تعالیٰ د دوی په جواب کښې وفرمایل چه مړ بدن دویم ځلې جوړول، پدې کښې ژوند راوستل زمونږ دپاره ډیر آسان دی، اګر که د هغه بدن نه د ژوند آثار د کاڼړی یا د اوسپنې په شان ولې نهٔ وی ختم شوی، یا د بل کوم شی په شان چه د هغې ژوندی کیدل ستاسو په نیز ممکن نهٔ وی. الله تعالیٰ چه کله غواړی نو هغه به ژوندے کوی او هیڅ شے به د هغهٔ مخے ته مانع نهٔ جوړیږی.

وَرُفَاتًا : رفات هغه شی ته وائی چه زوړ شی او مات رامات (ذره ذره) شی. ابن عباسؓ فرمائی: رفات غبار ته وائی. بعض وائی خاورے ته. او ځینی وائی چه رفات هغه شی ته وئیلے شی چه د هغه په ټکولو او ذره ذره کولو کښې مبالغه شوی وی نو بیا دا نوم دے د هغه اجزاؤ ذره کړے شوو. (فتح البیان)

فَسَيَقُولُونَ مَنْ يُعِيدُنَا : مشرکانو پدے جواب باندے هیڅ اعتراض نشو کولے نو وے وئیل چه مونږ به څوك ژوندی کوی، د الله تعالیٰ قدرت ورته ناشنا بنکاره کیدو؟! الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته وفرمایل چه تهٔ ووایه چه کوم ذات تاسو اول ځل پیدا کړی یئ نو هغه یقیناً ستاسو په دویم ځلی پیدا کولو قادر دے.

إِلَيْكَ رُءُوسَهُمْ : نو دوی به د حیرانتیا او تعجب او استهزاء نه دك انداز کښې خپل سرونه وخوزوی چه دا به کله وی؟ یعنی ددے دلیل مقابله ئے نشوه کولے نو بس صرف مطالبے وے. نو الله تعالیٰ جواب ورکړو چه هغه ورځ نزدے ده، کله چه به تاسو الله تعالیٰ راوبلی نو تاسو به فوراً د هغه جواب ورکړئ. یعنی د مړو په دویم ځلی راژوندی کولو کښې به د الله نه وخت نهٔ لګیږی.

يَوْمَ يَدْعُوكُمْ : اَیْ مِنْ قُبُوْرِكُمْ . یعنی الله تعالیٰ به تاسو ته آواز وکړی او تاسو به د قبرونو نه راووبلی د جبریل عليه السلام او د اسرافیل عليه السلام په واسطه سره لکه په سورة ق آیت (٤١) کښې راغلی دی: ﴿ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَكَانٍ قَرِيبٍ ﴾ چه په کومه ورځ به یو آواز کونکے د نزدے نه آواز وکړی. داسے آواز به کوی: [اَيَّتُهَا الْعِظَامُ الْبَالِيَةُ وَاللُّحُوْمُ الْمُتَمَزِّقَةُ هَلُمُّوْا اِلٰى عَرْضِ الرَّحْمٰنِ]. اے زړو هډوکو ! او ذره ذره شوو غوښو د الله پیښی ته راشئ.

فَتَسْتَجِيبُونَ : یعنی کله چه تاسو راژوندی کیږئ نو د الله پاکی او حمدونه به بیانوئ، دا به کافران هم بیانوی او مؤمنان هم.

وَتَظُنُّونَ إِنْ لَبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا : یعنی تاسو به ګمان کوئ چه تاسو په دنیا کښې یا په قبر کښې ډیر کم ژوند تیر کړیدے. او دا ځکه چه کله دوی د قیامت هیبت او دهشت وینی نو

دنیا به دوی ته په سترګو سپکه او کمه ښکاره شي نو دغه وخت کښې به دا خبره وکړي۔
(قتادة) (فتح)

| وَقُلْ لِعِبَادِيْ يَقُوْلُوا الَّتِيْ هِيَ أَحْسَنُ إِنَّ الشَّيْطَانَ |
|---|
| او اُووایه بندګانو زما ته چه وائي دِے هغه خبره چه هغه ښائسته وي یقیناً شیطان |
| يَنْزَغُ بَيْنَهُمْ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلْإِنْسَانِ عَدُوًّا مُّبِيْنًا ﴿۵۳﴾ |
| فساد (وسوسه) اچوي په مینځ د دوی کښې، یقیناً شیطان دے انسان دپاره دشمن ښکاره۔ |
| رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِكُمْ إِنْ يَّشَأْ يَرْحَمْكُمْ أَوْ إِنْ |
| رب ستاسو ښهٔ پوهه دے په تاسو که اُوغواړي هغه رحم به وکړي په تاسو او که |
| يَّشَأْ يُعَذِّبْكُمْ وَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ﴿۵۴﴾ وَرَبُّكَ |
| وغواړي عذاب به درکړي تاسو ته او نهٔ یې لیږلے مونږ ته په دوی باندے ذمه وار۔ او رب ستا |
| أَعْلَمُ بِمَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَقَدْ فَضَّلْنَا |
| ښهٔ پوهه دے په هغه چا چه په آسمانونو او زمکه کښې دي او یقیناً غوره کړیدي مونږ |
| بَعْضَ النَّبِيِّيْنَ عَلٰى بَعْضٍ وَّآتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا ﴿۵۵﴾ |
| بعض پیغمبران په بعضو باندے او ورکړے وو مونږ داود (علیه السلام) ته زبور کتاب۔ |

**تفسیر**: پدے کښې بیان د ادب دے دپاره د بیان کونکو، مخکښې د منکرینو سرکشي او نفرت ذکر شو نو دلته وائي چه دا خلك خو نفرت کوي خو ته ورسره اخلاق استعمال کړه۔

مفسرین لیکي چه د مسلمانانو به کله نا کله د مکے د مشرکانو سره په توحید او شرك او رسالت او آخرت مسائلو باندے بحث کیدو نو مسلمانانو به کله سخت لفظ استعمالولو مثلًا د جهنم دهمکی به ئې ورکړه، پدے طرز د کلام سره به د کافرانو دشمنی نوره هم زیاته شوه۔ پدے وجه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته خطاب وکړو چه ته مسلمانانو ته نصیحت وکړه چه دوی کافرانو ته د اسلام د دعوت په وخت د خبرو انداز ښهٔ وساتي او سخت کلام نه دِے پرهیز وکړي، ځکه چه شیطان خو په انتظار کښې ناست دے چه کله به دهٔ ته د خلقو ترمینځ د شر پیدا کولو موقعه ملاویږي۔

او پدې آیت کښې قانون ذکر دے چه مؤمن به هر چا ته په نیکو اخلاقو راتلل کوی او کړے خبرے به نۀ کوی ځکه چه ددے نه شر پیدا کیږی برابره ده چه د مشرکانو سره خبرے کوی او که د مؤمنانو سره نو پدے کښې اصلاح د خبرو ده۔ لکه د (وَقُوۡلُوۡا قَوۡلًا سَدِيۡدًا) (وینا کوه وینا برابره) (احزاب : ٧٠) په شان۔

٢- دے کښې دویم تفسیر دا دے چه د عبادی نه مراد مشرکان دی او (الَّتِيۡ هِيَ اَحۡسَنُ) نه مراد کلمه د توحید ده، یعنی مشرکانو ته دعوت ورکړه چه دوی دِے کلمه د توحید ووائی، ورنه شیطان ستاسو دشمن دے۔ اول تفسیر ظاهر دے۔

رَبُّكُمۡ اَعۡلَمُ : دا خطاب دے مشرکانو ته چه الله تعالیٰ ستاسو د حقائقو نه ښۀ خبردار دے او ستاسو انجام هغۀ ته معلوم دے، که هغه وغواړی نو په تاسو به رحم وکړی او اسلام ته به مو راداخل کړی او د جنت مستحق به جوړ شئ او که وغواړی نو تاسو به د ایمان دولت نه محروم کړی، ستاسو مرګ به په شرك باندے وشی او تاسو به د قیامت په ورځ د عذاب مستحق شئ۔

٢- یا دا خطاب دے مؤمنانو ته او معنیٰ دا ده که الله تعالیٰ وغواړی نو رحم به درباندے وکړی، د کفارو نه به مو محفوظ کړی، یا به په توبه او ایمان باندے په تاسو رحم وکړی، یا که دعوت مو جاری ساتلو، او که وغواړی نو عذاب به درکړی چه کافران به درباندے مسلط کړی۔ یا که دعوت مو پریخودو سزا به درکړی او رسول الله ﷺ به تاسو نشی بچ کولے۔

٣- او ځینی وائی چه دا تفسیر د (الَّتِيۡ هِيَ اَحۡسَنُ) دے۔ یعنی هغه ښائسته خبره دا ده چه خلکو ته داسے ووایه۔ اول تفسیر ظاهر دے۔

وَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ عَلَيۡهِمۡ وَكِيۡلًا : یعنی مونږ تا لره د کافرانو د هدایت ذمه وار نۀ دے لیږلے چه تۀ به دوی خامخا په ایمان راوړو مجبوره کوے، تۀ خو زما رسول ئے، پیغام رسولو نه روستو ستا ذمه واری پوره کیږی۔

وَرَبُّكَ اَعۡلَمُ بِمَنۡ فِي السَّمٰوٰتِ : دا تسلی ده مؤمنانو ته۔ ١- یعنی په آسمانونو او زمکه کښې چه څو مره خیزونه دی، الله تعالیٰ د دوی نه ښۀ خبر دار دے، د دوی احوال او ضرورتونه په ښۀ شان پیژنی۔ څوك نیك بخت دے او څوك بدبخت، څوك ایمان اختیاروی او څوك کفر۔ دا ټولے خبرے الله تعالیٰ ته بالکل ښکاره دی۔ پدے وجه اے زما رسوله ! او مسلمانانو بندګانو! تاسو د کافرانو د ایمان نۀ راوړو غم مۀ کوئ او څه شے چه

ستاسو په اختيار کښې نشته دے د هغې دپاره زړه مه خفه کوئ، د اسلام د دعوت په سلسله کښې په تاسو باندې چه کومه ذمه واري ده هغه پوره کړئ، او د هغې د قبلولو يا رد کولو خبره الله ته حواله کړئ.

۲ - يا پدے کښې رد دے په مشرکانو باندے چه هغوی وئيلی وو چه د ابو طالب يو يتيم څنګه نبی جوړ شی او وړی او بربنډ خلك څنګه د هغه ملګری جوړ شی؟ (بيضاوی)

نو الله تعالیٰ پرے رد وکړو چه ستا رب په تمام مخلوق باندے ښهٔ عالم دے د هغوی نه چه چا له غواړی نبی او نيك جوړوی په هغه باندے اعتراض نشته لکه داسے کار الله تعالیٰ په پخوانو انبياؤ کښې هم کړيدے چه هغوی ته ئے مختلفې مرتبې ورکړے وے او د هغوی د غوره والی سبب نبوت او کتاب وو، نهٔ ظاهری دنيا او بادشاهی، پدے وجه ئے د داود علیه السلام په صفت کښې زبور کتاب ذکر کړو. اشاره ده چه هغه ته غوره والے د هغهٔ د کتاب په وجه ورکړے شوے وو نهٔ دا چه صرف بادشاه وو.

او ددے ربط د مخکښې (اِنْ يَّشَاْ يَرْحَمْكُمْ) سره هم دے. يعنی الله تعالیٰ په بندګانو رحم کوی د هغوی دپاره انبياء او رسولان (عليهم السلام) راليږی، او ددے ذمه وارئ دپاره چه څوك غواړی هغه غوره کوی، هغه خبردار دے چه د نبوت د مرتبے څوك اهل دے.

او بيا هغه د انبياؤ په مابين کښې په مراتبو کښې فرق کړيدے، موسیٰ علیه السلام ته ئے تورات ورکړے او خپل کليم ئے جوړ کړے، او عيسیٰ علیه السلام ته ئے انجيل او داود علیه السلام ته ئے زبور ورکړے او په نورو انبياؤ باندے ئے دوی غوره کړيدی، او نبی کريم ﷺ ته ئے د قرآن کريم په شان لوئی مرتبے والا کتاب ورکړے او ددے په وجه ئے دهٔ ته په ټولو انبياؤ باندے فضيلت ورکړے.

وَآتَيْنَا دَاوُدَ زَبُوْرًا : دا جمله ئے راوړه پدے کښې د رسول الله ﷺ د نبوت رښتينوالے ثابتوی چه مونږ خو پخوانو انبياؤ ته کتابونه ورکړيدی او داود علیه السلام ته مے زبور کتاب ورکړے وو (فَلِمَ يُنْكِرُ الْمُشْرِكُوْنَ نُبُوَّتَكَ] نو بيا ولے مشرکان ستا د نبوت نه انکار کوی او دا ناشنا ګڼړی.

او ((زبور)) ئے خاص پدے وجه هم ذکر کړو چه پدے کښې د نبی کريم ﷺ او د هغه د ملګرو صفات بيان شويدی، او پدے کښې دے ته هم اشاره ده چه لکه څنګه چه الله تعالیٰ داؤد ته زبور ورکړو او هغه ئے د هغه دور په تمامو انسانانو غوره کړو، دغه شان هغه د عربو نه محمد ﷺ د خپل آخری نبی په توګه غوره کړو چه په خپلے زمانے والو کښې د ټولو نه

زیات عقل او کمال والا وو، او د هغه د امانت او صدق چرچه په توله دنیا د عربو کښې وه۔
او دارنګه پدې کښې رد دے په ګمان د یهودیانو چه هغوی به وئیل چه د موسیٰ ؈ نه روستو نبی نشته او د تورات نه روستو بل کتاب نشته نو الله پدے وینا سره دوی دروغجن ثابت کړل۔ (فتح البیان)

| قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ |
|---|
| اُووایه را اُوبلئ: هغه کسان چه ګمان کوئ تاسو (چه دا د الله شریکان دی) سوئ د الله نه |
| فَلَا يَمْلِكُوْنَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا ﴿۵۶﴾ اُولٰٓئِكَ |
| نو اختیار نهٔ لری د لرے کولو د تکلیف ستاسو نه او نهٔ د اړولو (آسانولو)۔ دا |
| الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ اَيُّهُمْ |
| هغه کسان دی چه دعاګانے غواړی، لټوی رب خپل ته نزدے والے چه کوم یو به د دوی نه |
| اَقْرَبُ وَيَرْجُوْنَ رَحْمَتَهٗ وَيَخَافُوْنَ عَذَابَهٗ |
| زیات نزدے وی او امید لری دوی د رحمت د هغهٔ او یره کوی د عذاب د هغهٔ نه، |
| اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُوْرًا ﴿۵۷﴾ |
| یقیناً عذاب د رب ستا د هغهٔ نه یره کیدے شی۔ |

**تفسیر** : ددے آیت تعلق د (۵۳) آیت سره دے یعنی توحید ومنئ ځکه چه شرك باطل شے دے۔

## شان نزول

۱- مفسرین لیکی چه دا آیت په هغه وخت کښې نازل شوے وو چه په مشرکانو باندے قحط راغلے وو (لکه مخکښې په سورة النحل (۱۱۲) آیت کښې ذکر شو) نو دوی ته ووئیل شو چه اُوس خپلو بتانو او باطلو معبودانو ته آواز وکړئ، هغوی دِے ستاسو نه دا تکلیف لرے کړی۔
۲- ❁ دارنګه بخاری وغیره کښې دی چه مشرکانو به د پیریانو عبادت کولو بیا هغه پیریانو ایمان راوړو لیکن دغه عابدان هغسے د هغوی په عبادت باندے کلك ولاړ وو

نودوی ته وویل شو چه تاسو د داسې مخلوق عبادت کوئ چه هغوی الله ته نزدیکت طلب کوی او ایمان راوړی۔ (صحیح بخاری: ٤٧٤١) مسلم: (٧٧٣٩)

❁ او نورو مفسرینو ذکر کړیدی چه دا آیتونه په رد د مشرکانو کښې نازل شوی وو چه دوی د ملائکو مجسمې جوړې کړې وې او د هغوی عبادت به ئې کولو۔

دارنګه په اهل کتابو هم رد شویدې چه هغوی په عزیر او عیسیٰ علیهما السلام او مریم علیها السلام باندې د معبود جوړیدو عقیده لرله۔

الله تعالیٰ خپل نبی کریم ﷺ ته خطاب وکړو چه ته دې تمامو مشرکانو او اهل کتابو ته ووایه کوم چه د الله نه سوئ د نورو عبادت کوی چه تاسو باندې چه کله مصیبت راشی نو لږ شان خپل معبودان خو راوبلئ چه آیا دوی ستاسو تکلیف لرې کوی یا ئې بل چا طرف ته اړوی؟ جواب معلوم دې چه دوی یقیناً قدرت نهٔ لری، ځکه په نفع او نقصان باندې قادر خو صرف یو الله تعالیٰ دې۔

د کشف او تحویل فرق دا دې چه کشف دې ته وائی چه بیخی تکلیف لرې کړی، او تحویل دا دې چه ستا نه ئې واړوی او په بل چائې راولی۔ یا تحویلُ دا دې چه تکلیف د یو حال نه بل حال ته واړوی یعنی تکلیف کم کړی۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ : پدې کښې د مشرکانو د معبودانو د عجز درې طریقې بیانوی۔ یو محبت او بل د رحم امید ساتل، او دریم د عذاب نه یره۔

فرمائی چه عیسیٰ علیه السلام، عزیر علیه السلام ملائك او پیریان او نور صالحین کوم چه دا مشرکان ئې رابللی، دا ټول خو د نیکو اعمالو په ذریعه الله تعالیٰ ته نزدیکت غواړی، د الله د رحمت امید لری او د هغه د عذاب نه یره کوی، ځکه چه د هغهٔ عذاب هغه عذاب دې چه د هغې نه ټول عقلمند او هوښیار خلق پناه غواړی، نو څوك چه خپله د خپل انجام نه خبر نهٔ دی، او د خپل رب د رضا په طلب کولو کښې مصروف دی هغه معبودان څنګه کیدې شی؟ د دوی عبادت څنګه کیدې شی؟۔

تاسو د هغه چا عبادت کوئ چه هغوی مؤمنان او موحدین دی، خپله الله ته محتاج دی، هغه ته نزدیکت په بندګئ سره طلب کوی۔ او پدې آیت کښې ټول اولیاء هم داخل دی چه څوك د هغوی بندګی کوی۔

علامه ابن عاشورؒ دا آیت د مخکښې ذکر شوی انبیاء علیهم السلام سره لګولې دې چه دغه انبیاء علیهم السلام خو د الله نه دعاګانې غواړی په دفع کولو د ضررونو او فائدې

حاصلولو کښې، او هغه ته نزدیکت طلب کوي، په بندګیانو سره کوشش کوي چه کوم یو به د دوی نه الله ته زیات نزدې شي په عبادت سره. او د هغه د عذابونو نه یره کوي. نو آیا دا انبیاء علیهم السلام معبودان جوړیدې شي؟.

او په ﴿ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ ﴾ کښې دې طرف ته اشاره ده چه د عبادت د قبولیت دپاره ضروري ده چه په هغې کښې به د الله د رحمت او د هغه د عذاب نه یره وي. ځکه چه بنده کله د الله تعالیٰ نه ښهٔ امید لري نو ډیر اعمال کوي او کله چه د هغه د عذاب نه یریږي نو د ګناه نه پرهیز کوي.

دا آیت اُلټه رد دې په باطلو وسیلو والو باندې چه دوی انبیاء او اولیاء الله تعالیٰ ته په وسیله پکښې پیش کوي حال دا چه انبیاء علیهم السلام او اولیاؤ به خپله الله تعالیٰ ته په طاعت او عبادت سره ځان نزدې کول غوښتل نو خپله الله تعالیٰ ته محتاج وو.

او دلته الله تعالیٰ د دوی عجز د اقتداء دپاره ذکر کړو چه تاسو هم دغه الله تعالیٰ ته نزدیکت په عبادت او بندګۍ سره طلب کړئ، د دغه انبیاء او اولیاؤ تابعداري وکړئ، لیکن مشرکانو خبره اُلټه کړه او دغه اولیاء او انبیاء ئې معبودان جوړ کړل، هم دوی ته توجه کوي او د دوی نه ئې غواړي.

| وَإِنْ مِّنْ قَرْيَةٍ إِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ |
|---|
| او نشته یو کلے مګر مونږ هلاکوونکي یو هغے لره مخکښې د ورځے د قیامت نه |
| أَوْ مُعَذِّبُوهَا عَذَابًا شَدِيدًا كَانَ ذَٰلِكَ فِي الْكِتَابِ |
| یا عذاب ورکوونکي یو هغے ته عذاب سخت، دے دا کار په لوح محفوظ کښې |
| مَسْطُورًا ﴿٥٨﴾ وَمَا مَنَعَنَا أَنْ نُّرْسِلَ بِالْآيَاتِ |
| لیکلے شوے. او نهٔ یو منع کړي مونږ لره ددے نه چه راولیږلو معجزاتو لره (کوم چه |
| إِلَّا أَنْ كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ |
| غوختلے شوېوي) مګر دے چه دروغجن ګنړلي وو هغے لره پخوانو خلقو |
| وَآتَيْنَا ثَمُودَ النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوا بِهَا |
| او ورکړے وو مونږ ثمودیانو ته اُوښه ښکاره معجزه نو دوی ظلم وکړو په هغے سره |

وَمَا نُرۡسِلُ بِالۡاٰيٰتِ اِلَّا تَخۡوِيۡفًا ﴿۵۹﴾

او نهٔ لیږو مونږ معجزاتو لره مګر د یرولو دپاره۔

**تفسیر** : پدے آیتِ کریمه کښې دوه تفسیره دی (۱) یو دا چه د قریة نه مراد د مشرکانو کلی دی نو پدے آیت کښې دوی ته د عذاب دهمکی ده او د دوی د کلو انجام خودلے شویدے چه الله تعالیٰ په لوح محفوظ کښې لیکلی دی چه د قیامت د ورځے نه مخکښې مخکښې به د مشرکانو کلی یا خو په استیصالی عذاب هلاکیږی او یا به پرے بل عذاب راځی چه ژوند به ئے خراب کړی۔ نو تاسو له پکار ده چه خپل رب ته رجوع وکړئ او شرك پریدئ ورنه د عذابونو سره به مخامخ کیږئ۔

هلاك دے ته وائی چه مړه او قتل شی، او مُعَذِّبُوْهَا دا دے چه مرګ پرے رانشی خو بل قسم سخت عذاب پرے راشی، کلی ئے خراب شی، قحطونه او سیلابونه او بی برکتی پرے راشی او ژوند ئے تنګ شی۔

فِى الۡكِتٰبِ: د کتاب نه مراد کتاب د تقدیر یعنی لوح محفوظ دے۔

(۲) تفسیر : د قریة نه مراد هر کلے دے او پدے کښې بیان د اِنۡتِهَاءُ الۡبَشَرِيَّةِ كُلِّهَا دے۔ یعنی ټول انسانان به ختمیږی او هلاك په معنیٰ د موت (مرګ) دے یعنی د قیامت نه مخکښې به ټول کلی مری او ختمیږی به په خپل مرګ۔ یا به چا ته پکښې عذاب ورکوو لکه مجرمان او ظالمان، او دا خبره الله تعالیٰ په تقدیر کښې لیکلے ده۔

او ددے خبر ورکولو فائده به دا وی چه [فَلۡيُبَادِرِ الۡمُشۡرِكُوۡنَ وَالۡعُصَاةُ اِلَى اللّٰهِ]

یعنی هر کله چه د انسانانو ختمیدل شته نو بیا خو مشرکانو او نافرمانو له پکار دی چه الله تعالیٰ ته د جرمونو نه په جلتئ راوګرځی او توبه وباسی ورنه الله به ورسره سخت حساب وکړی۔ اوله معنیٰ زیاته ظاهره ده۔

وَمَا مَنَعَنَاۤ اَنۡ نُّرۡسِلَ بِالۡاٰيٰتِ : زمونږ د مشائخو په نیز ددے ځای نه روستو د عذاب د نازلیدو دویم سبب بیانیږی چه هغه د الله تعالیٰ د آیتونو نه انکار کول دی۔ او دا دویمه موضوع د سورت ده۔ او پدے کښې ۲ آیت جواب د سوال د مشرکانو دے۔

## شان نزول

امام احمدؒ او نسائیؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه مکے والو د نبی کریم ﷺ نه

مطالبه وکړه چه د صفا غونډئ په سرو زرو بدله کړی او د مکے غرونه ددوی د ځایونو نه واړوی دے دپاره چه فصل وکړی نو نبی ﷺ ته (د جبریل علیه السلام په ذریعه) ووئیل شو چه که ته غواړے نو لږ نور انتظار وکړه او که غواړے نو د دوی مطالبه به پوره شی. لیکن ددے نه روستو که دا خلق په کفر باقی پاتے شی، نو د تیر شوی قومونو په شان به دوی هم هلاك کړے شی- نبی ﷺ وفرمایل چه زهٔ انتظار کوم- (او د مشرکانو نور مطالبات روستو آیتونو کښې راروان دی) نو دا آیت کریمه پدے باره کښې نازل شو-

او جواب ورکړے شو چه د قریشو مطلوبه نخے مونږ پدے وجه نهٔ لیږو چه دوی به هم د تیر شوی قومونو په شان دا نخے دروغجنے کړی لکه څنګه چه پخوانو خلکو دروغجنے کړے وے او مثال ئے د ثمودیانو اُوښه طلب کول دی نو هغوی په نهٔ منلو الله تعالیٰ هلاك کړل نو که دا موجوده خلك ئے ونهٔ منی نو دوی به هم هلاك شی- او الله تعالیٰ د دوی د هلاکت اراده فی الحال نهٔ ده کړے کیدے شی چه دوی به ایمان راوړی، یا به د دوی په نسلونو کښې داسے خلك پیدا شی چه هغوی به ایمان راوړی- او بیا فرمائی چه ما یوه معجزه دوی ته ورکړه چه نبی علیه السلام مے معراج ته وخیژولو هغه د دوی دپاره د امتحان ذریعه وګرځیده او شجره ملعونه د دوی دپاره امتحان جوړ شو- نو که الله نور ناشنا معجزات راولی نو د دوی انکار به نور زیاتیږی او هغه به څهٔ ومنی؟-

دا دلیل دے چه الله تعالیٰ بعض روستو راتلونکی واقعات په خپل کتاب کښې ذکر نکړل دے دپاره چه د هغے د واقع کیدو نه مخکښې د خلکو عقلونه د هغے نه انکار ونکړی خاصکر کله ئے چه د هغے څه مثال نهٔ وی لیدلے او دا د الله تعالیٰ رحم دے- (السعدیؒ)

أَنْ كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ : دلته وقف دے- (فَكَذَّبُوا بِذَٰلِكَ) او هغوی ته پدے تکذیب سره عذاب ورکړے شو- نو که دوی ئے ونهٔ منی نو دوی دپاره به هم عذاب جوړ شی-

فَظَلَمُوا بِهَا : یعنی د صالح علیه السلام قوم ثمودیانو اُوښه وغوښته او چه کله راوستلے شوه نو هغوی هلاکه کړه او ظلم ئے ورسره وکړو نو د الله د سنت مطابق دوی بیخی ختم کړے شو-

وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا : یعنی مونږ دا نخے د خلقو ډیرولو دپاره لیږو چه هر څوك داسے وکړی نو د هغه انجام به هلاکت او بربادی وی-

دارنګه[مَا مِنْ آيَةٍ إِلَّا وَتَتَضَمَّنُ التَّخْوِيفَ عِنْدَ التَّكْذِيبِ بِهَا] هره معجزه چه راشی او څوك ئے ونهٔ منی نو دغه معجزه عذاب ګرځی-

| وَإِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِالنَّاسِ |
|---|
| او کله چه اُووئیل مونږ تا ته یقیناً رب ستا راګیر کړیدی خلقو لره |
| وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ |
| او نهٔ دی ګرځولی مونږ لیدل هغه چه خودلی دی مونږ تا ته مګر امتحان دپاره د خلقو |
| وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ وَنُخَوِّفُهُمْ |
| او ونه هغه چه بدی ئې وئیلے شویده په قرآن کښ، او یره ورکوو دوی ته |
| فَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا طُغْيَانًا كَبِيرًا ﴿٦٠﴾ |
| نو نهٔ زیاتوی دوی لره مګر سرکشی لویه۔ |

**تفسیر**: اُوس ددے مخکښی دوه مثالونه راوړی۔

١ – نبی کریم ﷺ ته خطاب کولو سره فرمائی چه مونږ تا ته د وحی په ذریعه وئیلی دی چه ستا د رب نه د خلقو هیڅ خبره پټه نهٔ ده، د دوی کفر او عناد او د دوی تکذیب ټول د هغهٔ په علم کښ دی۔ ٢ – دویم مطلب دا دے چه [عَصَمَكَ مِنْ اَنْ يَّقْتُلُوْكَ فَامْضِ لِاَمْرِ اللّٰهِ وَلَا تَهَبْهُمْ] الله تعالیٰ تهٔ محفوظ کړے ئې ددے نه چه دا خلق تا قتل کړی نو تهٔ د الله حکم (دعوت) جاری ساته او د خلکو نه یره مهٔ کوه۔ (ابن کثیرؒ والبغویؒ وفتح البیان)

(نو هرکله چه رسول الله ﷺ ته دا خبر ورکړے شو نو د هغه زړه قوی شو ځکه چه د مدد وعده ورسره وشوه نو هغه د معراج واقعه قریشو ته بیانه کړه -فتح البیان)۔

وَمَا جَعَلْنَا : او ورسره دا خبره هم بیانه کړه چه زهٔ آسمان ته ختلے وم، نو اُوس د مشرکانو حال بیانوی۔ نبی کریم ﷺ چه کله دوی ته خبر ورکړو چه زهٔ آسمان ته ختلے وم او په جهنم کښ د پیدا کیدونکی زقوم ونے خبرئے ورکړو نو دوی د نبی ﷺ پورے توقے وکړے او هغه ته ئے دروغجن ووئیلو او د مخلصو مسلمانانو ایمان نور هم قوی شو نو دا خبره د خلقو دپاره یو لوئی ازمینښت وو۔

الرُّؤْيَا : (١) ❁ د ابن عباس ﷺ نه روایت دے چه (رُؤْيَا عَيْنٍ اُرِيَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَيْلَةَ الْمِعْرَاجِ] دا د سترګو لیدل وو چه رسول الله ﷺ ته دغه نخے د قدرت د الله تعالیٰ د معراج په شپه خودلے شوے وے۔ (صحیح بخاری) او دے ته ئے (رؤیا) ووئیلو ځکه چه دا

واقعه د شپې راپېښه شوې وه، یا کافرانو ونیلي وو چه کیدې شي چه په خوب کښې آسمانونو ته تلې وې۔ مګر دې ته تاویلاتو ته ضرورت نشته ځکه چه رؤیا نه مراد د سترګو لیدل دي او د رؤیا اطلاق په سترګو لیدلو سره هم کیږي۔ لکه د ابن عباسؓ نه نقل دي۔

فِتۡنَةً لِّلنَّاسِ : ابن جریر طبریؒ د حسن بصری رحمه الله نه ددې آیت په تفسیر کښې روایت راوړیدې چه رسول الله ﷺ د ماسخوتن په وخت کښې د بیت الحرام نه بیت المقدس پورې بوتللې شو، چه هلته دوی مونځ وکړو، دې نه روستو الله ورته خپلې نخښې وخودلې۔ بیا د صبا په وخت مکې ته راغلو او خلقو ته ئې د معراج خبر ورکړو، نو کافرانو اُووئیل چه ای محمده! آیا ته مابنام کښې په بیت المقدس کښې وې او سحر زمونږ خوا ته راغلې ئې؟ پدې خبرې سره دوی ته دومره حیرانتیا اُوشوه چه د دوی د خبرو نه متأثر کیدو سره څه ضعیف ایمان والا مسلمانان مرتد شو۔ (الطبریؒ) وفتح البیان ۱٤٩/٤)

(۲) ❁ د بعض مفسرینو رائې ده چه د ((رؤیا)) نه مراد د نبی کریم ﷺ دا خوب دې چه هغه به مکې ته د فاتح په حیثیت داخلیږي۔ نو د صلح حدیبیه په کال نبی ﷺ صحابه کرام ځان سره واخستل او مکې طرف ته روان شو، لیکن چونکه لا تر اُوسه د مکې د فتح کولو وخت نۀ وو راغلې پدې وجه نبی ﷺ ته واپس راتلل راپېښ شو۔

نو بعض خلقو اُووئیل چه مونږه ته ئې خو وئیلي وو چه مکې ته به داخلیږو نو بیا ولې داخل نۀ شو۔ دا واقعه د دوی دپاره از میښت جوړ شو۔ کله چه په دویم کال مکه فتح شوه نو الله تعالیٰ ﴿ لَقَدۡ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوۡلَهُ الرُّءۡيَا بِالۡحَقِّ ﴾ (الفتح:۲۷) نازل کړو۔ (چه الله د خپل رسول خوب رشتینی کړو)

ددې قول مطابق به دا آیت مدنی وې۔ کوم چه په مکی سورت کښې داخل کړې شویدې۔ پدې باندې دا اشکال شویدې چه دا آیت مکی دې او دغه خوب په مدینه کښې لیدلې شوې وو نو بیا ئې جواب ورکړیدې چه څه لرې نۀ ده چه رسول الله ﷺ دا خوب په مکه کښې لیدلې وې بیا ئې حقیقت په مدینه کښې ښکاره شوې وې۔

لیکن دې کښې تکلف دې۔

(۳) ❁ او څینې وائی چه رسول الله ﷺ ته په خوب کښې وخودلې شو چه قریش به په فلانی فلانی ځای کښې هلاکیږي، تردې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : ګویا که زۀ ددې خلکو د قتل ځایونه په خپلو سترګو وینم او هغه ز مکې ته اشاره کوله او دا به ئې وئیل چه دا د فلانی د قتل ځای دې۔ (مسلم فی الجهاد حدیث ۸۳)

نو کله چه قریش مشرکانو دا خبره واوریده نو ددے نه ئے مسخره جوړه کړه۔ پدے کښې اول قول غوره دے۔

وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ فِي الْقُرْآنِ : دا عطف دے په (الرُّؤْيَا) باندے یعنی دا شجره ملعونه هم د خلکو دپاره فتنه او ازمینښت وګرځیدو۔

د جمهورو مفسرینو په نیز د «شجره ملعونه» نه مراد د زقوم ونه ده چه هغه په سورة الصافات (٦٢/٦٣/٦٤) آیتونو کښې راغلے ده : ﴿ اَذٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا اَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ ○ اِنَّا جَعَلْنٰهَا فِتْنَةً لِّلظّٰلِمِيْنَ ○، اِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِيْٓ اَصْلِ الْجَحِيْمِ ○﴾ (آیا دا میلمستیا ښه ده او که د زقوم ونه چه مونږه د ظالمانو دپاره سخته سزا مقرر کړیده چه د جهنم په بیخ کښې راوځی)۔

او الله فرمائی: ﴿ اِنَّ شَجَرَةَ الزَّقُّوْمِ طَعَامُ الْاَثِيْمِ ﴾ (الدخان : ٤٣، ٤٤) (یقیناً د زقوم ونه خوراك د ډیر ګنا هګار دے)۔

## شان نزول

طبریؒ، ابن اسحاقؒ او ابن ابی حاتمؒ وغیره د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیدے چه کله رسول الله ﷺ د کافرانو د یرولو دپاره د زقوم ونه ذکر کړه نو ابوجهل وویل، اے قریشو! هغه د زقوم ونه چه تاسو پرے محمد یروی، پو هیږئ هغه څه دی؟ خلقو ووئیل، نه، نو هغه ووئیل چه دا د یثرب عجوه کجوره ده چه د مکهن (کُچ) سره خوړلے کیږی۔ قسم په الله ! که مونږ ته دا ملاؤ شی نو ښه به ئے وخورو۔ نو الله دا آیت نازل کړو۔

او په یو روایت کښې دی چه کله دا آیت نازل شو نو ابوجهل د توقو په طریقه خپلے وینځے ته ووئیل : کجوره او کچ راوړه، بیا ئے خپلو ملګرو ته ووئیل : (تَزَقَّمُوْا) دا زقوم وخورئ۔ (یعنی دا څومره مزیدار خوراك دے چه تاسو پرے محمد یروی)۔

او ابن الزبعریٰ ووئیل چه الله ډیر ستاسو په کورونو کښې زقوم زیات کړی ځکه چه زقوم خو کجورے او کُچ ته وائی په لغت د یمن کښې۔ (البغویؒ وفتح البیان)

او دارنګه ابوجهل وغیره دا هم ووئیل : چه ستاسو دا صاحب وائی چه د جهنم اُور کانړی سیزی او بیا وائی چه پدے کښې ونے راخیژی نو الله تعالیٰ ﴿ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ﴾ آیت نازل کړو۔ (فتح البیان) مقصد ئے دا وو چه د محمد (ﷺ) په کلام کښې تضاد دے۔

ددے جواب دا دے چه دا خو د آخرت اُمور دی دا په دنیاوی امورو باندے قیاس نۀ دی بلکه په دنیا کښې هم ددے مثالونه شته لکه چه مفسرینو ذکر کړیدی چه د یو حیوان چه

(سمندر) نوم ئے دے په ترکی بنارونو کښې موجود دے د هغهٔ د وړیٔ (پشم) نه داسے رومال جوړیږی چه کله خیرن شی نو هغه اُورته گوزار کړی نو خیرے ترے لاړ شی او رومال همغه شان روغ وی اُور پکښې هیڅ اثر نهٔ وی کړے۔ دارنگه شتر مرغ سکروټه تیره کړی او هیڅ ضرر ورته ورنکړی، او الله تعالیٰ په هره ونه کښې اُور پیدا کړیدے، او هغه نهٔ سیزی نو دا هم جائز ده چه په اُور کښې داسے ونه پیدا شی چه هغه نهٔ سوزوی بلکه یو د دنیا ونه ده او بل د جهنم نو دا به د جهنم د جنس نه وی۔ (فتح البیان وغیره)

«الملعونة» د ونے صفت راغلے دے، لیکن ددے نه مراد د هغے خوړونکے دے۔ (یعنی هغه ونه چه بد ئے وئیلے شوی یعنی د خوړونکی) لکه چه مخکښې آیت د سورة الدخان کښې طعام الاثیم ذکر شو۔ او زجاج وائی چه عرب هر طعام ته چه مکروه (بد گنڑلے شوے) وی ملعون وائی۔ (القرطبیؒ)

بله دا چه لعنت معنیٰ ده د رحمت نه جدائی او دا ونه هم د جهنم په مینځ کښې راختلے ده چه دا د الله د رحمت نه ډیر جدا ځای دے۔ (فتح البیان)

وَنُخَوِّفُهُمْ : یعنی مونږ د قریش کافران پدے خبرو او ددے په شان نورو خبرو سره یرول غواړو دے دپاره چه ایمان راوړی، لیکن نتیجه اُلټه کیږی او د دوی سرکشی نوره هم زیاتیږی۔ څوك چه نا اهله شی نو چه څومره بیانونه ورته کیږی هغومره به سرکشه کیږی او دا هل خلکو دپاره یوه خبره هم کافی کیږی۔

| وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا |
|---|
| او کله چه اُووئیل مونږ ملائکو ته سجده اُوکړیٔ آدم (علیه السلام) ته نو سجده اُوکړه دوی |
| إِلَّآ إِبْلِيْسَ قَالَ ءَاَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ |
| سویٔ د ابلیس نه، اُووئیل هغهٔ آیا سجده به کوم زهٔ هغه چاته چه پیدا کړیدے تا |
| طِيْنًا ﴿٦١﴾ قَالَ اَرَءَيْتَكَ هٰذَا الَّذِىْ كَرَّمْتَ |
| د ختے نه۔ اُووئیل هغهٔ خبر راکره چه دا هغه سړے دے چه تا عزت ورکړیدے دهٔ ته |
| عَلَيَّ لَئِنْ اَخَّرْتَنِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ |
| په ما باندے که چرے روستو کړم تا زهٔ (مهلت ډیے راکړو) تر ورځ د قیامت پورے |

| |
|---|
| لَأَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهُ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٦٢﴾ قَالَ اذْهَبْ فَمَن |
| نو خامخا بیخکندی به وکړم د اولاد ددهٔ سوئ د لږو کسانو نه. اُوونیل الله لاړه شه پس چا |
| تَبِعَكَ مِنْهُمْ فَإِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمْ جَزَآءً مَّوْفُورًا ﴿٦٣﴾ وَاسْتَفْزِزْ |
| چه تابعداری وکړه ستا د دوی نه نو یقیناً جهنم بدله ده ستاسو بدله پوره. او اُوخویه وه |
| مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ وَأَجْلِبْ عَلَيْهِم |
| (دهوکه کړه) هغه څوك چه طاقت لرے ته د دوی نه په آواز خپل سره او راوله په دوی |
| بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ |
| باندے سوارهٔ خپل او پیاده خپل او شریك شه د دوی سره په مالونو او اولادو کښې |
| وَعِدْهُمْ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ إِلَّا غُرُورًا ﴿٦٤﴾ إِنَّ |
| او وعدے کوه د دوی سره او وعده نهٔ کوی ددوی سره شیطان مگر د دهوکے. یقیناً |
| عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ وَكِيلًا ﴿٦٥﴾ |
| بندگان زما نشته تا لره په هغوی باندے قدرت د گمراه کولو، او پوره دے ستا رب ذمه وار. |

**تفسیر : مضمون**: واقعه د آدم علیه السلام او ابلیس راوړی، مقصد پکښې (۱) (مَآلُ مَنْ أَنْكَرَ) بیانول دی، یعنی د هغه چا انجام بیانوی چه د معجزاتو نه انکار وکړی، ثمودیانو او عادیانو کړے وو نو الله هلاك کړل نو دغه شان ابلیس د آدم علیه السلام د معجزے نه انکار وکړو نو الله هلاك کړو. د انبیاء علیهم السلام معجزات مهٔ رد کوئ.

(۲) تَشْبِيهُ الْمُشْرِكِينَ بِإِبْلِيسَ فِي الْإِسْتِهْزَاءِ بِالرَّسُولِ)

مشرکان د ابلیس سره مشابه دی چه دواړو د رسول پورے توقے کړیدی او د ابلیس ځای خو جهنم دے نو دغه شان دوی هم جهنم ته روان دی. د ابلیس د گمراهئ ډیر اسباب دی نو دغه شان د دوی د گمراهئ هم ډیر اسباب دی.

بیا روستو پدے واقعه باندے تفریعات ذکر کوی چه د الله تعالیٰ احسانات او د مشرکینو ناشکری بیانیږی چه دوی د رسول د انکار سره سره توحید د الله تعالیٰ هم نهٔ منی تر (۷۰) آیت پورے، بیا احوال د مشرکانو بیانیږی په آخرت کښې، بیا بیان د تثبت علی الحق دے

چه په حق کلك شه او ددے خلکو خبره مهٔ منه، بیا دا بیانوی چه اخراج الرسل (د رسولانو ویستل) سبب د عذاب دے۔ بیا په یوه رکوع کښې د اعمالو تذکره کیږی چه پدے سره د الله تعالیٰ مدد راځی۔ بیا امتنان علی الرسول بانزال القرآن بیانوی۔ یعنی په رسول باندے احسان ذکر کوی په نازلولو د قرآن کریم۔ چه دا الله تعالیٰ بیرته اخستے هم شی نو شکرئے وکره، بیا د هغوی ډیر اعتراضات په رسالت باندے بیانوی بیا مختصر جواب۔

بیا دوی وائی چه د بشریت او رسالت منافات دے، نو الله جواب کوی چه په زمکه کښې خو ملائك نهٔ وسیږی، تاسو وسیږئ نو نبی به هم ستاسو د جنس نه راځی۔

بیا تخویف د آخرت دے تفصیلاً او په آخری رکوع کښې الله تعالیٰ استهزاء بالرسول سبب د عذاب ذکر کړیدے لکه فرعون ته وګوره چه موسیٰ ﷺ پورے ئے توقے وکړے نو الله هلاك کړو، په آخر کښې بیا ترغیب دے قرآن کریم ته او الله تعالیٰ خپله استغناء بیانوی چه که مشرکان ایمان راوړی او که نهٔ خو د الله نیکان بندګان شته۔ او په آخر کښې آداب بیانیږی۔

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ : اَیْ وَاذْکُرْ. رایاده کړه دغه واقعه د آدم ﷺ الخ۔

دلته دا واقعه په پنځو آیتونو کښې ذکر شویده۔ چه ددے خلاصه دا ده چه اے زما نبی! تهٔ هغه وخت یاد کړه چه کله مونږ ملائکو ته اُووئیل چه تاسو د آدم په اکرام او احترام کښې هغه ته سجده وکړئ، نو د ابلیس نه سوئ تولو سجده اُوکړه۔ دهٔ د کفر او سرکشئ لاره اختیاره کړه، وے وئیل چه آیا زهٔ سجده اُوکړم هغه چا ته چه تا د خاورے نه پیدا کړیدے۔ تا چه دهٔ ته په ما باندے فضیلت او غوره والے ورکړو او ما ته ډے دهٔ د سجدے حکم وکړو نو داسے ډے ولے وکړل؟ که تا ما ته د قیامت د ورځے پورے مهلت راکړو نو سوئ د یو څو مخلصو مسلمانانو نه به زهٔ تول ګمراه او هلاك کړم یا چرته چه زهٔ غوارم نو ګمراه کولو سره به ئے ځان سره بوځم۔

خَلَقْتَ طِينًا: منصوب بنزع الخافض دے اَیْ مِنْ طِيْنٍ۔ یعنی د ختے نه۔

أَرَأَيْتَكَ : دا په معنیٰ د اَخْبِرْنِیْ سره دے (یعنی ما ته خبر راکړه داسے ډے ولے وکړل؟) الله تعالیٰ ورته ددے سوال جواب ورنکړو دپاره د سپکوالی د هغهٔ ځکه چه په خپل لوی مولیٰ ئے اعتراض وکړو۔

(او دا خبره بعینه د مشرکانو او د یهودو هم وه چه ولے ددے نبی اکرام وشو چه زمونږ تر مینځ صرف وحی په دهٔ نازله شوه۔ دا اصل کښې په الله تعالیٰ اعتراض دے)۔

لَئِنْ أَخَّرْتَنِ : دا د ابليس ضد او فساد دے۔
لَأَحْتَنِكَنَّ : ۱- اَىْ لَاُغْوِيَنَّهُمْ ۔ يعنى گمراه به ئے كړم او اصل كښ په معنىٰ د بيخ كندى كول او جرړه ويستل دى، بيا د غلبے كولو او د يو شى پوره رانيولو دپاره استعماليږى۔
۲- لَاَسُوْقَنَّهُمْ وَاَقُوْدَنَّهُمْ حَيْثُ اَرَدْتُ ۔ زۀ به دوى راكاږم او روان به ئے كړم چرته چه زما خوښه وى۔ اوله معنىٰ ددے مقام سره زياته مناسبه ده۔
اذْهَبْ: ۱- يعنى د جنت نه لاړ شه ووځه۔
۲- يا په خپله طريقه روان شه كوم چه تا د خپل خان دپاره غوره كړه۔
۳- يا معنىٰ ده لاړه شه كرځه تا لره د اولے شپيلۍ پورے مهلت دے۔
دلته الله تعالىٰ پنځه امرونه ابليس ته وكړل پدے كښ مقصود هغه ته دهمكى وركول او د هغۀ استدراج دے او بندگان يرول دى چه ابليس تاسو پدے طريقو سره گمراه كوى خان تربے وساتئ۔
جَزَآءً مَّوْفُوْرًا: يعنى جهنم ستاسو د كفر او شرك او جرمونو پوره سزا ده۔
وَاسْتَفْزِزْ : دوباره ئے ورته د مهلت وركولو حكم وكړو۔ ۱- اَىْ اِسْتَزِلَّ وَاَخْدِعْ ۔ يعنى وښويوه او دهوكه كړه۔
بِصَوْتِكَ : يعنى ته چه دوى نه چا ته آواز وكړے او په خپله تابعدارۍ باندے ئے راتيزوے نو تيز ئے كړه او دهوكه وركړه۔

## د شيطان آواز څه شے دے؟

۱- عبد الله بن مسعود ﷛ فرمائى : د شيطان آواز تهنگ تكور او موسيقى (گانے بجانے) دى) ۲- لهو او لعب۔ ۳- وسوسه۔
٤- كُلُّ دَاعٍ يَدْعُوْ اِلٰى مَعْصِيَةِ اللهِ فَهُوَ مِنْ صَوْتِ الشَّيْطَانِ ۔ هر داعى چه د الله نافرمانۍ ته دعوت وركوى نو دغه د شيطان آواز دے۔ كه په هر شكل كښ وى۔
وَاَجْلِبْ عَلَيْهِم بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ : يعنى راكاږه په دوى باندے خپل اسونو والا او پياده خلك۔ حاصل معنىٰ ئے ده حمله وكړه په دوى باندے۔ يعنى د دوى د خپل خان د تابع كولو دپاره تمامے حربے او تمام ذرائع استعمال كړه، د مكر او چلونو چه څومره صورتونه كيدے شى ټول اختيار كړه۔
خيل نه مراد دلته شاهسواران دى۔ يعنى سوارۀ خلك د لښكر ستا۔

وَرَجِلِكَ: دا مفرد دے په معنیٰ د جمع سره. ابوزیدؒ وائی : رَجْلٌ او رَجِلٌ په معنیٰ د رَاجِلٌ دے، پیاده تلونکے.

اهل علم لیکی : [فَكُلُّ مَنْ رَكِبَ اَوْ مَشٰى فِىْ مَعْصِيَةِ اللّٰهِ فَهُوَ مِنْ جُنْدِ اِبْلِيْسَ] هر هغه څوك چه سور شو یا پیاده روان شو د الله په نافرمانئ کښې نو هغه د ابلیس د لښکر نه دے. (فتح البیان)

وَشَارِكْهُمْ فِى الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ :

## د شیطان د انسانانو سره په مال او اولاد کښې شرکت

۱- یو په طریقه د نذر د غیر الله سره دے. لکه دوی د غیر الله دپاره په فصلونو او چارپیانو کښې برخه مقرر کړے وه. ۲- اِنْفَاقُ الْمَالِ فِى التَّبْذِيْرِ. په فضول کښې مال لګول.
۳- كَسْبُ الْحَرَامِ وَجَمْعُهٗ. د حرام مال کمائی او راجمع کول. یعنی په حرامو سره مال او دولت حاصل کړی، غصب، غلا، سود خوری وکړی او په حرامو کارونو کښې ئے خرچ کړی.

## په اولادو کښې د ابلیس شرکت

۱- اَلنَّذْرُ لِغَيْرِ اللّٰهِ. بچی د غیر الله دپاره نذر کول. ۲- اولاد د لوږے د یرے د وجه نه وژل او لونړه د شرم د وجه نه خښول. ۳- تَرْكُ التَّسْمِيَةِ عِنْدَ الْوِقَاعِ. د کوروالی په وخت کښې بسم الله پریښودو سره شیطان شرکت کوی، نو بچے چه پیدا شی نو نیم انسان وی او نیم شیطان. پدے وجه په احادیثو کښې پدے مقام کښې دعاګانے راغلی دی چه بچے د شیطان نه محفوظ کیږی.
٤- اِسْتِعْمَالُ الْاَوْلَادِ فِىْ مَعْصِيَةِ اللّٰهِ. بچی په داسے ځای کښې استعمالول چه هلته د الله نافرمانی کیږی. د ګناه کارونه پرے کول، یا ئے په باطل باندے کلکول.
٥- په ناجائزو طریقو سره اولاد حاصلول لکه په زنا وغیره سره.
٦- هغوی ته شرکی نومونه کیښودل لکه عبد اللّات او عبد الْعُزّٰى او عبد الرسول او عبد النبی او ګنج بخش او پیر بخش وغیره.
۷- د صلاح او تقویٰ مطابق د دوی تربیت ونکړی او دوی ملحد او زندیق او کافر جوړ کړی.
وَعِدْهُمْ : یعنی دوی سره نورے وعدے هم وکړه ❁ هغه دا چه دویم خلی به نهٔ ژوندی

کیږي. (زجاج) ❁ یا دا چه د دوي انجام به همیشه ښهٔ وي. او هر خل به غلبه همدوي ته حاصلیږي. ❁ او د دوي معبودان به دوي له سفارش کوي.

❁ او د اُوچتو نسبونو په وجه به دوي په الله باندې عزتمند وي. ❁ او د الله په کرامة باندې تکیه لګول. چه الله غفور رحیم دے. ❁ توبه روستو کول په اُوږد امید سره.

❁ نقد شے په نسیه باندې غوره کول. یعنې دنیا ورته ښانسته کول په مقابله د آخرت کښې. (فتح البیان)

❁ (سَتَطُوْلُ عَلٰی اَقْرَانِكَ) په خپلو همزولو به پورته شے. ❁ وَتَنَالُ لَذَّتَكَ) د دنیا مزے به واخلے، کور به دے وي کاروبار، بچي او ګاړي به دے وي، نو د اعمالو نه ئے پدے وسوسو سره پاتے کوي او د هغے دپاره کوشش کوي.

اِنَّ عِبَادِيْ : دلته الله تعالیٰ د عامو انسانانو نه صرف خاص بندګان مؤمنان مستثنیٰ کړل چه په دوي باندې به د شیطان چل او زور نهٔ چلیږي. یعنې تهٔ به هغوي ګمراه کولے نهٔ شے، ستا رب به د هغوي حامي او مددګار وي، هغوي به په خپل رب باندې بهروسه کوي او په ټولو کارونو کښې به په الله پورے پناه اخلي، او هغه به د دوي دپاره کافي وي.

وَكِيْلًا : اَیْ لَهُمْ. یعنې ستا رب د هغوي دپاره پوره ذمه وار دے او ستا نه به ئے ساتي.

| رَبُّكُمُ الَّذِيْ يُزْجِيْ لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوْا |
|---|
| رب ستاسو هغه ذات دے روانوي تاسو لره کشتئ په دریاب کښې دے دپاره چه طلب کړئ |
| مِنْ فَضْلِهٖ اِنَّهٗ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا ﴿٦٦﴾ وَاِذَا مَسَّكُمُ |
| فضل د الله تعالیٰ، یقیناً هغه دے په تاسو باندې رحم کونکے. او کله چه اُورسي تاسو ته |
| الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ تَدْعُوْنَ اِلَّا اِيَّاهُ |
| تکلیف په دریاب کښې ورك شي تاسو نه هغه څوك چه رابلئ ئے تاسو سوئ د الله نه. |
| فَلَمَّا نَجّٰىكُمْ اِلَى الْبَرِّ اَعْرَضْتُمْ وَكَانَ الْاِنْسَانُ كَفُوْرًا ﴿٦٧﴾ |
| نو هرکله چه بچ کړي تاسو اُوچے ته نو مخ کرځوئ تاسو او دے انسان ناشکره. |
| اَفَاَمِنْتُمْ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ اَوْ يُرْسِلَ |
| آیا نو په امن یئ تاسو ددے نه چه ننباسي تاسو لره په طرف د اُوچه باندې یا به راولیږي |

| عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ وَكِيلًا ﴿٦٨﴾ |
|---|
| په تاسو باندے باران د کانړو بيا به ونۀ مومئ تاسو د خپل ځان دپاره ذمه وار۔ |
| أَمْ أَمِنتُمْ أَنْ يُعِيدَكُمْ فِيهِ تَارَةً أُخْرَىٰ |
| آيا بے غمه يئ تاسو ددے نه چه واپس به کړی تاسو پدے درياب کښې بل کرت |
| فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيحِ فَيُغْرِقَكُم بِمَا كَفَرْتُمْ |
| نو راوبه ليږی په تاسو ماتونکے هوا نو غرق به کړی تاسو په سبب د هغے چه کفر کړے وو تاسو |
| ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا ﴿٦٩﴾ |
| بيا به نۀ مومئ کوئ د خپل ځان دپاره په مونږ باندے پدے (غرق کولو) سره بدله اخستونکے |
| وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ |
| او يقيناً مونږ عزت ورکړے بنيادمو ته او پورته کړيدی مونږ دوی لره په اُوچه |
| وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ |
| او درياب کښې او رزق ورکړيدے مونږ دوی ته د پاکو رزقونو نه او غوره کړيدی مونږ دوی |
| عَلَىٰ كَثِيرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا ﴿٧٠﴾ |
| په ډيرو د هغه چا نه چه پيدا کړيدی مونږ په ډير غور کولو سره۔ |

**تفسير:** ربط

پدے آيتونو کښې اِسْتِحْوَاذُ الشَّيْطَانِ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ فِيْ نِسْيَانِ الرَّبِّ بيانيږی يعنی د شيطان زور او غلبه په مشرکانو باندے بيانيږی چه شيطان مشرکانو لره څنګه ګمراه کړو هغه دا چه مصيبت کله راشی نو يواځے الله يادوی او چه کله راحت راشی نو بيا ترے الله هير شی۔ او ددے مثال راوړی۔

او تر (۷۰) آيت پورے الله تعالىٰ د خپل وحدانيت او الوهيت يو څو نخے بيان کړيدی، او دا د الله تعالىٰ تعارف هم دے او د هغۀ احسانات هم دی۔ فرمائی: ستاسو رب هغه دے چه کشتيانے په سمندر کښې د هواګانو په مدد سره چلوی دے دپاره چه تاسو د خپلے خوښے مطابق چرته چه غواړئ د تجارت په غرض لاړ شئ او د الله پيدا کړی روزی حاصله کړئ،

یقیناً هغه په تاسو ډیر مهربان دے چه سمندر ئے هم تاسو له مسخر کړے، دے دپاره چه تاسو دا د خپل سفر او تجارت دپاره په آسانئ سره استعمال کړئ۔

مِنْ فَضْلِهٖ : د فضل اطلاق غالباً په مال باندے کیږی او دا دینی او دنیاوی دواړو څیزونو ته شاملیږی۔

وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ : اُوس د انسان ناشکری او بې وفائی بیانیږی۔ یعنی کله چه تاسو په کشتئ کښې سوارهٔ شئ او د سمندر په مینځ کښې تاسو ته کومه بیماری یا پریشانی اُورسی، یا لاره درنه ورکه شی، یا کومه چپه کښې داخل شئ او کشتئ په ډوبیدو شی نو تاسو نه خپل معبودان ټول هیر شی، او د فطرت د تقاضے مطابق صرف یو الله ته آواز شروع کړئ، د کوم مطابق چه الله انسانان پیدا کړیدی، لیکن کله چه هغه تاسو په خیر سره غاړے ته اُورسوی نو د هغه د یاد نه غافله شئ، او بیا خپلو دروغجنو معبودانو ته آوازونه کوئ، ځکه چه انسان په طبعی توګه ډیر احسان هیرونکے پیدا شویدے۔

ضَلَّ مَنْ تَدْعُونَ : ددے اصل وجه دا ده چه د انسان فطرت غافله وی خو چه کله مصیبت راشی نو فطرت ئے راویښ شی نو ځکه ئے الله ته توجه پیدا شی۔

أَعْرَضْتُمْ : اَیْ عَنِ الْاِخْلَاصِ لِلّٰهِ وَتَوْحِیْدِهٖ وَرَجَعْتُمْ اِلٰی دُعَاءِ اَصْنَامِكُمْ وَالْاِسْتِغَاثَةِ بِهَا)

تاسو د الله تعالیٰ د یواځے رابللو او د هغه د توحید نه مخ واړوئ او د خپلو بتانو د رابللو او د هغوی نه مدد غوښتو ته واپس شئ۔ (فتح) لکه مخکښې سورت النحل آیت (۵۵) کښې تیر شو ﴿لِيَكْفُرُوْا بِمَا آتَيْنَاهُمْ﴾ چه د الله نه مخ اړول (غافله کیدل) او د غیر الله عبادت کول دا د مشرکانو مرضونه دی۔

أَفَأَمِنْتُمْ : اُوس الله تعالیٰ د مشرکانو په ناشکرئ باندے دهمکی ورکوی چه تاسو خو په سمندر کښې یواځے الله ته آواز وکړو نو آیا الله دا نشی کولے چه په وچه کښې دریاندے عذاب راولی چه دلته تریے غفلت کوئے، دارنګه الله تعالیٰ خو دا هم کولے شی چه بیرته ستاسو حاجت پیدا کړی او دریاب ته مو واپس کړی او عذاب دریاندے راولی۔

فرمائی : آیا تاسو نهٔ یریږئ چه د سمندر نه اُوځئ او د زمکے په یوه حصه باندے کوز شئ نو الله تعالیٰ هغه په تاسو باندے په زمکه ننباسی او تاسو په زمکه کښې داخل کړی، لکه قارون او قوم لوط سره ئے داسے وکړل، یا به سخته هوا راوالوزوی چه په تاسو باندے د کانړو باران وکړی، او تاسو هلاك کړی، او هیڅوك به ستاسو مدد له رانشی۔ لکه د قوم لوط سره ئے داسے وکړل۔

حَاصِبًا : دا سختـه هوا ده چه ځان سره واړه واړه کانړي رالوزوی. زجاجؒ وائي حاصب هغـه خاورے ته وائي چه په هغے کښ واړه واړه کانړي وي. نو د حاصب نه مرد ذُوْ الْحَصْبَاء دے لکه د تَامِرْ او لَابِنْ پـه شان. قتادهؒ وائي چه حاصب د آسمان نه راتلونکو کانړو ته وائي. او ځینی وائي چه دا هغه وریځ ده چه ګلئ راګوزاری.

اَنْ يُّعِيْدَ كُمْ فِيْهِ : یا تـاسـو ددے خبرے نه نهٔ یریږئ چه هغه به تاسو دویم ځلی سمندر ته واپس کړی او بیا به مـو د سختـے هوا په مینځ کښ راګیر کړی، او د کفر او د سرکشئ په وجه به مو د فرعونیانو په شان غرق کړی، او ستاسو هیڅوك مددګار به نهٔ وی چه ستاسو تپوس وکړی چه مونږ تاسو ته عذاب ولے درکړو ؟!.

قَاصِفًا : دا تیزے هوا ته وائي چه په تیزئ سره څیزونه ماتوی. قصف په اصل کښ کَسْر (ماتـولـو) تـه ونـیـلـے شی. یا قاصف هغه تیزه سیلئ ده چه د هغے دپاره تیز آواز وی. لکه رَعْدٌ قَاصِفٌ. یعنی ګړه زارے تیز آواز والا.

تَبِيْعًا : ۱- ثَائِرًا. (بخاریؒ) هغه څوك چه د خپل دشمن نه بدله اخلی.

۲- مددګار. (ابن عباسؓ)

۳- تبیـع هغـه شخـص دے چـه زمـونـږ پسے راروان شی چه تـا ولے پـه دوی دا عذاب راوستـو. (زجاجؒ) څوك چه قصاص وغیره طلب کوی هغه ته تبیع او تابع وائي. (نحاسؒ) یعنی دعوه کونکے. (ابن کثیرؒ والبغویؒ والقرطبیؒ وفتح البیان)

وَلَـقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ : اُوس پـه دے آیت کښ الله تعالیٰ په انسان باندے خپل احسانات بیانوی نو ددے په مقابله کښ خو انسان له د الله شکر پکار دے، نهٔ ناشکری.

پکار ده چه صرف په هغهٔ باندے د زړهٔ نه ایمان راوړی او د دروغو معبودان پریدی او د الله د بـنـدګئ لوظ وکړی. مقصد د آیت دا دے چه مونږ د آدم اولادو ته د خبرو قوت او عقل او هـوښیـارتیـا او عـلـم او مـعـرفـت، ښـهٔ شـکـل او صـورت او په زمکه کښ د موجودو تولو څیزونو تـه د فـائدے حاصلولو قوت ورکړے، نو ددے سره مو دوی ته ډیر عزت ورکړیدے، مـونږ د دوی دپاره پـه اُوچـه او اوبو کښ د سفر کولو ټول ذرائع آسان کړیدی، او قسم قسم روزی مـو ورکـړیـده، او دوی له مو په جناتو او ټولو حیواناتو غوره والے ورکړیدے، او د دوی خاص افرادو له مو په ملائکو هم فضیلت ورکړیدے.

لیکن انسان چه کله د کفر لاره اختیاره کړی، په عبادت کښ د الله سره نور خلق شریکوی او هـغـه پـریـدی او نـورو سره مـحبت کوی، نو هغه به د الله بد ترین مخلوق جوړیږی. الله

تعالیٰ په سورة البینه آیت (٦) کښې فرمایلي دي: ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أُولَٰئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ﴾ بیشکه کوم خلق چه د اهل کتابو نه کافران شو او د مشرکانو نه، نو د جهنم په اُور کښې به اچولے شي چه په هغې کښې به همیشه وي همدا خلق (د الله) بد ترین مخلوق دے. ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ثُمَّ رَدَدْنَاهُ أَسْفَلَ سَافِلِينَ﴾ (التین: ٤/٥) ما انسان په ډیر ښائسته شکل پیدا کړیدے، بیا مې (چه کله کفر کوي) د ټولو خلکو نه لاندے کړځولے دے.

## د تکریم او تفضیل فرق

د کرامت او تفضیل فرق دا دے چه کرامة بِالْأُمُوْرِ الْخَلْقِيَّةِ الذَّاتِيَّةِ دے یعنی انسان ته عزت ورکړے شویدے په هغه کارونو چه ددهٔ د بدن سره تعلق لري او تفضیل په امور دینیه ؤ دے لکه عقائد او اخلاق او نظریات، نور مخلوق داسے عقائد او اخلاق نهٔ لري لکه انسان. (فت البیان)

كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ : د انسان کرامت په ډیرو څیزونو سره دے (١) (بِالْعَقْلِ) (په عقل سره) (٢) بِحُسْنِ الصُّوْرَةِ (په ښائسته شکل او صورت سره) (٣) بِالْقَامَةِ (په نیغ او اُوږد قامت سره) (٤) بِالنُّطْقِ (په خبرو کولو سره چه خپل مقصد پرے زر حاصلوي).

(٥) بِالْكِتَابَةِ (په خط او لیکلو سره چه خپله خبره د دنیا هغه سر ته رسولے شي او روستو ټولو نسلونو ته ئے پریخودے شي.

(٦) بِالرُّكُوْبِ (په سورلئ سره چه دا په حیواناتو او نور مخلوق سورلي کوي، نور حیوانات پیاده او په څلورو روان وي)

(٧) اَلْأَكْلُ بِالْيَدِ (په لاس باندے خوراك كوي) امام ابویوسف په لاس خوراك کولو، هارون رشید ورته وویل چه کاشوغه واخله نو هغه وویل: (هٰذِهٖ هِيَ الْكَرَامَةُ) همدا د عزت سبب دے. (٨) بِحُسْنِ تَدْبِيْرِهِمْ فِيْ أَمْرِ الْمَعَاشِ وَالْمَعَادِ) : د دنیا او د آخرت د کارونو په باره کښې ښائسته تدبیر کوي.

(٩) بِأَنَّ مِنْهُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) صرف په انسانانو کښې داسے خلك شته چه دوی نورو خلکو ته په امر بالمعروف او نهي عن المنکر سره فائده ورکوي.

(١٠) (إِنَّهُ خُلِقَ بِيَدِ اللّٰهِ) لوی فضیلت ئې دا دے چه دا الله تعالیٰ په خپل لاسونو سره پیدا کړیدے. (١١) تَسْخِيْرُ الْخَلَائِقِ لَهُ (نور مخلوقات الله تعالیٰ د انسان تابع کړځولي دي).

(۱۲) (إِنَّهُ رُوحُ الْعَالَمِ) دا د عـالـم روح دے کـه انسان وو نو عالَم به وی او که انسان نهٔ وو نو بیا الله تعالیٰ عالَم ختموی.
(۱۳) او نـور فـضـیـلتـونـه ئـے دا روستـو ذکر دی چه دوی ته الله تعالیٰ د تولو خوراکونو نه پاك او مـزیـدار ورکـړیـدی، دوی خـلاصـه د هر شي خوری او نور حیـوانات ئے بوس او پوك وغیره خوری، او دا لا څه چه دوی ډیر حیوانات هم خوری.
عَلٰى كَثِيْرٍ : ددے نـه مـعـلـومـیـږی چه انسان په ټول مخلوق باندے غوره نهٔ دے، بعض مخلوق د انسان نه غوره دی.
تَفْضِيْلًا: دا ئے د تـاکـیـد دپـاره راوړو اشـاره ده چـه دا غـوره والے ډیر لوی شان لری۔ نو انسانانو لره پکار دی چه ددے نعمتونو شکر وکړی او ددے د ناشکرئ نه ویریږی.

| يَوْمَ نَدْعُوْ كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ فَمَنْ |
|---|
| په کومه ورځ چه راوبه بلو ټول خلق سره د پیشوا (یا کتاب) خپل نه پس چا ته |
| أُوْتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِيْنِهِ فَأُولَٰئِكَ يَقْرَؤُوْنَ كِتَابَهُمْ |
| چه ورکړے شوه عملنامه خپله په ښی لاس نو دا کسان به لولی عملنامه خپله |
| وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿۷۱﴾ |
| او ظلم به نهٔ شی کیدے په دوی باندے په اندازه د تار د هډوکے د کجورے. |

**تفسیر:** ربط

(۱) ددے آیت تـعـلق یـو د نـزدے آیت سره دے۔ په دنیا کښې ئے خو دغه حال بیان شو چه خوراکونه کوی او سورلی کوی خو په آخرت کښې به ئے حال دا وی.
(۲) او د مـضـمـون د سـورت سـره ئے تعلق دا دے چه د قیامت په ورځ به هر انسان د خپل امام او مقتدیٰ په تابعدارئ کښې راپاخیږئ نو د داسے امام تابعداری وکړئ چه هغه تاسو ته پکار راشی او هغـه رسـول الله ﷺ دے۔ که څوك ددے نبی پسے روان نشو نو هغه به بیا روند راپاخیږی.
نو مخکښې د رسول الله ﷺ شان بیان شو اُوس د هغه اتباع او طاعت ته ترغیب ورکوی.
او پدے کښې کښې هم د دوباره ژوندی کولو او د جزا او د سزا عقیده د انسانانو په ذهن کښې

کینول مقصود دی دپاره د رد په مشرکانو او منکرینو د آخرت۔
يَوْمَ نَدْعُوْ : الله خپل نبی ته فرمائی : ته هغه ورځ رایاده کړه چه کله به ټول خلق د هغوی د امامانو په نوم سره رابللے کیږی۔

## د امام مصداقات او معانی

مفسرینو د امام ډیرے معانی بیان کړیدی : (۱) بعضو ددے نه مراد د هر قوم نبی اخستے دے۔ (مجاهدؒ وقتادةؒ) (۲) بعضو هر هغه الهی کتاب چه د هر قوم دپاره نازل شوے وو۔ لکه یا اهل التوراة یا اهل الانجیل یا اهل القرآن به ونیلے شی۔ (ابن زیدؒ)
(۳) حسنؒ، ابو هریره رضی الله عنه او ابو العالیةؒ فرمائی: د امام نه مراد د دوی عملونه دی لکه داسے به ونیلے شی اَیْنَ الْمُجَاهِدُوْنَ، اَیْنَ الصَّابِرُوْنَ اَیْنَ الصَّائِمُوْنَ، اَیْنَ الْمُصَلُّوْنَ۔ (مجاهدین چرته دی؟، صابرین چرته دی؟ الخ۔
(٤) بعضو ددے نه دین مراد کړیدے۔
(٥) ابن عباس رضی الله عنه، حسنؒ، قتادةؒ او ضحاكؒ وغیره ددے نه مراد د هر سړی عملنامه اخستے ده۔ حافظ ابن کثیرؒ همدے ته ترجیح ورکړیده او ونیلی ئے دی چه ددے تائید د سورة الانشقاق په آیت (۷) سره کیږی۔ الله تعالیٰ فرمایلی دی : ﴿ فَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ کِتٰبَهٗ بِیَمِیْنِهٖ﴾ او سورة یس آیت (۱۲) کښی فرمایلی دی : ﴿ وَکُلَّ شَیْءٍ اَحْصَیْنٰهُ فِیْۤ اِمَامٍ مُّبِیْنٍ ۝﴾
او په سورة الجاثیه آیت (۲۸) کښی ئے فرمایلی دی : ﴿ کُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰۤی اِلٰی کِتٰبِهَا﴾ هر امت به د هغه د عملنامے طرف ته رابللے شی۔
(٦) پدے کښی محمد بن کعب القرظیؒ ونیلی دی چه د امام نه مراد امهات (یعنی میندے) دی نو دا جمع اُمّ ده لکه خِفَافٌ جمع د خُفٌّ ده۔ او دا ددے دپاره د میندو په نومونو راباخولے شی چه د قیامت په ورځ د خلکو په خپلو پلارانو فخرونه ختم شی۔ او اولاد الزنا ونه شرمیږی۔ لیکن دا قول ډیر بعید دے د لغت هم خلاف دے، او د صحیح حدیث هم۔ لکه سیدنا ابن عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی
[اِذَا جَمَعَ اللّٰهُ الْاَوَّلِیْنَ وَالْآخِرِیْنَ یَوْمَ الْقِیَامَةِ رُفِعَ لِکُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ، فَیُقَالُ هٰذِهٖ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ] (بخاری فی الجزیة باب ۲۲، والادب باب (۹۹) ومسلم فی الجهاد باب (٤۲)
(کله چه الله تعالیٰ د قیامت په ورځ مخکنی او روستنی خلك راجمع کړی نو د هر خیانتګر خواته به یوه جنډه راپورته کړے شی او وبه ونیلے شی چه دا د فلانی خوی د

فلانی خیانتګری ده). او دے تفسیر ته صاحب د فتح البیان مِنْ بِدَعِ التَّفْسِیْر یعنی بدعی تفسیر وئیلے دے.

(۷) بعضو د هرے زمانے مقتدیٰ او پیشوا مراد کړیدے (سیدنا علی بن ابی طالب ﷺ)

نو که د چا مقتدیٰ ابوجهل وو نو هغه به مخکښ وی او دے به وروستے وی او عملنامے ته به رابللے شی او پر مخے به پراتهٔ وی لکه ددے تشریح په سورة الجاثیه آیت (۲۸) کښ راغلے ده. ﴿ كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰى اِلٰى كِتٰبِهَا ﴾ او همدا پکښ راجح قول دے.

نو که د چا لیډر غلط انسان وی نو دوی به تور مخونه نیولی وی، او ډیر بد حالت کښ به وی. نو اُوس دِے هر سړے خپل ځان دپاره صحیح مقتدیٰ ونیسی چه د هغه ځای معلوم وی او جنتی کیدل ئے معلوم وی او هغه محمد رسول الله ﷺ دے.

ددے وجه نه صاحب د محاسن التنزیل او حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه پدے آیت کریمه کښ د ((اصحاب الحدیث، اهل الحدیث)) دپاره لوئی شرافت بیان شویدے چه د قیامت په ورځ چه کله ټول انسانان د خپلو خپلو امامانو او پیشوایانو په نومونو سره رابللے شی نو اهل حدیث به د نبی کریم ﷺ په نوم سره رابللے شی ځکه چه د دوی امام او پیشوا همدغه دے.

فَمَنْ اُوْتِیَ كِتٰبَهٗ : یعنی چا ته چه عملنامه په ښی لاس کښ ورکړے شی نو هغه به ئے لولی، او په هغے کښ به خپل نیك عملونو ته په کتلو سره خوشحالیږی.

او دا دلیل دے چه د دوی دا لوستل د عملنامو به په طریقه د اجتماع سره وی نهٔ یواځے یواځے، دے دپاره چه زیاته خوشحالی ورته حاصله شی، دا به داسے وی لکه امتحان کښ چه انسان پاس شی او د خلکو مخامخ ورته انعام ورکړے شی. او پدے باندے دلیل جمع راوړل د ﴿ اُولٰٓئِكَ یَقْرَءُوْنَ ﴾ دی.

او د دوی په اجر او ثواب کښ به ذره برابر هم کمی نهٔ کیږی، دا د الله تعالیٰ وعده ده لکه چه سورة مریم آیت (۶۰) کښ راغلی دی : ﴿ وَلَا یُظْلَمُوْنَ شَیْئًا ﴾ چه د عدل او انصاف والا د طرف نه به په دوی هیڅ ظلم نهٔ کیږی.

| وَمَنْ كَانَ فِیْ هٰذِهٖٓ اَعْمٰی فَهُوَ فِی الْاٰخِرَةِ اَعْمٰی |
| --- |
| او هغه څوك چه وی پدے دنیا کښ ړوند (بے دلیله) نو هغه به په آخرت کښ هم ړوند وی |

| وَأَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٧٢﴾ وَإِنْ كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ عَنِ |
|---|
| او ډیر گمراه به وي په اعتبار د لارے. او یقیناً نزدے دی دا مشرکان چه واړوي تا لره د |
| الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا |
| هغے خبرے نه چه وحي کړیده مونږ تا ته دے دپاره چه ته دروغ جوړ کړے په مونږ باندے |
| غَيْرَهُ وَإِذًا لَّاتَّخَذُوكَ خَلِيلًا ﴿٧٣﴾ وَلَوْلَا |
| غیر ددے نه (بل څه) او په دغه وخت به خامخا اُونیسي دوی تا لره دوست. او که نه وے |
| أَنْ ثَبَّتْنَاكَ لَقَدْ كِدْتَ تَرْكَنُ إِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيلًا ﴿٧٤﴾ |
| مضبوط کړے مونږ تا لره یقیناً نزدے وے ته چه مائل شوے به وے دوی ته لږ غوندے. |

**تفسیر** : دا دویم طرف بیانوي چه هغه کس لاس والا دی، خو په طریقه د صفت سره ئے ذکر کړو اشاره ده دوی بد حال ته. او بل اشاره ده علت او سبب ته. یعني کوم بد نصیبه انسان چه په دے دنیا کښ د بصیرت نه محروم شي او حق قبول نهٔ کړي او په نیغه لاره روان نهٔ شي هغه به په آخرت کښ هم د نجات لاره نهٔ مومي، او الله تعالیٰ به ئے ړوند راپاځوي او په راخکلو راخکلو به جهنم ته گوزار کړے شي. نو د دوی د جنت نه د محرومه کیدو سبب په دنیا کښ د حق نه ځان ړندول وو.

**أَعْمٰی** : نه مراد د زړهٔ په سترگو باندے ړوند انسان دے چه دیته اعمی البصیرة وائي. یعني د بصیرت په اعتبار سره ړوند. د دلائل شرعیه ؤ نه ړوند وي چه نهٔ قرآن ته گوري او نهٔ معجزاتو ته اونهٔ کائناتو ته. لکه دا خبره په سورة طه (۱۲٤) آیت کښ بیا راغلے ده. ﴿كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا﴾. (یعني دغسے تا ته زما آیتونه راغلي وو نو تا هغه هیر کړي وو)

(۲) ابن عباس ﷺ فرمائي : څوک چه په دنیا کښ زما د ښکاره قدرتونو د لیدو نه ړوند وي یعني آسمان، زمکه، غرونه، دریابونه، اُور او حیوانات وغیره نو هغه به خامخا د هغه دلائلو نه زیات ړوند وي کوم چه ورته ما د آخرت په باره کښ بیان کړیدي او دهٔ نهٔ دي لیدلي. (فتح البیان)

سوال وجواب :

کله وائي چه ﴿فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ﴾ (ق: ۲۲) (ستا نظر به نن ورځ ډیر تیز وي). او په

سورة الزمر آيت (٦٨) کښې وائي : ﴿ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ ﴾ (دوی به ولاړ وی چه يو بل ته به گوري)۔ او دلته وائي چه روند به راپاڅيږي؟

جواب دادے چه د قيامت په ورځ دوه حشره دی :

(۱) يو حشر د قبرونو نه دے نو پدے وخت کښې به ئے سترگے کار کوی، او هر څه به ورته ښکاري، قيامت به ورته يقيني ښکاره شی۔

(۲) حشر إِلَى النَّار۔ اُورته د حشر په وخت کښې به ترے الله تعالیٰ نظرونه واخلی لکه روستو (۹۷) آيت کښې راځی ﴿ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا ﴾ نو دواړو خبرو کښې منافات نشته۔

## وَإِن كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ : ربط

مخکښې آيت کښې په بنيادمانو باندے اقسام د نعمتونو ذکر شو نو اُوس يره ورکوی د دهوکه کيدو نه په وسوسو د بدبختانو۔

مشرکانو د رسول الله ﷺ د حقے لاړونه اړولو کښې هر قسم کوشش کولو کښې هيڅ کمے نۀ دے کړے، دوی به کله هغه ته تکليفونه ورکول، او کله به ئے د ظلم او تشدد لاره اختياره کړه، دے دپاره چه رسول الله ﷺ د توحيد د بيان نه بند شی، او د شرك بدی بيان نکړی، او هغوی هم د رسول الله ﷺ د بيانونو نه ډير تنگ راغلی وو نو پدے وجه دے ته هم تيار شوی وو چه د رسول الله ﷺ سره سمجهوته او صلح وکړی او اختلاف ختم کړی، نو رسول الله ﷺ ته وفد ورغلو او دا دعوت ئے ورکړو چه قرآن بيانوه خو د توحيد خبرے پکښې مۀ کوه، او زمونږ د آلهه و بدی پکښې مۀ بيانوه، کله به ئے ويل چه (هَلُمَّ نَعْبُدُ آلِهَتَنَا سَنَةً وَنَعْبُدُ اِلٰهَكَ سَنَةً) راځه تۀ زمونږ د آلهه و يو کال عبادت وکړه او مونږ به ستا د يو الله عبادت يو کال وکړو۔ کله به ئے صرف دا ويل چه زمونږ د آلهه و نومونه په عزت سره واخله، او دا ووايه چه زمونږ آلهه هم سفارش کولے شی، او داسے خبره داعی ډيره خوښوی چه يوه خبره د مخالفينو وومنی او په هغے سره تکليفونه کم شی، گوزاره به وکړو۔ لکه ډير کرت داعی په يو سنت طريقه باندے عمل نشی کولے د خلکو نه يريږی چه لانجه به راته جوړه شی، خپل حالت ته سوچ وکړه نو په آيت به پوهه شے۔ دا کار داعی د مزاج مطابق وی، نو دلته الله تعالیٰ په خپل نبی باندے امتنان (احسان) بيانوی چه تۀ ما کلك کړے ئے گنے نزدے وه چه دے مشرکانو تۀ اړولے وے۔

وَإِن كَادُوا: دا (اِنْ) مُخَفَّفْ مِنَ الْمُثَقَّل دے۔ (اَیْ وَاِنَّهٗ) يقيناً شان دا دے۔

لَيَفْتِنُوْنَكَ: فتنه په اصل کښې امتحان ته وائي، بیا استعمالیږي ددے دپاره چه یو شے د خپل طرف نه واړولے شي. یعني نزدے ده چه دوي تا واړوي.
اَلَّذِیْۤ اَوْحَیْنَا: یعني د قرآن نه دِے اړوي دے دپاره چه په مونږ باندے د قرآن نه غیر بل کتاب جوړ کړے لکه دوي رسول الله ﷺ ته وئیلي وو (ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَیْرِ هٰذَاۤ اَوْ بَدِّلْهُ) بل قرآن راوړه، یا پدے کښې تبدیلي وکړه.
غَیْرَهٗ: یعني غیر ددے کتاب نه چه په هغے کښې توحید نهٔ وي.
لَاتَّخَذُوْكَ خَلِیْلًا: یعني د دوي د آلهه و لړ صفت وکړه نو دوي به دِے خپل دوست جوړ کړي، او صفا مینه به درسره وکړي ځکه دوي سخت تنګ شوي وو. یا دا د دوي په سازش باندے حمل دے یعني که نبي ﷺ داسے کولے نو مشرکانو به په ظاهره کښې خپل دوست نیولے او خلقو ته به ئے وئیلے چه محمد زمونږ د کفر تائید کړیدے، او زمونږ په شرك راضي دے. لیکن الله تعالیٰ د نبي ﷺ حفاظت وکړو او د مشرکانو د سازش سره سره نبي ﷺ خالص د الله په تائید سره په حق باندے کلك پاتے شو، او هغوي طرف ته ورکوږ نشو.
لَقَدْ كِدْتَّ تَرْكَنُ اِلَیْهِمْ شَیْئًا قَلِیْلًا: شوکاني لیکلي دي چه پدے کښې دلیل دے چه د نبي کریم ﷺ په زړهٔ کښې کافرانو طرف ته د میلان شائبه هم پیدا شوے نهٔ وه.
قتادة وائي چه کله دا آیت نازل شو نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: [اَللّٰهُمَّ لَا تَكِلْنِیْ اِلٰی نَفْسِیْ طَرْفَةَ عَیْنٍ] اے الله! ما خپل ځان ته د سترګے د رپ په اندازه مهٔ سپاره.
دا آیت دلیل دے چه کافرانو ته به په هیڅ مسئله کښې نهٔ مائل کیږي چه حق ورته پریږدي او د هغوي کفر قبول کړي.

| اِذًا لَّاَذَقْنٰكَ ضِعْفَ الْحَیٰوةِ وَضِعْفَ |
| --- |
| دغه وخت به خامخا څکولے وے مونږ تا ته دوچند عذاب په ژوند د دنیا کښې او دوچنده عذاب |
| الْمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَیْنَا نَصِیْرًا ﴿۷۵﴾ وَاِنْ |
| پس د مرګ نه بیا به اُونهٔ مومے تهٔ ځان دپاره په مونږ باندے مددګار. او یقیناً |
| كَادُوْا لَیَسْتَفِزُّوْنَكَ مِنَ الْاَرْضِ لِیُخْرِجُوْكَ مِنْهَا |
| نزدې کافران چه اُوخویوي تا لره د زمکے نه دے دپاره چه اُویاسي تا لره ددے نه |

| وَإِذًا لَّا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٧٦﴾ سُنَّةَ |
|---|
| او دغه وخت به ایسار نشی روستو ستا نه مګر لږه موده۔ په شان د طریقې (زما) |
| مَنْ قَدْ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنْ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ |
| د هغه چا سره چه لیږلی دی مونږ مخکښ ستا نه د رسولانو زما نه او نۀ به نۀ مومې تۀ |
| لِسُنَّتِنَا تَحْوِيلًا ﴿٧٧﴾ أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلَىٰ |
| زمونږ د طریقې دپاره بدلیدل۔ کوه مونځ د وخت د زائله کیدو د نمر نه تر |
| غَسَقِ اللَّيْلِ وَقُرْآنَ الْفَجْرِ إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا ﴿٧٨﴾ |
| تیارې د شپې پورې او مونځ د صبا، یقیناً مونځ د صبا ته حاضری کیدې شی (د ملائکو) |

**تفسیر** : پدې آیت کریمه کښې ډیره لویه دهمکی ورکړې شویده چه که تۀ هغوی ته مائل شوې وې نو خامخا مونږ به تا ته په دنیا او په آخرت کښې دوچنده عذاب درکړې وې او ستا به هیڅوك مددګار نۀ وې چه مونږ نه ئې خلاص کړې وې۔ ځکه چه تۀ الله تعالیٰ د حق او هدایت داعی مقرر کړې ئې او داعی چه کله ګمراه شی او ګناهونه کوی نو هغه ته الله تعالیٰ لویه سزا ورکوی۔

دلته الله تعالیٰ خطاب رسول الله ﷺ ته کوی او مقصد پکښې نور امت دې، معلومیږی چه توحید د الله تعالیٰ او دین د هغۀ هغۀ ته ډیر قیمتی دې تردې چه انبیاء علیهم السلام هم الله تعالیٰ ددې نه قربان کړیدی۔

**ضِعْفَ الْحَيَاةِ** : اَیْ عَذَابًا ضِعْفًا فِی الْحَیٰوةِ الخ یعنی دوچنده عذاب په دنیا کښې او دوچنده عذاب پس د مرګ نه۔

**وَإِنْ كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ** : پدې آیت کښې دریمه موضوع د سورت بیان شویده چه (اِخْرَاجُ الرُّسُلِ سَبَبٌ لِلْعَذَابِ)۔ یعنی د رسولانو ویستل سبب د عذاب دې۔

هرکله چه د مشرکانو د رسول الله ﷺ د توحید د دعوت نه د منع کولو ټول شیطانی چلونه ناکام شو نو د نبی ﷺ پریشانه کول ئې شروع کړل، دې دپاره چه هغه تنګ شی او د مکې نه بهر لاړ شی۔ دې طرف ته پدې آیت کریمه کښې اشاره ده چه که مشرکان تا لره وباسی نو ستا نه روستو به دوی څه ورځو پورې په زمکه کښې ژوندی وی ځکه چه د الله

سنت همدا پاتے شویدی چه کله هم یو قوم خپل نبی د کلی نه شړلے دے، نو الله هغوی لره هلاك کړی، یا کله هم چه الله یو قوم هلاکول غوختلی نو اول ئے خپل نبی ته د هغه ځای نه د وتلو حکم کړے دے، لیکن دا کار د دوی نه واقع نشو بلکه الله تعالیٰ د هغه نه منع کړل تردے چه هغه د خپل رب په امر سره مدینے ته هجرت وکړو پس د هغے نه چه دوی د هغه د ویستلو کلکه اراده کړے وه۔ (فتح البیان)

## سوال وجواب

وَإِنْ كَادُوا : **سوال** دا دے چه کاد خو د نزدے والی معنیٰ ورکوی او لا کار شوے نهٔ وی او حال دا چه نبی کریم ﷺ خو دوی د مکے نه مدینے ته ویستلے وو ؟

(۱) یو جواب چا دا ورکړیدے چه دا آیت مدنی دے او په مکی سورت کښ شامل شویدے۔ او د (أرض) (زمکے) نه مراد مدینه ده، او دا کار یهودو کړے وو چه رسول الله ﷺ ته ئے وئیلی وو چه د انبیاء علیهم السلام زمکه خو شام ده نو تهٔ په مدینه کښ څه کوے او که ته شام ته لاړے نو مونږ به پوهه شو چه تهٔ د الله نبی ئے نو مونږ به دریاندے ایمان راوړو مقصد د هغوی دا وو چه د مدینے نه ووځی او مدینه دوی ته فارغه شی، نو رسول الله ﷺ اراده وکړه چه شام ته لاړ شی نو دا آیت نازل شو۔ (سعید بن جبیرؒ)

مګر دا تفسیر دومره ظاهر نهٔ دے۔ دا خو د الله تعالیٰ حکم وو رسول الله ﷺ ته چه تهٔ مدینے ته لاړ شه هلته وسیږه، د یهودیانو خبرے په هغه باندے چرته اثر کولو او نهٔ د یهودیانو سره دومره طاقت وو چه هغه ئے په زوره ویستلے وے۔

(۲) جواب : تفسیر معالم کښ لیکلی دی چه د (الارض) نه مراد ټوله زمکه د عربو ده لکه مکے والو چه رسول الله ﷺ مدینے ته وویستلو نو بیا ئے کوشش کولو چه د مدینے نه هم ووځی هلته ئے هم نهٔ پریخودو۔

(۳) ظاهر جواب دا دے چه دا مکی آیت دے او زمکه عامه ده مکه او مدینه ټولو ته شامله ده او آیت په خپل ظاهر بناء دے، او مطلب دا دے چه دا خلك نزدے دی چه تا ویاسی خو لا تر دے آیت نازلیدو پورے ئے رسول الله ﷺ نهٔ وو ویستلے او روستو ئے بیا ویستلو، نو الله تعالیٰ دوی په بدر کښ هلاك کړل او د هغه نه روستو ئے وخت تیر نکړو مګر لږه موده لکه چه همدا سنت د الله تعالیٰ دی په باره د رسولانو کښ چه کله قومونو ورسره داسے کړی وی۔ (قتادةؒ) (فتح البیان)

خو مخکښې نه ئې خپل رسول ته خبر ورکړو چه دا خلك لګیا دی ستا دپاره مکرونه او چلونه جوړوی ځکه چه د کاد په معنیٰ کښې کید (مکر) پروت دے۔

(٤) جواب مخکښې خلاصه کښې ذکر شو۔ چه هغه د الله په امر وتلے وو او صرف مشرکانو تنګ کړے وو دے دپاره چه وځی۔

لَیَسۡتَفِزُّوۡنَكَ : استفزاز په چل ول او مکرونو سره خوځیول او ویستل تنګول دی۔ یعنی خوځه کوی او تنګوی ئې دے۔

خِلَافَكَ : دا په معنیٰ د خلف (روستو) سره دے لکه په بل قراءت کښې (خَلۡفَكَ) راغلے دے۔ او خلاف لفظ ئې ځکه استعمال کړو چه پاتے کیدل دوه قسمه دی، یو بغیر د دشمنه او بل ستا په مخالفت او دشمنیٔ کښې چه روستو پاتے شو نو دوی به هلاکیږی۔ لکه په بدر او نورو غزواتو کښې دوی دغه شان هلاك شو، او د الله تعالیٰ دا وعده رشتینی ثابته شوه۔ په اته کاله کښې دننه مکه هم فتح شوه او دغه ټول مشرکان تباه شو۔

سُنَّةَ مَنۡ قَدۡ : اَیۡ سَنَّ سُنَّةً۔ یعنی الله طریقه ایخودے ده طریقه په هغه پیغمبرانو کښې چه ستا نه مخکښې تیر شویدی۔ یعنی دا د الله تعالیٰ طریقه ده په پخوانو قومونو کښې چه کوم قوم به خپل نبی د کلی نه ویستلو نو الله به دغه قوم د هغوی نه روستو هلاك کولو۔ ﴿تَمَتَّعُوۡا فِیۡ دَارِكُمۡ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ﴾ نبی تربے ووتو په قوم باندے درے ورځے روستو عذاب راغلو۔ یا فعل داسے پټ دے (یُعَذَّبُوۡنَ كَسُنَّةٍ) ۔ دوی ته به عذاب ورکولے شی په شان د طریقے د پخوانو پیغمبرانو چه قوم ئې تکذیب وکړو نو الله عذاب ورکړو۔

وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا : د الله طریقه نهٔ بدلیږی ځکه چه الله تعالیٰ کښې تغیر او تبدل نهٔ پیدا کیږی، مخکښې چه د الله ذات څنګه وو اوس هم هغه شان دے، مخکښې به ئې چه د نبی او د مؤمن کوم عزت کولو نو اوس ئې هم کوی۔ صحابه کرامو سره ئې چه کوم مددونه کړیدی نو هغه به مونږ سره هم کوی که مونږ د هغوی طریقه اختیار کړو۔

اَقِمِ الصَّلٰوةَ : پدے رکوع کښې بیان د اعمالو دے، پنځه مونځونه، تهجد، دعا، دعوت، قرآن لوستل۔ مناسبت ئې دا دے چه نیك اعمال سبب دے د ثبات علی الدین دے (یعنی چه انسان په دین باندے دے سره مضبوط طیږی) دویم پدے اعمالو سره به د الله مدد حاصلیږی او دشمن به هلاکیږی۔ دریم دا د آخرت دپاره ذخیره جمعه کول دی۔

لِدُلُوۡكِ : ١ - دلوك زوال د نمر ته وئیلے شی او لام په معنیٰ د بَعۡد سره دے یعنی پس د زوال د نمر نه۔ د مفسرینو اجماع ده چه ددے نه مراد پنځه وخته مونځ دے چه د هغے ادا

کول په خپلو محدودو اوقاتو کښې فرض دی۔

د شیخ الاسلام ابن تیمیۃ او اکثرو مفسرینو رائے ده چه د ﴿ دُلُوْكِ الشَّمْسِ ﴾ معنیٰ د نمر زوال دے، چه د ماسپښین او مازیګر مونځ باندے دلالت کوی۔ او د ﴿ غَسَقِ الَّيْلِ ﴾ نه مراد د شپے تیارهٔ ده چه د ماښام او ماسخوتن ترمینځ مشترك دے۔ او د ﴿ قُرْآنَ الْفَجْرِ ﴾ نه مراد د سحر مونځ دے۔

حافظ ابن کثیرؒ وائی چه د نبی کریم ﷺ په متواتر قولی او فعلی سنتونو سره ددے اوقاتو تفصیلی بیان شویدے، او د اسلام د ابتداء نه ترنن پورے امت پدے باندے عمل کوی۔

او دویم دلوك په معنیٰ د غروب (نمر پریوتو) سره هم استعمالیږی، او حافظ ابن القیمؒ وائی چه لفظ د دلوك دواړو ته شامل دے۔ ځکه چه دلوك په اصل کښې میلان ته وئیلے شی، او نمر د زوال او د غروب دواړه وختونو کښې مائله کیږی۔ مګر اوله معنیٰ ئے غوره ده دے دپاره چه پدے کښې ټول مونځونه داخل شی۔

غَسَقِ : تیارهٔ راجمعه کیدو ته وئیلے شی۔ (ابن عباسؓ) ❁ یا تیاره رامخامخ کیدو ته۔ (فراءؒ، زجاجؒ) ❁ یا شفق غائبیدو ته وائی۔ ❁ ابن شُمیلؒ وائی چه غسق د شپے د اولے حصے داخلیدو ته وئیلے شی۔ (فتح البیان والقرطبی)

﴿ اِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا ﴾ قرآن نه مراد قراءت دے او د قراءت نه مراد ټول مونځ دے ځکه چه په مونځ کښې قرآن لوستل اصلی رکن دے، او بل پدے کښې اشاره ده چه سهار مونځ به د قراءت په اعتبار سره دومره اُوږد کولے شی ګویا که دا ټول قراءت دے۔

چونکه په سهار کښې رکعتونه کم دی، نو قرائت به پکښې اُوږد کولے شی چه دا قائمقام د رکعتونو وګرځی او دویمه وجه دا ده چه :

كَانَ مَشْهُوْدًا : یعنی دے ته حاضری د ملائکو کیږی، یعنی په هغے کښې د شپے او د ورځے ملائك جمع کیږی۔ د صحیح بخاری د ابو هریره ؓ نه روایت شوی حدیث نه همدا ثابت دی، او د جمهورو مفسرینو همدا رائے ده۔ او حافظ ابن القیمؒ په «طریق الهجرتین» کښې لیکلی دی چه د مشهود معنیٰ دا هم صحیح ده چه الله ورته حاضریږی او دا معلومیږی د هغه حدیث نه چه الله تعالیٰ آسمان د دنیا ته په آخری شپه کښې راکوزیږی (حَتّٰى يَنْفَجِرَ الْفَجْرُ) تردے چه د صبا رنړا خوره شی۔ (مسلم : ۱۸۱۴)

بیا ئے وئیلی دی چه د الله تعالیٰ رانزدے کیدل بندګانو ته خاص تاثیر لری په صبا مانځه

کښې لکه څنګه چه اول صف کښې ودریدل خاص اثر لري۔ (طریق الهجرتین ۱/۳۲۹)

| |
|---|
| وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ عَسٰٓى |
| او بعض د شپې نه تهجد کوه په قرآن دا زیاتی (عمل) دے ستا دپاره نزدے ده |
| أَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا ﴿۷۹﴾ وَقُلْ رَّبِّ أَدْخِلْنِىْ |
| چه ویه لیږی رب ستا ځائے ستائیلے شوی ته۔ او وایه اے ربه زما ! داخل کړه ما |
| مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّأَخْرِجْنِىْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّاجْعَلْ لِّىْ |
| ځائے د داخلیدو رشتینی ته او اُوباسے ما د ځائے د وتلو د رشتیاؤ نه او اُوګرځوه ما لره |
| مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطَانًا نَّصِيْرًا ﴿۸۰﴾ وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ |
| د طرف ستا نه غلبه چه مددئے شوے وی۔ او اُووایه ! راغے حق او ختم شو باطل |
| إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا ﴿۸۱﴾ |
| یقیناً باطل دے ختمیدونکے۔ |

**تفسیر** : د پنځو مونځونو نه روستو پدے آیت کریمه کښې نبی کریم ﷺ ته د تهجدو مونځ حکم شویدے۔ ددے دپاره چه د هغه درجات پورته شی، ورنه هغه ته خو مخکنی روستنی ټول ګناهونه معاف کړے شوی وو۔ ظاهر دا ده چه په رسول الله ﷺ باندے دا مونځ فرض نۀ وو بلکه مستحب وو لکه څنګه چه د نورو مسلمانانو دپاره دا مونځ مستحب دے۔ د پنځه مونځونو او نوافلو په ادا کولو باندے الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ سره دا وعده کړیده چه د دوی رب به دۀ لره د مقام محمود یعنی شفاعت کبریٰ (لوئی سفارش) اجازت ورکوی، چه د هغے په وجه به نبی ﷺ د قیامت په ورځ د مخلوق دپاره د الله په حضور کښې سفارش کوی، دے دپاره چه د دوی په باره کښې الله تعالیٰ خپله فیصله صادره کړی، جنتیان جنت ته او جهنمیان جهنم ته ولیږلے شی او مخلوق ته د میدان محشر د اُودرو ودریدو او د هغے د سختیانو نه نجات ملاؤ شی۔ د صحیح احادیثو نه د مقام محمود همدا معنیٰ ثابته ده۔ د ابن جریرؒ او اکثرو مفسرینو همدا رائے ده۔

## فوائد الآية

وَمِنَ اللَّيْلِ : مِنْ د تبعيض دپاره دے يعنى په بعض حصه د شپه کښې تهجد کوه، اول د شپے وی او کـه مينـځ او که آخر وی خو آخر د شپه کښې بهتر دی۔ او دا دليل دے چه توله شپـه عبـادت کـول د رسول الله ﷺ نه هميشه دپاره ثابت نهٔ دی، البته کله نا کله رسول الله ﷺ توله شپه مونځ کړيدے مګر په عامو اوقاتو کښې داسے کول خلاف سنت دی۔

فَتَهَجَّدْ بِهِ : تهجد ترك النوم (خوب پريخودو) ته وئيلے شی، د شپے په مونځ کښې بهتره طريقه دا ده چه انسان اول اُوده شی بيا راپاڅيږی، ليکن مونږ ته شريعت دا اجازه راکړيده چه کـه د شپے پـه راپـاڅيدو کښې تکليف وی، نشئ راپاڅيدے نو ماسخوتن کښې ئے وکړه لکـه تـراويح أهم عبادت دے نو ماسخوتن کښې کيږی ځکه کيدے شی چه انسان ورته د شپے راپانهٔ څيږی۔ او تول کال هم دغه شان ماسخوتن کښې تهجد کول جائز دی۔

(بِهِ) ضميـر قـرآن تـه راجع دے۔ او ددے نه معلومه شوه چه ځان بی خوبه کول په قرآن پکار دی که يو تن راپاڅيدو او اودس ئے وکړو بيا ذکر ته کيناستو نو دهٔ ته د تهجدو ثواب نهٔ مـلاويږی، ځکه چه دهٔ په قرآن باندے ځان بی خوبه نکړو۔ نو د شپے په مانځه کښې د قرآن لوستل مقصود دی۔

نَافِلَةً لَّكَ : دے تـه ئے زيـاتـی مونځ ووئيلو ځکه چه يو عبادات د رسول الله ﷺ دی او يو زمـونږ دی، زمونږ عبادات زياتی نهٔ دی بلکه په هغے باندے ګناهونه رژيږی او د رسول الله ﷺ خو ګناهونه نهٔ وو چه هغه پدے عباداتو ورژيږی نو ځکه دا د هغه دپاره زياتی عبادت وو نـو ددے وجـه نـه ددے حـاصل معنىٰ دا ده: (كَرَامَةً لَّكَ) دا ستـا دپـاره د کـرامت او عزت زياتيدو سبب دے د الله په نيز۔ يا سبب د زياتوالی د درجاتو دے۔

عَسٰى أَنْ يَّبْعَثَكَ : دا د تهـجدو فـائـده ده چـه څـوك تـهـجد کوی نو الله تعالىٰ به ئے مقام محـمـود تـه رسـوی، اُوچتے مرتبے به ورکوی۔ لکه رسول الله ﷺ دے ته په يو حديث کښې اشاره کړيده [ شَرَفُ الْمُؤْمِنِ قِيَامُهُ بِاللَّيْلِ وَعِزُّهُ اسْتِغْنَاؤُهُ عَنِ النَّاسِ ] د مؤمن شرافت دا دے چه د شپے تـهـجـد وکـړی او عـزت ئے دا دے چه د خلکو نه مستغنی (بی پرواه) شی۔ (اخرجه الطبرانی فی الاوسط واسناده حسن- (مجمع الزوائد ١٠٣/١١) وصححه الحاكم ووافقه الذهبی وفی اسناده زافر بن سليمان، والصواب انه حسن بمجموع الطرق - البانی فی الصحيحة: (٥٠٥/٢/٨٤١)

نو شپے مونځ ته رسول الله ﷺ د شرافت نوم کيخودو۔

عَسٰی: عسیٰ د الله تعالیٰ د طرفنه ایجاب وی لیکن د بنده په نسبت اُمید وی۔ یعنی تهٔ امید وساته۔

## مقام محمود څه شے دے؟

۱ – اَلشَّفَاعَةُ الْكُبْرٰی ۔ د قیامت په ورځ به انسانان ټول پریشانه وی، په ګرمیٔ او سختو کښې به وی تردے چه مؤمنان به هم پریشانه وی نو دوی به راجمع شی چه الله ته څوك سفارش کونکے وګورو نو انبیاء علیهم السلام ته به راشی هغوی ټول به انکار کوی چه زمونږ رب نن ډیر په غضب دے چه هیڅکله داسے نهٔ دے په غضب شوے، نو آخر کښې به رسول الله ﷺ ته راشی هغه به وفرمائی : (اَنَا لَهَا) زهٔ ددے لائق یم۔ رسول الله ﷺ فرمائی : زهٔ به الله ته په سجده پریوزم او داسے صفتونه به وکړم چه الله به ئے ما ته رازده کړی چه اُوس راته نهٔ دی یاد، او بیا به سفارش کوم نو دغه مقام محمود دے چه اولنی او روستنی ټول انسانان به ئے صفت کوی۔ (صَحیح بخاری: ۷۵۱۰) مسلم (۵۰۰)

(نو پدے کښې د رسول الله ﷺ شان ذکر دے او رد دے په مشرکانو چه تاسو خو اُوس ددے نبی پورے ټوقے کویٔ لیکن د قیامت په ورځ ټول عالَم دهٔ ته محتاج دے)۔

او دارنګه پدے کښې رد دے په هغه خلکو چه هغوی د رسول الله ﷺ په خلاف کښې نور خلك خپل مشران نیولی دی۔ او رد دے په مبتدعینو چه هغوی رسول الله ﷺ ښکته کوی او علماء پرے اُوچتوی۔

۲ – دے کښې ابن جریرؒ د مجاهدؒ نه دا هم نقل کړیدی چه مقام محمود دا دے چه الله تعالیٰ به محمد ﷺ د خپل ځان سره په کرسی باندے کینوی۔ ابن عبد البرّ وائی : مجاهدؒ اګرکه د تفسیر لوی امام دے لیکن د اهل علمو په نیز د هغهٔ دوه قولونه پریخودے شویدی یو دا قول۔ او دویم په تاویل د ﴿ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾ (القیامة:۲۲،۲۳) کښې چه د هغے معنیٰ کوی : انتظار د ثواب به کوی۔ (فتح البیان)

شیخ البانیؒ وائی چه دا روایت دیلمیؒ په مسند الفردوس (۳/۱/۰۵۱) کښې ذکر کړیدے او دا باطل او منکر روایت دے، ابراهیم بن عبد الرزاق پکښې مجهول راوی دے او د یوسف بن الفضل الصیدنانی ترجمه نهٔ ده موجوده۔ او دا روایت د صحیح احادیثو مخالف دے۔ او وئیلی ئے دی چه پدے باندے ډیر علماء دهوکه شویدی او غلطو خلکو ددے نه غلطه فائده اخستے ده چه په اهل السنة باندے ئے طعن لګولے دے چه دوی مجسمه دی، د الله دپاره

جسم ثابتوي۔ تفصیل دپاره رجوع وکړه سلسلة الاحادیث الضعیفة (۱۰٤٥/۱۳) رقم (٦٤٦٥) و (٨٦٦)

وَقُل رَّبِّ أَدۡخِلۡنِي: پدې آیت کښې الله تعالیٰ خپل نبی ته دعاء وربښائی او دا هم د هجرت متعلق ده، ځکه چه مشرکانو د هغهٔ د مکې نه د ویستلو اراده کړې وه، نو الله ورته فرمائی چه نزدې ده چه تا ویاسی نو داسې دعاء غواړه او (وَقُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ) دا په هغه وخت کښې وایه چه مکې ته فاتح داخلیږې۔ نو د وتلو او ننوتو دواړو وخت کښې دعاګانې ئې ورته وخودلې۔

## شان نزول

امام احمدؒ او ترمذیؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړیدې چه دا آیت د مکې نه مدینې طرف ته د هجرت حکم راتلو نه مخکښې نازل شوې وو۔

(واسناده ضعیف فیه قابوس بن ابی ظبیان وفیه لین)

پدې کښې نبی ﷺ ته تعلیم ورکړې شو چه په مانځه او غیر مانځه کښې دا دعا کوه۔ ګویا که دا زیرې وو چه نزدې ده چه د هجرت حکم صادریدونکې دې۔

## د مدخل صدق واخرجنی مخرج صدق څه مطلب؟

۱ - صدق صفت د مکان هم او د دخول هم دې۔ یو مصداق ئې مکه او مدینه ده، یعنی ما رشتینی ځای ته داخل کړه چه مدینه ده او ما ویاسه د رشتینی ځای نه۔ رشتینی ځای هغې ته وائی چه په هغې کښې الله تعالیٰ برکتونه واچوی۔ یعنی د خیر ځای نه مې خیر ځای ته بوځه۔ یا مطلب دا چه ما ته په مدینه کښې هیڅ تکلیف مهٔ راکوه او ما د مکې نه پداسې طریقه ویاسه چه زما په زړه کښې دې ته د راواپس کیدو جذبه باقی پاتې نشی۔

۲ - مدخل صدق قبر دې او مخرج صدق دنیا ده یعنی چه د دنیا نه زهٔ ځم او قبر ته داخلیږم پداسې حال کښې چه ما دنیا کښې ستا ذمه واریانې سنبال کړې وی او ستا دین مې پوره بیان کړې وی۔ او قبر مې روښانه کړه۔

۳- زیات غوره دا ده چه دا دخول او خروج په طاعاتو کښې مراد دې یعنی د یوې نیکئ نه مې ویاسه او په بله کښې مې ورننباسه یعنی د دعوت نه روستو عبادت، د جهاد نه روستو د مخلوق خدمت۔ نو د نیکیو د ډیروالی دپاره دا ډیره ښه دعاء ده۔

٤- ځینی وائی چه دا آیت عام دې ټولو ځیزونو ته شامل دې یعنی هر کار ته چه زهٔ

داخلیږم نو هغه راله برابر کړه او د کوم کار نه چه راواپس کیږم هغه هم راله برابر کړه. او ددې نور مصداقات په تفسیر «فتح البیان ٤/١٦٦» کښې وګوره.

سُلْطَانًا نَّصِيرًا: ١ - سلطان معنیٰ ده غلبه، او غلبه کله داسې وی چه انسان باندې دوباره دشمن راشی او علاقه ترې ونیسی، فتح په شکست بدله شی نو (نَّصِيرًا) داسې غلبه چه مدد والا وی، ما سره مددګاره وی. ٢ - یا سلطان ښکاره او مضبوط دلیل ته وائی چه ما سره مدد وکړی زما د مخالفینو په مقابله کښې.

٣ - یا سلطان نه مراد طاقت او بادشاهی ده چه زهٔ د هغې په وجه ستا دین قائم کړم، ځکه چه په صحیح طریقه دین قائمولو دپاره سلطان ضروری دې، او دا قول د حسنؒ او قتادةؒ دې او ابن جریرؒ او ابن کثیرؒ غوره کړیدې.

وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ: پدې آیت کریمه کښې نبی ﷺ ته زیرې ورکړې شویدې چه مکه به فتح کیږی، او تهٔ به دې ته د فاتح په حیثیت داخلیږې، د کعبې نه ګیر چاپیره درې سوه شپیته بتان به ماتوې، او په خپله ژبه مبارکه سره به وائې چه اُوس حق راغلو او د باطل ملا ماته شوه او د حق د جذبې او جوش مخې ته باطل کله ټینګیدې شی.

بخاریؒ، مسلمؒ، حافظ ابو یعلیٰؒ او احمدؒ او نورو محدثینو د ابن مسعود ﷺ نه روایت کړیدې چه کله نبی کریم ﷺ مکې ته داخل شو نو په خانه کعبه کښې ګیر چاپیره درې سوه شپیته بتان وو. نبی ﷺ به هغه په لرګی سره وهل او خکته به ئې راګوزارل او ﴿جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ، اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا﴾ ئې لوستلو. (بخاری: ٤٧٢٠) ومسلم (٤٧٢٥)

دارنګه د هجرت په وخت کښې داسې وایه چه حق راغې او باطل ختم شو. ځکه چه د هجرت او د جهاد په وجه داسې کار کیږی، رسول الله ﷺ چه کله هجرت کولو نو دا نخه وه چه باطل ختم شو لکه سورة التوبه آیت (٤٠) کښې تیر شویدی ﴿وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِيْنَ كَفَرُوا السُّفْلٰى﴾ الله تعالیٰ د کافرانو کلمه (دین) ښکته کړو.

ځکه چه کله یو نبی هجرت کوی نو د هغه دین غالبه کوی او کافران مغلوبه کوی او دویم په جهاد سره. او خاصکر د فتح د مکه په موقع کښې ئې دا آیتونه لوستل.

كَانَ زَهُوْقًا: یعنی په مقابله د حق کښې باطل ختمیدونکې وی، خو دا په هغه وخت کښې چه په یوه علاقه کښې حق بیانیږی او که حق نهٔ بیانیږی نو بیا باطل نهٔ ختمیږی. او لفظ د حق هر حکم شرعی ته شامل دې چه شرعی حکم راشی نو باطل، شرك، کفر او بدعت وغیره به ختمیږی.

| وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ |
| --- |
| او نازلوو مونږ د قرآن نه هغه شے چه هغه شفاء او رحمت دے دپاره د مؤمنانو |
| وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ إِلَّا خَسَارًا ﴿۸۲﴾ وَإِذَا أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنْسَانِ |
| او نهٔ زیاتوی ظالمانو لره مګر تاوان۔ او کله چه انعام اُوکړو مونږ په انسان باندے |
| أَعْرَضَ وَنَاٰى بِجَانِبِهٖ وَإِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ كَانَ يَئُوْسًا ﴿۸۳﴾ |
| مخ واړوی او وړاندے کړی اړخ خپل او کله چه اُورسی دهٔ ته تکلیف نو وی دے نا اُمیده۔ |

**تفسیر** : قرآن ته ترغیب ورکوی۔ او اشاره ده چه مهاجر لره قرآن ډیر لوستل پکار دی، او اشاره ده چه د قرآن نه د فائدے اخستو دپاره ایمان ضروری دے ځکه چه کله په بنده کښې ضد او عناد موجود وی، نو د قرآن په سبب سره د هغهٔ نقصان نور هم زیاتیږی۔

مَا هُوَ شِفَآءٌ : پدے آیت کریمه کښې الله تعالیٰ قرآن کریم ته د مؤمنانو دپاره شفاء او رحمت وئیلے دے۔ ددے په ذریعه مؤمنانو ته روحانی او جسمانی دواړه قسمه شفاء ملاویږی۔ د قرآن کریم په تلاوت کولو او ددے په تعلیماتو باندے عمل کولو سره د ګمراهئ او د شکونو او شبهاتو او شیطانی وسوسو او ټولو بدو اخلاقو او عاداتو نه نجات ملاویږی، او ددے په لوستلو او دم اچولو سره د جسمانی امراضو نه هم شفاء ملاویږی لکه امام بخاری رحمه الله د ابوسعید خدری ﷺ نه په روایت کړی حدیث کښې ثابت دی چه سورة الفاتحه اُوه کرته لوستلو او دم کولو سره د مار زهر راووتل، او ددے په عوض کښې صحابه کرامو ته دیرش چیلئ ملاؤ شوے۔ (بخاری:۵۰۰۷) مسلم : (۵۸۶۴)

او رحمة دے مؤمنانو دپاره ځکه چه مؤمنانو ته پدے کښې تسلی راځی، هغوی ته ددے په لوستلو اجر ملاویږی بیا پرے جنت ملاویږی۔

بیا ئے دلته (مِنْ) لفظ راوړو؟ بعض وائی چه دا مِنْ بیانیه دے او دا بیان دے د (مَا هُوَ شِفَآءٌ) دپاره۔ بیا ئے داسے ولے نهٔ وئیل چه (وَنُنَزِّلُ الْقُرْآنَ مَا هُوَ شِفَآءٌ) ددے حکمة او راز دا دے چه بعض قرآن نهٔ بلکه ټول قرآن شفاء ده او (مِنْ) کښې اشاره ده چه قرآن ټول هم شفاء ده او هر یو آیت ئے جدا جدا شفاء ده، او دا د دوائی د معجونو په شان نهٔ دے چه ټول اجزاء په یو ځای جمع شی نو تاثیر کوی، او یو اځے یو اځے ئے دومره تاثیر نهٔ وی۔ نو مِنْ دلته د جنس دپاره

دے، نۀ د تبعيض دپاره۔

امام ابن القيم رحمه الله په ((زاد المعاد)) كښې د اَدْوِيه او اَغْذِيه په ضمن كښې ليكلي دي چه د قرآن په ذريعه تمام قلبي او بدني بيماريانو ته مكمل شفا ملاويږي او د دنيا او د آخرت د ټولو بيماريانو ته هم شفاء ملاويږي، ليكن هر سړے ددے نه د فائده اخستو او ددے په ذريعه د شفاء حاصلولو صلاحيت نۀ لري۔

وَإِذَا أَنْعَمْنَا : اُوس د ظالمانو تشريح بيانوي او پدے كښې د عام انسان مزاج بيانيږي بيا خاصكر دا د كافر صفت او حالت وي چه دے د ايمان د رڼا نه محروميږي او د دنيا محبت ئے د آخرت په فكر باندے غالب كيږي۔

يعني كله چه الله تعالىٰ دے انسان ته دنياوي نعمتونه وركړي لكه صحت، مال، دولت، اولاد، حكومت او مشري نو دے د الله نه مخ واړوي، الله تعالىٰ ته ئے فكر هم نۀ وي او غافل وي، او ددے دپاسه لا دا چه تكبر هم شروع كړي بيا خلك سپك ګڼړي او حق له ديكه وركوي، او دا معنىٰ د (وَنَاٰ بِجَانِبِه) ده۔ يعني دے غافل هم دے او متكبر هم دے۔

او ددے په خلاف د مؤمن حال دے چه په هغه باندے كله الله تعالىٰ يو نعمت وكړي نو د الله شكر كوي او الله يادوي، او چه كله مصيبت ورسيږي نو بيا صبر كوي لكه په سورة هود (۹/۱۰/۱۱) آيتونو كښې الله تعالىٰ همدا حقيقت بيان فرمائيلے دے، او دا صفت د انسان د حم السجده په آخر كښې په پنځو طريقو سره ذكر شويدے چه تشريح ته ئے انتظار كوه ان شاء الله تعالىٰ چه زر به راشي۔

يَئُوْسًا : دريم بد صفت ئے دا دے چه د مصيبت په وخت كښې د الله تعالىٰ نه نا اميده وي، او دا ګمان نۀ كوي چه دا نعمت به ورته الله تعالىٰ بيرته وركړي خو هغه ته متوجه كيدل پكار دي۔ نو ددۀ په الله باندے بدګماني وي او هغه ته د ظلم نسبت كوي او بيرته ترے اميد نۀ ساتي۔

| قُلْ كُلٌّ يَّعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ فَرَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَنْ |
| --- |
| اُووايه ! هر يو تن عمل كوي په خپله طريقه نو رب ستاسو ښۀ پوهه دے په هغه چا |
| هُوَ اَهْدٰى سَبِيْلًا ﴿۸٤﴾ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ |
| چه روان دے په سمه لار۔ او تپوس كوي دوي ستا نه په باره د روح كښې اُووايه ! روح |

| مِنْ أَمْرِ رَبِّيْ وَمَا أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٨٥﴾ |
| --- |
| د حکم د رب زما نه دے او نۀ دے درکړے شوے تاسو ته د پوهے نه مګر لږه۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کښې د مؤمن صفت او د کافر بدی بیان شویده په طریقه د قانون سره او پدے کښې تسلی ده رسول الله ﷺ ته۔

**عَلٰی شَاكِلَتِهٖ** : عَلٰی مَذْهَبِهٖ وَطَرِيْقَتِهِ الَّتِيْ تُشَاكِلُ حَالَهٗ۔ یعنی په دنیا کښې هر انسان د خپل مذهب او طریقے او اخلاق او کردار مطابق عمل کوی۔ یعنی که یو انسان کښې خباثت وی نو د هغه لاره به هم د خباثت وی او که دۀ کښې هدایت او طیبت وی نو لاره ئے هم د هدایت او مزیداره وی، او دا داسے آیت دے لکه د عربو مقوله ده [كُلُّ إِنَاءٍ يَنْضِحُ بِمَا فِيْهِ] هر لوښے هغه شے راګوزاری چه په هغے کښې پراتۀ وی۔ او که د یو انسان په زړه کښې د الله محبت نشته بلکه د دنیا یا د زنانو یا د عهدو سره مینه لری، یا په کښې شرك او تکبر دے، نو د هغه د خولے نه به د هغے مطابق خبرے راوځی او که زړه کښې ئے د الله محبت دے نو د هغے مطابق به خبرے کوی۔

نو دا د مخکښې جملے سره ولګیدو چه دے ظالمانو ولے د قرآن او د الله نه اعراض وکړو؟ وجه دا ده چه دا دننه خبیثان دی او د دوی په ختـه کښې فساد اغرلے شویدے۔

**فَرَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ أَهْدٰی سَبِيْلًا** : نو دنیا کښې خو ټول خلك دا دعویٰ کوی چه زۀ په حق او هدایت روان یم اګرکه په باطله روان وی خو الله تعالیٰ ته هدایت والا معلوم دی نو هغوی به هدایت ته راولی او څوك چه فساد والا دی هغوی به د هدایت نه محروم کوی۔ او د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ هر یو ته د هغه د عمل او کردار مطابق بدله ورکوی۔

**وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ** : پدے آیت کښې زجر دے په عنادی او تعنتی سوال کولو سره چه مقصد پکښې د داعی چپ کول وی، نۀ هدایت او علم حاصلول۔

## ربط

مخکښې د معرضینو حال ذکر شو په (اَعْرَضَ وَنَاٰی بِجَانِبِهٖ) سره نو دلته د دغه معرضینو تپوس بیانوی چه دا تپوس د ضد نه ډك وو۔

## شان نزول

دا سوال مشرکانو کړے وو په واسطه د یهودیانو سره (چه د یهودو نه ئے درے سوالونه زده

کړی وو او بیا ئے په رسول الله ﷺ باندے وکړل لکه په ابتداء د سورة الکهف کښې راځی ان شاء الله تعالیٰ) یو په هغے کښې د روح په باره کښې تپوس وو۔ نو سورة الکهف د هغے په جواب کښې راغے او دا آیت چونکه ددے ځای سره مناسب وو نو دلته ولګولے شو۔

دویم قول دا دے چه دا تپوس یهودو په مدینه کښې کړیدے او دا آیت مدنی دے۔

ظاهر دا ده چه دواړو ځایونو کښې دا تپوس شویدے۔ بخاریؒ، مسلمؒ او امام احمدؒ وغیره د ابن مسعود ﷺ نه روایت کړیدے چه زهٔ د رسول الله ﷺ سره په مدینه کښې روان وم او رسول الله ﷺ په یو چوکه باندے تکیه لګولو سره د یهودو په یوه ډله ورتیر شو، نو دوی یو بل ته وویل چه ددے سړی نه د روح په باره کښې تپوس وکړئ، نو بعضو وویل چه تپوس ترے مهٔ کوئ (لِئَلَّا يَأْتِيَكُمْ بِشَيْءٍ تَكْرَهُوْنَهٗ) کیدے شی چه داسے جواب به درکړی چه تاسو به ئے بد ګنړئ۔ نو یو پکښې وویل چه زهٔ ئے خامخا کوم، نو وے ویل چه اے محمده! (مَا الرُّوْحُ؟) روح څه شے دے؟ نو رسول الله ﷺ په دغه چوکه باندے همغه شان تکیه لګولے وو (غلے شو)، ما ګمان وکړو چه اُوس ورته وحی کیږی، نو بیا دا آیت نازل شو او رسول الله ﷺ ولوستلو۔ (بخاری باب الاعتصام باب ۸۰۳) ومسلم فی المنافقین حدیث ۳۲)۔

یهودو مشرکانو ته وئیلی وو چه که دے رسول د روح په باره کښې پوره معلومات درکړل دا به د الله رسول نهٔ وی او که هیڅ ئے ونهٔ وئیل نو هم رسول به نهٔ وی او که اجمالی معلومات ئے درکړل نو دا به د الله رسول وی۔ نو ځکه الله تعالیٰ د هغے په باره کښې معمولی علم ورکړو۔

## روح څه شے دے؟

ددے په تعیین کښې درے اقوال دی (۱) روح یو لوی ملائك دے چه په طاقت کښې د ټولو ملائکو مقابله کولے شی، او دا په هغه آیت (يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا) کښې هم مراد دے۔ او حافظ ابن القیمؒ په ((بدائع التفسیر)) کښې دا غوره کړیدے، او دا ئے وئیلی دی چه په قرآن کښې د معلوم روح دپاره (نفس، انفس) لفظ استعمالیږی۔ ﴿اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ﴾ ﴿اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ﴾ او په قرآن کښې د روح اطلاق یا په قرآن شویدے یا په دغه ملائك۔

(۲) یا د روح نه مراد قرآن کریم دے لکه آیت کښې دی ﴿وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا﴾ ﴿يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ﴾ (النحل:۲) معنیٰ دا ده چه قرآن زما د رب په حکم سره راغلے دے۔ لیکن محققینو مفسرینو دا دواړه تفسیرونه ضعیف ګنړلی دی۔ او دا

خبره ئے کریده چه دا څه لازمه نهٔ ده چه روح دِ ے همیشه په دغه معانو وی۔ بلکه ددے اطلاق په ډیرو څیزونو کیږی۔

(۳) نو صحیح خبره دا ده چه روح نه مراد هغه روح دے چه په بدن د انسان کښ وی، او دا د شان نزول او تپوس نه او ددے سیاق نه معلو میږی۔

عَنِ الرُّوْحِ: د دوی د سوال مقصد دا وو چه دا راته بیان کړه چه روح څه شے دے، د څه شی نه جوړ دے او په بدن کښ ناست دے که ولاړ، او څه حقیقت لری؟ ددے تفصیل مونږ ته بیان کړه؟ جواب وشو: (مِنْ اَمْرِ رَبِّیْ) یعنی دا د عالَم الغیب نه دے او د الله په حکم پیدا دے۔ یا امر په معنیٰ د شان دے۔ یعنی دا د هغه څیزونو نه دے چه الله تعالیٰ د هغے علم ځان پورے خاص کړیدے او بندګان ئے پرے نهٔ دی خبر کړی۔

وَمَا اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا: او تاسو ته د روح په باره کښ علم ډیر لږ درکړے شویدے او هغه دا چه روح یو پټ شے دے چه په ټول انسانی جسم کښ خور وی، او چه د هغے په سبب د انسان جسم ژوندے وی، خوراك څکاك او لیدل کتل کوی، او چه کله د بدن نه وځی نو هیڅ تصرفات نشی کولے، او روح یو پاك شے دے چه کله په بدن کښ وی نو بدن بوئی نهٔ کوی، خرابیږی نهٔ، او چه کله د بدن نه وځی نو یوه ورځ پس بدن بوئی شروع کړی۔

بیا روح د الله تعالیٰ د معرفت عجیب مثال دے، او دا په ډیرو طریقو سره، یو دا چه روح په انسان کښ دننه موجود دے او انسان ئے نهٔ وینی او نهٔ ګوتے وروړے شی حال دا چه دا یو مخلوق دے، نو دغه شان خالق مدبر د عالَم موجود دے او مونږ ته نهٔ ښکاره کیږی لکه څنګه چه روح مدبر د بدن دے۔ اګرکه روح په بدن کښ دننه وی، او الله تعالیٰ د کائناتو نه بهر په عرش باندے دے۔

دویمه طریقه: روح د انسان په خپل بدن کښ دے او دے ئے کیفیت نشی بیانولے چه په څه طریقه دے، ناست دے که ولاړ او که پروت؟ او شکل هم ورله نشی بیانولے نو دغه شان الله تعالیٰ یو ذات دے چه انسان د هغه د تللو راتللو کیناستو کیفیت نشی بیانولے۔ اګرکه د الله تعالیٰ صفات په قرآن او حدیث کښ موجود دی خو پوره کیفیت سره ئے بندګان نشی پیژندلے۔

دلته امام رازیؒ یو پشت تعریفونه د روح ذکر کړیدی او بعض محققینو د روح په حقیقت معلومولو کښ د علماؤ اتلس سوه (۱۸۰۰) قولونه ذکر کړیدی لیکن هسے ئے ځانونه

ستړی کریدی چه هیڅ فائده پکښې نشته او خبره همغه شان پاتے ده څنګه چه د روح حقیقت علم د الله نه سوئ هیچا ته نشته، او ددے آیت خلاف کښې واقع شویدے.

(فتح البیان)

بیا په تورات کښې هم د روح په باره کښې دغه شان اجمالی بیان وو پدے وجه یهودو ته پته ولګیده چه دا د الله تعالیٰ حق رسول او حق کتاب دے، لیکن ایمان ئے نهٔ راوړو.

وَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ : دے کښې بله فائده دا ده چه د علم نه مراد عام علمونه دی نو معنیٰ دا ده چه تاسو ته د الله په نسبت ډیر لږ علمونه درکړے شویدی، او خپله بعض انسانانو ته لکه انبیاء علیهم السلام ته الله تعالیٰ د عامو انسانانو په نسبت ډیر علمونه ورکړیدی لیکن د الله په نسبت بیخی کم دی. او دا آیت دلیل دے چه د الله تعالیٰ علم محیط او علم کلی دے نو د هغه سره پدے کښې هیڅوك شریك نشی کیدے.

| وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِیْٓ اَوْحَیْنَآ اِلَیْكَ ثُمَّ |
|---|
| او که اُوغواړو مونږ خامخا بویه څو (ستا نه) هغه شے چه وحی کړیده مونږ تا ته بیا به |
| لَا تَجِدُ لَكَ بِهٖ عَلَیْنَا وَكِیْلًا ﴿۸۶﴾ اِلَّا |
| ونهٔ مومے د خپل ځان دپاره په هغے سره په مونږ باندے ذمه وار. مګر (نهٔ ئے بوځو) |
| رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ اِنَّ فَضْلَهٗ كَانَ عَلَیْكَ كَبِیْرًا ﴿۸۷﴾ |
| د وجے د رحمت د رب ستا نه، یقیناً فضل د الله دے په تا باندے لوئی. |

**تفسیر :** ربط :

مخکښې الله تعالیٰ وفرمایل چه انسانانو ته د الله د طرفنه ډیر کم علم ورکړے شویدے نو دلته بیانوی چه که الله وغواړی نو د دوی نه به دا لږ علم هم واخلی کوم چه ئے د قرآن په ذریعه ورکړیدے. او پدے کښې رسول الله ﷺ ته تسلی هم ده.

او دا مقدمه ده د روستو اعتراضاتو د مشرکانو دپاره. چه مشرکان خو په تا باندے اعتراضونه کوی، او قرآن کریم د الله تعالیٰ نعمت نهٔ ګنړی نو کیدے شی چه زهٔ ئے د دوی نه واخلم لیکن په تا باندے د الله تعالیٰ د رحم کولو د وجه نه ئے وانخستو نو صبر کوه او د دوی د اعتراضونو پرواه مهٔ کوه.

مقصد د آیت دا دے چه الله تعالیٰ په خپل نبی (ﷺ) باندے د قرآن کریم په شان د لوئی نعمت احسان کړیدے چه د مومنانو د هر درد دپاره پټئ او مجسم رحمت دے۔ که هغه غوختلے نو هغه به ئے ستا د سینے نه او د کاغذ د صفحے نه وران کړے وے، او یو آیت به هم باقی پاتے نهٔ وے، او هیڅ یو شخص به داسے نهٔ وے چه الله تعالیٰ ددے کار نه منع کړی۔ لیکن دا د هغهٔ فضل او کرم دے چه هغهٔ داسے نهٔ دی کړی بلکه هغه به قیامت ته نزدے پورے ددے حفاظت کوی، او د نبی ﷺ د نبوت په رشتینوالی به دلیل او حجت جوړولو سره هغه باقی پریدی۔ (فتح)

**إِلَّا رَحْمَةً** : دا استثناء منقطع ده (لٰكِنْ اَبْقَيْنَاهُ رَحْمَةً مِنْ رَبِّكَ) لیکن مونږ باقی پریخودو دپاره د رحم د طرف د رب ستا نه۔

قتادهٔ به پدے آیت کښې بنهٔ خبره کوله : (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَمْ يَذْهَبْ بِهٰذَا الْكِتَابِ حِيْنَ رَدَّهُ الْاَوَائِلُ) الله لره حمد دے چه دا کتاب ئے وانخستو کله چه اولنو خلکو رد کړو۔ که الله په غضب شوے وے چه زهٔ درته داسے ښائسته کتاب درکوم او تاسو ئے رد کوئ نو څئ دربانده نهٔ ئے نازلوم نو مونږ به څه کولے۔ او دغه شان به په جهالت کښې پراته وے۔ لکه انسانان داسے کوی چه د لرو د وجه نه ډیرو باندے نعمت بندوی او د وچو د وجه نه لامده هم سیزی۔

**إِنَّ فَضْلَهُ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا** : په نبی ﷺ باندے د الله صرف دا فضل او کرم نهٔ دے بلکه په هغه باندے د الله احسانات بیشماره دی۔ الله تعالیٰ هغه لره خاتم الانبیاء کړخولے، د آسمان زیارت او ملاقات ئے پرے کړے، د معراج په شپه ئے په بیت المقدس کښې په هغه باندے ټولو انبیاؤ ته امامت کړے، او د قیامت په ورځ به الله هغه ته د شفاعتِ عظمیٰ (لوئی سفارش) اجازت ورکوی۔

او دا آیت دلیل دے چه رسول الله ﷺ وحی د ځان نه نشی جوړولے۔

| قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ |
|---|
| اُووایه ! که راجمع شی انسانان او پیریان پدے چه راوړی په مثل ددے قرآن |
| لَا يَاْتُوْنَ بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا ﴿٨٨﴾ |
| نو نشی راوړے ددے په مثل اګرکه شی بعض د دوی د بعضو دپاره مددګار۔ |

| وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِیْ هٰذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ |
|---|
| او یقیناً بیان کړیدی مونږ خلقو لره په دے قرآن کښې د هر قسم بیان نه |
| فَأَبٰى أَكْثَرُ النَّاسِ إِلَّا كُفُوْرًا ﴿۸۹﴾ |
| نو پریخوستو ډیرو خلقو (هرڅه) سوئ د انکار (ناشکرئ) نه۔ |

**تفسیر:** ربط :

داسے قیمتی کتاب تاسو رد کوئ حال دا چه ددے په شان کتاب راوړو نه خو تول انسانان او پیریان عاجز دی۔ او پدے آیت کښې د قرآن کریم رشتینوالے او فضیلت او عظمت ذکر دے په طریقه د تحدی او مقابلے سره۔

شان نزول

ابن اسحاق، ابن جریرؒ او ابن ابی حاتمؒ وغیره د ابن عباس ؓ نه روایت کړیدے چه قریش کافرانو رسول الله ﷺ ته وئیلی وو چه که مونږ غواړو نو ستا د قرآن په شان کلام راوړے شو، او په هغه وخت به ستا دا دعوئ باطله شی چه دا د الله کلام دے، او ستا د نبوت د رشتینوالی دلیل دے۔ نو الله تعالیٰ نبی ﷺ ته حکم وکړو چه تهٔ دوی ته ووایه چه که ټول انسانان او پیریان راجمع شی او کوشش وکړی چه ددے قرآن په شان کلام راوړی نو دوی داسے نشی کولے، ځکه چه دا د الله کلام دے چه د وحی په ذریعه ئے په خپل بنده او رسول محمد ﷺ باندے نازل کړے۔ او زمانه گواه ده چه څوارلس سوه صدئ تیرے شوے او هیڅ شخص د قرآن په شان کلام رانهٔ وړے شو۔

او په یو بل روایت د ابن عباس ؓ کښې دی چه رسول الله ﷺ ته محمد بن شحان او نعیمان بن آصی او بحری بن عمرو او سلام بن مِشکم راغلو ورته ئے ووئیل : اے محمده ! مونږ ته خبر راکړه پدے کتاب چه تا راوړیدے آیا دا د الله د طرفنه دے، ځکه چه مونږ خو دا وینو چه غیر مرتب دے لکه څنګه چه تورات مرتب وو نو رسول الله ﷺ دوی ته ووئیل : قسم په الله تاسو ته یقینی معلومه ده چه دا د الله د طرفنه دے۔ نو هغوی ووئیل : مونږ به تا ته ددے په شان کتاب راوړو۔ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ (فتح البیان)

حافظ ابن کثیرؒ وائی چه پدے روایت کښې نظر دے ځکه چه دا سورت مکی دے او دغه واقعه په مدینه کښې راغلے ده، آه۔ کیدے شی چه په مدینه کښې هم دغسے واقع شوی وی۔

بَعۡضُهُمۡ لِبَعۡضٍ ظَهِيرًا : یعنی که شریك یو خای کښې راجمع شي او یو بل له لقمه (فتح) ورکوي چه داسې داسې عبارت جوړ کړئ هم نهٔ ئې شي جوړولې ځکه چه د انسانانو سره هغه علمونه او رازونه نشته کوم چه الله تعالیٰ په خپل کتاب کښې ایخي دي نو جاهل به د عالم څه مقابله وکړي؟!۔

صَرَّفۡنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الۡقُرۡاٰنِ: اوس وجه بیانوي چه خلك د قرآن مثل ځکه نشي راوړې چه قرآن کریم کښې هر قسم بیان موجود دې، او هغه د بل چا په کلام کښې نشي کیدې۔ قرآن کښې بیا ډیر کمال دې، امیانه کتاب هم دې چه سیده ساده خبره پیش کوي چه دا عقیده وساته او دا مهٔ، او دا عمل وکړه او دا مهٔ، او دننه پکښې بیا علمونه او رازونه هم دي چه انسانان ئې حیران کړیدي۔

مِنۡ كُلِّ مَثَلٍ : اَيۡ مِنۡ كُلِّ نَوۡعٍ مِنۡ اَنۡوَاعِ الۡبَيَانِ۔ مثل هر نوع بیان ته وائي لکه حقیقت او مجاز، صنعتونه او د بیان طریقې او استعارات او قصې او مثالونه او وعد او وعید عقائد او احکام، حکمتونه او عبرتونه، دعوې او دلیلونه، دې دپاره چه د انسان په زړه باندې اثر وکړي ځکه چه الله تعالیٰ ته د انسانانو د زړونو حالات معلوم دي چه دا خبرې او طریقې پرې اثر کوي چه هغه انسان ته پوره طریقې سره نشي معلومیدې۔

فَاَبٰۤى اَكۡثَرُ النَّاسِ : دا عربي: کښې یو مثال دې چه خلك هر شي پریدي خو انکار او کفر پرینږدي یعني دائې ځان سره لازم کړیدې چه ددې په خلاف هر شي پریخودو ته تیار دې۔

| |
|---|
| وَقَالُوۡا لَنۡ نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتّٰى تَفۡجُرَ لَنَا مِنَ الۡاَرۡضِ |
| او وائي دوی هیڅرې ایمان نهٔ راوړو په تا تردې چه روانې کړې تهٔ مونږ لره د زمکې نه |
| يَنۡۢبُوۡعًا ﴿۹۰﴾ اَوۡ تَكُوۡنَ لَكَ جَنَّةٌ مِّنۡ نَّخِيۡلٍ وَّعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الۡاَنۡهٰرَ خِلٰلَهَا |
| چینې۔ یا شي تا لره باغ د کجورو او انګورو نه نو روان کړې تهٔ نهرونه په مینځ ددې کښې |
| تَفۡجِيۡرًا ﴿۹۱﴾ اَوۡ تُسۡقِطَ السَّمَآءَ كَمَا زَعَمۡتَ |
| په ډیر روانولو سره۔ یا ګوزار کړې تهٔ آسمان لکه څرنګ چه ګمان کوې تهٔ |
| عَلَيۡنَا كِسَفًا اَوۡ تَاۡتِىَ بِاللّٰهِ وَالۡمَلٰۤـئِكَةِ قَبِيۡلًا ﴿۹۲﴾ اَوۡ يَكُوۡنَ لَكَ بَيۡتٌ |
| په مونږ باندې ټکړې، یا راولې تهٔ الله تعالیٰ او ملائکو لره مخامخ۔ یا شي تا لره کور |

| مِنْ زُخْرُفٍ أَوْ تَرْقٰى فِي السَّمَآءِ وَلَنْ نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتّٰى |
|---|
| د سرو زرو نه یا اُوخیژې ته آسمان ته او هیچرې مونږ نهٔ منو ختل ستا تردې |
| تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَّقْرَؤُهٗ ؕ قُلْ |
| چه نازل کړې ته په مونږ باندې کتاب چه اُولولو مونږه هغه، ته اُووایه |
| سُبْحَانَ رَبِّيْ هَلْ كُنْتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۳﴾ |
| پاکي ده رب زما لره، نهٔ یم زهٔ مګر انسان رسول یم۔ |

**تفسیر**: ربط : دا د مشرکانو د ناشکرئ بیان دے۔

## شان نزول

ابن جریرؒ د ابن عباس ؓ نه روایت راوړیدے چه یوه ورځ مشرکان (عتبه، شیبه، ابوسفیان بن حرب، ابو البختري، اسود بن المطلب، زمعه بن الاسود، ولید بن مغیره، ابو جهل بن هشام، عبد الله بن ابی امیه، امیه بن خلف، العاص بن وائل، نبیه بن الحجاج او منبه بن الحجاج) د کعبې په خوا کښې د نمر پریوتو نه روستو راجمع شو نو خپل مینځ کښې ئے ووېل چه مونږ خو ددې سړی نه ډیر تنګ راغلو، دهٔ پسې څوك ولیږئ چه خبره ورسره وکړو، (څه مطالبے ترے کوو که دا ئے پوره کړے خو صحیح ده ایمان به راوړو، او که نهٔ وی نو جدائي به ترے وکړو۔) نو د رسول الله ﷺ پسے ئے جواب ولیږلو، رسول الله ﷺ په جلتئ ورغلو دا حرص ئے کولو چه کیدے شی چه دے خلکو زما په باره کښې د منلو فیصله کړی وی، او هدایت ته راشی ځکه چه د خپل قوم په ایمان باندے ډیر حرص کونکے وو) نو مشرکانو پرے طعنونه شروع کړل چه ګوره ستا په وجه په مونږ کښې اختلافات پیدا شو او تا زمونږ مشرانو ته بد رد ووېل او زمونږ دین باندے ډے عیبونه ولګول۔ بیا ئے هغه باندے اعتراضونه شروع کړل او وے وېل چه مونږ ستا په دعوت د توحید باندے تر هغه وخت پورے ایمان نهٔ راوړو او د قیامت د ورځے او ستا د نبوت تر هغه وخته پورے تصدیق نهٔ کوو، ترڅو چه ته کومه نخه پیش نکړے۔

نو داسے وکړه چه زمونږ دا علاقے ډیرے تنګے دی او مالونه مو کم او ژوند مو سخت دے نو د خپل رب نه وغواړه کوم چه ته رالیږلے ئے چه دا غرونه دلته نه روان کړی چه زمونږ

کلے فراخه شي، او پدے کښ دے د شام او د عراق په شان نهرونه روان شي (ځکه چه مونږ د زمزم د اوبو نه بوقو راویستلو او د لرے ځایونو نه اوبو راوړلو سترې کړې یو)
او بل پکښې وویل چه پکار ده چه ستا دپاره د کجورو او انګورو یو باغ موجود شي چه د هغې په مینځ کښې نهرونه روان کړے، یا ستا د ګمان مطابق آسمان د عذاب په توګه زمونږ په سرونو راګوزار کړه، یا الله او د هغه ملائك زمونږ مخې ته راوله چه ستا د رشتینوالی ګواهي ورکړي، یا ستا دپاره د سرو یو کور ناځاپي راوځي، یا پورې لګولو سره آسمان ته وخیژه۔ او ګوره، ستا صرف په آسمان ته ختلو سره مونږ ایمان نهٔ راوړو بلکه ضروري ده چه هلته نه به یو کتاب ځان سره راوړے چه مونږ ته په کښې حکم شوے وی چه په تا باندے ایمان راوړو، او ستا تابعداري وکړو۔
نبی کریم ﷺ د دوی نه په خفګان کښې پاځیدو نو الله تعالیٰ دا آیتونه راولیږل پدے کښې ئے د دوی اعتراضونه نقل کړل، او دوی ته ئے زورنه ورکړه چه دوی ته الله تعالیٰ قرآن راولیږلو او دوی ورله لته ورکوی، لوی ناشکره دي او خپل نبی ته ئے وفرمایل چه تهٔ دے کافرانو ته ووایه چه زهٔ خو یو انسان یم چه الله خپل رسول جوړ کړے یم، یو مامور بنده کله په دے خبرو قادریږی کوم چه تاسو ذکر کړے، دا ټولے خبرے خو صرف د الله په اختیار کښې دي۔ (دے خلکو د رسول او د اِله په مابین کښې فرق نهٔ دے پیژندلے)۔
يَنْبُوْعًا: یعنی چینه ډیره بهیدونکے۔ مجاهدؒ ئے په جمعے سره معنیٰ کړیده یعنی چینے۔
سدیؒ وائی: ینبوع هغه نهر ته وئیلے شي چه د چینے نه رابهیږی۔
خِلَالَهَا: یعنی په مینځ د دغه باغ کښې۔
تُسْقِطَ السَّمَآءَ: یعنی ته هر وخت وائے چه آسمان به راغورزیږی او قیامت به راځی نو دغه آسمان په مونږ باندے راګوزار کړه ټوټے ټوټے۔
كِسَفًا: دا جمع د كِسْفَةٌ ده د یو شي ټکړے ته وئیلے شي۔
قَبِيْلًا: ۱- مُعَايَنِيْنَ۔ (قتادهؒ، وابن جریجؒ) یعنی مخامخ چه مونږه ئے په خپلو سترګو وینو۔ دا د دوی ډیره لویه بې ادبي وه او لوی تکبر۔ او قبیل مصدر صیغه ده لکه د نکیر او نذیر په شان۔
۲- قبیل کله (فَوْجًا بَعْدَ فَوْجٍ) ته وئیلے شي۔ یعنی ډله ډله۔
لِرُقِيِّكَ: صیغه د مصدر ده لکه د مُضِيٌّ او هُوِيٌّ په شان۔ ختلو ته وئیلے شي۔ یعنی مونږ ستا په ختو باور نهٔ کوو۔ او لام په معنیٰ د باء سره دے۔ او د رقی معنیٰ په ورو کښې کتاب او

صحیفے سره خطاء ده، په لغت کښې نۀ ده راغلے۔
كِتَابًا نَّقْرَؤُهٗ : یعنی مونږ هر یو ته ولولو۔ یا مطلب دا چه هر یو ته د هغه په نوم سره د الله د طرفنه خپل خپل کتاب راشي۔ لکه ﴿ بَلْ يُرِيْدُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ اَنْ يُّؤْتٰى صُحُفًا مُّنَشَّرَةً ﴾ (المدثر : ۵۲)۔ بلکه غواړی هر یو د دوی نه چه ورکړے شي صحیفے خورے ورے)
بَشَرًا رَّسُوْلًا : یعنی زۀ خو صرف پیغام رسونکے یم، دغه کارونه زما په اختیار کښې نۀ دی۔

| وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰٓى اِلَّآ اَنْ |
|---|
| او نۀ دی منع کړی خلقو لره د ایمان راوړو نه کله چه راغے دوی ته هدایت مګر دے خبرے |
| قَالُوْٓا اَبَعَثَ اللّٰهُ بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۴﴾ قُلْ لَّوْ كَانَ |
| چه وائی دوی آیا رالیږلے دے الله تعالیٰ انسان لره رسول۔ اُووایه ! که چرے وے |
| فِي الْاَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا |
| په زمکه کښې ملائك چه ګرځیدلے په اطمینان سره خامخا نازل کړے به وے مونږ |
| عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا ﴿۹۵﴾ |
| په دوی باندے د آسمان نه ملائك رسول۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کښې الله تعالیٰ د قریش کافرانو یوه شبهه بیان کړیده چه هغه ئے په قرآن کریم کښې بار بار مکرر کړیده۔ هغوی ددے خبرے منلو ته تیار نۀ وو چه الله تعالیٰ یو انسان خپل رسول جوړولے شی، او د دوی همدا شبهه په رسول الله ﷺ باندے د ایمان راوړو نه مانع وه۔ سورة یونس آیت (۲) کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی :
﴿ اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا اَنْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ ﴾
(آیا خلقو ته پدے خبره تعجب دے چه مونږ د دوی نه په یو سړی باندے وحی نازله کړیده، او هغه ته مو حکم وکړو چه تۀ خلق د الله نه ویروه)۔ او دا ډیره عجیبه شبهه وه چه دوی خو د رسالت او د بشریت ترمینځ منافات ګنړلو لیکن د دوی په عقیده کښې الوهیت او حجریت (کاڼړے) دواړه جمع کیدل ناشنا نۀ وو۔ دا ددوی افراط تفریط وو۔
وَمَا مَنَعَ : غلطے عقیدے او رواجونه همیشه دپاره د ایمان نه د محروم کیدو ذریعه وی۔

ځوك چه د الله او د رسول او د آخرت په باره کښې غلط تصور لري اکثر ددے نه منکر شي.
یوه غلطه عقیده انسان بلے غلطے عقیدے ته راکاږي.
اَلْهُدٰى : اَیِ الرَّسُوْلُ وَالْكِتَابُ. یعني رسول او کتاب ورته راغلو.
قُلْ لَّوْ كَانَ فِی الْاَرْضِ : ددے شبهے د رد کولو دپاره الله تعالیٰ وفرمایل چه دا خو د الله فضل او کرم دے چه د بندګانو د لارخودنے دپاره ئے د دوی په شان رسول راولیږلو دے دپاره چه د هغهٔ په خبره باندے پوهه شي، او د هغهٔ ژوند د دوی دپاره د لارے مشعل جوړ شي.
که په زمکه باندے اُوسیدونکي ملائك وے نو د حکمت تقاضا دا وه چه مونږ د دوی د لارخودنے دپاره د دوی په شان یو ملائك رسول رالیږلے، دے دپاره چه دوی د هغه په خبره پوهه شوی وے او د هغهٔ ژوند د دوی دپاره د لارے مشعل جوړیدلے. پدے وجه اے د مکے کافرانو! د نبی کریم ﷺ د نبوت نه انکار د عقل او قیاس نه وړاندے خبره ده.
او د انسانانو د جنس نه رسول راتلل خو الله تعالیٰ په سورة البقره آیت (۱۵۱) کښې احسان شمارلے دے: ﴿كَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْكُمْ رَسُوْلًا مِّنْكُمْ يَتْلُوْا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا وَيُزَكِّيْكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ○﴾ (یعني لکه څنګه چه مونږ ستاسو د لارخودنے دپاره ستاسو نه یو رسول رالیږلے چه زمونږ آیتونه په تاسو لولي، او تاسو پاکوي، او د قرآن او سنت تعلیم درکوي او تاسو ته هغه شے یادوي چه تاسو پرے نهٔ پوهیدلئ).
نو دا خو د حکمة خلاف ده چه انسان ته ملائك راولیږي. او سورة الانعام آیت (۹) کښې ذکر شوی وو چه که ملائك راغلے وے نو د دوی دپاره به د ډیر ګډوډوالي سبب وے.
که ملائك رسول راشي نو بیا به دوی وائي چه دا خو خوراك څکاك نهٔ کوي، او نهٔ ستړے کیږي او مونږ ته خو بال بچ راپه غاړه دے او ستړي کیږو نو ددهٔ تابعداري مونږ څنګه وکړو.
مُطْمَئِنِّیْنَ : مُسْتَقِرِّیْنَ فِیْهَا/ سَاكِنِیْنَ فِیْهَا . وسیدونکي په زمکه کښې. ملائك خو زمکے ته راکوزیږي لیکن د لږ وخت دپاره، او همیشه دپاره د انسانانو په شان په زمکه کښې نهٔ وسیږي چه بیا بیرته آسمان ته نهٔ خیژي.

| قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِیْدًا بَیْنِیْ وَبَیْنَكُمْ اِنَّهٗ كَانَ |
| --- |
| اُووایه کافي دے الله تعالیٰ ګواه په مینځ زما او په مینځ ستاسو کښې یقیناً هغه دے |

بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًا بَصِيْرًا ﴿٩٦﴾ وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ

په بندګانو خپلو خبردار لیدونکے۔او هغه څوك چه هدایت اوکړی الله تعالیٰ هغهٔ ته

فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ

نو هغه هدایت موندونکے دے، او هغه څوك چه هغه ئے بے لارے کړی نو هیچرے به

تَجِدَ لَهُمْ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِهٖ وَنَحْشُرُهُمْ

موندهٔ نکړے تهٔ هغوی لره دوستان (مددګار) سویٰ د الله نه او راجمع به کړو دوی لره

يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ؕ مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ

په ورځ د قیامت په مخونو د هغوی ړاندهٔ او چاړا ګان او کاڼرهٔ، ځائے د دوی جهنم دے،

كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيْرًا ﴿٩٧﴾ ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ

هرکله چه لمبے ئے کمے شی نو زیات به کړو دوی لره لمبے د اور۔ دا سزا د دوی ده

بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيَاتِنَا وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا

پدے وجه چه دوی کفر کړیدے په آیتونو زمونږه، او وائی دوی آیا کله چه شو مونږ

عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿٩٨﴾

هډوکی او ذره ذره آیا مونږ به دوباره راپورته کولے شو په پیدائش نوی سره۔

**تفسیر**: پدے آیت کریمه کښې د مکے کافرانو ته یو قسم دهمکی ده۔ او شان د رسول الله ﷺ ذکر دے، چه الله تعالیٰ زما په رشتینوالی او امانت باندے خپله ګواه دے چه زهٔ ئے تاسو ته رسول رالیږلے یم، او د الله ګواهی مخکښې ذکرشویده چه معجزات ئے د هغهٔ په لاس ښکاره کړیدی، وخت په وخت ورسره مددونه کوی او غلبه او فتح ورکوی۔

اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًا بَصِيْرًا : یعنی الله تعالیٰ د خپلو بندګانو د ټولو احوالو نه خبردار دے، او دوی وینی، او ما هم وینی که ما پرے دروغ جوړ کړی وے نو زهٔ به ئے هلاك کړے وے۔ او د قیامت په ورځ به هریو ته د خپل عدل او انصاف سره د هغه د عملونو بدله ورکوی۔ پدے وجه اے د مکے کافرانو! ستاسو دپاره خیر په همدے کښې دے چه زما په نبوت باندے ایمان راوړئ او دین اسلام قبول کړئ۔

وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ : ❁ پدے آیت کښې الله تعالیٰ خپل تصرف او د آخرت تخویف بیانوی۔

❁ او دارنګه پدے آیت کښې د اثبات د رسالت نه روستو د دوه ډلو بیان دے چه څوك به دا رسول منی او څوك به ئے نهٔ منی، دا هر څه د الله په اختیار کښې دی۔

❁ او دارنګه چا کښې چه څه نا څه خیر وی نو هغه ته الله تعالیٰ هدایت کوی نو هغه به هدایت والا وی، څوك ئے بیا نشی ګمراه کولے، او چا کښې چه ضد وی او په خپله خوښه سره غلطه لاره اختیاروی نو هغه الله تعالیٰ ګمراه کوی نو هغه هیڅوك په نیغه لاره نشی راوستے او نهٔ د الله د غضب او قهر نه بچ کیدے شی۔

❁ او دارنګه دا جواب د سوال هم دے چه که دا رسول په حقه باندے وے نو پکار ده چه تولو خلکو هدایت موندلے وے؟

حاصل د جواب دا دے چه هدایت او ګمراه کول د الله تعالیٰ په اختیار کښې دی۔

اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِهٖ : اَیْ يَهْدُوْنَهُمْ۔ یعنی داسے دوستان ئے نشته چه دوی ته هدایت وکړی۔ په داسے جمله کښې غرض دبندګانو الله تعالیٰ ته متوجه کول وی چه هدایت او ګمراهی د الله تعالیٰ په لاس کښې ده نو هغه ته متوجه شئ او هدایت ترے وغواړئ او ضدونه مهٔ کوئ۔

❁ او پدے کښې رسول الله ﷺ ته تسلی هم پرته ده چه هدایت او ګمراهی د الله په لاس کښې ده که ته هر څومره کوشش وکړے نو دے خلکو ته هدایت نشی ورکولے۔

**فائده** : په آیت کریمه کښې د هدایت موندونکو دپاره د مفرد ضمیر استعمال شویدے ﴿فَهُوَ الْمُهْتَدِ﴾ او د ګمراهانو دپاره د جمع ضمیر ﴿فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ﴾۔ مفسرینو لیکلی دی چه پدے کښې دے طرف ته اشاره ده چه د حق لاره یوه ده او ددے اختیارونکی کم وی او د کفر او ضلالت لارے ګڼړے دی او د ګمراهانو شمار زیات وی۔ (القاسمیؒ)

وَنَحْشُرُهُمْ : ددے حشر په باره کښې د مفسرینو دوه قوله دی، (۱) یو دا چه دا کنایه ده د جلتئ سره جهنم ته بوتللو نه۔

(۲) دویم دا چه دوی به د قیامت په ورځ حقیقةً په مخونو راخکلے شی، لکه دنیا کښې چه څوك چا ته سزا ورکوی نا ئے سپکاوے کوی۔ انس بن مالك ؓ فرمائی : یو سړی ووئیل : اے د الله رسوله ! کافر به د قیامت په ورځ په خپل مخ څنګه راجمع کولے شی؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل : [اَلَيْسَ الَّذِیْ اَمْشَاهُ عَلٰی رِجْلَيْهِ فِی الدُّنْيَا قَادِرًا عَلٰی اَنْ يُّمْشِيَهٗ عَلٰی وَجْهِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ] ۔ آیا هغه ذات چه دے ئے په خپو باندے په دنیا کښې روان کړیدے پدے

قادر نهٔ دے چه دے په مخ باندے روان کړی؟ ولے نهٔ). (صحیح بخاری: ۶۵۲۳ فی تفسیر سورة ۲۵، باب۱ ومسلم (۷۲۶۵) فی المنافقین حدیث: ۵٤)

. او په روایت د احمدؒ، ابوداودؒ او ترمذیؒ او بیهقیؒ کښې راغلی دی چه دوی به په خپلو مخونو سره د هرے لورے او ازغو نه ځان بچ کوی. (مسند احمد: ۸۶۳۲) وسنده حسن لغیره)

او دا په څومره بد شکل او ناکاره منظر وی.

زمخشری لیکلی دی چه چونکه دوی د بعث بعد الموت انکار کړے وو پدے وجه الله تعالیٰ د قیامت په ورځ د دوی په بدنونو باندے اُور مسلط کوی چه دوی به خوری نو الله به دوی دویم ځلی جوړوی او دغه د فناء کیدو او بیرته جوړولو عمل به جاری وی دے دپاره چه په دنیا کښې د بعث بعد الموت د انکار په وجه په هغه ورځ د دوی په افسوس کښې نور زیاتے وشی. (القاسمیؒ)

عَلٰی وُجُوۡهِهِمۡ عُمۡیًا وَّبُكۡمًا وَّصُمًّا : یعنی د قیامت په ورځ به کافران مونږ پرمخے په مخونو راخکاږو لکه چه الله تعالیٰ په سورة القمر آیت (٤٨) کښې فرمایلی دی: ﴿ يَوۡمَ يُسۡحَبُوۡنَ فِی النَّارِ عَلٰی وُجُوۡهِهِمۡ ﴾ (په کومه ورځ چه کافران به په جهنم کښې په خپلو مخونو راخکلے شی). او چونکه دوی په دنیا کښې په خپلو سترګو سره د حق لاره نهٔ لیدله، په خپلو ژبو سره ئے د حق کلمه نهٔ وئیله، او په غوږونو سره ئے د حق خبرے آوریدو برداشت نهٔ کولو، پدے وجه د قیامت په ورځ به دوی ړاندهٔ، ګونګیان او کاڼهٔ راپورته کولے شی، د دوی ځای به جهنم وی چه ددے براس او لمبه کله هم کمیږی نو الله به هغه نوره هم زیاتوی.

قاشانیؒ وائی: دوی به په دنیا کښې خکته زوړ کولو نو په آخرت کښې هم دغه شان جزا ورکړے شوه چه سرونه به ئے په زمکه خکته وی. (قاسمیؒ)

**سوال:** دلته الله تعالیٰ د دوی دپاره د نظر نهٔ لګیدل او خبرے نهٔ کول او نهٔ آوریدل ثابت کړل او په نورو ځایونو کښې ئے ورله لیدل، خبرے کول او آوریدل ثابت کړیدی لکه آیت: ﴿ وَرَاَی الۡمُجۡرِمُوۡنَ النَّارَ ﴾ (الکهف: ۵۳) (او وبه وینی مجرمان اُور لره) او ﴿ دَعَوۡا هُنَالِكَ ثُبُوۡرًا ﴾ (الفرقان: ۱۳) (رابلی به دغه ځای کښې هلاکتونه). او ﴿ سَمِعُوۡا لَهَا تَغَيُّظًا وَّزَفِيۡرًا ﴾ (الفرقان: ۱۲) (آوری به د جهنم غصه کیدل او هنریدل) ددے څه وجه ده؟

(۱) **جواب:** دلته معنیٰ دا ده چه دوی به ړاندهٔ وی هغه څه به نهٔ وینی چه دوی خوشحاله کړی، ګونګیان به وی چه د خپل نجات دپاره خبرے وکړی، کاڼهٔ به وی چه د خوند او د مزے خبرے نهٔ آوری.

(۲) یا اول کښې به دغه شان راپورته کولے شي بیا به دوی ته دغه ځیزونه راواپس کړے شي او جهنم ته به بوتللے شي۔ (فتح البیان)

خَبَتْ : په آرام شي، او لمبه ئے ختکته شي۔ یعنی دا اُور به په دوی باندے همیشه بَل وي خو کله چه لمبه ئے ختکته شي، نو بیا به پکښې زیادت وشي۔

ذٰلِكَ جَزَاءُ هُمْ: پدے آیت کښې د مخکښې عذاب دپاره سبب بیانوي چه دوی سره به دا کار او سلوك پدے وجه کیږي چه دوی د الله د آیتونو نه انکار کړے وو، او وئیل به ئے چه مونږ کله مړهٔ شو او صرف هډوکي او ایره او ذره ذره شو نو آیا مونږ به په نوي پیدائش سره راپورته کولے شو؟!۔

| |
|---|
| أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللّٰهَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ قَادِرٌ |
| آیا نهٔ ګوري دوی چه بیشکه هغه الله چه پیدا کړي ئے دي آسمانونه او زمکه قادر دے |
| عَلٰى أَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ وَجَعَلَ لَهُمْ أَجَلًا لَّا رَيْبَ |
| په دے چه پیدا کړي په شان د دوی او ګرځولے ئے ده دوی لره نیټه چه هیڅ شك نشته |
| فِيْهِ فَأَبَى الظّٰلِمُوْنَ إِلَّا كُفُوْرًا ﴿۹۹﴾ قُلْ لَّوْ أَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ |
| په هغے کښې، نو پریخودو ظالمانو (هر شے) مګر کفر۔ اُووایه که چرته تاسو اختیار لرلے |
| خَزَآئِنَ رَحْمَةِ رَبِّىْ إِذًا لَّأَمْسَكْتُمْ |
| د خزانو د رحمت د رب زما په دغه وخت به خامخا تاسو بند کړي وے (هغه) |
| خَشْيَةَ الْإِنْفَاقِ وَكَانَ الْإِنْسَانُ قَتُوْرًا ﴿۱۰۰﴾ |
| د وجے د یرے د لګولو نه (د ختمیدونه)، او دے انسان بخیل۔ (یا تنګ زړے)۔ |

**تفسیر** : په اثبات د بعث باندے دلیل ذکر کوي او د کافرانو د پورته ذکر شوے شبهے رد کوي چه دوی آخر په بعث بعد الموت باندے ولے حیران دي، آیا هغه الله چه آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړي، پدے خبره قادر نهٔ دے چه د قیامت په ورځ د دوی په شان انسان بیرته پیدا کړي؟ دا دلیل الله تعالیٰ د قرآن کریم په ګڼرو آیتونو کښې بیان کړیدے۔

په سورة یس آیت (۸۱) کښې ئے فرمایلي دي : ﴿ أَوَلَيْسَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ

عَلٰى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ بَلٰى وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ۝﴾ چه (کوم ذات آسمانونه او زمکه پیدا کړیده آیا هغه د دوی په شان بدنونو پیدا کولو باندے قادر نهٔ دے؟ بیشکه قادر دے، او هغه ډیر پیدا کونکے او لوئی علم والا دے)۔

مِثْلَهُمْ : ۱- ددے نه مراد عین هم دوی دی۔ ۲- مِثْلَ اَنْفُسِ النَّاسِ۔

یعنی د خلکو په شان نور انسانان پیدا کولے شی چه هغوی د عدم نه وجود ته راویاسی، نو ستاسو پیدائش ورته څه گران نهٔ دے چه د قبرونو نه مو راپاڅوی۔

وَجَعَلَ لَهُمْ اَجَلًا : سوال پیدا شو چه دا به کله کیږی؟ نو الله فرمائی : الله تعالیٰ دوی لره بیرته د قبرونو نه د راپورته کولو او د ژوندی کولو یوه موده مقرر کړیده چه په هغے کښې هیڅ شك او شبهه نشته دے ۔ او کله چه هغه وخت راشی نو ټول خلق به ژوندی کیدو سره د محشر میدان ته راجمع کیږی۔

لیکن کوم خلق چه په خپل ځان باندے ظلم کونکی وی نو د هغوی عادت کفر وی، هغوی د تمامو ښکاره او روښانه نخو سره هم ایمان نهٔ راوړی۔

اَجَلًا : ددے اجل نه مراد نیته د مرگ هم ده او نیته دٔ قیامت هم۔ دواړه مراد دی۔

كُفُوْرًا: ۱- کفر ۲- او ناشکری نهٔ پریدی۔

قُلْ لَّوْ اَنْتُمْ : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د خپل قدرت دلیل بیانوی لکه مخکښې ئے هم د قدرت دلیل ذکر کړو، نو دلته د مخلوقاتو عجز او ضعف ذکر کوی چه دوی د خزانو مالکان نهٔ دی۔ نو دا دلیل دے د اثبات د توحید دپاره۔ چه ستاسو معبودان د الله تعالیٰ د هیڅ خزانے مالکان نهٔ دی، او که بالفرض دوی مالکان شوی وے نو دوی کښې به بخل وے، یریدلے به چه دا خزانے په خرچ کولو سره خلاصے نشی، او الله تعالیٰ سره داسے خزانے دی چه هغه نهٔ ختمیدونکی دی۔

❁ او دا دلیل دے د اثبات د بعث دپاره پدے طریقه چه د الله تعالیٰ سره د هر شی خزانے دی، نو هغه سره د أرواحو خزانے هم شته او د أبدانو هم نو د خزانو مالك کولے شی چه دغه روحونه په بدنونو کښې واچوی او بیرته ئے خپلے مخے ته ودروی۔ دا هیڅ بعیده خبره نهٔ ده۔

❁ دریم : دا آیت لګیږی د رسول الله ﷺ د رسالت سره چه دوی وئیلی وو چه څنګه الله تعالیٰ پدے سړی باندے فضل وکړو چه وحی ئے ورته وکړه او مونږ باندے نهٔ کیږی، او آیا پدے ټولو خلکو کښې الله تعالیٰ صرف همدا غوره کړو لکه د ابلیس په واقعه کښې ذکر شو

﴿هٰذَا الَّذِيْ كَرَّمْتَ عَلَيَّ﴾۔ نو الله جواب كوي چه د خزانو مالك الله تعالىٰ دے، او يوه خزانه د هغه د نبوت ده، د هغه خوښه ده چه چا ته ئے ورکوي، پدے کښې د هيڅ مخلوق واك نشته، او نهٔ ورله د اعتراض حق شته۔

خَزَآئِنَ رَحْمَةِ رَبِّيْ : د رحمت د خزانو نه مراد هدايت، نبوت او عافيت دے۔ او زجاج وائي چه خزانے د رزقونو او نعمتونو مراد دي۔

لَاَمْسَكْتُمْ : اَيْ لَبَخِلْتُمْ وَحَبَسْتُمْ فِيْ دَارِ الدُّنْيَا ۔ خامخا به تاسو بخل وکړئ او لاس به بند کړئ په دنيا کښې د بخل او شومتيا په وجه۔ (فتح)

خَشْيَةَ الْاِنْفَاقِ : د وجه د يرے د ختميدو نه۔ (انفاق) نه مراد (اِنْفَاد) دے۔ يعني ختميدل۔

قَتُوْرًا: ١-کمے کونکے په خلکو په نفقه او خرچه کښې۔ ٢- بخيل۔

مفسرينو ليکلي دي چه ددے آيت کريمه نه ثابتيږي چه د رزق د خزانو مالك صرف الله تعالىٰ دے او هغه ډير جود او سخا والا دے۔ هغه چه کله نه آسمانونه او زمکے پيدا کړيدي خرچ کوي او د هغه په ښي لاس کښې چه څه دي هغه ختم شوي نهٔ دي، لکه چه د بخاري او مسلم روايت نه ثابت دي۔ (بخاري: ٤٦٨٤) مسلم (٢٣٥٦)

| وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ فَاسْأَلْ |
| --- |
| او يقيناً ورکړي وو مونږ موسىٰ (عليه السلام) ته نهه معجزات ښکاره نو تپوس اُوکړه |
| بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ إِذْ جَاءَهُمْ فَقَالَ لَهُ فِرْعَوْنُ |
| د بني اسرائيلو نه کله چه راغے دوي ته نو اُووئيل هغهٔ ته فرعون |
| إِنِّيْ لَأَظُنُّكَ يَا مُوْسٰى مَسْحُوْرًا ﴿١٠١﴾ |
| يقيناً زهٔ گمان کوم په تا اے موسىٰ جادو کړے شوے۔ |

**تفسير** : پدے آيتونو کښې واقعه د موسىٰ (عليه السلام) او د فرعون راوړي چه مقصد پکښې دا دے چه پيغمبرانو پورے توقے د دنيا او د آخرت د عذابونو سبب دے۔ دويم تَشْبِيْهُ الْمُشْرِكِيْنَ بِفِرْعَوْنَ دے۔ مشرکين مکه د فرعونيانو سره مشابه دي، نو د هغوي په شان به هلاکيږي هم۔

## ربط او مناسبت

(۱) دا د (۹۰) آیت پورې متعلق دې۔ د قریش کافرانو چه کله د رسول الله ﷺ نه ددې شپږو نخو مطالبه وکړه کوم چه اُوس په آیت (۹۰) نه تر (۹۳) کښې تیر شو نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه پدې سره مقصد دا بیانول دی چه موسیٰ علیه السلام ته کومې نهه نخې ورکړې شوې وې، هغه ددې مطلوبه نخو برابرې وې، لیکن بیا هم فرعون او د هغه تابعدارو ایمان رانۀ وړو نو الله تعالیٰ دوی لره هلاك کړل۔ د مکې والو د مطالبې مطابق نخې پدې وجه نۀ رالیږلې کیږی چه که ددې د راتللو نه روستو هم دوی ایمان رانۀ وړی نو دوی به هلاك کیږی او الله د دوی په یو ځل ختمول نۀ غواړی۔ (فتح البیان)

(۲) او دا متعلق دې د مخکښې اعتراض د دوی سره هم چه دې نبی ته ولې وحی ورکړې شوه؟ نو الله فرمائی چه دغسې مونږ موسیٰ علیه السلام ته هم وحی او معجزات ورکړې شوی وو۔

(۳) دارنګه د مخکښې آیت سره متعلق دې چه که یو انسان ته ډیرې خزانې ورکړې شوی وی لکه د فرعون په شان، خو کله چه د نبی د دعوت نه انکار کوی او هغه پورې توقې کوی نو دا خزانې به ئې د الله تعالیٰ د عذاب نه بچ نکړې شی۔

تِسۡعَ آيَاتٍۭ بَيِّنَاتٍ : د اکثرو مفسرینو په نیز موسیٰ علیه السلام ته ورکړې شوې نهه نخې په لاندې ډول دی چه ذِکر ئې په سورالاعراف (۱۳۳/۱۳۰) کښې ذکر دی :

❁ ید بیضاء (سپین لاس)، ❁ د موسیٰ امساء، ❁ وښه، ❁ د دریاب اُوبه دوه حصې کیدل، ❁ د آل فرعون د مال او دولت بربادی، ❁ طوفان، ❁ ملخان، ❁ سپږې، ❁ چندخان۔ او دې ته ئې بینات ووئیلې ځکه چه دا د هغه په نبوت باندې ښکاره نخې وې۔

فَسۡـَٔلۡ بَنِيٓ إِسۡرَآءِيلَ : یعنی د مؤمنانو بنی اسرائیلو نه تپوس وکړه لکه د عبد الله بن سلام رضی الله عنه او د هغه د ملګرو نه۔ او دا سوالِ د استشهاد دې دپاره د زیات اطمینان او یقین پیدا کولو۔ او په سوال ئې ورته ځکه حکم وکړو چه کله دلیلونه زیات شی نو دا اطمینان ډیر پیدا کوی۔ (فتح البیان)

مَسۡحُورٗا : یعنی چا دربانده جادو کړیدې او دماغ ئې درله خراب کړیدی ځکه داسې د ګمراهئ خبرې کوې۔ حق ته ئې جادو وئیلو۔ په سورة النمل آیت (۱۴/۱۳) کښې الله تعالیٰ دا واقعه داسې بیان کړیده : ﴿ فَلَمَّا جَآءَتۡهُمۡ ءَايَٰتُنَا مُبۡصِرَةٗ قَالُواْ هَٰذَا سِحۡرٞ مُّبِينٞ ۝ وَجَحَدُواْ بِهَا وَٱسۡتَيۡقَنَتۡهَآ أَنفُسُهُمۡ ظُلۡمٗا وَعُلُوّٗاۚ فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلۡمُفۡسِدِينَ ۝ ﴾

(پس کله چه سترگے کولاوونکے زمونږ معجزے دوی ته راغلے نو دوی اُووئیل چه دا خو ښکاره جادو دے، او دوی ترے انکار وکړو حال دا چه د دوی زړهٔ په هغے یقین کړے وو، صرف د ظلم او تکبر په بناء، پس ته اُوګوره چه د فساد راپورته کونکو څنګه انجام شو)۔

| |
|---|
| قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا أَنْزَلَ هٰؤُلَآءِ إِلَّا رَبُّ السَّمٰوَاتِ |
| اُووئیل هغه یقیناً پوهه یُے تهٔ چه نهٔ دی نازل کړی دا معجزات مګر رب د آسمانونو |
| وَالْأَرْضِ بَصَآئِرَ وَإِنِّيْ لَأَظُنُّكَ يَا فِرْعَوْنُ مَثْبُوْرًا ﴿۱۰۲﴾ |
| او د زمکے د عقل خبرے، او یقیناً زهٔ ګمان کوم چه تا اے فرعونه! هلاك كړے شوے۔ |
| فَأَرَادَ أَنْ يَّسْتَفِزَّهُمْ مِّنَ الْأَرْضِ فَأَغْرَقْنٰهُ |
| پس اراده اُوکړه فرعون چه اُوباسی دوی لره د زمکے (د مصر) نه نو غرق کړل مونږ هغه |
| وَمَنْ مَّعَهٗ جَمِيْعًا ﴿۱۰۳﴾ وَقُلْنَا مِنْ بَعْدِهٖ لِبَنِيْٓ إِسْرَآئِيْلَ |
| او هغه څوك چه د هغهٔ سره وو ټول۔ او اُووئیل مونږ روستو د هغه نه بنی اسرائیلو ته |
| اسْكُنُوا الْأَرْضَ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيْفًا ﴿۱۰۴﴾ |
| چه وسیږئ په زمکه کښې نو کله چه راشی وعده د آخرت رابه ولو تاسو لره یو ځائے۔ (راجمعه)۔ |

**تفسیر** : موسیٰ علیه السلام د فرعون د خبرے جواب ورکړو وے وئیل چه تا ته معلومه ده چه دا نخے هغه الله نازل کړیدیٔ چه د آسمانونو او زمکے رب دے، او د صفا زړونو سره د الله د هدایت طلب کونکو دپاره پدے کښې ډیر عبرتونه دی، لیکن تهٔ د خپل تکبر او عناد په وجه ددے نه انکار کوے او دے ته د جادو اثر وائے۔ اے فرعونه! زما خیال دے چه تهٔ د الله د رحمت نه لرے کړے شوے ئے، او آخر به تهٔ هلاك كړے شے۔

لَقَدْ عَلِمْتَ نه معلومه شوه چه فرعونیانو د موسیٰ علیه السلام په نبوت باندے پوره یقین وو او دا د ابوجهل او نورو قریشو هم یقین وو چه محمد رسول الله ﷺ د الله حق رسول دے لیکن تکبر او ظلم په انکار باندے مجبوره کړی وو۔

بَصَآئِرَ : یعنی د عقل خبرے دی دپاره د خلکو۔ بصائر جمع د بَصِيْرَةٌ ده، هغه شی ته وائی چه د انسان زړه پرے روښانه کیږی، او د زړه سترګے پرے بناء کیږی ګویا که دا خپله

روښانه دي. (التحریر) نو په معجزاتو د پیغمبرانو او د قرآن په آیتونو سره د سړي زړه روښانه کیږي، ځکه چه دا صفا د فطرت سره برابرې خبرې وي.
لَاَظُنُّكَ : ظن دلته معنی د یقین سره دے.
مَثْبُوْرًا: هلاك کړے شوے. ۲- مُلعون.
۳- نَاقِصُ الْعَقْلِ. (بی عقله) (نقله الراغبؒ عن ابن عباسؓ)
٤- اَلْمَمْنُوْعُ الْمَصْرُوْفُ مِنَ الْخَيْرِ. د خیر نه منع کړے شوے اړولے شوے. (یعنی بے فائدے). ثبور هلاکت او تاوان او منع کیدو ته وئیلے شي.
پدے کښې قریشو کافرانو ته دهمکی ده چه د محمد رسول الله ﷺ په خلاف کښې مهٔ ودریږئ ګنې هلاك به شئ او د ځان تاوان به وکړئ.

سوال وجواب

الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته وئیلی وو ﴿فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا﴾ فرعون ته نرمے خبرے وکړئ. (طه : ٤٤) نو دلته ئے ورسره ځنګه سختــه خبره وکړه؟
(۱) جواب دادے چه دا سختی ئے ورسره په هغه وخت کښې کړیده چه فرعون عناد او ضد شروع کړو. او په اول کښې ئے ورسره نرمے خبرے کولے، او د الله نعمتونه ئے ورته یادول. دا جواب دومره غوره نهٔ دے ځکه چه الله تعالیٰ ورته د اول او د آخر څه خبره نهٔ وه کړے چه اول کښې نرمی کوئ او بیا سختی.
ابن عاشورؒ وائی چه فرعون سختی وکړه موسیٰ علیه السلام ته ئے جادوګر ووئیلو نو هغه ورته تنبیه ورکړه چه زهٔ ستا نه نهٔ یریږم نو هغه هم ورسره سختی وکړه ځکه چه دا قانون دے ﴿فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ﴾ (البقره : ۱۹٤)
څوك چه په تاسو زیاتے وکړی نو تاسو د هغې په مثل سره زیاتے وکړئ. (التحریر والتنویر)
یعنی بدله اخستل جائز دي. او دا د نرمو اخلاقو منافی نهٔ دي.
(۲) بل جواب دا دے چه پدے خبره کښې هیڅ سختی نشته، بلکه هغه یرول دي چه ته دا انکار کوے نو هلاکت طرفته روان ئے، د خپل ځان غم وکړه. نو یو تن ته د چا هلاکت خودل او هغه منع کول د نرمو اخلاقو خلاف نهٔ دي.
دا به هله د سختئ الفاظ وی چه د مثبور معنیٰ د هلاك شده نه علاوه نورے وکړے، لکه هغه مخکښې ذکر شوے. بیا به مخکنے جواب مراد وی.

فَأَرَادَ أَنْ يَسْتَفِزَّهُمْ : خوبه ئې کړي د زمکې د مصر نه. يعنې په هجرت ئې مجبوره کړل. استفزاز وړاندې کول او تنګول او خوبه کول دي. یا ددې نه مراد قتلول او بیخکندي کول دي.

مطلب دا چه فرعون چه کله خپل ځان د الله تعالیٰ د نازل کړې شوي نخو مخې ته مجبور وموندو نو د موسیٰ علیه السلام او د بني اسرائیلو په خلاف د خپل مادي طاقت په استعمالولو باندې اخته شو او د دوی د مصر د زمکې نه د جلا وطن کولو فیصله ئې وکړه، یا د تولو د قتلولو اراده ئې وکړه. لیکن الله تعالیٰ باندې څوك غالب راتلې شي؟

نو الله فرعون او د هغه لښکر غرق کړل، او بني اسرائیلو ته ئې د موسیٰ علیه السلام په ژبه حکم وکړو چه دوی د شام او فلسطین په زمکه کښې وسیږي.

او د زمانې په تیریدو سره یو وخت داسې راغلو چه د بني اسرائیلو خلقود فرعون د زمکې، او د هغه د مال او دولت او د زمکو او جائیداد مالکان جوړ شو.

حافظ ابن کثیر لیکلي دي چه پدې آیت کریمه کښې چه د مکې مکرمې د هجرت نه مخکښې نازل شوې وو، نبي کریم ﷺ ته د مکې د فتح زیرې ورکړې شویدې چه الله تعالیٰ لکه څنګه چه بني اسرائیل په آخر کښې د مصر د زمکې مالکان کړل نو دغه شان اګرکه نن تهٔ په مکه کښې کمزورې ئې، او دلته ته نه تهٔ وستلې کیږې، لیکن یو وخت به راشي چه تهٔ به دلته د فاتح په حیثیت سره داخلیږې.

نو همدغسې اُوشوه چه نبي کریم ﷺ په مکه کښې د کافرانو د ظلم او زیاتي نه تنګ راغلو او ووتو، لیکن څو کاله روستو هغه هلته د فاتح په حیثیت سره داخل شو او مکې والا د هغهٔ په قبضه کښې راغلل، او بیا نبي کریم ﷺ ورته خپل حِلم او کرم ښکاره کړو او هغوي ئې همداسې پریخودل.

اسْكُنُوا الْأَرْضَ : ددې زمکې نه مراد د شام او د مصر زمکه ده کوم نه چه دوی وستلې شوي وو.

فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ : یعنې د آخرت ورځ راروانه ده هلته به تول پیش کیږئ او ستاسو عملونه به ګوري او نیکانو او بدانو تولو ته به د هغوی د عملونو جزاء او سزا ورکوي.

لَفِيفًا : د لفّ نه دې راتاوولو ته وئیلې شي. یعنې ګډوډ د هر ځای نه به مو د قبرونو نه راولم.

| وَبِالْحَقِّ أَنْزَلْنَاهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ وَمَا أَرْسَلْنَاكَ |
|---|
| او په حق سره نازل کړیدے مونږ دا قرآن او په حق سره نازل شویدے او نۀ ئے رالیږلے مونږ تۀ |
| إِلَّا مُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴿١٠٥﴾ وَقُرْآنًا فَرَقْنَاهُ |
| مګر زیرے ورکونکے او یره ورکونکے۔ او قرآن مونږ جدا جدا نازل کړیدے |
| لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَىٰ مُكْثٍ وَنَزَّلْنَاهُ تَنْزِيلًا ﴿١٠٦﴾ |
| دے دپاره چه تۀ ئے ولولے په خلقو په آرام سره، او نازل کړیدے مونږ دۀ لره په لږ لږ نازلولو۔ |
| قُلْ آمِنُوا بِهِ أَوْ لَا تُؤْمِنُوا إِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا |
| اُووایه ایمان راوړئ پدے یا ایمان مۀ راوړئ یقیناً هغه کسان چه ورکړے شویدے ورته |
| الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهِ إِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ يَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ سُجَّدًا ﴿١٠٧﴾ |
| علم مخکښې ددے نه کله چه لوستلے شي په دوی پریوزي په زنو باندے سجده کونکي۔ |
| وَيَقُولُونَ سُبْحَانَ رَبِّنَا إِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُولًا ﴿١٠٨﴾ |
| او وائي دوی پاکي ده رب زمونږ لره، یقیناً ده وعده د رب زمونږ خامخا پوره کړے شوے۔ |
| وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ﴿١٠٩﴾ (س) |
| او پریوزي په زنو باندے ژاړي دوی او زیاتوی قرآن دوی لره عاجزي۔ |

**تفسیر** : پدے آیتونو کښې قرآن کریم ته ترغیب ورکوی او ددے عظمت شان او د رسول الله ﷺ رشتینوالے بیانوی۔ یعنی نزول د قرآن په حق سره شروع شویدے او په حق سره زمکے ته رارسیدلے دے، یعنی په مینځ کښې هیڅ تبدیلي نۀ ده راغلے۔

وَبِالْحَقِّ : ۱ – باء سببیه ده یعنی په سبب د اظهار د حق مونږ دا قرآن راولیږلو او بیا په همدغه حق سره راورسیدو۔ اَیْ نَزَلَ مَحْفُوْظًا مَحْرُوْسًا ۔ دا کتاب راورسیدو رسول الله ﷺ ته چه محفوظ او ساتلے شوے وو د هر قسم تبدیلي نه۔ (ابن کثیرؒ)

کله یوه خبره حقه وي لیکن چا له ئے چه ورکړي نو هغه پکښې په لاره کښې تبدیلي وکړي نو قرآن داسے نۀ دے۔ او د حق نه مراد د الله تعالیٰ طاعت او بندګي کول دي چه دا مقصد د قرآن د نازلیدو دے۔ یعنی اول هم پکښې حق وو او اُوس هم پکښې حق موجود دے۔

۲- بل مطلب دا دے چه د اول حق نه مراد حکمت د نزول د قرآن دے، او د دویم حق نه مراد هغه حقے عقیدے او احکام دی چه قرآن کښې ذکر دی. یعنی په حکمةِ الٰهیه سره د قرآن نازلیدل شروع شو او بیا په هغه حق سره چه عقائد او احکام دی انسانانو ته راورسیدو. یعنی د قرآن په رالیږلو کښې د الله تعالیٰ حکمة دے او بیا په قرآن کښې حقے مسئلے موجودی دی. (الکشاف وفتح البیان)

۳- او ځینې وائی چه باء په معنیٰ د (مَعَ) سره دے. او معنیٰ دا ده: مَعَ الْحَقِّ اَنْزَلْنَاهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ عَلٰی مُحَمَّدٍ ﷺ) یعنی د حق سره مونږ دا نازل کړو او بیا په محمد ﷺ هم په حق سره نازل شو. یعنی په ابتداء کښې هم ددے سره حق وو، باطل ورسره نهٔ وو، او بیا په رسول الله ﷺ چه کله نازل شو نو هم په رشتیاؤ مشتمل وو.

وَمَا اَرْسَلْنَاكَ: یعنی مونږ تا ته دا قدرت نهٔ دے درکړے او پدے مو نهٔ یے رالیږلے چه تهٔ به د خلقو په زړونو کښې ایمان پیدا کوے، ستا کار خو صرف دعوت او تبلیغ دے، د الله اطاعت کونکو ته به د جنت زیرے ورکوے، او نافرمانی کونکو ته به د جهنم یره ورکوے.

وَقُرْآنًا: ددے نه مخکښې فعل پټ دے اَیْ وَاَنْزَلْنَا عَلَیْكَ قُرْآنًا. او مونږ نازل کړیدے دا قرآن په تا باندے.

فَرَقْنَاهُ: ۱- (فَرَقْنَاهُ فِی التَّنْزِیْلِ لِیَفْهَمَهُ النَّاسُ) (زجاج) مونږ قرآن کریم په درویشت کالو کښې د یو حکمت د تقاضے مطابق نازل کړیدے، او ددے دپاره مو داسے کړیدی چه تهٔ په تدریج سره ددے صحابه کرامو ته تعلیم ورکړے او هغوی پرے پو هه شی، او د خلقو د احوالو او مصالحو مطابق په تدریج سره احکام الٰهیه نازل شی، او د دوی په زړونو او دماغو کښې مضبوط شی.

بناء پدے به روستو (وَنَزَّلْنَاهُ تَنْزِیْلًا) تشریح د فَرَقْنَاهُ وی. او دا مطلب د روستو ﴿لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلٰی مُكْثٍ﴾ سره ښه لګی.

۲- اَیْ بَیَّنَّاهُ وَفَصَّلْنَاهُ. یعنی دا قرآن مونږ جدا جدا بیان کړے، او تقسیم کړے مو دے په سورتونو او آیتونو سره. یا امرونه او نواهی او احکام او مواعظ او امثال او قصص او اخبار ماضیه او مستقبله پکښې تفصیلًا او جدا جدا بیان شویدی دے دپاره چه خلك ترے ښه عبرت واخلی، او د هر آیت نه جدا جدا فائده واخستے شی.

او دا جواب د سوال د منکرینو دے چه هغوی وویل چه قرآن په یو ځل باندے ولے نهٔ نازلیږی.

۳- ابن کثیرؒ وائی : (فَرَقْنَاهُ اَیْ فَصَّلْنَاهُ مِنَ اللَّوْحِ الْمَحْفُوْظِ اِلٰی بَیْتِ الْعِزَّةِ) یعنی جدا کړیدے مونږ د لوح محفوظ نه بیت العزة ته او بیا د هغے نه مو لږ لږ دنیا ته رالیږلے دے۔

فَرَّقْنٰهُ: کښې یو قراءت تخفیف دے او بل د تشدید او دلته د تخفیف قراءت معنیٰ هم د تشدید ده۔

بعض علماؤ د دواړو لفظونو د فرق دپاره داسے وئیلی دی چه (فرقنا) معنیٰ ده : (فَرَّقْنَا بِهٖ بَیْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ) ۔ یعنی مونږ فرق کړیدے پدے سره په ما بین د حق او باطل کښې او (نزلناه) یعنی بیا مو لږ لږ رالیږلے دے۔ (معالم التنزیل)

لیکن دا معنیٰ د (لِتَقْرَاَهٗ عَلَی النَّاسِ عَلٰی مُکْثٍ) سره ښه نهٔ لګی۔

عَلٰی مُکْثٍ : د قرآن کریم په لږ لږ نازلیدو کښې حکمة دا دے چه دا په پوهه او یادولو کښې آسان وی۔ نو ددے نه معلومه شوه چه قرآن کریم د جلتئ کتاب نهٔ دے، زر زر تلاوتونه کول او درس او تدریس ئے په جلتئ کول په بغیر د حکمتونو او رازونو راویستلو نه غوره طریقه نهٔ ده، ځکه بیا پدے باندے په ښه شان نهٔ پوهیږی۔

قُلْ اٰمِنُوْا بِهٖ : پدے آیت کښې د قرآن کریم رشتینوالے بیانیږی، او منکرینو د قرآن ته رتنه ورکول دی۔ نبی کریم ﷺ ته حکم شویدے چه کافرانو ته احساس ورکړی چه د الله او د رسول په نظر کښې د دوی هیڅ حیثیت نشته دے، نهٔ د دوی ایمان راوړل کومه لویه خبره ده، او نهٔ د دوی کفر او عناد سره بل چا ته نقصان رسیږی۔

که دوی په الله باندے ایمان نهٔ راوړی او قرآن کریم د هغهٔ کتاب تسلیم نهٔ کړی نو څه به وشی، دا د قرآن کریم هیڅ شان او فضیلت نشی کمولے۔ او که ایمان راوړی د قرآن په فضیلت کښې زیادت نشی کولے۔ د دوی نه ډیر ښه خلقو یعنی د اهل کتابو نیکان علماء لکه عبد الله بن سلام، سلمان فارسی او نجاشی او زید بن عمرو بن نفیل او ورقه بن نوفل وغیره ﷺ دا د الله کتاب او نبی کریم ﷺ ئے هغه رسول منلے دے د کوم زیرے چه په تورات او انجیل کښې ورکړے شویدے۔

نو پدے کښې په درے طریقو سره په مشرکانو رد شو :

(۱) یو دا چه تاسو ته د الله او د هغه د کتاب ضرورت نشته، قرآن ستاسو نه غنی دے۔

(۲) ددے کتاب منونکی علماء خلك دی او څوك چه ئے نهٔ منی نو هغه جاهلان دی، د هغوی نهٔ منلو له هیڅ اعتبار نشته۔ نو خپل نبی ته تسلی ورکوی چه په دوی باندے هیڅ باك مهٔ کوه۔

(۳) دریم دا چه دا دومره صادق او لوی فضیلت والا کتاب دے چه په پخوانو کتابونو کښې ددے تذکره شویده۔ او علماء د اهل کتابو ددے قرآن په نازلیدو باندے خوشحالی کوی او وائی چه ښه دے چه دا کتاب راغلو د کوم چه زمونږ په کتابونو کښې تذکره شویده، او مونږ ددے کتاب زمانه رالاندے کړه، نو پدے کښې عظمتِ شان د قرآن شو۔ او پدے کښې سخت وعید دے څکه چه الله تعالیٰ خپل نبی ته وفرمایل چه د دوی نه اعراض وکړه او د دوی سپکوالے ئې راښکاره کړو۔ (فتح البیان)

وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ: اُوس د اهل کتابو نیکانو علماؤ صفات راوړی دپاره د اقتداء کولو د هغوی او دپاره د رد د مشرکانو۔ یعنی ددے نیکانو علماؤ حال دا دے چه کله د دوی مخے ته د قرآن تلاوت کیږی، نو د الله د شکر ادا کولو دپاره په خپلو زنو او سرونو سره په سجده پریوزی چه هغه په دوی باندے دا احسان وکړو چه دوی د نبی کریم ﷺ زمانه موندہ کړه او په هغه باندے او په قرآن کریم باندے ئې ایمان راوړو، او د هغه عظمت او پاکی بیانوی چه هغه خپله وعده پوره وخودله او نبی کریم ﷺ ئې د دنیا والو د هدایت او لارخودنے دپاره پیغمبر راولیږلو، او دوی وائی چه زمونږ د رب وعده به خامخا پوره کیږی۔

او په قرآن کریم کښې د ذکر شوی وعظ او نصیحت په آوریدو سره د سخت تاثیر په وجه دوی په خپلو زنو باندے سجدے ته پریوزی او ژاړی او د الله دپاره د دوی په عاجزیٔ او خشوع کښې زیاتے کیږی۔

وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ : دا محاوره د عربو ده چه په زنه پریوتو، دا کنایه وی د سجدے او عاجزی کولو نه څکه چه زمکے ته په خکته کیدو کښې د انسان زنه د زمکے سره اول برابریږی۔

دلته هم الله تعالیٰ د قرآن سره سجده او خشوع یو ځای کړه څکه چه قرآن کریم د خشوع کتاب دے، او دغه شان په سورة مریم آیت (۵۸) کښې هم سجده او قرآن یو ځای ذکر شویدی ﴿إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا﴾

د سورة النجم په آخری (۶۲) آیت کښې دی : ﴿أَفَمِنْ هَٰذَا الْحَدِيثِ تَعْجَبُونَ وَتَضْحَكُونَ وَلَا تَبْكُونَ وَأَنتُمْ سَامِدُونَ فَاسْجُدُوا لِلَّهِ وَاعْبُدُوا﴾ او سورة الانشقاق آیت (۲۱) کښې دی : ﴿فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ﴾۔

إِنْ كَانَ: دا إِنْ مُخَفَّفْ مِنَ الْمُثَقَّل دے۔ (أَيْ إِنَّهُ كَانَ) ۔ یقیناً شان دا دے چه دهٔ وعده د رب زمونږ الخ۔

وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ: مخکنئ سجده د تلاوت په وخت کښې مراد ده، او دلته عامه سجده او عبادات مراد دي چه قرآن په دوی کښې عبادات راپیدا کوی او قرآن کریم بار بار لولی۔

وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا: ځکه چه قرآن د آخرت او د الله خبرے کوی چه خشوع ورسره زیاتیږی۔

او پدے صفت ذکر کولو کښې اشاره ده چه د قرآن کریم علماؤ لره هم داسے کیفیت جوړول پکار دی۔ امام دارمیؒ د عبد الاعلیٰ التیمیؒ نه نقل کړیدی: [مَنْ أُوتِيَ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَا يُبْكِيهِ لَخَلِيقٌ أَنْ لَا يَكُونَ أُوتِيَ عِلْمًا يَنْفَعُهُ] چا ته چه علم ورکړے شی او بیا هغه ونهٔ ژړوی نو دا لائق دے چه دهٔ ته به علم نافع نهٔ وی ورکړے شوے ځکه چه الله تعالیٰ خو د علماؤ صفت (يَبْكُونَ) ذکر کړیدے۔ (چه دوی به ژاړی)

(سنن الدارمی رقم ۲۹۱ واسناده جید- قاله حسین سلیم اسد)

| قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ أَيًّا مَا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ |
|---|
| اُووایه را اُوبلئ الله یا را اُوبلئ رحمٰن لره هر یو چه بلئ تاسو نو هغه لره نومونه دی |
| الْحُسْنَىٰ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ |
| ښائسته او جهر مهٔ کوه په دعا خپله او پټوالے مهٔ کوه په هغے سره او طلب کړه |
| بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١١٠﴾ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي |
| په مینځ ددے کښې لاره۔ او اُووایه ټول صفتونه د اُلوهیت خاص الله لره دی هغه ذات |
| لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ |
| چه نهٔ ئے دے نیولے ځوی او نشته هغه لره برخه دار په بادشاهئ کښې او نشته هغه لره |
| وَلِيٌّ مِنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ﴿١١١﴾ |
| مددګار د وجے د کمزورتیا د هغهٔ نه او لوئی ئے وایه په لوئی وئیلو سره۔ |

**تفسیر**: د مکی سورتونو په آخر کښې آداب بیانیږی نو دلته هم بعض آداب بیانوی۔

## مناسبتونه

۱- دلته یو کیفیة الخشوع بیانول مقصود دی، چه قرآن خشوع پدے طریقه زیاتوی چه

انسان ته عبادات وربښائي لکه دعاء وغیره، پدے سره خشوع زیاتیږي۔
۲- معنوی ربط : مشرکانو په رسول الله ﷺ باندے ډیر اعتراضونه کړي وو، نو دا آیت هم جواب د هغوی د یو سوال دے چه هغوی ویلي وو چه تهٔ مونږ د شرك نه منع کوے او حال دا چه خپله الله ته هم آواز کوے او رحمٰن ته هم۔ لکه ابن جریر طبريؒ روایت راوړیدے چه یوه ورځ رسول الله ﷺ مونځ کولو او په سجده کښې ئے داسے وفرمایل : (یَا اَللّٰهُ یَا رَحْمٰنُ) نو مشرکینو واوریدو او دغه اعتراض ئے وکړو چه تهٔ مونږ ته د یو اِلٰه دعوت راکوے اوخپله د دوو نه دعا غواړے۔ نو الله دا آیت نازل کړو۔ چه د الله تعالیٰ ډیر نومونه دی او ډیر نومونه او صفات دلالت په تعدد د ذات باندے نهٔ کوی۔ او ګڼړ صفات او نومونه د الله تعالیٰ کمال دے۔
او دا بعینه رد دے په هغه متکلمینو چه هغوی وائی کثرت د صفاتو منافی د توحید دے۔ نو ځکه د الله شپږ یا اوه صفات منی یا ئے بیخی نهٔ منی لکه جُهمیه وغیره شو۔
دارنګه مشرکانو کښې د یمامه یو شخص (مسیلمة الکذاب) په رحمٰن باندے مشهور وو نو کله چه رسول الله ﷺ رحمٰن ته آواز کولو نو دوی کښې یو تن واوریدو او خپلو ملګرو ته ئے وویل چه وګورئ ابن ابی کبشه ته چه هغه رحمٰن ته آواز کوی چه په یمامه کښې دے۔ (یعنی مونږ د شرك نه منع کوی او خپله شرك کوی) نو دا آیت نازل شو۔ (ابن جریر الطبری ۱۲٤/۱٥)
۳- دے کښې دا احتمال هم شته چه مشرکانو وویل چه دا شخص کتاب والا دے او یهودیانو کښې د رحمٰن نوم زیات وو نو هغوی بریدل چه دے سړی چرته د یهودو سره سمجهوته نهٔ وی کړی او د هغوی دین په مونږ باندے نافذ نکړی او ز مونږ شرك ختم نکړی نو الله دا آیت نازل کړو چه رحمٰن خو د الله تعالیٰ نوم دے۔ (لیکن دا هسے وهمی احتمال دے صاحب د تدبر قرآن ذکر کړیدے)۔
قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ : ۱- یعنی راوبلئ الله لره د خپل حاجت دپاره یا رحمٰن لره۔ ۲- دعاء په معنیٰ د عبادت هم صحیح ده۔ یعنی که د الله یا د رحمٰن عبادت کوے نو صحیح ده۔
ددے نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ به د الله صفاتو ته دعوت ورکولو۔
اَیًّا مَّا تَدْعُوْا : اَیْ فَهُوَ الْحَقُّ۔ هر یو نوم ته چه آواز کوئ نو صحیح ده ځکه چه د هغه دپاره ډیر ښائسته نومونه نور هم شته۔
وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ : ددے هم درے مطلبه دی (۱) د صلاة نه مراد قراءت دے لکه

بخاري او مسلم د ابن عباس ﷛ نه روایت کړیدے چه ﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ﴾ په هغه وخت نازل شو چه کله رسول الله ﷺ په مکه کښې په پټه عبادت کولو، او کله چه به ئې د صحابه کرامو ﷺ سره مونځ کولو نو په اُوچت آواز سره به ئې د قرآن کریم تلاوت کولو. مشرکانو به د قرآن په آوریدو سره قرآن او ددے نازلونکی ته کنځلے کولے. نو نبی ﷺ ته حکم وشو چه خپل آواز زیات پورته کوه مهٔ، دے دپاره چه مشرکان ئے وانهٔ وری، او مهٔ دومره خکته آواز سره تلاوت کوه چه صحابه کرام ئې وانهٔ وری. دا حکم د اسلام په ابتداء کښې وو، روستو دا سنت مقرر شو چه د سحر او ماښام او ماسخوتن په اولنی دوه رکعتونو کښې په اُوچت آواز سره د قرآن تلاوت وکړے شي. (بخاري: ٤٧٢٢) ومسلم(١٠٢٩)

(٢) صلاة دعاء ته وائي. بخاري د عائشه رضی الله عنها نه نقل کړیدی چه دا آیت د دعاء په باره کښې نازل شویدے. (بخاري: ٦٣٢٧)

او دا د مخکښې آیت سره هم لګی چه دعاء درمیانه انداز کښې کوه، په زړه کښې ئې هم مهٔ کوه ځکه چه اثر ئې کم وی او چغے هم پرے مهٔ کوه بلکه په خوله پرے تلفظ کوه په درمیانه انداز.

(٣) دریم مصداق دا دے چه صلاة په معنیٰ د مانځه سره دے. یعنی هر مونځ جهری مهٔ کوه او هر مونځ خفیه هم مهٔ کوه، نو د شپے مونځونه جهری دی او د ورځے خفیه. او پدے کښې د الله تعالیٰ حکمتونه دی.

او دا د تهجدو سره هم لګی چه په هغے کښې به هم درمیانه آواز سره قراءت کولے شی لکه د ابوبکر صدیق ﷛ او عمر فاروق ﷛ مشهوره واقعه پرے دلیل ده چه رسول الله ﷺ ابوبکر صدیق ﷛ ته وفرمایل چه تهٔ لږ شان آواز پورته کړه او عمر فاروق ﷛ ته ئې وفرمایل: تهٔ لږ شان آواز خکته کړه.

وَقُلِ الْحَمْدُ: دے ته د مفسرینو په اصطلاح کښې آيَةُ الْعِزِّ (د عزت آیت) وائي. او په ضعیفو روایاتو کښې ئې فضیلتونه هم راغلی دی.

پدے آخری آیت کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم کړیدے چه د الله لوئی والی بیانولو سره ووائی چه هغه یو ذات د هر حمد او ثناء مستحق دے چه د هغه نهٔ کوم اولاد شته لکه څنګه چه بعض عربو به ملائک د الله تعالیٰ لونړه ګڼړلے او یهودیانو عزیر ﷤ او نصاراؤ عیسیٰ ﷤ د الله ځوی ګڼړلو.

لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا: د قرآن طریقه دا ده چه په دعاء کښې هم رد کوی په مشرکانو باندے او یو

قسم دعوت وی۔

وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ: نه د دوارو جهانو په بادشاهئ کښې د الله تعالیٰ سره څوك شريك شته، لکه څنګه چه عربو مشرکانو به په حج کښې تلبيه باندے آواز کولو سره وئيل چه [لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِلَّا شَرِيكًا هُوَ لَكَ] چه (اے الله ! ستا هيڅوك شريك نشته دے، مګر هغه شريك چه ستا شريك دے، ته د هغهٔ مالك ئے)۔

وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ: ولي ناصر ته او ذُل کمزورتيا ته وئيلے شي۔

يعني نهٔ په الله کښې د ذلت او عاجزی او کمزوری موجوديدو په وجه د هغه څوك مددګار شته لکه څنګه چه بې دينه او مجوسيانو به وئيل [لَوْلَا أَوْلِيَاؤُهُ لَذَلَّ]

که د الله تعالیٰ اولياء نهٔ وے نو الله به کمزورے شوے وے۔ (العياذ بالله)۔

وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا: يعني ځان سره هم د الله تعالیٰ لوی والے بيان کړه، تکبيرات وايه، او خلکو ته ئے هم بيان کړه، او د خلکو په زړونو کښې ئے کينوه۔ يعني ته دا بيان کړه چه زما رب ددے نه ډير پورته دے چه هغه ته کوم نقصان او عيب او محتاجی يا عاجزی پيوسته شي۔

پدے آيت کښې د الله تعالیٰ صفات سلبي او ثبوتي دواړه قسمه ذکر دی۔ ﴿لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا﴾ ﴿لَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيكٌ﴾ دا عدمي او سلبي او (وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا) دا وجودي او ثبوتي صفت دے۔

او پدے دوارو کښې د الله تعالیٰ تعارف او تعظيم دے او په مشرکانو رد دے۔

دا آيت مونږ ته دعوت راکوی چه علماؤ لره پکار دی چه د هغوی د بيانونو موضوع د الله تعالیٰ د لوئي والي بيان هم وی۔

**فائده:** پدے آيت کښې درے قسمه شريکان الله تعالیٰ نفی کړيدی، ادنیٰ شريك۔ په (وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا) سره او مساوی شريك په (وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ) سره او اعلیٰ شريك په (وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ) سره۔

## امتيازات د سورت

۱- واقعه د اسراء په بل طرز پکښې ذکرده۔

۲- د بنی اسرائيلو سره دوه وعدے۔

۳- د شجره ملعونه فتنه گرځیدو تذکره وشوه۔

٤- پنځه مؤنځونه پکښی ذکر دی۔

٥- د مشرکانو ډیر اعتراضات الله تعالیٰ په یو ځای دلته راجمع کړیدی۔

٦- او ځلور ځیزونو نه انکار سبب د عذاب د الله تعالیٰ دے کوم چه په موضوع کښی بیان شویدی۔

٧- د روح تذکره پکښی شویده۔

ختم شو تفسیر د سورة الاسراء په نصرت د الله تعالیٰ سره تاریخ : 13 جمادی الثانیه 1436 هـ الموافق : 2015=4=2 لیلة السبت : بجه : 40-11 الحمد لله الذی بنعمته تتم الصالحات وبالله التوفیق۔

او ختمه شوه دوباره تصحیح په تاریخ : 2015 /10 /8 جمعرات ورځ۔ بجه : 00=3 ذی الحجه ۲۹۔

بسم الله الرحمن الرحیم

| رکوعاتها (۱۲) | (۱۸) سورة الکهف مکیة (٦۹) | آیاتها (۱۱۰) |
|---|---|---|

سورة الکهف مکی دے، پدے کښې یو سل لس آیتونه او دولس رکوع دی۔

## تفسیر د سورة الکهف

**نوم** : ددے یو نوم الکهف دے، او ددے وجه دا ده چه د اصحاب کهف په قصه کښې په الله تعالیٰ باندے د ایمان راوړو او په دے باندے د ثابت قدم پاتے کیدو ډیر فوائد بیان شویدی۔ دویم نوم ئے الحائله دے۔ (یعنی پرده واقع کیدونکے د دجال او د بنده ترمینځ)

**د نزول زمانه** : قرطبیؒ لیکلی دی چه دا سورت د ټولو مفسرینو په نیز مکی دے۔ د ابن عباسؓ همدا وینا ده۔ او د آیتونو د تلاش نه معلومیږی چه دا سورت په هغه وخت نازل شویدے چه کله په مسلمانانو باندے د مکے والو ظلم او ستم انتهاء ته رسیدلے وو، دے دپاره چه د اصحاب کهف د واقعے په بیانولو سره د مسلمانانو همت زیات او پورته شی، او دوی ته دا ووئیلے شی چه د دوی نه مخکښې په مسلمانانو باندے ددے نه زیات ظلم شوے وو، لیکن د هغوی د استقامت په خپو کښې تزلزل (حرکت) نهٔ وو راغلے۔

بعض خلقو وئیلی دی چه ددے ابتدائی آیتونه (اول نه تر اتو آیتونو پورے) او آیت (۲۸) او آیت (۱۰۷) نه تر (۱۱۰) پورے مدنی دی۔

## فضیلت

امام احمدؒ، ابوداودؒ، ترمذیؒ او نسائیؒ وغیره د ابودرداء ﷺ نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ وفرمایل : ((چا چه د سورة الکهف ابتدائی لس آیتونه حفظ کړل هغه به د دجال د فتنے نه محفوظ شی))۔ (صحیح الجامع : ٦۲۰۱)

او په یو بل روایت کښې دی [فَمَنْ أَدْرَكَهُ مِنْكُمْ فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ فَوَاتِحَ سُورَةِ الْكَهْفِ] چا چه ستاسو نه دجال وموندو نو په هغه دے ابتدائی آیتونه د سورة الکهف ولولی (نو د هغه د فتنے نه به محفوظ شی) (صحیح مسلم : ۷٥٦۰) ابوداود : ٤۳۲۳)

او حاکمؒ د ابوسعید خدری ﷺ نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ وفرمایل :

[مَنْ قَرَأَ سُوْرَةَ الْكَهْفِ كَانَتْ لَهُ نُوْرًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ مَقَامِهِ اِلٰى مَكَّةَ]

«څوك چه د جُمعې په ورځ سورة الکهف تلاوت کړی، د هغه دپاره به د قیامت په ورځ دده د ځای نه تر مکې پورې رڼرا روښانه شی»۔ (صححه الالبانی فی الصحیحه ۶/۳۱۲ رقم ۲۶۵۱) په توله ورځ کښې ئے که په هر وخت کښې ووئیلو۔

## مناسبتونه

۱- مخکښې سورت په سبحان شروع شوے وو او دا سورت په الحمد باندے او تسبیح مقدم وی په تحمید۔ ځکه چه په تسبیح کښې نفی د بدو صفاتو ده او په حمد کښې د الله دپاره صفات کمالیه ثابتول دی

❁ او دلته کتاب نازلول ذکر دی په هغې باندے شکر پکار دے نو حمد ورسره مناسب دے، او هلته د مشرکانو د شرکونو رد وو نو سبحان مناسب شو۔

۲- مخکښې سورت کښې د رسول الله ﷺ هجرت ذکر شو چه دا خلك تا مجبوره کوی په هجرت، نو په هغه وخت کښې داسے دعاء کوه (وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِيْ) نو دے سورت کښې ئے د حفاظت د دین دپاره هجرت ته ترغیب ورکړیدے۔ او درے قسمه هجرتونه ئے ذکر کړیدی۔

۳- هلته اختتام د سورت په حمد وو دلته ئے ابتداء په حمد وکړه۔

٤- موضوعاتی مناسبت دا دے چه مخکښې سورت کښې شان الرسول ﷺ ذکر شو۔ پدے سورت کښې ددے رسول اتباع بیانوی په ذکر کولو د عمل صالح سره۔ چه دده په اتباع کښې کامیابی او په نۀ کولو ئے هلاکت دے۔

۵- مخکښې په شرك فی الالوهیة باندے رد وشو (وَقَضٰى رَبُّكَ اَنْ لَّا تَعْبُدُوْا) (قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ) دلته په یو خاص شرك باندے رد دے چه هغه د اتخاذ الولد او د علم غیب عقیده ده۔

❁ دارنگه هلته په شرك رد وو او دلته په توحید باندے د شبهاتو جوابات دی۔

(احسن الکلام)

۶- مخکښې شان الرسول ﷺ وو نو دلته وائی چه هغه په غیبو نۀ پوهیږی۔

۷- مخکښې شان الرسول ﷺ وو نو دلته د دفع د اعتراضاتو ده د هغه نه۔

## موضوع او دعوی د سورت

۱- زمونږ بعض مشائخ وائی: چه په سورة الکهف کښې نفی د علم الغیب ده د غیر الله

نه، یعنی رد دے په عقیده د علم غیب د غیر الله دپاره. او هر کله چه ددے عقیدے رد وشی نو بیا به څوك غیر الله ته د رامدد شه آواز نکوی.
دارنګه پدے کښ د مشرکانو د شبهاتو دفع کول دی چه هغوی دلیل نیسی په امور خارقه (ناشنا کارونو) د انبیاؤ علیهم السلام او اولیاؤ سره. ماخذ د دعوے ﴿وَلَمْ يَجْعَلْ لَهُ عِوَجًا﴾ آیت (۱) دے. ﴿قَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ﴾ آیت (۱۹)، او بل (۲٦) آیت ﴿لَهُ غَيْبُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾. موسیٰ ؑ په غیبو نهٔ وو پوهه، ماهی ترے هیر شو.
او ذو القرنین د یو قوم په خبره نهٔ پوهیدو. لیکن دا موضوع په سورت کښ جزئی طریقے سره ذکر ده، ټول سورت سره پوره نهٔ لګی.
۲- بعض مفسرین لکه صاحب د «فی ظلال القرآن» وائی: ددے سورت موضوع ده رد د اتخاذ الولد. (وَيُنْذِرَ الَّذِينَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا) دا هم جزئی موضوع ده.
۳- بعضو وئیلی دی چه پدے کښ ترغیب دے هجرت ته. لیکن دا په سورت کښ صرف اشاره ده او موضوع نهٔ ده.
٤- ظاهر دا ده چه ددے سورت موضوع ده [اَلْبِشَارَةُ بِالْعَمَلِ الصَّالِحِ الْمَشْرُوْطِ بِالشُّرُوْطِ] په شرطونو سره د عمل صالح کولو په بدله کښ ناشنا زیری ورکول. اول شرط ایمان دے چه شرك ورسره نهٔ وی او اخلاص پکښ وی. او دویم شرط اتباع د رسول الله ﷺ ده.
﴿لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾.
دریم شرط: د آخرت په یره سره به عمل کوی. لکه دا خبره په واقعه د اصحاب الکهف کښ هم ده، او په آخر د سورت کښ راغلے ده ﴿أُولٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ﴾ آیت (۱۰۵)
څلورم شرط: تَأَثُّرٌ بِآيَاتِ اللّٰهِ. عمل کښ به د الله او د رسول نه متأثر وی هله به قبلیږی.
پدے سورت کښ به د ایمان او عمل خبره زیاته ذکر کیږی لکه ﴿وَيُبَشِّرَ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ﴾ آیت (۲) ﴿أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ آیت (۷) ﴿إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ﴾ آیت (۱۳) ﴿وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا اللّٰهَ﴾ آیت (۱٦) ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ﴾ آیت (۲۸) ﴿فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ﴾ آیت (۲۹) او په (۳۰) آیت کښ دی ﴿لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا﴾ بیا په واقعه د باغ والو کښ هم اشارةً ذکر دے. ﴿وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ﴾ آیت (٤٦)
بیا وائی چه په اعمالو به حساب کیږی ﴿وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا﴾ آیت (٤۹)
بیا د آدم ؑ په واقعه کښ دی ﴿فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِ﴾ آیت (۵۰) ابلیس د الله د طاعت نه

وتلے وو۔ او په واقعه د موسیٰ علیه السلام کښې ډیر کرته تکرار شویده ﴿فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِينَا أَنْ يُرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا﴾ آیت (۸۰) ﴿وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا﴾ آیت (۸۲)۔

د ذو القرنین په واقعه کښې هم ذکر ده ﴿وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ جَزَاءً الْحُسْنَىٰ﴾ آیت (۸۸) آخری رکوع کښې دی ﴿هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا﴾ آیت (۱۰۳) ﴿فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ﴾ آیت (۱۰۵) ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ﴾ آیت (۱۰۷)

په آخری آیت کښې دی ﴿فَمَنْ كَانَ يَرْجُوا لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا﴾ آیت (۱۱۰)۔

پدے سورت کښې د عمل صالح د متعلقاتو نه الله تعالیٰ د دنیا زهد هم بیان کړیدے ځکه چه عمل صالح ته د دنیا محبت نقصان ورکوی۔ او دا سورت به دا خبره کوی چه اعمالو لره اعتبار دے، اموالو لره نشته، بعض خلك د دنیا د اموالو په وجه په تکبر کښې راشی، نو د چا ایمان او عمل صالح لره هیڅ اعتبار نهٔ ورکوی لکه په ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ﴾ آیت (۲۸) کښې او په واقعه د باغ والو کښې ذکر ده۔

دارنګه پدے سورت کښې فوائد د عمل صالح ذکر دی لکه په واقعه د باغ والو او اصحاب الکهف او ﴿وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا﴾ آیت (۸۲) کښې ذکر دی، سوچ پکښې وکړه۔ او دا خبره ذکر ده چه د ایمان او عمل صالح د حفاظت دپاره به خپل کور پریدے او هجرت به کوے۔

دارنګه تقسیم د عمل دوه قسمونو ته مقبول او مردود او د چا عمل قبلیږی او د چا نهٔ قبلیږی۔ دا ئے په آخر د سورت کښې بیان کړیده۔

بیا د قرآن کریم د طریقے مطابق د موضوع ډیر اطراف او متعلقات بیانوی د ډیرو فوائدو دپاره۔

## د سورت شان نزول

ابن اسحاق، ابن جریر، ابن المنذر او ابو نعیم او بیهقی په ((دلائل النبوة)) کښې د ابن عباس رضی الله عنه روایت راوړیدے چه مشرکانو ووئیل چه مونږ تاپوهه یو، مونږ سره د پخوانو انبیاؤ علم نشته، راځئ چه د پخوانو کتابونو د علماؤ نه تپوس وکړو، ددے رسول په باره کښې به مونږ ته څه ووائی۔ دوه کسان نضر بن الحارث او عقبه بن ابی معیط ئے روان کړل او مدینے ته لاړل، هلته ئے د یهودو نه تپوس وکړو چه زمونږ په علاقه کښې یو سړے پیدا شویدے د نبوت دعوه کوی او دا دا ئے صفات دی، ستاسو په پخوانو کتابونو کښې د آخری نبی څه صفات دی؟ که دا سړے نبی وی چه مونږه ئے ومنو او که نهٔ وی بلے خبره راوښایئ۔

هغوی ورته وویل چه د درے خبرو تپوس ترے وکړئ که جواب ئے درکړو نو دا به حق نبی وی، او که جواب ئے درنکړو نو نبی به نهٔ وی، بیا مو چه ورسره څه خوښه وی وکړئ۔ اول تپوس :[فِتْيَةٌ ذَهَبُوْا فِي الدَّهْرِ الْاَوَّلِ مَا كَانَ اَمْرُهُمْ ؟ فَاِنَّهٗ قَدْ كَانَ لَهُمْ حَدِيْثٌ عَجِيْبٌ]

په پخوا زمانه کښې څه ځوانان ورك شویدی او د هغوی ناشنا قصه ده، هغه راته بیان کړه۔ (ځکه چه عربو ته دا واقعه نهٔ وه معلومه) او دویم د روح په باره کښې او دریم د یو سړی په باره کښې (رَجُلٌ طَوَّافٌ بَلَغَ الْمَشَارِقَ وَالْمَغَارِبَ) چه مشرقونو او مغربونو ته رسیدلے دے۔ مشرکانو دا سوالونه راواخستل او د نبی کریم ﷺ خوا ته راغلل نو رسول الله ﷺ نه ان شاء الله یره شوه او دا ئے وویل چه زهٔ به تاسو ته صبا له خبر درکړم۔ پنځلسو ورځو پورے وحی بنده وه (او بعض روایاتو کښې څلویښت ورځے ذکر دی)

پدے کښې رسول الله ﷺ د قریشو په خبرو ډیر غمجن شو، هغوی وویل چه ځان ته نبی وائی او جواب نشی ورکولے۔ (او دا په هره زمانه کښې داسے کیږی چه باطل پرست په حق پرست سوال وکړی او هغه ورته جواب ورنکړی نو هغه په باطله ګنړی) نو الله تعالیٰ دا سورت نازل کړو۔ آه۔ (الدر المنثور وابن کثیر وفی اسناده شیخ من اهل مصر لم یسم)

نو دلته الله تعالیٰ د دوی جواب کوی چه که دے نبی تاسو ته ددے خبرے جواب درنکړو نو دا خبره خو څه لازمه نهٔ ده چه ستاسو د هر سوال جواب به درکوی، رسول الله ﷺ ته الله تعالیٰ نور ډیر د هدایت والا واقعات ورکړیدی لکه (لِاَقْرَبَ مِنْ هٰذَا رَشَدًا) سره هغے ته اشاره ده۔ بیا ئے ورته تحقیقی جواب ورکړو چه دا هم پکښې واورئ او خپل نبی نه ئے ان شاء الله هیره کړه دے دپاره چه مشرکانو باندے امتحان شی، او رسول الله ﷺ او د هغه امت ته سبق ورکړی چه ان شاء الله مهٔ هیره وئ۔

نو پدے کښې ډیر فوائد وو، د الله توحید او د الله استغناء او د ان شاء الله فائده او مشرکانو باندے امتحان، او هغوی ته دوه قسمه جوابونه۔

او دا خبره هم د هغوی په دماغو کښې کینول شوه چه ستاسو د هرے خبرے جواب خو ضروری نهٔ دے لکه پدے زمانه کښې هم باطل پرست یو امی سړے یا طالب العلم راګیر کړی چه فلانے شے راته په قرآن او حدیث کښې وښایه، نهٔ ئے شے خودلے نو بس قرآن او حدیث نیمګړے دے، او راځه زمونږ د خلاصه کیدانی، قدوری او شرح وقایه پسے روان شه دا د دوی د دعوت خلاصه ده۔

ددے جواب دا دے چه دا ضروری نهٔ ده چه تاسو ته به د هرے خبرے جواب ملاویږی، یا به

مـا تـه نـهٔ وی مـعـلـوم او کتـاب او سـنـت کـښې بـه موجود وی نو دا خو د قرآن او حدیث نیمګړتیا نشوه۔

## د آیتونو حاصل

د اول نه تر اتم آیت پورې مقدمه د سورت ده، او بیا ئې واقعات راوړیدی اوله واقعه د اصحاب الـکهف ده، د واقعې په اختتام کښې په یوه رکوع کښې رسول الله ﷺ او مؤمنانو ته آداب ذکر شویدی، یو د ان شاء الله ادب او بل د غفلت نه روستو الله تعالیٰ ډیر یادول۔

﴿ عَسٰٓى اَنْ يَّهْدِيَنِ رَبِّيْ ﴾ بـل ادب، د قـرآن لوستـل ﴿ وَاتْلُ مَآ اُوْحِيَ ﴾ او بل ادب ﴿ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ ﴾ د مؤمنانو غریبانو سره کیناستل او د متکبرانو لحاظ نهٔ ساتل۔ او ﴿ وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ ﴾ او خلکو ته د ایمان دعوت ورکول ﴿ فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ ﴾ او بیا ترغیب دے ایمان او عمل صالح ته سره د بشارت نه په قبلولو د عمل او بیا جنتونه ورکول۔

بیا دویمه واقعه د باغ والا ذکر ده، چه یو مالدار وو فخرونه ئې کول، او بل غریب وو لیکن مؤمن او عمل صالح والا وو۔ نو الله مؤمن کامیاب کړو او د کافر نه ئې مالونه هلاك کړل۔

بیا په یوه رکوع کښې ئې د دنیا سپکوالے او زر فناء ذکر کړیده او عمل صالح ته ئې ترغیب ورکړیدے او د آخرت عظمت ئې د دغه مقصد دپاره بیان کړیدے۔

بیا ئې واقعه د آدم علیه السلام راوړے چه کوم خلك دنیا غوره کوی نو دا د ابلیس تابعدار دی چه هغه هم نافرمانی شروع کړه۔ او دوی هم د الله سره شریکان جوړ کړل۔

بیا په یوه رکوع کښې زواجر دی په بعض کارونو چه هلته به ئې تفصیل راشی۔ لکه د قرآن او هدایت نه اعراض، او د انبیاء علیهم السلام مقابلے کول، او په ګناهونو هیرولو، بیا ئې تخویف ورکړیدے چه د دوی دپاره وخت مقرر دے۔

بیا ئې واقعه د موسیٰ علیه السلام او خضر علیه السلام راوړیده د ډیرو مقاصدو دپاره۔ چه یو مقصد پکښې طلب د علم او آداب د طلب د علم دی، دپاره د عمل صالح کولو۔ بیا ئې د ذو القرنین واقعه راوړیده د مختلفو مقاصدو دپاره چه یو پکښې مشرکینو ته جواب ورکول دی، او بل په واقعه کښې دننه عمل صالح ته ترغیب دے او د مشرکانو په نظریاتو رد دے چه ذو القرنین په آخرت ایمان لرلو او منکرینو د آخرت ته ئې سزا ورکوله۔

بیا په آخری رکوع کښې تخویف دے هغه چا ته چه په دنیا کښې اعمال کوی بغیر د اخلاص او اتباع او د آخرت د یرے نه۔ او ددے بربادی ئې ذکر کړیده، بیا په آخر کښې ئې

بشارت او ترغیب ورکړیدے په جنت سره په ایمان او عمل صالح باندے۔ بیا بیان د علم د الله تعالیٰ چه هغه محیط دے۔ چه هلته به ئے مناسبتونه راشي۔ بیا ئے په آخر کښې همدغه موضوع ته دعوت ورکړیدے۔

## د مقدمے حاصل

اول کښې ترغیب دے قرآن کریم ته او د قرآن د رالیږلو دوه فائدے ذکر دي چه هغه بشارت او انذار دے۔ انذار د مشرکانو دپاره دے، او بشارت د مؤمنانو دپاره دے، او په شرك به ورله رد وکړي، بیا رسول الله ﷺ ته تسلي ده په (٦) آیت کښې۔

بیا په (٨/٧) آیت کښې بیان د حکمة د پیدائش د انسان چه هغه عمل صالح دے۔ او د عمل صالح څه فائده ده؟ هغه دا چه ﴿وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ﴾ قیامت راروان دے په عمل به الله تعالیٰ حساب کوي۔ د هغے نه روستو واقعه د اصحاب الکهف ده۔

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَنْزَلَ |
|---|
| ټول صفتونه د الوهیت خاص الله تعالیٰ لره دي هغه ذات دے چه نازل کړے ئے دے |
| عَلٰی عَبْدِهِ الْكِتَابَ وَلَمْ یَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا ﴿١﴾ قَیِّمًا |
| په بنده خپل کتاب او نۀ ئے دے ګرځولے دۀ لره کږلیچ۔ مضبوط کتاب دے، |
| لِّیُنْذِرَ بَاْسًا شَدِیْدًا مِّنْ لَّدُنْهُ وَیُبَشِّرَ |
| دے دپاره چه یره ورکړي د عذاب سخت نه د طرف د هغۀ نه او زیرے ورکړي |
| الْمُؤْمِنِیْنَ الَّذِیْنَ یَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ﴿٢﴾ |
| مؤمنانو ته هغه کسان چه عملونه کوي نیك چه بیشکه دوي لره اجر ښائسته دے۔ |
| مّٰاكِثِیْنَ فِیْهِ اَبَدًا ﴿٣﴾ وَّیُنْذِرَ الَّذِیْنَ قَالُوا اتَّخَذَ |
| اُوسیږي به په هغے کښې همیشه۔ او یره ورکړي هغه کسانو ته چه وائي نیولے دے |
| اللّٰهُ وَلَدًا ﴿٤﴾ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّلَا لِاٰبَآئِهِمْ |
| الله تعالیٰ ولد (بچے)۔ نشته دوي لره پدے خبره هیڅ علم او نۀ پلارانو د دوي لره، |

كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ إِنْ يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا ﴿٥﴾

ډیره لویه خبره ده چه راوځي د خُلو د دوی نه، نهٔ وائی دوی مګر دروغ.

**تفسیر** : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ : دا جمله خبریه ده، الله تعالیٰ د خپل ځان صفت بیانوی یعنی الله تعالیٰ د حمدونو لائق دے پدے وجه چه په خپل بنده ئے داسے عظیم الشان کتاب راولیږلو.
او دا معنیٰ جمله انشائیه هم ده، یعنی پدے کښې مقصود امر کول دی بندګانو ته چه تاسو د الله تعالیٰ حمد ووایئ چه داسے ښکلے کتاب ئے راولیږلو.
او پدے کښې دے تـه هم اشاره ده چه بندګانو له پکار دی چه د هر مهتم بالشان (اَهم) شی ابتداء او انتهاء د الله په حمد او ثناء سره کیدل پکار دی.
عَلٰى عَبْدِهٖ : نبی کریم ﷺ ئے د عبدیت په صفت سره پدے وجه ذکر کړو چه د هغهٔ او د قرآن کریم عظمت ښکاره شي، او دا هم ښکاره شي چه نبی ﷺ د الله بنده دے او همدا د هغهٔ اعلیٰ مقام دے، نهٔ دا چه دهٔ ته د الله ځوی ووئیلے شي لکه څنګه چه نصاریٰ د عیسیٰ ؑ په باره کښې ګمان لري چه هغه د الله ځوی دے.
امام شوکانیؒ وائی چه الله تعالیٰ بندګانو ته د هغهٔ په نعمتونو باندے د حمد وئیلو تعلیم ورکړیدے. او قرآن نازلول په رسول الله ﷺ باندے پدے وجه لوی نعمت دے چه رسول الله ﷺ د قرآن په واسطه سره د توحید رازونه او د ملائکو او د انبیاء علیهم السلام احوال او طریقے د احکام شرعیه ؤ ویږندلے کوم باندے چه هغه او د هغهٔ امت د الله تعالیٰ بندګی کوی. او دغه شان دا کتاب په امت د رسول الله ﷺ هم په دغه طریقه نعمت دے.

(فتح القدیر)

وَلَمْ يَجْعَلْ لَهٗ عِوَجًا : لام په معنیٰ د فِیْ دے. یعنی نهٔ ئے دے ګرځولے په قرآن کښې هیڅ قسم کوږوالے. د عوج ډیرے معانی او مصداقات دی.

١- خلل په لفظ او معنیٰ کښې. ٢- اَلشُّبُهَات. (شبهه پکښې نشته)

٣- اَلْاِخْتِلَافُ وَالتَّنَاقُضُ. اختلاف او تناقض ئے په معانیو کښې نشته. (زجاجؒ)

٤- مقصد ئے نیغ دے یعنی خلقو لره د حق او رشتیا طرف ته د رابللو نه سویٰ ددهٔ بل کوم پیغام نشته. او پدے معنیٰ به روستو قَيِّمًا ددے دپاره تاکید وی.

قَيِّمًا : ١- مستقیم (برابر) کتاب دے. یعنی دا قرآن نهایت معتدل کتاب دے، د هر افراط او تفریط نه پاك دے. ٢- اَلْقَيِّمُ عَلٰى مَا قَبْلَهٗ مِنَ الْكُتُبِ السَّمَاوِيَّةِ مُهَيْمِنًا عَلَيْهَا يَشْهَدُ

بِصِحَّتِهَا) په تمامو مخکنو آسماني کتابونو باندے غالب دے، او په هغے باندے نګراني کوي او د هغے په صحت باندے ګواهي کوي۔ یعني کومے خبرے ته چه دا حقه وائي هغه به حقه وي او کومه خبره چه باطله ګرځوي نو هغه باطله ده۔

۳- (اَلْقَیِّمُ بِمَصَالِحِ الْعِبَادِ الدِّیْنِیَّةِ وَالدُّنْیَوِیَّةِ) د بندګانو د دیني او دنیاوي مصلحتونو او فائدو پروګرام کونکے دے۔ (فتح البیان)

۴- قَیِّمًا بِالْحُجَجِ۔ دا مضبوط کتاب دے په دلیلونو سره، الله تعالیٰ پکښې د دعوے سره دلیلونه هم پیش کړیدي۔ ځکه چه هسے دعوه بغیر د دلیل نه مضبوطه نهٔ وي۔

لِّیُنْذِرَ بَاْسًا : د قرآن کریم مشن دا دے چه دا مشرکان او ګناهګاران د الله د دنیاوي او اُخروي سخت عذاب نه یروي، او مومنانو صالحینو ته د جنت زیرے ورکوي چه د هغے نه لاندے به نهرونه روان وي او په هغے کښې به دوي همیشه وسیږي۔

دلته ئے اول کښې مُنْذَرِین (یره ولے شوي خلق) نهٔ دي ذکر کړي هغه روستو راځي ځکه چه پدے سورت کښې ایمان او عمل صالح ته ترغیب زیات مقصود دے، نو ځکه ئے په مؤمنانو تصریح وکړه او کافران ئے روستو ذکر کړل۔ او بیا ئے انذار مخکښې راوړو د بشارت نه ځکه چه دوي مخالفین د قرآن دي او د قرآن د مقصد نه نا خبره دي نو د هغوي زجر د زیات اهتمام دپاره مخکښې ذکر شو۔

فِیْهِ: ضمیر اجر حسن ته راجع دے چه مراد ترے جنت دے۔

وَّیُنْذِرَ الَّذِیْنَ : دوباره ئے راوړو، ځکه چه مخکښې د عامو کافرانو یرول وو او دلته د دغه کافرانو نه د یوے خاصے عقیدے والا کافران یرول مقصد دي، پدے کښې خبردارے ورکوي چه دا پکښې ډیر لوي جرم دے چه دوي الله تعالیٰ ته د اولادو نسبت کوي۔

کَبُرَتْ کَلِمَةً : یعني لویه ده دغه خبره په اعتبار د خبرے سره۔ یعني په خبرو کښې دا ډیره لویه خبره ده۔ او پدے کښې مقصد ددے د لوي والي نه تعجب کول دي۔

وَلَا لِاٰبَآئِهِمْ : پدے کښې اشاره ده چه دا خبره یوه داسے دروغجنه خبره ده چه ددے بنیاد په جهالت او تور هم پرستئ او د پلار نیکه په ړوند تقلید باندے دے، نو د دوي د پلارانو سره هم هیڅ دلیل نهٔ وو او د دوي سره هم نشته۔

تَخْرُجُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ : خبره خو د خولے نه وځي نو بیا ئے دا صفت ولے ذکر کړو؟ وجه دا ده چه پدے کښې د دوي لویه زړه ورتیا بیانیږي په دے خبره کولو باندے چه وړه خوله ده او لویه خبره پرے کوي چه د حقیقت او واقع سره ئے ذره برابر هم تعلق نشته۔

فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلٰى آثَارِهِمْ إِنْ لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهٰذَا الْحَدِيْثِ

پس شاید چه هلاکوے تهٔ نفس خپل په دوی پسے که ایمان نهٔ راوړی دوی په دے خبره

أَسَفًا ﴿٦﴾ إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِيْنَةً لَّهَا

د وجے د غم نه. یقیناً مونږ گرځولی دی هغه څه چه په زمکه کښ دی ډول ددے

لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ﴿٧﴾

دے دپاره چه امتحان وکړو په دوی چه کوم یو د دوی نه ښائسته عمل والا دے.

وَإِنَّا لَجَاعِلُوْنَ مَا عَلَيْهَا صَعِيْدًا جُرُزًا ﴿٨﴾

او یقیناً مونږ گرځونکی یو هغه څه چه پدے باندے دی میدان صفا خوَیه.

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کښ نبی ﷺ ته تسلی ورکړے شویده او نصیحت شویدے چه که د مکے مشرکان په تا او په قرآن باندے ایمان نهٔ راوړی نو تا له پدے باندے دومره غمجن کیدل نهٔ دی پکار چه خپل ځان په هلاکت کښ واچوے، تا له د صبر نه کار اخستل پکار دی، او د الله تعالیٰ په فیصلو باندے راضی کیدل پکار دی چه هغه چا ته غواړی هدایت ورکوی، او چه چا ته غواړی گمراه کوی ئے. د هغه په فیصلو کښ هیڅوك مداخلت نشی کولے.

او پدے آیت کښ د الله تعالیٰ او د هغهٔ د کتاب استغناء ذکر ده چه الله غنی ذات دے دوی ته ئے هیڅ ضرورت نشته نو ته ئے هم دومره پرواه مهٔ کوه.

**فَلَعَلَّكَ** : لعل کښ معنیٰ د تبعید (وړاندے والی) ده. اَیْ بَعِّدْ نَفْسَكَ عَنِ الْبَخْعِ. ځان د هلاکولو نه جدا کړه. یا استفهام انکاری دے. ځینی وائی چه لعل په خپله معنیٰ دے او پدے کښ مقصد په نبی باندے شفقت کول دی.

بَاخِعٌ : بخع کوشش او کړاو ته وئیلے شی. (اخفش والفراء)

عرب وائی : بَخَعَ الرَّجُلُ نَفْسَهُ اِذَا اَنْهَكَهَا. سړی خپل ځان خوار او کمزورے کړو.

رسول الله ﷺ به د قریشو د مشرانو د ایمان په راوړو کښ ځان ډیر په عذاب کولو نو الله تعالیٰ منع کړو.

عَلٰى آثَارِهِمْ : یعنی د دوی د قدمونو پسے ورمنډے وهے او دوی راضی کول غواړے دے

دپاره چه په قرآن ایمان راوړي.
آثَارِهِمْ : آثار کښې اشاره ده چه دوی ستا نه جدا کیږي او شا راړوي او اعراض کوي. یا د آثارِهِمْ نه مراد د دوی هلاکت دے. (فتح البيان)
الْحَدِيْثِ : نه مراد قرآن دے. اَسَفًا : ۱- اَیْ غَیْظًا وَّحُزْنًا. د غصے او خفگان نه. (قتادة)
۲- جَزَعًا. د وجه د بې صبرئ نه. (مجاهد) او دا متعلق دے د (باخع) پورے. اَیْ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ اَسَفًا عَلَيْهِمْ) ځان د غم په وجه په دوی پسے هلاکوے.
إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ : دا دنيا دار الامتحان (د امتحان کور) دے، دار القرار (د همیشه وسیدو کور) نۀ دے. پدے وجه الله تعالیٰ په زمکه باندے مختلف قسم حیوانات پیدا کړي، او دے ته ئے په ونو، نهرونو او ګلانو او پانړو سره ډول ورکړے، او د قسم قسم نعمتونو نه ئے دا ډکه کړیده دے دپاره چه وګوري چه څوك پدے خواهشاتو کښې پاتے پریوزي، او څوك پدے خواهشاتو او شهوتونو باندے غالب راتلو سره د الله اطاعت او بندګئ ته ترجیح ورکوي. او يوه ورځ به داسے راځي چه زمکه او پدے باندے موجوده څیزونه به په يو ځل ختم شي، او زمکه به بے اُوبو اوبے ګیاه میدان جوړ شي.
مفسرینو لیکلي دي چه پدے دواړو آیتونو کښې هم نبي کریم ﷺ ته تسلي ورکړے شویده چه ته پریشانه کیږه مۀ، او غم مۀ کوه، ځکه چه د کومے دنیا او ددے د لذتونو او شهوتونو د خاطره چه تاسره کافران دشمني کوي، دا به په هر حال کښې ختمیږي، او ټول به ما ته راواپس کیږي، دے دپاره چه دوی ته د دوی د عملونو بدله ورکړے شي. او دنیا کښې ابتلاء ده پدے وجه زور ته ضرورت نشته.
أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا : او ددے سره دا مراد دے (وَأَيُّهُمْ أَزْغَبُ فِي الدُّنْيَا) او څوك د دنيا سره مینه کونکے دے.
د احسن عمل تشریح مخکښې بار بار ذکر شوه چه اخلاص پکښې وي او د رسول الله ﷺ اتباع سره وشي.
وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ : مقصد دا چه د عملونو د نتیجو دپاره یوه ورځ راروانه ده چه احسن عمل والا ته به نیکه بدله او بد عمل والا ته به بده بدله ورکولے شي.
صَعِيدًا جُرُزًا : میدان صفا. اَیْ لِلْحِسَابِ . د حساب دپاره به داسے کیږي. کوم انسان چه پدے خبره پوهه شي چه زۀ امتحان له پیدا یم نو په هیڅ ځای کښې به نیك عمل نۀ پریدي. خو ډیر کرت مونږ انسانان ددے مقصد نه غافله کیږو.

جُرُزًا : هغه زمكے ته وئيلے شي چه گياه پكښې نهٔ وي۔ (فراّء)

٢– يَابِسًا : وچه۔ (چه گياه او اُوبه پكښې نهٔ وي)۔

| |
|---|
| أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيْمِ كَانُوْا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا ﴿٩﴾ |
| آيا تهٔ گمان كوے چه بيشكه غار والا او رقيم والا وو دوى د نخو د قدرت زمونږ نه ناشنا۔ |
| إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوْا رَبَّنَا آتِنَا |
| كله چه پناهي واخسته ځوانانو غار ته نو ووئيل دوى اے ربه زمونږ ! راكړه مونږ ته |
| مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً وَّهَيِّءْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا ﴿١٠﴾ |
| د خپل طرف نه رحمت او آسان كړه مونږ ته د كار زمونږ نه كاميابي۔ |
| فَضَرَبْنَا عَلَى آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِيْنَ عَدَدًا ﴿١١﴾ |
| نو اُووهل (اُوتړل) مونږ په غوږونو د دوى په غار كښې څو كلونه د شمار۔ |
| ثُمَّ بَعَثْنَاهُمْ لِنَعْلَمَ أَيُّ الْحِزْبَيْنِ |
| بيا راپورته كړل مونږ دوى لره دے دپاره چه ښكاره كړو چه كوم يو د دواړو ډلو نه |
| أَحْصَى لِمَا لَبِثُوْا أَمَدًا ﴿١٢﴾ |
| ښه حساب والا دے د هغے چه دوى درنگ تير كړے وو د مودے۔ |

**تفسير** : اُوس واقعه د اصحاب الكهف شروع كوى چه پدے كښې ډير فوائد دى :

(١) نفي د علم الغيب ده چه اصحاب كهف راپاڅيدل او د خپل ژوند نه خبر نهٔ وو۔

(٢) مقصد : رد د شرك دے چه اے مشركانو! تاسو د اصحاب الكهف په باره كښې تپوس كوئ او ددے مقصد نه هم ځان خبر كړئ چه هغوى ولے د بادشاه نه وتښتيدل؟ وجه دا وه چه شرك ئے بد گنړلو نو دا واقعه په مشركانو رد دے۔

(٣) د اصحاب الكهف واقعه د اثبات د آخرت دپاره لوى دليل دے چه درے سوه نهه كاله روستو الله تعالىٰ راپورته كړل، نو دغه شان به الله تعالىٰ مړى په قيامت كښې راژوندى كوى۔ او پدے كښې هم په مشركانو ضمني رد دے چه تاسو د چا په باره كښې تپوس كوئ د هغوى عقيده خو ستاسو د عقيدے خلاف ده۔

(٤) اَلْهِجْرَةُ لِحِفْظِ الدِّيْنِ ـ د خپل دین (ایمان او عمل صالح) د حفاظت دپاره به خپل کلے او کورونه پریدیے ځکه چه دا ضروري ځیزونه دي.
او روستو هجرت د تعلم (زدهٔ کړے) د دین دپاره ذکر دے لکه موسیٰ ﷺ خضر خوا ته هجرت کړے وو. او دریم هجرت د نشر (عام کولو) د دین لکه هجرت د ذو القرنین شو.
(٥) په «الرحیق المختوم» کښې ددے بله فائده دا ذکر شویده چه پدے واقعه کښې د مکے مؤمنانو ته د هجرت دعوت وو چه هغوی د مشرکانو نه تنګ راغلي وو لکه د اصحاب الکهف په شان.
(٦) د الله اولیاء هغهٔ ته په هرڅه کښې محتاج دي نو دوی د چا حاجتونه نشي پوره کولے.
(٧) کرامات د اولیاؤ حق دي. خو د هغوی نه به آلهه نهٔ شي جوړولے.
(٨) اَلتَّوَكُّلُ عَلَى اللّٰهِ ـ د الله په ذات توکل کول پکار دي او ځان سره توښه وړل د توکل منافي نهٔ دي. لکه اصحاب الکهف ځان سره اخستے وه. دا جزئي فوائد دي چه د آیتونو مینځ مینځ کښې به راځي.

## واقعه د اصحاب الکهف

د اصحاب الکهف واقعه چه قرآن څومره ذکر کړیده هغه کافي ده، خو بعض مفسرینو ورسره بعض خبرے زیاتي ذکر کړیدي، کیدے شي چه دائے د یهودو نه اخستي وي، خو قرآن کریم کښې الله منع کړیده چه د یهودو نه د دوی په باره کښې تپوس مهٔ کوه مګر د سیاق نه معلومیږي چه دا واقعه د عیسیٰ ﷺ د زمانے نه روستو راغلے ده، د حوارینو د لاس نه دا اصحاب الکهف پیدا شویدي، دقیانوس د روم بادشاه وو، بت پرست وو، د ډیرو آلهه ؤ عبادت ئے کولو او ذبح لِلطَّوَاغِيْت (بتانو دپاره به ئے) ذبح کوله، (خاص ورځ به ئے مناووله چه د باباګانو دپاره به ئے ذبحے کولے). دا بادشاه په سنه (٢٣٧ء) کښې تیر شویدے.
(ابن عاشورؒ)
پدے کښې څه کسان چه د وزیرانو اولاد وو. روستو د قرآن د اشارے نه معلومیږي چه د سرو او سپینو زرو بنګړي ئے هم په لاسونو کښې وو. دوی د بادشاه او د هغوی د قوم پدے شرکي کارونو خفه وو، دوی ته الله تعالیٰ دا خبره په زړهٔ کښې واچوله چه دا کار خو شرك دے او د الله تعالیٰ حق بربادول دي، او دا خبره هغوی د عیسیٰ ﷺ د حوارینو نه زده کړے وه، دوی د قوم نه یو یو جدا کیدو سره یو ځای کښې راجمع شو.

پدے کښې خلك پرے خبر شو چه څه کسان دي د بادشاه دين بد گنړي۔
دوی بادشاه راوغوختل چه تاسو واړه هلکان يئ او د خپل پلار او نیکهٔ خلاف کوئ، نو زهٔ چه څه کوم هغه به کوئ، او تاسو ته څور ورځے مهلت دے که زمونږ دين ته راواپس نهٔ شوئ بيا به ستاسو قتل وي، نو دوی چه کله د هغوی نه راجدا شو نو خپل مينځ کښې ئے مشوره وکړه چه دا خلك مو نهٔ پريدي مگر دا چه د دوی سره په شرك کښې شريك شو، نو يو پکښې ووېل چه ماته يو غار معلوم دے راځئ چه هلته به لاړ شو او د دوی نه به پټ شو او ځان سره به توبنه واخلو او الله به مو حفاظت وکړي۔
روان شو چه شپږ کسان وو په لاره کښې ورسره يو راعي (شپونکے) ملگرے شو چه هغه سره سپے هم وو۔ دوی دوه فرسخه (يعني ٦ ميله) مزل کولو نه روستو يو کلي ته راغلل چه هغے ته (بنجلوس) وائي په هغے کښې غر وو او په غر کښې يو غار وو هغے ته ننوتل سپے ورته په دُرشل کښې څملاستو، په دوی باندے الله تعالیٰ خوب راوستو، قوم ورپسے ډيرے منډے وو هلے ليکن پيدا ئے نکړل۔
څوك وائي چه غار پورے راغلل ليکن الله تعالیٰ ترے ورك کړل صرف هلته ئے يو تاريخ وليکلو چه دلته څه کسان راپټ شويدي کيدے شي چه پدے علاقو کښې وي او د هغوی نومونه ئے هم وليکل چه بعض مفسرينو ذکر کړيدي۔ تردے چه دغه بادشاهي الله تعالیٰ ختمه کړه دوی درے سوه نهه کاله روستو راپاڅيدل۔
بعض مفسرين ليکي چه په دغه زمانه کښې بادشاه مسلمان وو د آخرت منونکے وو، او عوامو کښې د آخرت نه انکار وو، بادشاه به دعوت ورکولو چه آخرت وومنئ، هغوی به نهٔ منله، نو الله تعالیٰ اصحاب الکهف د دوی په زمانه کښې راپاڅول دے دپاره چه دوی ته وښائي چه دآخرت ورځ حقه ده۔ دوی يو تن کلي ته د طعام راوړو دپاره وليږلو او سپين زر ورسره وو او دا وصيت ئے ورته وکړو چه پټ لاړ شه او چا سره چير چاړ مهٔ کوه چه څوك درباندے خبر نشي، او حلال طعام راوړه۔ د دوی دا گمان وو چه دا اُوس هم هغه زمانه ده۔ دکاندار ته چه ورغلو او دغه پيسے ئے ورته مخے ته کړے نو هغه ورته ووېل چه دا پيسے نهٔ چليږي، دا پخوانئ پيسے دي، تا چرته خزانه موندلے ده ؟۔ هغه ووېل چه خزانه نشته خو طعام راکړه، توقے مهٔ کوه، نو آخر دا چه هغوی پرے خبر شو چه سړے هم ناشنا او پيسے ئے هم ناشنا دي، نو حکومت ته ئے پرے خبر ورکړو۔ نو معلومه شوه چه دا هغه کسان دي چه پخوا زمانه کښې ورك شوي وو اُوس راپيدا شو او ډير سخت پرے خوشحاله شو۔

(څکه چه دا خو ډیره ناشنا نښنه ده چه دوی باندے دریے سوه کاله تیر شو او اُوس راژوندی شو داسے دی لکه چه مړی راژوندی شوی وی او دا خو د قیامت دپاره ډیره لویه نښنه ده دارنګه د هغهٔ د قدرت هم.
او دارنګه الله تعالیٰ د خپلو دوستانو داسے حفاظت هم کوی پدیے کښ صحابه کرامؓ ته اشاره ده چه ایے عمل صالح والو! مهٔ یریږئ ستاسو بهٔ هم داسے حفاظت وشی)
پدیے کښ د علاقے مشران د دغه سری سره غار پورے لاړل، د اصحاب الکهف سره ئے ملاقات وشو او خبرے اترے ئے وکړے او د هغے نه روستو په هغوی باندے الله تعالیٰ زر مرګ راوستو. بیا دغه بادشاهانو هلته خخ کړل او د غار مخے ته ئے جمات جوړ کړو.
ددے ځوانانو په باره کښ وئیلے کیږی چه دوی د عیسیٰ علیه السلام په دین باندے ولاړ وو.
لیکن حافظ ابن کثیرؒ او ابن عاشورؒ ددے رد کړیدے، او ددے وجه ئے دا خودلے ده چه که دا خلق نصرانیان وے، نو د مدینے یهودیانو به د دوی د خبرونو سره دلچسپی او شوق نهٔ لرلے.
او د مکے کافرانو ته به ئے نهٔ خودلے چه هغوی د دوی په باره کښ د رسول الله ﷺ نه تپوس وکړی. معلومیږی چه دا واقعه د اهل کتابو په کتابونو کښ د عیسیٰ علیه السلام د بعثت نه مخکښ موجوده وه.
او ابن عاشورؒ وائی چه ممکن ده چه بعض یهودیان د بادشاهانو د ظلمونو نه غارونو کښ پټ شوی وو لکه د تونس په اطرافو کښ جوړ شوی غارونه موجود دی چه ما ته بعض علماء الآثار د راهبانو نصرانیانو نه دا خبر راکړیدے چه یهودیان به پدے غارونو کښ د رومیانو قرطاجنیینو د ظلمونو نه پټیدل. او دا هم جائز ده چه د دواړو دینونو والو نیکان خلك دے په غارونو کښ پټ شوی وی. او ددے وجه نه په تاریخ کښ د دغه غارونو د ښارونو نومونه مختلف راغلی دی.

## فوائد الآية:

أَمۡ حَسِبۡتَ : ام منقطعه دے په معنیٰ د بل سره او دا راغی دپاره د انتقال د یوے خبرے نه بلے خبرے ته. یعنی هرکله چه مشرکانو د اصحاب الکهف د قصے نه تعجب کولو او ددیے په باره کښ ئے د رسول الله ﷺ نه په طریقه د امتحان تپوس کولو نو الله وفرمایل : بلکه آیا ته ګمان کوے ایے زما رسوله! چه دوی زما د نښو نه یو واخے ناشنا نښنه ده، دا ګمان مهٔ کوه څکه چه زمونږ ډیرے نښے شته چه ددے نه ډیرے ناشنا دی، څکه چه الله تعالیٰ ډیر قومونه راژوندی کړیدی او مړی ئے راژوندی کړیدی دا خو د اُوږد خوب نه پس رابیدارول

دی دا دومره ناشنا ده. الله تعالیٰ ددے نه په ډیرو ناشنا کارونو قادر دے.
زجاج وائی چه آسمانونه او زمکه او د دوی په مینځ کښې د اصحاب الکهف د قصے نه ډیر ناشنا والے دے. ابن عباسؓ فرمائی: ما چه تا ته کوم علم د کتاب او سنت درکړیدے هغه د اصحاب الکهف د قصے نه ډیر غوره دے. (فتح البیان)
**اَلْکَهْفِ** : کهف په غر کښې دننه ځای ته وائی چه مینځ ئے کولاؤ وی، او که کولاؤ نهٔ وی هغے ته غار وائی.
**وَالرَّقِیْمِ** : ۱- د امام بخاریؒ د طرز نه معلومیږی چه رقیم والا هغه درے کسان غار والا وو چه په بنی اسرائیلو کښې تیر شوی وو لکه هغه قصه په بخاری او مسلم وغیره کښې تفصیلًا نقل ده. دا تفسیر دومره ظاهر نهٔ دے.
ظاهر دا دے چه اصحاب الکهف والرقیم یو شے دے.
۲- مجاهدؒ او سعید بن جبیرؒ وائی چه دا د کانړی هغه تخته وه چه په هغے باندے د دوی نومونه لیکلے شوی وو او د غار په دروازه کښې کیخودے شوے وو.
۳- ځینی وائی چه دا د هغه کلی نوم دے، د کوم نه چه دوی راوتلی وو.
٤- بعض وائی چه دا د هغه وادی (میدان، کندے) نوم دے په کوم کښې چه دوی وو.
۵- بعض وائی د هغه غر نوم دے په کوم کښې چه دا غار وو.
**اِذْ اَوَی الْفِتْیَةُ** : دا اُوس اجمال د قصے دے. اَوَی : یعنی پناهی ونیوله.
**اَلْفِتْیَةُ**: همیشه د دین خدمت ځوانانو کړیدے. حافظ ابن کثیرؒ د ﴿ اِنَّهُمْ فِتْیَةٌ ﴾ نه دلیل نیولے چه د بوډاګانو په مقابله کښې ځوانان حق زر قبلوی. همدا وجه ده چه د قریشو اکثر بوډاګان په خپل کفر باندے مضبوط پاتی شو او د دوی نه ډیرو کمو خلقو اسلام قبول کړو.
**فَقَالُوْا رَبَّنَا**: مهاجر بنده ته ددے تعلیم ورکړے شویدے چه هغه لهٔ پکار دی چه داسے دعا د خپل رب نه وغواړی. او پدے کښې اشاره ده چه دوی په هر حال کښې خپل رب ته محتاج دی، خپل تصرف ئے نشته، په غیبو نهٔ پوهیږی.
**مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً**: د رحمة نه مراد ۱- خپل معرفت. ۲- صبر، ۳- رزق. ٤- امن د دشمنانو نه. ۵- او په آخرت کښې بخنه ده. نور هم پکښې داخلیږی.
**وَهَیِّئْ لَنَا** : ۱- اَیْ اَعْطِنَا لِاَجْلِ اَمْرِنَا (وَهُوَ الْهِجْرَةُ) هِدَایَةً) راکړه مونږ ته هدایت د وجه د کار زمونږ نه چه هجرت دے) ۲- آسان کړه مونږ ته د وجه د کار زمونږ نه چه هجرت دے

هدایت۔ یعنی په آسانۍ سره راته هدایت وکړه، ځکه چه هجرت ګران کار دے۔
نـو الله ورلـه دا دعاء قبوله کړه او د خلکو نه ئے محفوظ کړل او بدنونه ئے پداسے طریقه بچ وساتل چه د خرابیدو نه محفوظ شو۔ او کافران ئے نا امیده کړل۔
فَضَرَبْنَا عَلٰٓى آذَانِهِمْ : دا د الله تـعالیٰ د رحم الفاظ دی۔ یعنی لکه څنګه چه مور دیو بچی د اُوده کولو دپاره د هغهٔ غوږ ټپوی نو دغه شان الله تعالیٰ په آرام آرام او سکون سره اُوده کړل۔
او د غوږونو وهلو نه مراد دا دے چه مونږ د دوی غوږونه په سخت خوب سره بند کړل چه د خلکو آوازونه ئے نهٔ آوریدل۔ [اَیْ ضَرَبْنَا عَلٰٓى آذَانِهِمِ الْحِجَابَ] مـونږ د دوی په غوږونو باندے پرده وو هله۔
سِنِيْنَ : کلونه۔ عَدَدًا : د شمار چه هغه درے سوه نهه دی۔
ثُمَّ بَعَثْنَاهُمْ : دلتـه د خـوب دپاره بعث لفظ استعمال شو ځکه چه خوب د مرګ ورور دے۔
لِنَعْلَمَ : اَیْ لِنُظْهِرَ لِلْعِبَادِ۔ دے دپاره چه راښکاره کړو خلکو ته۔
الْحِزْبَيْنِ : ۱- د دواړو ډلو نـه مراد د رسول الله ﷺ په زمانه کښې کافران او مؤمنان دی چـه هـغـوی د دوی د مـودے پـه باره کـښې مـخـتـلـف وو، پـه خپل ګمان بـه ئے غلط تاریخ بیانولو۔ دا رایه دومره ظاهره نهٔ ده ځکه چه دومره فائده ئے نشته۔
۲- بعض وائی چه د اصحاب الکهف او د هغه کلی والو په خپل مینځ کښې اختلاف وو چه دوی څومره موده تیره کړیده۔ ۳- ظاهر دا ده چه د دوی نه مراد خپله اصحاب الکهف دی چـه دوی کښې دوه ډلے جـوړے شوے لـکه روستو راځی څه کسانو وویل چه مونږ یوه ورځ تیره کړه او چا وویل چه څه حصه د ورځے مو تیره کړه۔
نـو فـائـده دا شوه چه دا دواړه ډلے په خطاء وے، دواړه په غیبو نهٔ پو هیدل، نو مونږ دا خبره خلکو ته راښکاره کول غوښتل چه دوی په غیبو نهٔ پو هیدل۔
بله فائده پکښې دا ده چه پدے کښې اثبات د آخرت دے چه دا دواړه ډلے په خپله موده د اُوده کیـدو خبر نـهٔ وو نـو اُوده انسان په څه نهٔ وی خبر، او بیا ئے الله تعالیٰ رابیداروی۔ نو دارنګه چه کله انسان مړ شی نو په څه به نهٔ پو هیږی او الله تعالیٰ به ئے په آخرت کښې راپاڅوی او دوی تـه بـه پتـه نهٔ وی، څوك به وائی چه لس ورځے مو تیرے کړے او څوك به وائی یوه یوه ورځ (سورة طه: ۱۰۳/ ۱۰۴) او څوك به (عَشِيَّةً اَوْ ضُحَاهَا) ذکر کوی۔ او مؤمنان به ورته وائی

چه ﴿لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِيْ كِتَابِ اللهِ إِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ﴾ (الروم:٥٦)
(تاسو د الله په علم کښې تر دوباره راپورته کيدو پورې ډيره موده تيره کړيده)
٤- ابن عاشورؒ پدې باندې رد کړيدې چه دا قول مناسب نهٔ دې، ځکه چه د حزب لفظ نه خلاف دې ځکه چه اصحاب الکهف کښې يو تن قائل وو او نور شکيان وو ځکه ئې يوما او بعض يوم ذکر کړو. ﴿قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ﴾ نو دوى کښې خو دوه ډلې نهٔ وې. بله دا چه دا د (احصى) لفظ نه هم بعيد دې، احصاء د اوږدې زمانې شمارلو ته وئيلې شي او دلته خو دوى په خپله زمانه باندې د معمولي مودې (ورځ يا نيمه ورځ) ګمان کړې وو. نو صحيح دا ده چه ددې نه مراد د دغه کلي د خلکو دوه ډلې وې چه د اصحاب الکهف په باره کښې ئې اختلاف وو چه دوى څومره موده تيره کړه، چه يوه ډله په حق وه او بله په خطاء وه او ته حق والا د خطاء والا نه معلوم وو.
اَحْصٰى : زمخشرى وائي چه دا ماضي صيغه ده. مګر ابن عاشورؒ پرې رد کړيدې چه اسم تفضيل د غير ثلاثي نه راتلل هم په کلام فصيح او قرآن کښې زيات موجود دي.

| نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ |
|---|
| مونږ بيانوو په تا باندې خبر د دوى په حق سره يقيناً دوى ځوانان وو |
| آمَنُوْا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى ﴿١٣﴾ |
| چه ايمان ئې راوړې وو په رب خپل او زياتى کړې وو مونږ دوى لره هدايت. |
| وَرَبَطْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ إِذْ قَامُوْا فَقَالُوْا رَبُّنَا |
| او مضبوطوالې راوستو مونږ په زړونو د دوى کله چه اودريدل نو اووئيل دوى رب زمونږ |
| رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَنْ نَّدْعُوَ مِنْ دُوْنِهِ إِلٰـهًا |
| رب د آسمانونو او د زمکې دې، هيچرې نهٔ رابلو مونږ سوى د هغهٔ نه بل مددګار، |
| لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا ﴿١٤﴾ هٰؤُلَاءِ |
| يقيناً وئيلې به وى مونږ په دغه وخت کښې د حد نه تيره شوې خبره. دا کسان |
| قَوْمُنَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهِ آلِهَةً لَوْلَا يَأْتُوْنَ عَلَيْهِمْ |
| قوم زمونږ دې نيولى ئې دى سوى د الله نه نور مددګاران، ولې نهٔ راوړى په هغوى باندې |

بِسُلْطَانٍ بَيِّنٍ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ﴿١٥﴾

دلیل ښکاره، نو څوک دے لوئی ظالم د هغه چا نه چه جوړوی په الله باندے دروغ۔

**تفسیر** : د اصحاب کهف د واقعے اُوس تفصیل بیانیږی۔ دے ځوانانو د خپل مشرك قوم په خلاف د الله تعالیٰ په وحدانیت باندے ایمان راوړے وو، او الله تعالیٰ دوی ته په خپله عقیده کښې داسے پوخ والے ورکړے وو، چه دوی د خپل دین د حفاظت دپاره خپل کور کلے پریخودو، او د هجرت لاره ئے اختیاره کړه، او د تمامو دنیاوی آرام او دولو نه ئے مخ واړولو او غار کښې وسیدو ته ئے غاره کیخوسته۔

او ﴿ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى ﴾ نه او ددے په معنیٰ نورو قرآنی آیتونو نه امام بخاریؒ او نورو امامانو دلیل نیولے دے چه ایمان کښې کمے او زیاتے کیږی۔

إِذْ قَامُوا : دے کښې دوه تفسیره دی : ۱ – دوی ودریدل هجرت ته، نو اُوس خپل ځان دپاره نیت صفا کوی چه مونږ هجرت څکه کوو چه زمونږ رب، د آسمانونو او د زمکے رب دے او د هغه ذات عبادت کوو، او د هغهٔ نه سوئ بل معبود ته آواز نهٔ کوو که مونږ د غیر الله عبادت وکړو، نو دا به لوی ظلم وی اومونږ ددے ظلم نه تښتو۔

۲ – إِذْ قَامُوا بَيْنَ يَدَيِ الْمَلِكِ۔ کله چه دوی د بادشاه مخے ته ودریدل نو الله تعالیٰ د دوی زړونه مضبوط کړل، او هغه ته ئے جوابونه ورکړل۔

بادشاه ووئیل چه تاسو ولے د پلار نیکه خلاف کوئ او ستاسو څه عقیده ده؟ هغوی ووئیل : ﴿ رَبُّنَا رَبُّ السَّمَوَاتِ ﴾ بادشاه ووئیل چه دا خو زمونږ عقیده هم ده؟۔

دوی ووئیل : ﴿ لَنْ نَدْعُوَا ﴾ مونږ سوئ د الله نه بل إلٰه نهٔ منو۔ اوتاسو خو نور آلهه نیولی دی۔ بادشاه ووئیل : که څوك ئے ومنی نو څه چل به وشی؟ دوی ووئیل : ﴿ لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا ﴾ مونږ به په دغه وخت کښې د حق نه زیاته خبره کړی وی۔ او دا ظلم دے۔

بادشاه ووئیل : تاسو بنهٔ پو هیږئ او که ستاسو قوم او پلار نیکهٔ ؟ هغوی ووئیل : ﴿ هَؤُلَاءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوا ﴾ دوی اگرکه مشران دی خو دلیل ورسره نشته۔ سوال پیدا شو چه دلیل ورسره نشته خو موافقت پکار دے نو دوی ووئیل چه ﴿ فَمَنْ أَظْلَمُ ﴾ دا خو په الله باندے دروغ جوړول دی، او په الله باندے د روغ جوړونکی نه لوی ظالم بل نشته۔ پدے معنیٰ به ﴿ وَإِذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ ﴾ د اصحاب کهف خپل مینځ کښې خبره وی۔

هؤُلَاءِ قَوْمُنَا : (وَإِنْ كَانُوا أَسَنَّ مِنَّا) (السراج المنیر) اگرکه دوی زمونږ نه مشران دی

لیکن مرض پکښې موجود دے چه (اتخذوا)۔
**شَطَطًا** : د حد نه تجاوز کول دی۔ باطل او دروغ ته هم شطط وائی۔
**بَيِّنٍ** : ښکاره دلیل۔ دا ښکـه وائی چه هسے د دروغو دلیلونه خو د مشرکانو سره هم شته۔ او دا دلیل دے چه د مشرانو نه هم دلیل طلب کول پکار دی۔
او د بعض مقلدینو دا خبره غلطه ده چه (لَايُسْئَلُ الْمُجْتَهِدُ عَنِ الدَّلِيْلِ) د مجتهد نه به د دلیل تپوس نهٔ کیږی۔ دا ډیر خلك بی ادبی ګنړی چه استاذ نه د دلیل تپوس وکړی۔

| وَاِذِ اعْتَزَلْتُمُوْهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ |
|---|
| او کله چه جدا شوئ تاسو د دوی نه او د هغه چا نه چه دوی ئے بندګی کوی سوئ د الله نه |
| فَاْوُوْا اِلَى الْكَهْفِ يَنْشُرْ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ |
| نو پناه ی واخلئ غار ته، ډیر فراخه به درکړی تاسو ته رب ستاسو د رحمت خپل نه |
| وَيُهَيِّءْ لَكُمْ مِّنْ اَمْرِكُمْ مِّرْفَقًا ﴿۱۶﴾ وَتَرَى الشَّمْسَ اِذَا طَلَعَتْ |
| او آسان به کړی تاسو ته د کار ستاسو نه فائدے۔ او وینے به ته نمر کله چه راخیژی، |
| تَّزٰوَرُ عَنْ كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَاِذَا غَرَبَتْ تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ |
| نو اوړی به د غار د دوی نه ښی طرف ته او کله چه ډوبیږی نو پریږدی دوی لره ګس طرف ته |
| وَهُمْ فِىْ فَجْوَةٍ مِّنْهُ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ مَنْ |
| او دوی په کولاؤ ځائے کښې وو ددے نه، دا د نخو د قدرت د الله نه دی، هغه څوك |
| يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَنْ |
| چه هدایت ورته اوکړی الله تعالیٰ نو دا هدایت والا دے او هغه څوك |
| يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿۱۷﴾ |
| چه الله تعالیٰ ئے ګمراه کړی نو هیچرے به مونده نکړے هغه لره دوست لار خودونکے۔ |

**تفسیر** : وَمَا يَعْبُدُوْنَ : یعنی د دوی نه هم جدا شئ او د دوی د معبودانو نه هم۔ ما موصوله ده۔ بعض وائی دا قول د الله تعالیٰ دے د جملے معترضے په طریقه او ما نافیه ده یعنی اصحاب الکهف د قوم نه ولے جدا شو ځکه چه دوی بندګی نهٔ کوله سوئ د الله

تعالیٰ نه- اول قول غوره دے چه دا د اصحاب الکهف په وینا کښې داخل دے-
**الْكَهْفِ**: دا غار دوی ته معلوم وو ځکه ئے پکښې الف لام راوړل-
**يَنْشُرْ لَكُمْ** : اَیْ یَبْسُطْ وَیُوَسِّعْ- (فراخه به کړی) دا د دوی امید دے د الله تعالیٰ نه، او توکل دے په هغه باندے-
**مِّنْ رَّحْمَتِهٖ** : د رحمت نه مراد د دشمنانو نه بچ ساتل دی- او دارنګه د آخرت رحمت هم-
**وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِّنْ اَمْرِكُمْ مِّرْفَقًا** : ۱- او آسان به کړی تاسو ته د کار ستاسو نه ځای د آرام- ۲- آسان به کړی تاسو ته فائدے- ۳- دربه کړی تاسو ته فائدے-
**فَجْوَةٍ**: اَیِ الْمَكَانِ الْمُتَّسِعِ- فراخه ځای کښې دی د غار نه-
۱- مفسرین وائی چه ددے کهف وضع (جوړخت) دغه شان وو چه سهار کښې به نمر راختو نو د غار په ښی طرف به لګیدو او چه ماښام کښې به پریوتو نو د غار په ګس طرف به لګیدو- ۲- زجاج وائی : [هٰذَا بِمَنْعِ اللّٰهِ مِنْهُمْ وَهٰذَا كَرَامَةٌ لَّهُمْ]
غار نمر طرفته وو لیکن الله تعالیٰ د دوی نه منع کړے وو او دا د دوی کرامت وو، او د الله تعالیٰ د قدرت نښه وه ځکه ئے دے ته (ذٰلِكَ مِنْ آيَاتِ اللهِ) وئیلے دے- او نمر ترے الله تعالیٰ پدے طریقه اړولو چه د دوی بدنونه خراب نکړی، یا په ګرمئ او یخنئ سره تکلیف ورنه نکړی، درمیانه حالت کښې وی-
**ذٰلِكَ** : یعنی دغه نمر اړول د دوی نه سره ددے نه چه دغه غار متوجه دے نمر ته- یقیناً د دے نیکانو دا حال د الله تعالیٰ یوه لویه نخه ده- لیکن دا او ددے په شان نورو نخو نه هغه څوک هدایت حاصلوی چه الله ورته توفیق ورکړی، او چا له چه الله ګمراه کول غواړی د هغه به هیڅ یار او مددګار نهٔ وی چه هغه په نیغه لاره روان کړی-
**فائده** : بعض خلقو د اصحاب کهفو په غار کښې د پټیدو نه د عبادت دپاره په جدا کیدو دلیل نیولے دے، مګر دا صحیح نهٔ دے- ددے نه خو صرف دومره خبره ثابتیږی چه کله د یو انسان دین او ایمان ته د یو ظالم د طرف نه خطره پیوسته شی، نو هغه ځای پریخودو سره بل ځای ته منتقل کیدل پکار دی، دے دپاره چه هلته د سکون سره د الله عبادت وکړی او ددهٔ دین د خطرے نه محفوظ شی-
امام غزالیؒ هم د داسے خلقو رد کړے لیکلی ئے دی چه اصحاب کهف د یو بل نه جدا شوی نهٔ وو بلکه د کافرانو د ظلم او زیاتی نه ئے د تیښتے لاره اختیاره کړے وه-
حافظ ابن کثیرؒ هم ددے رائے رد کړیدے او لیکلی ئے دی چه عزلت او د خلقو نه جدائی به

صرف په هغه صورت کښې جائز وی چه د انسان دین او ایمان ته خطره پیوسته شی۔

| وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ وَنُقَلِّبُهُمْ |
|---|
| او گمان به کوے ته په دوی باندے ویښ او دوی اُوده دی، او اَړو راړو مونږ دوی لره |
| ذَاتَ الْيَمِينِ وَذَاتَ الشِّمَالِ وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ |
| ښی طرف او کس طرف ته او سپے د دوی خورونکے دے دواړه لیچو خپلو لره په درشل باندے، |
| لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ |
| که چرته ورښکاره شے ته په دوی خامخا وابه وړے د دوی نه په تیختنه او خامخا ډک به شے |
| مِنْهُمْ رُعْبًا ﴿١٨﴾ وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَاهُمْ لِيَتَسَاءَلُوا |
| د دوی نه په رعب (یره) سره۔ او دغه شان راپورته کړل مونږ دے دپاره چه تپوس نه وکړی |
| بَيْنَهُمْ قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ |
| په مینځ خپل کښې، اُووئیل یو ویونکی د دوی نه څومره وخت تیر کړو تاسو |
| قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ قَالُوا رَبُّكُمْ |
| اُووئیل هغوی وخت تیر کړے مونږ یوه ورځ یا حصه د ورځے اُووئیل هغوی رب ستاسو |
| أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ فَابْعَثُوا أَحَدَكُم |
| ښه پوهه دے په هغه وخت چه تیر کړیدے تاسو، نو اُولیږئ یو تن ستاسو نه |
| بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلْيَنظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا |
| په پیسو ستاسو سره چه دا دی ښار ته نو اُودے گوری چه کوم یو د دوی نه پاك طعام والا دے۔ |
| فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ |
| نو رادے وړی تاسو ته خوراك د هغه نه او نرمی دے کوی او خبر دے نکړی په تاسو باندے |
| أَحَدًا ﴿١٩﴾ إِنَّهُمْ إِن يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ أَوْ |
| هیڅوك۔ یقیناً دوی که خبر شی په تاسو نو په کاڼرو به مو اُوولی یا به مو |

يُعِيدُوكُمْ فِي مِلَّتِهِمْ وَلَنْ تُفْلِحُوا إِذًا أَبَدًا ﴿٢٠﴾

واپس کړي په دين خپل کښې او هيچرې به کامياب نشئ په دغه وخت کښې هيڅ کله۔

**تفسير:** پدے آيت کريمه کښې ددے صالحينو يو بل عجيب کيفيت بيان شويدے چه اگرکه الله تعالىٰ په دوی باندے ژور خوب راوستے وو ليکن د دوی سترگے داسے کولاوے وے چه که چا به دوی ته کتل، نو دوی به ئے بيدار گڼل۔ او د الله تعالىٰ په حکم سره د دوی بدنونه به ښي او گس طرف ته اوړيدل راوړيدل دے دپاره چه زمکه دوی ته نقصان ونۀ رسوی، بدن خاورے نشي۔ او د دوی سپے د غار په درشل باندے خپلے متے خورے کړے ناست وو۔ د دوی ددے تمامو احوالو او کيفياتو نه يو داسے کيفيت پيدا شوے وو چه که يو قوی همت والا سړی هم دوی ته کتلے، نو په هغۀ به رعب راتلے او په يره سره به تختيدلے۔

حافظ ابن کثيرؒ ليکلی دی چه الله تعالىٰ د دوی داسے کيفيت پدے وجه جوړ کړے وو دے دپاره چه د دوی خوا ته څوک نزدے لاړ نشي، او نۀ څوک دوی له گوتے يوسی۔ تردے پورے چه د الله د علم مطابق د دوی د خوب موده پوره شي۔

وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا: ١ - لِكَثْرَةِ تَقَلُّبِهِمْ۔ څکه چه ډير اوړيدل راوړيدل۔

٢ - يا پدے وجه چه سترگے ئے کولاوے وے۔ ٣ - دارنگه خوبي انسان زبر پيرږ وی لکه د مړ په شان او دوی تازه پراته وو لکه د ويښ انسان په شان۔

٤ - دارنگه دوی صحيح ترتيب سره پراته وو او خوبي وران ويجاړ پروت وی۔

ايقاظ جمع د يَقِظٌ ده۔

وَنُقَلِّبُهُمْ: دے کښې د الله قدرت ته وگوره چه درے سوه نهه کاله کښې دوی نۀ وږی کيږی او نۀ تږی کيږی، او نۀ ئے صحت خرابيږی، او نۀ کوم انسان يا حيوان ورځی۔

وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ: سپے څکه مقرر شو چه انسانان او حيوانات خوا له رانشی، د سپی نه به يريږي۔ او په دغه مقام کښې الله تعالىٰ رعب هم واچولو۔

وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا: خلك چه به پدے ځای تيريدل نو رعب به پرے راتللو او منډه به ئے وهله او نيکانو ته الله تعالىٰ دغه شان رعب ورکوی۔

وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَاهُمْ: اَىْ كَمَا اَنَمْنَاهُمْ كَذٰلِكَ بَعَثْنَاهُمْ) ۔ لکه څنگه چه ما اُوده کړی وو نو دغه شان مے راپاڅول۔ دلته وقف دے (وَكِلَاهُمَا آيَةٌ دَالَّةٌ) او دا دواړه (اُوده کول او راپاڅول) د الله تعالىٰ د قدرت نښه ده۔

لِيَتَسَاءَلُوا بَيْنَهُمْ : او پدے تپوس کښې فائده دا ده : ۱ – لِيَعْلَمُوْا اَنَّهُمْ لَمْ يَعْلَمُوا الْغَيْبَ۔ دے دپاره چه تاسو ته پته ولګی چه اصحاب الکهف په غیبو نهٔ پو هیدل۔

۲ – لِيَعْلَمُوْا عَظِيْمَ قُدْرَةِ اللّٰهِ وَكَرَمِهٖ) دے دپاره چه دوی د الله تعالیٰ لوی قدرت او کرامت وپیژنی په خپلو ځانونو کښې۔ چه د دین دپاره مو لړه سخته برداشت کړه الله تعالیٰ څومره عزت راکړو۔ دے دپاره چه ایمان ئے زیات شی او د هغه شکر ادا کړی۔

لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ : حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه غالباً دا خلق غار ته د صبا په وخت داخل شوی وو، او کله چه راپورته شو نو د ورځے آخری حصه وه۔ پدے وجه دوی وویل چه کیدے شی مونږه د ورځے څه حصه اُوده پاتی شوی یو۔ انتهیٰ۔

قَالُوْا رَبُّكُمْ اَعْلَمُ : هر کله چه دوی په خپل ځان کښې د رنګونو زیروالے او د نوکونو غټ والے ولیدو، نو بیا ئے وویل چه الله تعالیٰ ښهٔ پو هیږی۔ او د نیکانو خلکو طریقه دا ده چه په یوه خبره نهٔ پو هیږی یا پکښې فائده نهٔ وی نو په هغے کښې جګړے نهٔ کوی۔

فَابْعَثُوْا : اُوس وړی شو۔ وے وئیل چه مونږ نه دے یو تن زمونږ سره د موجوده چاندی سکه اخستو سره ښار ته لاړ شی، او غوره او حلال خوراك دے اخستو سره راوړی، او ښهٔ په احتیاط دے وسیږی او خلکو سره دے نرمی وکړی دے دپاره چه په خپل کوم عمل سره خلك په ځان راخبر نکړی څکه چه که مشرکانو ته زمونږ خبر وشی نو مونږ به سنګسار کولو سره هلاك کړی، یا به په خپل شرکی دین قبلولو باندے مونږ مجبور کړی۔ او بیا به د اُور د عذاب نه هیڅ کله هم نجات ونهٔ مومو۔ او کله به هم د الله تعالیٰ جنت ته داخل نهٔ شو۔

اِلَى الْمَدِيْنَةِ : ددے نه مراد اَبسُوس ښار دے چه په روم کښې دے، او مسلمانانو دے ته په اسلام کښې طرسوس وویلو۔ (واحدیؒ والنیسابوریؒ)

بِوَرِقِكُمْ : معلومیږی چه متقیان متوکلین خپل ځان سره توښه راخلی۔ وَرِق د سپینو زرو روپئ دی، تاپه شوی وی او که نهٔ۔

اَزْكٰى طَعَامًا: متقیان خلك د خپل خوراك د حلالوالی غم کوی۔

بِرِزْقٍ مِّنْهُ : مِنْ په معنیٰ د بدل سره دے۔ یعنی په بدل د روپو کښې دے خوراك راوړی۔

| وَكَذٰلِكَ اَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوْا اَنَّ |
| --- |
| او دغه شان (خلق) خبر کړل مونږ په دوی باندے دے دپاره چه دوی پو هه شی چه بیشکه |

| وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّأَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَا إِذْ |
|---|
| وعده د الله تعالىٰ حقه ده او يقيناً قيامت نشته هيڅ شك په هغې كښ، كله چه |
| يَتَنَازَعُونَ بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ فَقَالُوا ابْنُوا |
| خلقو جګړه كوله په مينځ خپل كښ په كار د دوى كښ نو اُووئيل دوى جوړ كړئ |
| عَلَيْهِم بُنْيَانًا رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ قَالَ الَّذِينَ |
| په دوى باندے آبادے، رب د دوى ښۀ پوهه دے په دوى باندے، اُووئيل هغه كسانو |
| غَلَبُوا عَلَىٰ أَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِم مَّسْجِدًا ﴿۲۱﴾ |
| چه زورور وو په كار د دوى خامخا مونږ به جوړه وو په دوى باندے مسجد۔ |

**تفسير** : كله چه د ښار خلقو ته د دوى تفصيلات معلوم شو، دوى ته پته اُولګيده چه دا خلق خو د درے سوه نهه كالو پورے اُوده پاتې كيدو نه روستو رابيدار شويدى۔ او د دوى بدنونه د مخكښ په شان دى۔ په دوى كښې هيڅ فرق نۀ دے راغلے۔ ددے نه دوى ته معلومه شوه چه د الله تعالىٰ وعده حقه ده چه هغه به ټول انسانان د قيامت د راوستو نه روستو دوباره ژوندى كوى، او دا چه د قيامت په راتلو كښې هيڅ شك نشته دے، ځكه چه د حكمت تقاضا همدا ده چه هر انسان ته د هغه د عملونو بدله وركړے شي۔

إِذْ يَتَنَازَعُونَ بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ : يعنى دا واقعه پدے وجه راپيښه شوے وه چه د هغه دور د خلقو په ذهنونو كښې د بعث بعد الموت او د قيامت په ورځ كښې شك پيدا شوے وو۔ او د هغه زمانے خلق چه د كوم بعث بعد الموت نه منكر وو په هغې باندے چه كله د الله تعالىٰ د جانب نه دليل قائم شو نو دے ځوانانو ته مرګ راغلو۔

د دوى د مرګ نه روستو خلكو خپل مينځ كښې د اصحاب كهفو په باره كښې اختلاف وكړو نو عوامو مشوره وركړه چه دوى په خپل حال پريخودے شي، او د غار دروازه دے پرے بنده كړے شي او دوى باندے يو آبادے د يادګار دپاره جوړ كړے شي۔ د ښار د اثر او غلبے والو خلقو ووئيل چه مونږ د دوى د يادګار په توګه د دوى په قبرونو باندے مسجد جوړه وو۔ دا خلك واكدار وو ځكه ئے ځان ته نسبت وكړو (لَنَتَّخِذَنَّ) او مخكښنو مشوره وركړه۔

عَلَىٰ أَمْرِهِمْ : يعنى په كار د اصحاب كهفو غالبه وو يعنى مشران حُكام وو۔

او ددے نه معلومیږي چه دا خلك مسلمانان نصاریٰ وو، عبادتونه به ئے كول نو دا مسجد جوړول به د الله تعالیٰ دپاره وو چه خلك به ددے اصحاب كهف د غار ملاقات ته راځي، نو دلته به مونځ كوي لكه یو تن د مقبرے په خوا كښې مسجد جوړ كړي چه دلته خلك مونځونه وكړي، او پدے كښې مقصد شرك او تبركات حاصلول نهٔ وي، نو دا بیا ناروا نهٔ دے خو شرط دا دے چه مینځ كښې به ئے حائل وي او جدا به وي.

او كه دا مسجد د قبرونو په احاطه او د هغے دپاسه جوړ شوے وي، نو بیا ئے دا ناروا كار كړیدے، او دا معلومیږي چه په نصاراؤ كښې دا مرض روستو زمانه كښې پیدا شوے وو او دا هغه بدعت وو چه دوي د ځان نه ایجاد كړو، او د حُكامو طریقه هم دا وي چه اول په صحیح دین پو هیږي نهٔ او په كوم دین باندے چه عمل كوي هغه هم د شرك دین وي، زیارتونه به جوړوي، او قبرونه به په پیو باندے وینځي او د مزاراتو عرسونه به كوي، او گنبدونه جوړول او هلته میلے تیلے كول د دوي دینداري وي، نو په نصاراؤ كښې هم دا بدعت پیدا شوے وو. پدے وجه رسول الله په سختئ سره ددے رد كړے او وئیلي ئے دي چه په یهود او نصاراؤ باندے دے د الله لعنت وي چه دوي د خپلو انبیاؤ او صالحینو په قبرونو باندے مسجدونه جوړ كړي. (بخاري: ۱۳۳۰) مسلم: (۱۲۱۲)

او دا ئے هم فرمائیلي دي چه كله به د دوي یو نیك سړے مړ شو نو دوي به د هغه په قبر باندے مسجد جوړولو، او بیا به ئے په هغے كښې د هغوي تصویرونه آویزان كول. همدا خلق به د قیامت په ورځ بدترین مخلوق وي. (بخاري: ٤٢٧) مسلم: ۱۲۰۹).

نو ددے نه اُوس څوك دا استدلال نشي كولے چه مونږ به هم د اولیاؤ په قبرونو باندے مسجدونه جوړه وو ځكه چه د اصحاب كهفو په قبرونو باندے جوړ شوے وو او دا شرع د مَنْ قَبْلَنَا نهٔ وه بلكه هغوي بدعت پیدا كړے وو، او كه بالفرض د هغوي په دین كښې جائز هم شي، نو زمونږ په دین كښې ترے منع راغلے ده، ځكه چه لعنت پرے وئیل شویدے. او د دغه حدیث نه معلومیږي چه د هغوي په دین كښې هم په قبرونو باندے مسجدونه جوړول نهٔ وو بلكه هغوي كښې دا بدعت پیدا شوے وو.

دلته تفسیر قرطبيؒ هم لیكلي دي: [فَاتِّخَاذُ الْمَسَاجِدِ عَلَى الْقُبُوْرِ وَالصَّلَاةُ فِيْهَا وَالْبِنَاءُ عَلَيْهَا إِلَى غَيْرِ ذٰلِكَ مِمَّا تَضَمَّنَتْهُ السُّنَّةُ مِنَ النَّهْيِ عَنْهُ مَمْنُوْعٌ لَا يَجُوْزُ]

ددے وجه نه په قبرونو مساجد جوړول او په هغے كښې مونځونه كول او په هغے باندے آبادے جوړول كوم ته چه حدیث د نهي شامليږي دا منع دي، بیخي جائز نهٔ دي.

دغه شان تفسیر روح المعانی لیکی چه څوك ددے نه د صالحینو په قبرونو باندے د مسجد جوړولو او په هغے کښې د مونځونو کولو دپاره دلیل نیسی نو (هُوَ قَوْلٌ بَاطِلٌ عَاطِلٌ فَاسِدٌ كَاسِدٌ) دا بیخی باطل، بیکاره، خراب او کوټه قول دے) بیا ئے احادیث ذکر کړیدی.

(روح المعانی ۲۲۵/۸)

او ((الزواجر)) کښې هیثمیؒ لیکلی دی چه دا کار په کبائرو ګناهونو کښې شمار دے.

نو کومو مساجدو کښې چه خلك قبرونه راولی، دا د احادیثو څه چه د حنفی مذهب هم خلاف دی لیکن د احنافو په مساجدو کښې دا کارونه ځای په ځای موجود دی. والله المستعان ولا حول ولا قوة الا بالله. او امام محمدؒ خو دا هم وئیلی دی چه د قبر په خوا کښې په هم مسجد نهٔ جوړوی ددے نه شرك پیدا کیږی.

| سَيَقُولُونَ ثَلَاثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ |
| --- |
| زر دے چه وائی دوی درے دی څلورم د دوی سپے د دوی دے او وائی دوی پنځه دی |
| سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ |
| شپږم د دوی سپے د دوی دے، دا په اټکل (بے دلیله) خبرے دی او وائی دوی اُووه دی |
| وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ قُلْ رَّبِّي أَعْلَمُ بِعِدَّتِهِم |
| او اتم د دوی سپے د دوی دے اُووایه رب زما ښهٔ پوهه دے په شمار د دوی، |
| مَّا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيلٌ فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ إِلَّا |
| نهٔ پوهیږی په دوی باندے مګر لږ کسان، نو بحث مهٔ کوه د دوی په باره کښې مګر |
| مِرَآءً ظَاهِرًا وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم مِّنْهُمْ |
| بحث کول ظاهری (موافق د ظاهر د قرآن) او تپوس مهٔ کوه ذ دوی په باره کښې د خلقو نه |
| أَحَدًا ﴿٢٢﴾ وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ﴿٢٣﴾ |
| د هیڅ یو تن نه. او مهٔ وایه د یو کار په باره کښې چه زهٔ کونکے یم دا کار صبا له. |
| إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ وَاذْكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَقُلْ |
| مګر (داسے وایه) که اُوغواړی الله. او یادوه رب خپل کله چه تهٔ هیر کړے او وایه |

عَسٰى اَنْ يَّهْدِيَنِ رَبِّىْ لِاَقْرَبَ مِنْ هٰذَا رَشَدًا ﴿۲۴﴾

نزدے ده چه ویه ښائی ما ته رب زما ډیر نزدے دډینه د هدایت په اعتبار سره۔

**تفسیر** : د نبی کریم ﷺ په زمانه کښ چه کوم اهل کتاب موجود وو او کومو چه مکے والا د نبی ﷺ ته د اصحاب کهف په باره کښ په تپوس کولو باندے راپورته کړی وو، دوی ته خو ددے علم وو چه په کومه زمانه کښ دا واقعه شوے وه، لیکن ددے ځوانانو صحیح شمار دوی ته معلوم نهٔ وو۔ څه خلقو به وئیل چه دوی درے کسان وو، او د دوی سره څلورم سپے وو۔ بعض کسانو به وئیل چه دوی پنځهٔ کسان وو، او د دوی سره شپږم سپے وو۔ لیکن د هیڅ خبرے دوی ته یقین نهٔ وو، همداسے اټکل خبرے به ئے کولے۔ څه کسانو به وئیل چه د دوی شمار اُووه وو او د دوی سره اتم سپے وو۔
مفسرین وائی چه د قرآن د سیاق نه معلومیږی چه دا آخری رائے حقیقت ته زیاته نزدے ده۔

رَجْمًا بِالْغَيْبِ : یعنی دا د اټکل خبرے دی چه پوره یقین ئے نشته۔ ددے نه معلومیږی چه تاریخی خبرے اکثرے گمانی وی چه پوره یقین نهٔ پیدا کوی مگر هغه چه په صحیح سند سره ثابت شی۔

مَّا يَعْلَمُهُمْ اِلَّا قَلِيْلٌ : عبد الله بن عباس رضی الله عنه به فرمایل چه زهٔ پدے کمو خلکو کښ شمار یم، ما ته دا معلومه ده چه دا اُوه کسان وو اتم ئے سپے وو ځکه چه الله تعالیٰ په روستنئ خبره رد ونکړو او په اولنئ ئے وکړو۔ (سیوطیؒ وفتح البیان)

**فائده** : دے آیت نه مونږ ته په یوه مسئله کښ د تحقیق طریقه ښکاره کیږی هغه دا چه په یوه مسئله کښ مختلف اقوال نقل کول د بصیرت دپاره، بیا کوم چه غلط وی د هغے رد کول، او کوم چه صحیح وی هغے ته ترجیح ورکول، لکه دے آیت کښ هم دا کار شویدے چه په اولنو خبرو ئے رد وکړو او روستنئ خبره صحیح ده د هغے اثبات ئے وکړو، او دا طریقه د اهل حدیثو او محدثینو ده۔ ولله الحمد۔

فَلَا تُمَارِ فِيْهِمْ : نبی ﷺ ته فرمائی چه د دوی په باره کښ د اهل کتابو سره جګړے مهٔ کوه، بلکه تا ته چه د وحی په ذریعه کومه خبره خودلے شویده، هغه د دوی په مخکښ پیش کړه او د دوی رائے مهٔ معلوموه ځکه چه دوی ته د حقیقت هیڅ علم نشته دے، صرف د خپل گمان مطابق خبرے کوی۔

إِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا : یعنی صرف سرسری جګړه کوه او هغه دا چه کوم په ظاهر د قرآن کښې تا ته راغلې ده، هغه بیانوه۔ او دا آیت دلیل دے چه قرآن کریم به په ظاهر باندې حمل کولې شي او همدا به حقیقت وي۔

وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِمْ مِنْهُمْ أَحَدًا: نبي کریم ﷺ به کله نا کله د یهودو نه د بعض واقعاتو په باره کښې تپوس کولو نو دلته ورته وائي چه د اصحاب کهفو د واقعې په باره کښې ترې تپوس مهٔ کوه ځکه چه دوي سره ددې حقیقي علم نشته۔

ددې نه معلومیږي چه نورې خبرې ترې تپوسلې شي لکه حدیث کښې دي :[حَدِّثُوا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَا حَرَجَ] (ابوداود : ٣٦٦٤) احمد (١٠١٣٤) صحیح لغیره)

تاسو د بني اسرائیلو د طرفنه واقعات بیانولې شئ هیڅ ګناه پکښې نشته)

مګر پدې شرط چه زمونږ د دین خلاف به نهٔ وي۔

او تپوس ته پدې وجه هم ضرورت نشته چه هغې کښې به فائده نهٔ وي ځکه ئې الله تعالیٰ پدې مقام کښې نهٔ ذکر کوي۔

وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ : **مضمون**

اُوس دلته رسول الله ﷺ ته آداب بیانیږي چه دا ډیر آهم حکمونه دي د داعي دپاره۔ اول ادب دا دے چه هره خبره او هر کار کول چه غواړې نو ان شاء الله پکښې وایه۔ ځکه چه رسول الله ﷺ ان شاء الله نهٔ وه وئیلې پدې وجه وحي ترې ډیره موده بنده شوې وه۔

دویم ادب : ذکر بَعْدَ النِّسْيَانِ۔ چه غفلت او نسیان درباندې راغله نو الله ډیر یاده وه۔

دریم ادب او جواب دے مشرکانو ته۔ بیا په ﴿قُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ﴾ کښې د الله په علم باندې اعتماد ذکر دے، بیا په ﴿وَاتْلُ مَا أُوحِيَ﴾ کښې امر دے په تلاوت د قرآن کریم، بیا بل ادب دے (وَاصْبِرْ) غریبانان مسلمانان ځان نه مهٔ شړه بلکه ددوي سره وسیږه۔ او داسې نور آداب دي۔

إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ: أَيْ إِلَّا أَنْ تَقُولَ مُتَلَبِّسًا بِقَوْلِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ ۔ یعني خبره مهٔ کوه مګر دا چه وینا کوې چه ورسره د الله تعالیٰ مشیئت او اراده ذکر کوې۔ همدا ظاهر تفسیر دے۔

بعضو بله معنیٰ کړیده چه هغه ظاهره نهٔ ده یعني تهٔ خبره نشې کولې مګر دا چه الله تعالیٰ وغواړي نو ستا د خولې نه به خبره راوباسي۔ او تهٔ خپله په هغې باندې قادر نهٔ ئې۔

وَاذْكُرْ رَبَّكَ إِذَا نَسِيتَ: ددې درې تفسیره دي۔

(١) رب ډیر یاده وه کله چه تهٔ هیر کړې الله۔ یعني کله چه درباندې غفلت راغلو نو د هغې په عوض کښې ډیره بندګي وکړه۔ دا د ﴿وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ (الرعد : ٢٢) په

شان دے۔ یو وخت کښې دریاندے غفلت راغلو نو بیا وروسته زیاته بندګي وکړه۔

(۲) وَاذْكُرْ مَشِيْئَةَ رَبِّكَ اِذَا نَسِيْتَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ) خپل رب رایاد کړه په ان شاء الله کله چه تا نه ان شاء الله هیره شي) یعنې که د خبرې نه روستو درته ان شاء الله رایاده شوه هم ووایه۔

(۳) وَاذْكُرْ عِقَابَ رَبِّكَ اِذَا نَسِيْتَ حُكْمًا مِنْ اَحْكَامِ اللّٰهِ ـ د خپل رب عذاب رایاد کړه چه کله تهٔ د الله تعالیٰ د احکامو نه یو حکم هیر کړے او پریدے۔ لیکن دا تاویل غوره نهٔ دے۔

وَقُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّهْدِيَنِ رَبِّيْ لِاَقْرَبَ مِنْ هٰذَا رَشَدًا:

یعنې خلکو ته دا هم ووایه! چه زما امید دے چه زما رب به ما ته د اصحاب الکهف د واقعې نه زیات هدایت والا او خیر او فائدے والا واقعه او خبرونه راولیږی لکه آیة الکرسی واخله، په واقعه د نوح او ابراهیم او نورو انبیاء علیهم السلام کښې ډیر هدایتونه پراته دی۔

دلته تفسیر السراج المنیر لیکلی دی چه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته دومره هدایتونه ورکړیدی چه دا ئې پخوانو امتونو ته نهٔ دی ورکړی، او د صحابه کرامؓ دومره ناشنا واقعات دی چه د اصحاب کهف نه زیات دی۔ بیا ئې بعض ذکر کړیدی۔

لنډ مطلب دا دے چه که مونږ دا واقعه د اصحاب کهفو بیان هم نکړو نو ددے نه ډیر د هدایت خبرے به الله تعالیٰ نازلے کړی، یواځے هدایت خو د اصحاب کهف په واقعه پورے بند نهٔ دے، چه تاسو وایئ واقعه ئې بیانه نکړه نو بس دا د الله نبی نهٔ دے۔ هدایت خو د رسول الله ﷺ په ټول شریعت کښې ددے نه زیات دے۔ (ابن عاشورؒ)

(۲) ځینې مفسرینو وئیلی دی چه کله درنه ان شاء الله هیره شوه نو دا دعاء وروسته وایه چه ﴿عَسٰٓى اَنْ يَّهْدِيَنِيْ رَبِّيْ لِاَقْرَبَ مِنْ هٰذَا رَشَدًا﴾ لیکن دا رسول الله ﷺ د هیرے په دعاګانو کښې امت ته نهٔ دی خودلی۔ لهذا دا تفسیر ضعیف دے۔

او تهٔ خلقو ته دا هم اُووایه چه زما امید دے چه زما رب به زما د نبوت د رشتینې ثابتولو دپاره د اصحاب کهفو د خبر نه هم لوئی نخے او اهم دلائل پیش کړی۔ او د نبی کریم ﷺ دا امید پوره شو چه الله تعالیٰ هغه ته د وحی په ذریعه د تیر شوو انبیاء کرامو علیهم السلام او د هغوی د قومونو واقعاتو خبر ورکړو چه دا د نبی ﷺ د رشتینوالی ډیر ښکاره او واضح دلائل وو۔

| وَلَبِثُوْا فِيْ كَهْفِهِمْ ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِيْنَ وَازْدَادُوْا تِسْعًا ﴿۲۵﴾ قُلِ |
|---|
| او دوی درنګ تیر کړو په غار خپل کښې درے سوه کاله او زیات ئې کړل نهه کاله۔ اُووایه |

| اللّٰهُ أَعۡلَمُ بِمَا لَبِثُوۡا لَهٗ غَيۡبُ |
|---|
| الله ښهٔ پوهه دے په هغه موده چه تیره کړیده دوی، هغه لره پوهه د پټو څیزونو |
| السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ اَبۡصِرۡ بِهٖ وَاَسۡمِعۡ مَا لَهُمۡ |
| د آسمانونو او د زمکے ده، څه ښهٔ لیدونکے دے او څه ښهٔ آوریدونکے دے، نشته دوی لره |
| مِّنۡ دُوۡنِهٖ مِنۡ وَّلِيٍّ وَّلَا يُشۡرِكُ فِيۡ حُكۡمِهٖۤ اَحَدًا ﴿۲۶﴾ |
| سوئ د هغهٔ نه څوك دوست، او نهٔ شریکوی الله تعالیٰ په اختیار خپل کښ هیڅوك. |
| وَاتۡلُ مَاۤ اُوۡحِىَ اِلَيۡكَ مِنۡ كِتَابِ رَبِّكَ لَا مُبَدِّلَ |
| او لوله هغه چه وحی کړے شویده تاسو ته د کتاب د رب ستا نه نشته بدلونکے |
| لِكَلِمٰتِهٖ وَلَنۡ تَجِدَ مِنۡ دُوۡنِهٖ مُلۡتَحَدًا ﴿۲۷﴾ |
| د کلماتو د هغهٔ، او هیچرے به ونهٔ مومے سوئ د الله تعالیٰ نه ځائے د پناهئ. |

**تفسیر** : حافظ ابن کثیرؒ وائی چه پدے آیتِ کریمه کښ الله تعالیٰ د هغه پوره مودے خبر ورکړیدے چه په هغے کښ اصحاب کهف اُودهٔ پراته وو. هغه په شمسی حساب سره درے سوه او په قمری حساب سره درے سوه نهه کاله موده وه. ځکه چه د هر شمسی سل کاله، د قمری یو سل درے کالو برابر وی. دا د دوی د اُوده پاتے کیدو موده وه، لیکن د بیداریدو نه روستو د دوی د مرګ راتلو پورے، یا د قرآن د نازلیدو پورے موده څومره وه ددے علم صرف الله تعالیٰ ته دے. ځکه چه د آسمانونو او د زمکے د غیبی خبرو علم صرف هغهٔ ته دے. هغه هر شے ښهٔ وینی او هر آواز ډیر ښهٔ آوری، د هغهٔ نه سوئ د بندګانو هیڅ حقیقی یار او مددګار نشته. هغهٔ د ټول جهان په پیدائش او د هغے په تدبیر کښ هیڅوك خپل شریك نهٔ دے جوړ کړے. نهٔ د هغهٔ څوك وزیر شته او نهٔ کوم مشیر. هغه د ټولو نقصانونو نه پورته او پاك دے.

قُلِ اللّٰهُ اَعۡلَمُ : یعنی الله ښهٔ پوهه دے د دوی په وخت تیرولو پدے وجه هغه دغه خبر ورکړو چه درے سوه نهه کاله ئے تیر کړل، د یهودو خبرو له اعتبار مهٔ ورکوه.

بعض وائی چه ﴿وَلَبِثُوۡا فِيۡ كَهۡفِهِمۡ﴾ د یهودو قول دے. یعنی دوی وائی چه اصحاب کهفو په غار کښ درے سوه نهه کاله تیر کړل نو (قُلِ اللّٰهُ اَعۡلَمُ) به هغوی ته جواب شی چه

الله پو هیږي چه دوی څومره وخت تیر کړیدے نو دا به د ﴿قُلْ رَّبِّیٓ اَعْلَمُ بِعِدَّتِهِمْ﴾ په شان شي۔ (ابن عاشورؒ) لیکن دا قول ظاهر نهٔ دے۔

اَبْصِرْ بِهٖ: دا دویمه صیغه د فعل تعجب ده [اَیْ مَآ اَبْصَرَهٗ] څه ښهٔ لیدونکے دے هر شی لره۔ وَاَسْمِعْ پرے عطف دے اَیْ مَآ اَسْمَعَهٗ۔ څه ښهٔ آوریدونکے دے۔

مَا لَهُمْ: ۱- دا ضمیر راجع دے اهل السموات والارض ته۔ (زبدة التفسیر)

مِنْ وَّلِیٍّ: یعنی د آسمان او د زمکے وسیدونکو دپاره د الله نه سوئ بل څوك واکدار نشته چه د دوی کارونه سنبال کړي، یا دوست ئے نشته چه مدد ورسره وکړي۔ معلومه شوه چه ټول مخلوقات د الله تعالیٰ د قدرت او قهر لاندے دے۔

وَلَا یُشْرِكُ فِیْ حُكْمِهٖٓ اَحَدًا: د حکم نه مراد تصرفات او اختیارات او فیصلے دی یعنی الله تعالیٰ په خپلو تصرفاتو او اختیاراتو او فیصلو کښې هیڅوك ځان سره نهٔ شریکوی۔ دے ته شریك عطائی وائي یعنی د الله تعالی شریك حقیقي هم نشته او شریك عطائی هم چه الله تعالیٰ بعض بندګانو ته اختیارات ورکړي چه دا کارونه پکښې ته کوه، د آسمان یا د زمکے یا د فلانئ علاقے نظام ته چلوه، او خلکو ته رزقونه ورکوه۔

نو کوم خلك چه د اولیاؤ دپاره تصرفات ثابتوی نو دا شرك دے او ددے آیت خلاف دے۔ لکه بعض وائي چه فلانی ولی د ځان نه خنزیر جوړ کړو بیا ئے بیرته د ځان نه انسان جوړ کړو، دا هسے ډکوسلے دی۔

او پدے کښې علم الغیب هم داخلیږي ځکه چه د الله تعالیٰ علم، د هغهٔ د فیصلو نه یوه فیصله ده پدے کښې ئے هم ځان سره څوك نهٔ دے شریك کړے۔ (فتح البیان)

دارنګه پدے کښې رد دے په تقلید باندے ځکه چه یو تن د عالِم اجتهادی مسئله د کتاب او سنت په خلاف ومنی، نو دهٔ هم دا عالِم د الله سره په فیصله کښې شریك کړو، او د فیصلو اختیار ئے عالِم ته ورکړو۔ ﴿اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ دے ته شرك في الاطاعة وائي۔

وَاتْلُ مَآ اُوْحِیَ اِلَیْكَ: پدے آیت کریمه کښې ترغیب دے قرآن کریم ته او دا بل ادب دے۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم کړیدے چه هغه د قرآن کریم تلاوت وکړي، ځکه چه د قرآن لوستل یو خو دا اجر سبب دے ځکه چه تلاوت نیك عمل دے، دویم دا چه قرآن په تلاوت سره نیك عملونه پیدا کوی۔

وَاتْلُ: ۱- تَعْلِیْمًا وَّتَذْکِیْرًا ۲- وَتَعَبُّدًا وَّتَقَرُّبًا ۔ یعنی تعلیم ئے ورکړه خلکو ته او پدے

بانديے نصيحت وكړه خلكو ته او پديے سره عبادت د الله وكړه او هغه ته پريے ځان نزديے كړه. ❁ او اُتْلُ د تُلُوٌّ نه په معنىٰ د تابعدارئ سره هم راځي، يعني پديے كښې په موجودو اوامرو او نواهيو بانديے عمل وكړه. او پديے كښې د بيان شوي حلالو او حرامو پابند شه.

ابن عاشورؒ وائي چه پديے كښې مقصود رد كول د مشركانو دي چه هغوي به په دغه زمانه كښې كله چه به ورته څه بيان شو نو د هغے نه به ئے بل اعتراض ته دنګل او د نبي كريم ﷺ نه ئے مطالبه وكړه چه بعض قرآن كښې زمونږ د آلهو صفت هم وكړي،

نو الله خپل نبي ته فرمائي: كه دوي ستا د قرآن بعض لوستل بد ګنړي نو هيڅ باك پريے مۀ كوه بلكه ټول هغه څه ولوله چه تا ته ئے وحي كيږي ځكه چه ددے څوك بدلونكے نشته. او داسے ئے ولوله لكه څنګه چه تا ته نازل شويدے.

(او ددے نه علاوه لوستل مۀ كوه كوم چه تا ته نۀ دے نازل شوے چه د مشركانو د صفاتو په باره كښې ئے ولولې او د هغوي څه تائيد وكړې) نو پديے كښې ئے د مشركانو طمع ختمه كړه چه دا نبي به د دوي مطالبات ومني. (التحرير والتنوير ۱۵/۵۲)

لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ: يعني هيڅوك قادر نۀ دے چه د الله تعالىٰ وعدے بدلے كړي، الله چه د قيامت، او د رسول الله ﷺ سره د غلبے وعدے او پۀ نيكو اعمالو وعدے كړيدي دا به يقيني راځي.

وَلَنْ تَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا: ۱- اَىْ مُلْتَجَأً(ځاى د پناهئ).

۲- مَعْدَلًا) ځاى د اوړيدو. هركله چه د الله نه سوئ بل ځاى د پناهئ نشته نو هغه ته ځان نزديے كول پكار دي.

مُلْتَحَد د لَحْدٌ نه دے ميلان ته وائي يعني د الله نه څوك نشي اوړيدے چه تريے بل ځاى پټ شي.

مطلب دا چه كه تۀ د قرآن تابعداري ونكړے او دا ونۀ لولے او ددے په احكامو عمل ونكړے نو د الله نه سوئ به بل داسے ځاى پيدا نكړے چه هغے ته وركوږ شے او ځان پكښې پټ كړے. د الله د فيصلے نه څوك نشي بچ كيدے.

| وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ |
| --- |
| او بند كړه نفس خپل د هغه كسانو سره چه رابلي رب خپل صبا او بيګا، غواړي دوي |

| وَجۡهَهٗ وَلَا تَعۡدُ عَيۡنَاكَ عَنۡهُمۡ تُرِيۡدُ زِيۡنَةَ الۡحَيَاةِ الدُّنۡيَا |
|---|
| مخ د هغهٔ، او واړ نهٔ وړی سترګے ستا د دوی نه چه غواړے ته ډول د ژوند دنیوی |
| وَلَا تُطِعۡ مَنۡ اَغۡفَلۡنَا قَلۡبَهٗ عَنۡ ذِكۡرِنَا |
| او تابعداری مهٔ کوه د هغه چا چه غافل کړیدے مونږ زړهٔ د هغهٔ د ذکر خپل نه |
| وَاتَّبَعَ هَوَاهُ وَكَانَ اَمۡرُهٗ فُرُطًا ﴿۲۸﴾ |
| او روان شویدے د خواهش خپل پسے او دے کار د هغه د حد نه تیروتل۔ |

**تفسیر**: دا بل ادب دے مشرکینو غټانو (د دقیانوس بادشاه مشابه خلکو) ویل چه ته دا کمزوری ملګری ځان نه جدا کړه کیدے شی چه مونږ ستا خبره ومنو، نو رسول الله ﷺ به ډیر کرته اراده کوله چه خپل ملګری به لږ وخت دپاره جدا کړو دے دپاره دا مشران الله تعالیٰ توحید ته راولی۔ (صحیح ابن ماجه: ۴۱۱۷) نو الله حکم وکړو چه لکه څنګه چه اصحاب کهف د مالدارو دنیا پرستو نه جدا شول، نو تهٔ هم ددے دنیا پرستو نه جدا شه، او د خپلو کمزورو مؤمنانو موحدینو سره کینه۔

او دا تعلیم الله تعالیٰ په سورة الانعام آیت (۵۲) کښې او په سورة هود (۲۹) آیت کښې د نوح علیه السلام په بیان کښې هم ورکړو۔

**يَدۡعُوۡنَ**: دعاء نه مراد یا ذکر دے او د غداة او عشی نه مراد ټول اوقات دی، او خصوصاً دا دوه وختونه د ذکر دپاره ډیر اَهم دی۔ یا دعاء په معنیٰ د عبادت او مونځونو کولو سره دے او د غداة او عشی نه مراد د سهار او ماښګر مونځونه دی ځکه چه په مکه مکرمه کښې په ابتدائی اَوقاتو کښې دوه مونځونه فرض وو۔

**يُرِيۡدُوۡنَ وَجۡهَهٗ**: یعنی دا خلك د مادیاتو پسے نهٔ دی روان بلکه صرف د الله تعالیٰ د رضا طلبګار دی۔

**وَلَا تَعۡدُ عَيۡنَاكَ**: عَيۡنَاكَ فاعل د تَعۡدُ دے۔ یعنی واړے نهٔ وړی ستا سترګے د دوی نه۔ حاصل مطلب دا چه سترګے د دوی نه مهٔ اړوه چه اعراض ترے وکړے او دوی سپك وګڼړے او د دوی په ځای دنیا والا غټان او مالداره غوره کړے، او د هغوی د زیب وزینت او اُوښانو او کارو او بنګلونه متاثره شے۔

رسول الله ﷺ به پدے امر باندے عمل کولو، یوه ورځ د صحابه کرامو مجلس ته راغلو

چه هغوی کښې بعض سرتور سر، خپې ايبله او زړو جامو والا ناست وو، نو د هغوی سره کيناستو او بيا ئې وفرمايل : [اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ جَعَلَ مِنْ اُمَّتِیْ مَنْ اُمِرْتُ اَنْ اَصْبِرَ نَفْسِیْ مَعَهُمْ] الله لره شکر دے چه زما په امت کښې ئې داسے خلك پيدا کړل چه ما ته ئې حکم وکړو چه زهٔ د هغوی سره ځان صبر کړم۔ د هغوی سره به په يوه حلقه کښې کيناستو۔

(ابوداود :۳٦٦٨) باسناد ضعيف فيه العلاء بن بشير المزنی مجهول)

خباب بن الارت ﷛ فرمائي : رسول الله ﷺ به مونږ سره کيناستو نو کله چه به ئې غوښتل چه پاڅيږي نو پا به ځيدو او مونږ به ئې پريخودو خو کله چه دا آيت ﴿ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ ﴾ نازل شو نو مونږ به د نبی کريم ﷺ سره کيناستو نو کله چه به مونږ هغه وخت ته ورسيدو چه په هغے کښې به نبی کريم ﷺ پاڅيدو نو مونږ به پاڅيدو او هغهٔ به مو پريخودو تردے چه بيا به هغه هم راپاڅيدو۔

(صحيح ابن ماجه : ۴۱۱۷) وسنده صحيح)

پدے حکم باندے داسے په کلکه عمل کولو۔

وَلَا تُطِعْ : پدے کښې منع ده د اعراض کولو د هغه چا نه چه درے صفات ئې وی۔

مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ : پدے کښې اشاره ده چه بعض زړونو باندے الله تعالیٰ خپل ذکر نهٔ راولی ځکه چه دغه زړه ګنده دے او ګنده ځای کښې د الله لوی والے نهٔ راځی۔

او دا داسے دے لکه (خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ) يعنی ما ورله د شرك په وجه زړهٔ غافل کړيدے۔ او مهر مے پرے وهلے دے۔

مفسرين ليکی چه ﴿ وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ ﴾ الآية د اُميه بن خلف جُمَحی په باره کښې نازل شوے وو چه د غريبانو مسلمانو لره د نبی کريم ﷺ د مجلس نه په ويستلو تحريك کښې پيش پيش وو۔ امام مسلمؒ د سعد بن ابی وقاص ﷛ نه روايت کړيدے چه مونږ شپږ کسان د نبی کريم ﷺ په مجلس کښې ناست وو، نو مشرکانو نبی کريم ﷺ ته ووئيل چه تهٔ د خپل مجلس نه دوی اُوباسه دے دپاره چه دوی زمونږ په خلاف زړه وَر نشی۔

سعد وائی چه هغه شپږ کسان زهٔ، ابن مسعود، د هذيل قبيلے يو سړے، بلال او بل سړے وو چه د هغه نوم ما نه هير شوے۔ نو د نبی ﷺ په زړهٔ کښې دا خبره راغله نو الله تعالیٰ د سورة الانعام آيت (۵۲) ﴿ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ ﴾ نازل کړو (چه کوم خلق خپل رب رابلی هغوی ځان نه مهٔ شړه)۔ (مسلم : ٦۳۹۴)

وَاتَّبَعَ هَوَاهُ : يعنی خواهش ئې په حق باندے غوره کړيدے نو شرك ئې په توحيد غوره

کړو۔

وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا: او دده هر کار د حد نه تیروتلے دے۔ اَیْ ضَائِعًا مُخَالِفًا لِلْحَقِّ۔ د هغه کار بیکاره او د حق مخالف وی۔ او دا د کافرانو طریقه ده چه توحید په چا کښې نهٔ وی، هغه به د خواهشاتو تابع وی، زنا، غلا، دروغ، غیبت، وعده خلافی، حرام خوری او ظلم ټول بد صفات به پکښې موجود وی، او هرکار به ئې ګډوډ وی لکه د مشرکانو په حال سوچ وکړه او ددے په خلاف چا کښې چه ایمان وی نو هغه کښې به ښکلے صفات راجمع وی۔

| |
|---|
| وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ |
| او وایه، حق د طرف د رب ستاسو نه دے نو څوک چه غواړی نو ایمان دے راوړی |
| وَمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِيْنَ نَارًا |
| او څوک چه غواړی نو کفر دے کوی، یقیناً تیار کړیدے مونږ ظالمانو لره اُور |
| أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا وَإِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا |
| چه راګیر به کړی دوی لره دیوالونه د هغے او که دوی (د اُوبو) مدد غواړی |
| يُغَاثُوْا بِمَآءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِى الْوُجُوْهَ |
| نو مدد به ئې کولے شی په هغه اُوبو سره چه پشان د ګرمے تانبے دی، وریتوی به مخونه، |
| بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا ﴿۲۹﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ |
| ناکاره څکل دی او بد دے ځائے د فائدو اخستلو۔ (یا ځائے د آرام)۔ یقیناً هغه کسان |
| آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ إِنَّا لَا نُضِيْعُ أَجْرَ مَنْ |
| چه ایمان ئې راوړیدے او عملونه کوی نیک یقیناً مونږ نهٔ بربادوو اجر د هغه چا |
| أَحْسَنَ عَمَلًا ﴿۳۰﴾ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِىْ |
| چه ښائسته عمل ئې کړیدے۔ دا کسان دوی لره جنتونه د همیشوالی دی چه بهیږی به |
| مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ |
| لاندے د دوی نه نهرونه، اچولے به شی دوی ته په هغے کښې بنګړی د سرو زرو نه |

| وَيَلْبَسُوْنَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّنْ سُنْدُسٍ وَّإِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِـِٔيْنَ |
| --- |
| او اغوندی به جامے شنے د نرو وربښمو نه او د غټو وربښمو نه تکیه وهونکی به وی |
| فِيْهَا عَلَى الْأَرَائِكِ نِعْمَ الثَّوَابُ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا ﴿٣١﴾ |
| په هغے کښې په پالنګونو باندے، ښه بدله ده او ښائسته دی په اعتبار د ځائے د آرام۔ |

**تفسیر**: پدے کښې بل ادب دے رسول الله ﷺ ته چه حق بیانول لازم دی لکه څنګه چه اصحاب کهفو حق بیان کړو، او خلکو ته د ایمان دعوت ورکړی او بیا په هغے باندے زیرے او کافرانو ته تخویف ورکړی۔

**اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ**: ۱ – اَیِ الْحَقُّ جَاءَ مِنْ رَّبِّكُمْ ۔ حق ستاسو د رب د طرفنه راغلو۔ (نو اُوس ستاسو خپله خوښه ده)

۲ – اَلَّذِیْ اُوْحِیَ اِلَیَّ وَاُمِرْتُ بِتِلَاوَتِهٖ هُوَ الْحَقُّ الْکَائِنُ مِنْ جِهَةِ اللّٰهِ لَا مِنْ جِهَةِ غَیْرِهٖ)

هغه وحی چه ما ته شویده او زۀ د هغے په تلاوت مامور شوے یم، دا هغه حق دے چه د الله د طرفنه راغلے نۀ د بل چا د طرفنه تردے چه زۀ پکښې تغییر او تبدیل وکړم۔

۳ – زجاج وائی : ما چه تاسو ته کومه خبره راوړیده دا حق دے چه ستاسو د رب د طرفنه دے، ما د خپل ځان نه نۀ دے راوړے۔ قتادۃ وائی چه د حق نه مراد قرآن دے۔

٤ – حق هغه دے چه ستاسو د رب د طرفنه راغلے وی۔

**سُرَادِقُهَا** : په حدیث د ترمذی کښې دی چه د جهنم څلور دیوالونه دی، غټوالے د هر دیوال په مزل د څلویښتو کالو دے۔ (ترمذی : فی جهنم باب ٤، رقم (٢٥٨٤) واحمد (١١٢٥٢) وفی سنده رشدین سعد وقد تکلم فیه من قبل حفظه)

ابن عباسؓ فرمائی : حَائِطٌ مِنْ نَارٍ۔ د اُور دیوال به وی۔ (فتح البیان)

**وَاِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا**: یعنی که دوی الله ته فریاد کوی چه مونږ دیر تږی یو نو د دوی فریادرسی به کیږی (مدد به ئے کیږی) په اُوبو باندے په شان د تانبی ویلی کړے شوے۔ حدیث کښې دی : کله ئے چه مخ ته رانزدے کړی۔ [سَقَطَتْ فَرْوَةُ وَجْهِهٖ] ۔ د مخ څرمنه به ئے پکښې پریوزی۔ (الترمذی بالاسناد السابق)۔

**كَالْمُهْلِ**: ۱ – دُرْدِیُّ الزَّیْتِ (تیلچټ، د تیلو خیرے)

۲ – اَلنُّحَاسُ الْمُذَابُ۔ (ویلی کړے شوے تانبه)

۳- اَلْفِضَّةُ الْمُذَابَةُ. (ویلی کړې شوې چاندي) دا ګرمه هم وي او درنه هم وي.
مُرْتَفَقًا: مُتَّکَأً. یعنې ځای د تکیه او آرام. ارتفاق په اصل کښې مِرفق (څنګله) د اننګی لاندې ودرولو ته وئیلې شي. ۲- اَلْمَجْلِسُ وَالْمَنْزِلُ. یعنې مجلس او کور.
۳- اَلْمُجْتَمَعُ (مجاهدؒ) ځای د راجمع کیدو. (فتح البیان)
مِنْ اَسَاوِرَ: د سرو زرو بنګړي په دنیا کښې د سړو دپاره حرام دي، او ښځو له جائز، او په جنت کښې به ئې سړي هم اچوي، او پخوانو بادشاهانو او شاهزادګانو به دا اچول، د ګینتې په شکل ډیر ښائسته ښکاره کیږي.
پدې مقام کښې ئې د (اَسَاوِرَ) لفظ ذکر کړو ددې حکمة یو دا دې چه د اصحاب کهفو نه بنګړي ویستلې شو او درې ورځې مهلت ورکړې شو. نو الله اشاره کوي چه دې خلکو ته به الله تعالیٰ په جنت کښې ښکلې بنګړي اچوي.
دویم دا چه د مکې مشرکانو به خپلو سرو زرو باندې فخر کړې وو چه مونږ مالونو او سرو زرو والا یو او صحابه کرامؓ غریبانان دي، نو الله فرمائي چه همدا مؤمنان به په آخرت کښې مالداره وي او هغوی به ترې محرومه وي.
سُنْدُسٍ وَاِسْتَبْرَقٍ: سُندس نرې نرم وریښم دي چه دننه ځرمنې سره لګیږي دې دپاره چه ځرمن د سختوالي د استبرق (غټو وریښمو) نه بچ کړي. او استبرق هغه سختو وریښمو ته وائي چه د سرو زرو په تارونو اُودلې شوي وي او دا د جامو دپاسه اغوستلې شي. (ابن عاشورؒ) ددې دواړو مثال په دنیا کښې د زنانو شمیس او قمیص دې.
عَلَى الْاَرَائِكِ: جمع د اَرِیْکَةٌ ده، هغه پالنګ چه ناوې په هغې باندې آرام کوي.
په لغت کښې اَلسُّرُرُ ذَوَاتُ الْحِجَالِ ـ ته وائي یعنې هغه کټونه چه دپاسه پرې دولئ وهلې شوي وي. (قاله الزجاجؒ) نو پدې کښې ډیرو خبرو ته اشاره شوه، یو دا چه دا به عام کټ نهٔ وي بلکه د وادهٔ والا به وي، بل ارائك هغه کټ ته وائي چه ناوې پکښې في الحال وي. نو دا به تش کټ نهٔ وي، نو د دوی ژوند به داسې وي لکه چه هره ورځ ئې وادهٔ وي.
او مُتَّکِئِیْنَ کښې اشاره ده چه څه کارو کسب به ئې نهٔ وي بلکه تشې مزې به وي.

| وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ جَعَلْنَا لِاَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ |
| --- |
| او بیان کړه دوی ته مثال د دوه سړو چه ګرځولي وو مونږ یو د دوی لره دوه باغونه |

| |
|---|
| مِنْ أَعْنَابٍ وَّحَفَفْنَاهُمَا بِنَخْلٍ وَّجَعَلْنَا |
| د انګورو نه او راتاؤ کړی وو مونږ د هغې دواړو نه کجورے او ګرځولی وو مونږ |
| بَيْنَهُمَا زَرْعًا ﴿۳۲﴾ كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ آتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ مِنْهُ |
| په مینځ د دواړو کښې فصل۔ دواړو باغونو ورکولے میوے خپلے او نهٔ ئے کمولو د هغې نه |
| شَيْئًا وَفَجَّرْنَا خِلَالَهُمَا نَهَرًا ﴿۳۳﴾ وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ |
| هیڅ شے او روان کړے وو مونږ په مینځ د دواړو کښې نهر۔ او وے هغهٔ لره میوے |
| فَقَالَ لِصَاحِبِهِ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ |
| نو اُووئیل دهٔ ملګری خپل ته او دهٔ خبرے کولے د هغهٔ سره، زهٔ زیات یم ستا نه |
| مَالًا وَّأَعَزُّ نَفَرًا ﴿۳٤﴾ |
| په مال کښې او زوروَر یم په ډله کښې۔ |

**تفسیر**: پدے رکوع کښې د دنیا زهد (بی رغبتی) بیانیږی د وجه د مناسبت نه۔

مناسبت:

۱- نزدے (وَاصْبِرْ) سره مناسبت دا دے چه مِثَالٌ لِمَنْ يَتَعَزَّزُ بِالدُّنْيَا وَيَسْتَنْكِفُ عَنْ مُجَالَسَةِ الْمُؤْمِنِيْنَ) (القرطبیؒ) د هغه چا مثال راوړی چه په دنیا باندے ځان عزتمند ګنړی او د مؤمنانو د مجلس نه نفرت کوی۔ لکه چه دغه شان دوه کسان نور هم وو چه یو مؤمن وو او بل کافر وو کافر به په خپل باغ او مالونو باندے ځان عزتمند ګنړلو نو الله هلاک کړو او مؤمن ته الله تعالیٰ کامیابی ورکړه نو دغه شان مشرکان به هلاك کړی او اصحاب د رسول الله ﷺ به کامیاب شی او جنت به ورته ملاؤ شی۔

۲- مخکښې ئے ووئیل چه ایمان او عمل صالح د دنیا د محبت په وجه پاتے کیږی، نو دے رکوع کښې وائی چه محبت د دنیا سبب د عذاب دے په دنیا کښې۔ او په دویمه رکوع کښې وائی چه محبت د دنیا سبب د عذاب دے په آخرت کښې۔

او پدے آیتونو کښې د دنیا سپکوالے بیانیږی په درے طریقو سره چه دا د ایمان او عمل صالح په مقابله کښې ډیره سپکه ده، اصل کښې ګټه خو هغه خلکو وکړه چه ایمان او عمل

صالح پکښې وي۔
(۱) اوله طریقه دا ده چه محبت د دنیا سبب د شرك او د انکار د بعث بعد الموت دے او سبب د عذاب دنیوي دے او نیك عمل ولے خرابیږي؟ وجه ئے د دنیا محبت دے۔ مشرکان په دنیا فخر کوي راشئ وګورئ د دنیا محبت سبب د هلاکت دے په دنیا او په آخرت کښې۔ او ددے دپاره ئے دا واقعه ذکر کړیده۔ او دویمه طریقه په (آیت ٤٥) کښې او دریمه په (٤٧) آیت کښې ذکر ده۔

رَّجُلَيۡنِ: آیا دا واقعه د مثال په شکل ذکر شویده او که واقعي قصه ده؟

نو ځینو مفسرینو وئیلي دي (لکه ابن عطیهؒ او ابن عاشورؒ او ماورديؒ نقل کړیدي) چه پدے کښې وجود ضروري نهٔ دے چه دوه کسان دے په خارج کښې موجود وي او دغسے واقعه دے راغلې وي بلکه دا یو فرضي مثال دے۔ چه مثلاً دوه کسان وي یو ته الله مال ورکړے وي، او بل غریب وي خو مؤمن وي نو الله عذاب راولي مؤمن ته نجات ورکړي او کافر هلاك شي نو پدے کښې کوم یو ښه شو ؟۔
(۲) ظاهر دا ده چه دا دوه کسان موجود وو چه د یو نوم فرطوس او د بل نوم یهوذا وو، دواړه د رَمْلَه (شام یوه علاقه) کښې وسیدل یو مؤمن او بل کافر وو۔ ځینې وائي چه دا دوه کسان ورونه وو او په بني اسرائیلو کښې وو د مؤمن نوم یهوذا وو په قول د ابن عباسؓ کښې یا تملیخا وو په قول د مقاتلؒ کښې۔ (البحر المحیط)
او د کافر نوم قیطوس (یا قرطوش) وو۔ (په قاف سره) دواړو ته د پلار نه میراث پاتے شو نو یو د الله په لاره کښې ولګولو غریب شو او بل کاروبار وکړو (زمکه ئے واخسته او په هغې کښې ئے دوه باغونه جوړ کړل) مالداره شو، او په دهٔ کښې درے مرضونه وو کافر او مشرك، د آخرت منکر او مسلمان سپك ګڼرونکے وو۔ دا بعینهٖ د مکے د مشرکینو حال هم وو۔

## حاصل د آیتونو :

الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ ته حکم کړیدے چه د ذکر شوو تکبر او مستئ والا مکے مشرکانو ته د عبرت دپاره د بني اسرائیلو د دوه کسانو مثال بیان کړه چه د هغې نه یو کافر وو، د هغه سره د انګورو دوه باغونه وو، چه هغه د کجورو ونو د هر څلورو طرفونو نه راګیر کړے وو، او د دواړو باغونو په مینځ کښې فصل وو، الله هغه ته قِسم قسم میوے او د

خوراك څيزونه ورکړي وو- دواړو باغونو کښې به هر کال ښې ميوې کيدلې، هيڅ کله به ئې کمې نهٔ کيدو، او د دواړو په مينځ کښې ئې نهر هم روان کړے وو، او ددے کافر سره د دواړو باغونو نه سوئ نور مالونه هم وو- دهٔ مسلمان اسرائيلي ته د خبرو اترو په مينځ کښې ووېل چه زهٔ ستا نه زيات مالداره يم، او مرتبه او خادمان او اولاد هم زما سره ستا نه زيات دي-

مفسرين ليکي چه دهٔ د مسلمان لاس اُونيولو او باغ ته داخل شو او د خپل کفر او تکبر ښکاره کولو سره وګرځيدو او د هغې خوبيانے او فضيلتونه ئې ورته بيان کړل او چونکه هغه د زمانے د ابديت (هميشوالي) قائل وو پدے وجه ئے ووېل چه زهٔ ګمان نهٔ کوم چه زما دا باغ به ختم شي او چونکه هغه د آخرت او هلته د حساب کتاب قائل نهٔ وو پدے وجه ئے ووېل چه زهٔ ګمان نهٔ کوم چه کوم شي ته خلق قيامت وائي هغه به کله راشي-

او که بالفرض اُومنم چه قيامت به راځي نو هلته به ما ته ددے باغونو نه غوره ملاويږي، ځکه چه د الله په نظر کښې زما مقام اُوچت دے ځکه ئے ما ته په دنيا کښې هر څه راکړيدي- پدے وجه په هغه ژوند کښې به ما ته په درجه اولیٰ ددے نه ښۀ نعمتونه راکړے کيږي- ددهٔ دا خبره چه مسلمان اسرائيلي واوريده نو هغهٔ ته ئے ووېل چه آيا تهٔ د خپل خالق نه انکار کوے چه هغه ستا پلار (آدم عليه السلام) د خاورے نه او تهٔ ئے د نطفے نه پيدا کړے ئے، او د سړي په شکل کښې ئے تهٔ مکمل انسان جوړ کړے ئے ؟!-

## تشريح الالفاظ

مَّثَلًا: دے ته ئے مثال ځکه ووېلو چه دا قصه مشابه ده د حال د موجوده کافرو او مؤمنانو-

جَنَّتَيۡنِ: دے ته ئے دوه باغونه ووېل ځکه چه مينځ کښې ئے نهر وو- پدے وجه ئے دے ته روستو (جَنَّتَهٗ) (يو جنت) وئيلے دے ځکه چه د دواړو نه يو ديوال راتاو وو- (فتح البيان)

ظاهر دا ده چه دا دوه مستقل باغونه وو او روستو ئے چه ورته (جَنَّتَهٗ) وئيلے دے نو وجه دا ده چه هلته ديو باغ تذکره ده چه هغے ته داخل شوے وو ځکه چه دواړو ته په يو ځل داخليدل نهٔ کيږي- او لَمۡ تَظۡلِمۡ کښې چه ضمير د مؤنث راجع کړيدے نو هغه په اعتبار د لفظ د (كِلۡتَا) سره دے چه دا په لفظ کښې مفرد دے او معنیٰ ئے د تثنيه ده-

وَحَفَفۡنَاهُمَا بِنَخۡلٍ : حَفَّ راتاوولو او راګيرولو ته وئيلے شي- اَىۡ جَعَلۡنَا النَّخۡلَ مُحِيۡطًا بِهِمَا) يعني ما ددے نه ګير چاپېره د کجورو ونے راتاوے کړے وے-

بَيْنَهُمَا زَرْعًا: په مینځ د دواړو باغونو کښې فصلونه به هم کیدل چه دهٔ به د هغې نه خوراکونه کول، دا ددې دپاره چه دواړه باغونه د غلو او میوه جاتو نه پوره وي او دا ډیر ښائسته شکل او ترتیب والا وي۔

لَمْ تَظْلِمْ : اَیْ لَمْ تَنْقُصْ ۔ یعني نهٔ ئې کمول د میوو د هغې نه هیڅ شے یعني په هر حال کښې به ئې ښه پوره میوې ورکولې۔

وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ: یعني ددهٔ نورې آمدنئ وې۔

لِصَاحِبِهِ: (ملګرې) صاحب ئې ورته په اعتبار د مخکنئ زمانې سره وئیلې دے ځکه چه اوس ترې د ایمان په وجه جدا شویدے۔ یا صاحب په معنیٰ د خیرخواه سره دے۔

وَأَعَزُّ نَفَرًا : یعني زما مالونه او نفری زیاته ده۔ او همدا خبره بعینه د مکې د مشرکانو هم وه۔ ﴿ وَقَالُوا نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا ﴾ (سبا : ۳۵)

(او وائي دوی مونږ زیاتو مالونو او اولاد والا یو)

| وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ قَالَ |
|---|
| او داخل شو یو باغ خپل ته او دے ظلم کونکے وو په ځان خپل باندے نو وے وئیل، |
| مَا أَظُنُّ أَنْ تَبِيدَ هَٰذِهِ أَبَدًا ﴿۳۵﴾ وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ |
| زهٔ ګمان نهٔ کوم چه هلاك به شي دا هیڅ کله۔ او ګمان نهٔ کوم په قیامت باندے |
| قَائِمَةً وَلَئِنْ رُّدِدْتُّ إِلَىٰ رَبِّي |
| قائمیدونکے او که (بالفرض) زهٔ واپس کړے شوم رب خپل ته (په قیامت کښې) |
| لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنْقَلَبًا ﴿۳۶﴾ قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ |
| نو خامخا مونده به کړم غوره ددے نه ځائے د ورتللو۔ ووئیل دهٔ ته ملګری خپل ته او هغهٔ |
| يُحَاوِرُهُ أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ |
| جواب ورکوو دهٔ ته آیا تا کفر وکړو په هغه الله چه پیدا کړے ئې تهٔ د خاورے نه بیا د نطفې نه |
| ثُمَّ سَوَّاكَ رَجُلًا ﴿۳۷﴾ لَٰكِنَّا هُوَ اللَّهُ رَبِّي وَلَا أُشْرِكُ |
| بیا ئې برابر کړے ئې تهٔ سړے۔ لیکن (زهٔ وایم) چه الله رب زما دے، او زهٔ نهٔ شریك کوم |

| |
|---|
| بِرَبِّيْ أَحَدًا ﴿۳۸﴾ وَلَوْلَا إِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ |
| د رب خپل سره هیڅ یو تن۔ او ولے نۀ وه کله چه داخل شوے تۀ باغ خپل ته |
| قُلْتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ |
| چه وئیلی وے تا چه څه الله وغواړی (هغه کیږی) او نشته قوت مګر په مدد د الله دے، |
| إِنْ تَرَنِ أَنَا أَقَلَّ مِنْكَ مَالًا وَّوَلَدًا ﴿۳۹﴾ فَعَسٰى رَبِّيْ |
| که چرے وینے تۀ ما لره چه زۀ کم یم ستا نه په مال او اولادو کښ۔ نو زردے چه رب زما به |
| أَنْ يُّؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّنْ جَنَّتِكَ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ |
| راکړی ما ته غوره د باغ ستا نه او رابه ولیږی په هغے باندے عذاب د آسمان نه |
| فَتُصْبِحَ صَعِيْدًا زَلَقًا ﴿۴۰﴾ أَوْ يُصْبِحَ مَآؤُهَا غَوْرًا فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ |
| نو وبه ګرځی میدان خویه۔ یا به وګرځی اوبه د هغے اوچے نو هیچرے طاقت به نۀ لرے تۀ |
| لَهٗ طَلَبًا ﴿۴۱﴾ وَأُحِيْطَ بِثَمَرِهٖ فَأَصْبَحَ |
| هغے لره د طلب کولو۔ او راګیر کړے شو آمدنئ دده (په عذاب کښ) نو اوګرځیدو |
| يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلٰى مَا أَنْفَقَ فِيْهَا وَهِيَ |
| چه اړول راړول ئے ورغوی خپل په هغه څه خرچ کړی ئے وو په هغے کښ او هغه (باغونه) |
| خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَيَقُوْلُ يَا لَيْتَنِيْ |
| راغورځیدلی وو په چتونو خپلو باندے او وئیل ئے اے افسوس دے |
| لَمْ أُشْرِكْ بِرَبِّيْ أَحَدًا ﴿۴۲﴾ وَلَمْ تَكُنْ لَّهٗ فِئَةٌ |
| چه شریك مے نۀ ګرځولے د رب خپل سره هیڅوك۔ او نۀ وه دۀ لره هیڅ ډله |
| يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا ﴿۴۳﴾ |
| چه مدد ئے کړے وے دۀ سره سوئ د الله تعالیٰ نه او نۀ وو دے بدله اخستونکے۔ |
| هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا |
| په دغه وخت کښ واك اختیار د الله دپاره دے چه حق ذات دے، هغه غوره بدلے والا دے |

وَخَيْرٌ عُقْبًا ﴿٤٤﴾

او غوره انجام والا دے۔

**تفسیر**: وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ: ددهٔ ظلم يو د آخرت نه انكار او بل شرك او بل گناهونه وو۔ (د دنيا محبت وغيره)

اَنْ تَبِيْدَ: اَیْ تَفْنٰی وَتَنْعَدِمَ۔ چه هلاك او ختم به شی۔

وَلَئِنْ رُّدِدْتُّ: اَیْ كَمَا تَزْعُمْ۔ يعنی لكه چه تهٔ گمان كوے۔

زجاج وائی دهٔ تـه مسلمان ورور خبر وركړے وو چه دنيا به ختميږی او قيامت به راځی او مونږ بـه خپـل رب تـه پـيش كيـږو نو كافر ورته ووئيل چه كه ستا د گمان مطابق زهٔ واپس شوم الخ۔

مُنْقَلَبًا: (ځای د واپسـئ)۔ دے تـه اغتـرار بالله وائی (يعنی په الله دهوكه كيدل او دے ته استدراج هم وائی چه كوی شرك او گناهونه او اميد د كاميابئ لری)۔

لـكـه مشـركـانـو بـه هم دا ويل چه مونږ ته الله تعالیٰ په دنيا كښ مالونه او اولاد راكړيدی ددے نه معلوميږی چه زمونږ عقيدے صحيح دی، او مونږ الله ته گران يو۔ كه دا غلطه وے نو مونږ ته به ئے دومره مالونه نهٔ راكولے۔

او مشـركانو به ويل [لَئِنْ دَخَلَ هٰؤُلَاءِ الْجَنَّةَ لَنَدْخُلَنَّ قَبْلَهُمْ) كـه دا خلك (بلال او صهيب وغيره ﷺ) جنت ته داخليږی نو مونږ به د دوی نه مخكښ ځو۔ (فتح القدير سورة المدثر)

دا د الله تـعـالیٰ د حـكـمتـونو نه ناخبری ده۔ د آخرت كاميابی او كټه خو په ايمان او عمل صالح كښ ده، آيا په تاسو كښ دغه شته كه هسے تشے دعوے كوئ ؟!۔

يُحَاوِرُهٗ: اَیْ يُرَاجِعُهُ الْكَلَامَ وَيُجَاوِبُهٗ) يعنی جواب ئے وركولو۔

اَكَفَرْتَ بِالَّذِیْ : مـخـكښ ئے ووئيل (وَلَئِنْ رُّدِدْتُّ اِلٰی رَبِّیْ) چـه دهٔ خپـل رب منلو او دلته مـعـلـوميږی چه دهٔ كفر كړے۔ نو وجه دا ده چه هر هغه څوك چه د الله سره شرك وكړی او قيـامـت نـهٔ مـنـی نـو هـغـه په خپل رب باندے كافر دے لكه سورة الرعد كښ تير شويدی ﴿اُولٰئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ﴾ (آيت :٥)۔

د قيـامـت مـنكر د رب منكر دے۔ ځكه چه دا شك كوی په كمال قدرت د الله تعالیٰ كښ پدے وجه ئے ورته د خاورے نه د پيدائش دليل ونيولو۔ (فتح البيان)

خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ: يـعـنی ستا اصل ئے د خاورے نه جوړ كړو يا د هر انسان په نطفه كښ

خاوره اچولے کیږی لکه مخکښې تیر شویدی۔ او د هر انسان خوراك د خاورو نه دے، او ددے نه ددهٔ ماده جوړیږی او بیا ترے انسانان پیدا کیږی۔

سَوّٰىكَ رَجُلًا: یعنی په تا د الله تعالیٰ څومره احسانات دی چه روغ انسان ئے درنه جوړ کړو، بیا ئے درنه سړے جوړ کړو، دا بل نعمت، او ته د الله تعالیٰ دغه شان ناشکری کوے۔

دا هغه آیت دے چه ثابت بنانی رحمه الله به کله لوستلو نو ډیر سخت به ئے ژړل چه کوته به ئے په ژاړه راواخسته، د الله تعالیٰ د آیتونو نه به ئے اثر اخستو۔

لٰكِنَّا هُوَ: اَیْ لٰكِنْ اَنَا اَقُوْلُ۔ لیکن زهٔ وایم۔(هو) ضمیر شان دے۔ یعنی شان دا دے۔

وَلَا اُشْرِكُ بِرَبِّىْ اَحَدًا: پدے کښې اشاره ده چه ددهٔ دا ملګرے مشرك هم وو۔

وَلَوْلَا اِذْ دَخَلْتَ: دا لولا په روستو (قُلْتَ) باندے داخل دے۔ اُوس مسلمان دغه کافر ته توبیخ او زورنه ورکوی چه کله ته باغ ته داخل شوے او ددے حُسن او ښائست دے وکتلو او خوشحاله شوے نو ددے نعمتونو اقرار کولو سره تا ولے نهٔ وئیل چه دا باغ د الله په مشیت او د هغهٔ په فضل او کرم سره حاصل شویدے، که هغه وغواړی نو دا به آباد وساتی او که وغواړی نو په خرابتیا به ئے بدل کړی۔ الله نه بغیر هیچا ته هیڅ قوت حاصل نهٔ دے۔ د هر قوت چینه صرف د الله ذات دے۔

مَا شَآءَ اللّٰهُ: اَیْ هٰذَا مَا شَاءَ اللّٰهُ۔ دا هغه شے دے چه الله غوښتے دے، او ما له ئے راکړیدے۔

۲- مَا شَاءَ اللّٰهُ يَفْعَلُ۔ الله چه څه وغواړی هغه کوی۔

مَا شَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ. چه څوك ووائی نو په هغه باندے په دغه نعمت کښې مصیبت نهٔ راځی لکه دا په روایت د بیهقی (شعب الایمان ۱۲۴/۴ طبرانی صغیر، ابویعلی، ابن مردویه) کښې په ضعیف سند راغلی دی۔

(فی اسناده عیسیٰ بن عون وهو ضعیف) (السلسلة الضعیفة رقم: ۲۰۲۱)

او پدے آیت کښې هم دے ته اشاره ده۔ او (لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ) د جنت د خزانو نه یوه خزانه ده لکه په حدیث د بخاری (۴۲۰۵) او مسلم باب الذکر رقم (۴۴) وغیره کښې راغلی دی۔

اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنْكَ: ددے جزاء پټه ده۔ اَیْ فَلَا بَأْسَ۔ پدے هیڅ باك او پرواه نشته۔

څکه چه زمونږ د الله نه لوی لوی امیدونه دی۔ یعنی مسلمان کافر ته دا هم ووئیل چه ته ما ته د غربت او فقیرئ کوم پیغور راکوے نو هیڅ ورانده نهٔ ده چه الله تعالیٰ به حالات بدل کړی او ما ته به ستا د باغ نه غوره راکړی په دنیا او په آخرت کښې، او ستا په باغ باندے

به یو آسمانی آفت نازل کړي چه په یو ځل به ئې ختم کړي او دا سې صفا میدان به ترې جوړ کړي چه په هغې به قدم نهٔ ایساریږي، یا به ددې اُوبه په زمکه کښې ننباسي او په هیڅ طریقه به ددې بیرته حاصلول ممکن پاتې نهٔ شي۔

حُسْبَانًا: اَیْ عَذَابًا۔ (قتادة) ددې مصداقات دا دي:

۱- اَلصَّاعِقَةَ۔ (تندر) ۲- اَلرِّیْحُ الْحَارَةَ۔ (گرمه هواء) ۳- اَلْجَرَاد۔(ملخان)

٤- اُور۔ ٥- د کانړو باران۔ ٦- ګلئ۔

او ځینی وائي چه د حُسبان نه مراد عذاب د حساب دې د هغه د عملونو۔

صاحب د فتح البیان وائي چه همدا ښه قول دې۔

نضر بن شمیل" وائي چه حُسبان هغه غشو ته وئیلې شي چه په یوه ډُرمه کښې واچولې شي او بیا د یوې لیندې نه په یو ځل سره شړل غشي ګوزار کړي۔

بیا دهٔ ځنګه ووئیل چه زما ګمان دې چه ستا په باغ به عذاب راځي؟

نو ددې وجه دا ده چه حدیث کښې دي چه بعض بندګان که په الله قسم وکړي نو الله ئې پوره کوي۔ (بخاري: ۲۷۰۳) نو دهٔ خپل ګمان وکړو، الله په هغه رشتیا عذاب راوستو۔

بل دا د دین د اصولو نه معلومیږي چه څوك كفر او شرك او ګناهونه کوي نو هغې سره الله تعالیٰ مصیبتونه لیکلي دي۔

غَوْرًا: وچې۔

فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ لَهٗ طَلَبًا: فَضْلًا عَنِ الْوُجُوْدِ۔ د طلب طاقت به ئې نهٔ لرې، موجودول خو په ځای پریږده۔

وَاُحِيْطَ بِثَمَرِهٖ: نو همدغه شان اُوشوه چه لکه ځنګه مسلمان اسرائیلي وئیلي وو۔ ناڅاپه د کافر باغ او د هغهٔ نور مالونه آفت راونیول او په کتو کتو سره هرڅه تباه او برباد شو۔ نو د ډیر افسوس او نا امیدئ نه ئې د افسوس لاسونه مروړل چه هائې ارمان چه هرڅه مې خرچ کړي وو هغه ټول هلاك شو، او د انګورو باغ په زمکه کښې انبار جوړ شو او بیا ئې د مسلمان اسرائیلي خبره رایاده کړه، وې وئیل چه ارمان دې! چه ما د خپل رب سره هیڅوك نهٔ شریك کولې نو نن به دا حالت ما نهٔ لیدلې۔ ددهٔ یقین راغلو چه دهٔ سره چه دا څه اُوشو نو ددهٔ د کفر او شرك او کبر او سرکشئ په وجه سره وشو۔

خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا: یعنی انګورو ته ئې چه کوم څپرونه ورکړي وو هغه ټول خکته راپریوتل او وسوزیدل۔ یا دا چه د دغه باغ بعض حصه په بعضو راپریوته۔

يَا لَيْتَنِي لَمْ أُشْرِكْ بِرَبِّي : ١- نيشاپورئ ليكي : (نَدَامَةٌ عَلَى فُقْدَانِ الْجَنَّاتِ لَا عَلَى سَبِيلِ التَّوْبَةِ) دا ددهٔ د باغ په ختميدو باندے پښيمانتيا وه او د شرك نه توبه ئے مقصد نهٔ وه.

يعنى ارمان دے چه شرك مے نهٔ وے كړے نو باغ به مے نهٔ هلاك كيدے ليكن شرك مے كړے ځكه دا سزا راته ملاو شوه، د خپل ملګرى نصيحت ورته راياد شو ليكن بيا هم همدغه شان په خپل شرك باقى پاتے شو او توبه ئے ونهٔ ويستله.

او دا د غافلانو طريقه ده. او دغه حال د مكے د مشركانو هم وو. او دا تصريح ده چه دا مشرك هم وو. او متكبر هم او منكرد آخرت هم.

او دے قول ته صاحب د ((فتح البيان)) اقرب وئيلے دے ځكه چه رَوستو (وَلَمْ تَكُنْ لَهُ) ئے تائيد كوى.

٢- او ځينى مفسرين وائى چه دا ددهٔ توبه وه ځكه چه په داسے مقام كښ پښيمانتيا توبه وى. (ابن عاشورؒ) او دا په شرك باندے پښيمانتيا وه. اول قول غوره دے.

وَلَمْ تَكُنْ لَهُ فِئَةٌ : په كومو خادمانو او اولادو چه ده فخر كولو نو هغوى د الله په مقابله كښ ددهٔ هيڅ مدد ونكړو، او نهٔ ده خپله د الله د انتقام نه خپل ځان بچ كړے شو. ځكه چه په چا باندے كله د الله عذاب نازليږى نو د هغه د ذات نه سوئ هيڅوك مددګار نهٔ وى.

وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا : أَيْ بِنَفْسِهِ . (خپله هم بدله اخستونكے نهٔ وو) يعنى نهٔ ورسره د بل طاقت وو او نهٔ ئے خپل طاقت وو. كله چه يو تن باندے مصيبت راشى او دے بدله واخلى نو تكليف ورته آسان شى چه فلانى زما باغ وسيزو خو ما هم قتل كړو. زړه ئے خوشحاله وى. نو الله فرمائى چه دے زما نه بدله اخستونكے هم نهٔ وو.

هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ : پدے جملے سره په خبره كښ تعميم پيدا كوى.

١- أَيْ فِي مِثْلِ هٰذَا الْمَوْطِنِ يَتَوَلَّوْنَهُ وَيَتَبَرَّءُوْنَ مِمَّا سِوَاهُ) . يعنى په داسے وخت كښ (چه الله په چا عذاب راولى) نو په دغه وخت كښ خلك دوستى الله سره كوى كوم چه حق ذات دے. ځكه چه پوهه شى چه نور آلهه هيڅ مدد نشى كولے. (ابن عاشورؒ)

لكه دا د مشركانو عادت دے چه د مصيبت په وخت كښ صرف الله يادوى.

٢- كلبيؒ وائى : دا د قيامت سره لګى : يعنى په دغه وخت (قيامت) كښ به خلك مينه كوى د الله سره نو هيڅ مؤمن او كافر به پاتے نشى مګر مينه به كوى د الله سره، او د بتانو او د باطلو معبودانو حقيقت به ورته معلوم شى چه هيڅ فائده به ورنكړى.

(النكت والعيون للماورديؒ)

۴- ولایة مدد ته هم وائی (یزیدی -ماوردی) یعنی په دغه ځای کښې خو مدد صرف د الله وی او هغه کافرانو ته حاصل نشو۔ او الله تعالیٰ د خپل مؤمن بنده سره مدد وکړو او د هغه سینه ئے پرې یخه کړه۔ لکه ددې تائید د روستو جملے نه کیږی چه الله خپلو مومنانو بندګانو ته نیکه بدله ورکوی، او د دوی انجام ښهٔ کوی، په خلاف د کافر چه هغه نه د هغهٔ دنیاوی شرافت او مرتبه د الله عذاب نشی روستو کولے۔ بلکه الله هغه ته عذاب ورکوی او مؤمن له په هغه باندې فوقیت او پورته والے ورکوی۔

په بل قراءت کښې وِلَایَة په زیر د واو سره دې نو هغه تصرف او مُلْك ته وئیلے شی۔ یعنی په دغه وخت کښې واکداری او تصرف د الله وی۔

الْحَقِّ : دا صفت ئے راوړو پدې کښې اشاره ده چه په دغه حال کښې دا خبره ښکاره شوه چه د غیر الله هیڅ حقیقت نشته او نهٔ ورله دوام (همیشوالے) شته او الله تعالیٰ ثابت او موجود ذات دے۔ (ابن عاشورؒ)

| |
|---|
| وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ أَنْزَلْنَاهُ |
| او بیان کړه دوی ته مثال د ژوند دنیوی په شان د اُوبو دے چه نازل ئے کړو مونږه |
| مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْأَرْضِ فَأَصْبَحَ |
| د آسمان نه نو ګډوډ (ډیرے) راوخیژی په هغے سره ګیاهګانے د زمکے نو اُوګرځی |
| هَشِيمًا تَذْرُوهُ الرِّيَاحُ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ﴿٤٥﴾ |
| مات رامات چه والوزوی هغے لره هواګانے او دے الله په هر شی باندې ډیر قدرت لرونکے۔ |
| الْمَالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ |
| مالونه او ځامن ډول د ژوند دنیوی دے او باقی پاتے کیدونکی نیك عملونه غوره دی |
| عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَخَيْرٌ أَمَلًا ﴿٤٦﴾ |
| په نیز د رب ستا په بدله کښې او غوره دی په امید کښې۔ |

**تفسیر** : پدې رکوع کښې د دنیا بی رغبتی په دویمه او دریمه طریقه بیانوی یعنی د دنیا سپکوالے او ددې په جلتئ سره ختمیدل بیانیږی په مثال سره۔ چه پدې باندې غرور نهٔ دے پکار۔ ❁ او دا سبب د عذاب دے په آخرت کښې۔ ❁ او هیبت د آخرت بیانیږی۔

حاصل د مثال دا دے چه د دنیا ژوند د یو فصل مثال دے چه شین شی، ګلے ودے ګیاه ګانے راوخیژی، بیا لږ وخت پس په هغے د خزان زمانه راشی، خلك ئے وربېی نو زر ختم شی نو انسانان هم دغه شان دی چه یو فصل یعنی یوه پیړئ پیدا کیږی هغه ختم شی بیا بل فصل (پیړئ) پیدا شی۔ ټوله دنیا هم دغه شان ختمیدو والا ده۔ چه د چا په ګیره کښ سپین ولګیدل نو فصل ئے پوخ شو او زمانه د ریبلو ئے نزدے شوه۔

## تفصیلی تطبیق :

لکه باران سره چه ګنړ او مختلف بوټی راوخیژی او بیا څه وخت روستو اُوچ شی او ذرے ذرے شی، او په هواګانو سره والوځی نو تش میدان پاتے شی، نو دارنګه دنیا د اُوبو په شان ده لکه اُوبه چه په یو ځای نهٔ ټینګیږی او په یو حالت همیشه نهٔ پاتے کیږی او څوك چه په اُوبو کښ داخل شی نو د لوندیدو نه بغیر نشی پاتے کیدے، او چه اُوبه برابرے وی نو فائده ورکوی او چه د حد نه تیرے شی نو تباهی کوی نو دا ټول حالتونه د دنیا صفتونه هم دی، دنیا هم په یو ځای نهٔ ایساریږی، دارنګه دنیا د انسان سره په یو حال نهٔ وی، حالات ئے بدلیږی۔ دارنګه څوك چه دنیا کښ ننوزی نو د هغے د فتنو نه نشی بچ کیدے۔

دارنګه دنیا داری چه د حد نه زیاته شی نو سبب د تباهئ ګرځی۔ او مختلف بوټی اشاره ده د دنیا مختلف مالونو ته او څنګه چه هغه بوټی اُوچ شی او والوځی نو دارنګه د دنیا مالونه ختمیږی او فناء کیږی۔ (احسن الکلام)

ابن عاشورؒ وائی : پدے کښ د دنیا تشبیه ده د حال د یو بے باغیچے سره چه لږه زمانه تازه شنه وی، بیا د هغے ګیاه زر ختمه شی۔ او وجه د شبه د ښائسته حالت نه بد حالت ته نقل کیدل دی۔ دارنګه د دنیا د نعمتونو او مزو او تازه ګئ او ځوانی او خوشی عیشئ بیا د هغے ختمیدل او د هغے د فائدے د زائله کیدلو او هغه په مختلفو طریقو سره ختمیدو تشبیه ورکړے شویده د هغه باران سره چه اول کښ راشی نو تازګی پیدا کړی لیکن بیا زر ختم شی او ګډوډ والوځی۔ (التحریر والتنویر)

اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ : پدے کښ اُوس الله تعالیٰ مؤمنانو ته د عبرت دپاره دعوت ورکوی چه مشرکان چه په کومو نعمتونو د مالونو او زامنو باندے اخته دی، دا خو صرف د دنیا ډول دے چه ختمیدونکی دی، تاسو له پکار دی چه داسے نیك اعمال وکړئ چه د هغے بدله ډیره مزیداره ده۔ (ابن عاشورؒ)

وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ: باقی پاتے کیدونکی نیکیانی څه شے دے ؟

۱- په حدیث کښې دی : [خُذُوْا جُنَّتَكُمْ مِنَ النَّارِ قُوْلُوْا : سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ فَاِنَّهُنَّ يَأْتِيْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُقَدِّمَاتٍ وَمُعَقِّبَاتٍ وَمُجَنِّبَاتٍ وَهُنَّ الْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ] د اُور نه د ځان دپاره ډهال واخلئ، دا کلمات ووایئ ځکه چه دا به د قیامت په ورځ داسے حال کښې راشي چه د مخکښې او روستو او اړخونو نه به د انسان حفاظت کوی، او دا باقی پاتے کیدونکی نیکیانی دی۔ (حاکم، بیهقی فی شعب الایمان، عمل الیوم واللیلة للنسائی (٤٨٨/٨٤٨) صحیح الجامع الصغیر رقم : ٣٢١٤ باسناد صحیح)

۲- پنځه مونځونه۔ ۳- كُلُّ عَمَلٍ اُرِيْدَ بِهٖ وَجْهُ اللّٰهِ فَهُوَ مِنْهَا۔ (قتادة)

هر هغه عمل چه د الله د مخ د خاطره وکړے شی نو دا د باقیات صالحات نه دے۔

او دا جامع تعریف دے چه پدے کښې پنځه مونځونه، اعمال د حج او عمرے، روژے د رمضان او کلمات طیبات (مزیدارے پاکے خبرے) په اوله درجه کښې داخل دی۔

باقیات کښې اشاره ده چه دا اعمال به هله فائده ورکوی چه کله د انسان دپاره باقی پاتے شی، او په ریاء او نورو مخالفتونو سره ضائع نشی۔

او بشارت دے چه الله تعالیٰ به دا د ایمان والو دپاره همیشه باقی پریدی۔

وَخَيْرٌ اَمَلًا : دا غوره دی په اعتبار د امید سره، یعنی ددے امید کول پکار دی زیات د هغے نه چه مالداره ئے په دنیا کښې د مالونو او د اولادو نه کوی۔

| |
|---|
| وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْاَرْضَ بَارِزَةً |
| او په کومه ورځ چه روان به کړو مونږ غرونه او وینے به ته زمکه ډاګه |
| وَحَشَرْنَاهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ اَحَدًا ﴿٤٧﴾ وَعُرِضُوْا |
| او راجمع کړی به وی مونږ دوی لره نو پرے به نږدو د دوی نه هیڅ یو تن۔ او پیش به کړے شی دوی |
| عَلٰى رَبِّكَ صَفًّا لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا كَمَا |
| په رب ستا باندے صفونه (وبه وئیلے شی) یقیناً راغلئ تاسو مونږ ته لکه چه |
| خَلَقْنَاكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَكُمْ |
| پیدا کړی وُو مونږ تاسو اول کرته بلکه ګمان کوو تاسو چه هیچرے به ونه ګرځوو تاسو لره |

مَّوْعِدًا ﴿٤٨﴾ وَوُضِعَ الْكِتَابُ فَتَرَى الْمُجْرِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا

نیته۔ او کیبه خودے شی کتاب (عملنامه) نو وینے به ته مجرمان یریدونکی د هغے نه

فِيهِ وَيَقُولُونَ يَا وَيْلَتَنَا مَالِ هَٰذَا الْكِتَابِ

چه پدے کښې دی او وائی به دوئ اے هلاکت دے مونږ لره څه وجه ده دے کتاب لره

لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً إِلَّا أَحْصَاهَا وَوَجَدُوا

چه نه ئے دے پریخے وړوکے گناه او نه غټه گناه مگر راگیره کړے ئے ده او مونده به کړی دوی

مَا عَمِلُوا حَاضِرًا وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا ﴿٤٩﴾

هغه عملونه چه دوی کړیدی حاضر، او ظلم نه کوی رب ستا په هیچا یاندے۔

**تفسیر** : د دنیا د بے ثباتئ او په قیامت کښې د نیکو اعمالو د اجر او ثواب بیانولو نه روستو د آخرت څه احوال بیانوی، پدے کښې دریمه طریقه د بې رغبتئ د دنیا ده۔

الله تعالیٰ فرمائی چه هغه ورځ رایاد کړه چه کله به مونږه غرونه د خپل ځایونو نه راوباسو او فضاء ته به ئے بوځو، یا به ئے گرد او غبار کړو او په فضاء کښې به ئے والوزوو۔ سورة النمل آیت (۸۸) کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی : ﴿ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ۝ ﴾ (او ته به په غرونو په خپل ځائے ولاړ گمان کوے لیکن هغه به د وریځے په شان روان وی)۔ او په سورة الواقعه (۵/۶) آیت کښې فرمایلی دی :

﴿ وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا فَكَانَتْ هَبَاءً مُّنْبَثًّا ۝ ﴾ او غرونه به بالکل ذره ذره شی بیا به د پراگنده غبار په شان شی)۔ او زمکه به هوار میدان شی، پدے به نه کوم عمارت وی او نه به غر او نه ونه، او نه بل شے، او الله تعالیٰ به تمام پیریان او انسانان د محشر میدان ته راجمع کړی، یو فرد به هم نه شی پاتی کیدے۔

لکه چه الله تعالیٰ په سورة الواقعه آیت (۴۹/ ۵۰) کښې فرمایلی دی : ﴿ قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ۝ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ۝ ﴾ (ته ووایه چه ټول مخکښی روستنی به ضرور راجمع کړے شی یوے مقررے ورځے ته)۔

**فائده : او ترتیب د قیامت**

نُسَيِّرُ ئے مضارع او (وَحَشَرْنَا) ئے ماضی راوړه، ددے فائده دا ده چه دا دلیل دے چه حشر به

په غرونو روانولو باندې مقدم وي. ددې ترتیب داسې دې چه قیامت کښې دوه شپیلۍ وهلې شي، اولې شپیلۍ سره به ژوندي مخلوق مړ شي لکه ملائك او انسانان او پیریان او حیوانات، زړونه به ئې وچوي او آسمان او زمکه او غرونو کښې به څه تغیر نۀ پیدا کیږي، یو الله به باقي وي، او بیا اسرافیل علیه السلام نو الله تعالیٰ به هغه په خپل امر سره مړ کړي. پدې حال کښې به څلویښت کاله تیر شي، تول انسانان به مړۀ پراته وي نو بیا به الله تعالیٰ داسې تینګ باران وکړي لکه د سړو د منی (نطفې) په شان، او څلویښت ورځو پورې به وریږي

(دا به داسې وي لکه الله تعالیٰ چه انسانان د فصل په شان په دغه باران رازرغونوي)

نو پدې کښې به اول اسرافیل علیه السلام راپورته کړي نو هغه له به شپیلۍ ورکړي، هغه چه شپیلۍ شروع کړي نو اول به انسانان او پیریان او نور حیوانات راژوندي کړي، نو پدې شپیلۍ کښې به وخت په وخت تیزي پیدا کیږي تردې چه د هغې د وجه نه به غرونه هم ذره ذره کیدو ته روان شي او آسمانونه به دروازې دروازې شي، او ستوري به خکته راوه دوریږي او زمکه به ذره ذره شي. او انسان ورته څکه راژوندې کوي چه که انسان مړ وې او بیا دغه حالات راتللې نو انسان به د هیڅ نه خبر نۀ وې خو الله تعالیٰ به انسان ته دا تول حالات وربنائي او په دۀ باندې به دا سختیانې او هیبتونه تیریږي، انسانانو ته خپل قدرت بنائي.

وَعُرِضُوا عَلَىٰ رَبِّكَ صَفًّا: د احادیثو نه معلومیږي چه الله تعالیٰ به په عرش باندې مخامخ وي او د هغه مخې ته به انسانان ودریږي او د هغوی نه ګیر چاپیره به د اول آسمان بیا د دویم او دریم او تر د اُوم آسمان ملائك تردې چه د عرش ملائك به ګیر چاپیره ودریږي او انسانان او پیریان به ئې په مینځ کښې ولاړ وي او د هغوی نه شاته به تول حیوانات وي چه انسانانو ته به ګوري او پدې حال کښې به الله تعالیٰ پنځوس زره کاله ودرولي وي، بیا به ورسره روستو حساب کتاب شروع کوي. والله المستعان.

كَمَا خَلَقْنَاكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ: یعنې د اول ځل په شان بیرته راغلئ خپې ابیله، ناسته او بربنډ.

یعنې تول د محشر حاضرین به د الله مخې ته صف تړلي ولاړ وي، او الله تعالیٰ به دوی ته وائي چه لکه څنګه چه ما تاسو اول ځل پیدا کړي وئ، نن ورځ دویم ځلي ما راژوندي کړئ او خپلې مخې ته مې اُودرولئ، حال دا چه اې د بعث بعد الموت انکار کونکو! تاسو ګمان کولو چه مونږ به ستاسو د دویم ځلي ژوندي کولو دپاره او ستاسو د حساب او کتاب او جزا او سزا هیڅ وخت مقرر نۀ کړو پدې وجه په دنیا کښې مو خپله من مانی کوله او

زمونږ د اطاعت او بندګئ نه غافل وئ.
وَوُضِعَ الْكِتَابُ : كتاب جنس دے اَیْ صَحَائِفُ الْاَعْمَالِ . يعني د بندګانو د عملونو كتابونه (عملنامے) به د الله تعالىٰ مخے ته راوړے شي، او هر شخص ته به د هغهٔ عملنامه د هغهٔ په لاس كښې وركړے شي، مؤمن ته به په ښي لاس او كافر ته به په ګس لاس كښې.
په دنيا كښې د جرمونو او ګناهونو كونكي به په خپلو صحيفو كښې بد عملونه ووينې نو ډيرے نه به وريږي او وائي به چه اے زمونږ بد نصيبئ! دے صحيفے له څه شويدي چه دے وړه او غټه هيڅ ګناه هم نهٔ ده پريخے. هره ګناه پدے كښې درج ده.
دوي چه په دنيا كښې هر څه كړي وي هغه به په پوره تفصيل سره خپلے مخے ته ومومي؛ او د دوي د عملونو مطابق به دوي ته بدله وركړے شي. او الله تعالىٰ په هيچا باندے هم ظلم نهٔ كوي، نهٔ به د چا ګناه زياته ليكي او نهٔ د چا نيكي ضائع كيږي او آخر كښې به جنتيان جنت ته او جهنميان جهنم ته ليږلے شي.
ددے كتاب نه بعض مفسرينو دا مراد اخستے دے چه يو غټ كتاب به راوړے شي چه په هغے كښې به د ټولو انسانانو عملونه ليكلے شوي وي چه هغه به د آسمانونو او د زمكے نه غټ وي (زاد المسير)
ليكن ددے ثبوت په قرآن او حديث كښې نشته لهذا دا تفسير صحيح نهٔ ښكاري.
يَا وَيْلَتَنَا : وَيْلَةٌ مؤنث د وَيْلٌ دے او ويل ته آواز كولو نه مقصد خپل درد ښكاره كول دي د هلاكت په وجه، نو ګويا كه دغه هلاكت ته آواز كوي چه اے هلاكته راشه دا دے وخت دے. بيا استعماليږي د غرض د نداء دپاره چه هغه توجع (درد ښكاره كول) دي.
(ابن عاشورؒ) نود ډيرے يرے او نا اميدئ په وجه به خپل ځان ته ښيرے كوي او هلاكتونه به رابلي. (فتح البيان)
أَحْصَاهَا : راجمع كړے ئے دے او راګير كړے ئے دے. او دا د هر انسان په باره كښې ده چه د هغه به هر عمل ليكلے شوے وي، بيا به مجرمان ډير يريږي او مؤمنان به كم، ځكه چه دوي توبې وباسي او استغفار كوي او نيك اعمال كوي نو الله به ترے ډير ګناهونه وران كړي هم وي. او ځينې به بيخي معاف وي.
حَاضِرًا : دا حساب او حالت چه انسان راياد كړي چه زما د ژوند هره لمحه ليكلے كيږي نو ژوند ئے ډير په احتياط كيږي.

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْا

او کله چه اُووئیل مونږ ملائکو ته سجده وکړئ آدم (ﷺ) ته نو سجده اُوکړه هغوی

إِلَّا إِبْلِيْسَ كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهٖ

سوئ د ابلیس نه، وو هغه د پیریانو نه نو نافرمانی ئے اُوکړه د حکم د رب خپل نه

أَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ أَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ

آیا نو نیسئ تاسو دهٔ لره او اولاد ددهٔ دوستان سوئ زما نه او دوی تاسو لره دشمنان دی،

بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا ﴿٥٠﴾

بد دے (ابلیس) ظالمانو لره په بدله (د الله تعالیٰ) کښې۔

**تفسیر** : زمونږ مشائخ وائی چه واقعه د آدم ﷺ ئے د جواب د یو بے شبهے په طور راوړیده، مشرکان وائی چه تاسو وایئ: چه صرف الله په غیبو پوهیږی ولے پیریان چه د غیبو خبرونه راوړی ؟ نو دلته جواب کوی چه هغوی هم په غیبو نهٔ پوهیږی، ابلیس ته خپله گمراهی نهٔ وه معلومه، نهٔ ورته د خپلو ملگرو گمراهی او نهٔ ورته د آسمان او د زمکے پیدائش معلوم وو۔

(۲) دویمه وجه دا ده چه پدے کښې نهی ده د مشابهت د ابلیس نه په فسق کښې۔ پدے وجه ئے دلته د (فَفَسَقَ) لفظ راوړیدے چه دا د موضوع د سورت سره مناسب دے، چه ابلیس ایمان او عمل صالح پریخے وو نو تاسو د ابلیس مشابهت مهٔ کوی او د هغهٔ تابعداری مهٔ کوئ چه د ایمان او صالح نه ووځئ۔

(۳) ابن عاشورؒ لیکی چه دا واقعه د مخکښې (وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ) سره متعلق ده یعنی دلته الله تعالیٰ مثال راوړیدے دپاره د هغه مشرکانو چه هغوی په خپلو مالونو او مرتبو باندے فخر وکړو او فقیران مسلمانان ئے سپک وگنړل او د حق کمال او د باطل غرور ترمینځ ئے هیڅ تمیز ونکړو لکه ابلیس چه آدم ﷺ سپک وگنړلو او د هغه کمال ته ئے غاړه کینخوده بلکه خپلے باطلے عقیدے (چه زهٔ ددهٔ نه غوره یم) په غرور کښې راوستو۔

او دارنگه پدے کښې تذکیر دے پدے خبره چه شیطان جرړه د گمراهئ ده، او کوم خلک چه په قیامتؒ کښې تاوانیان کیږی نو هغه پدے وجه چه د شیطان او د هغهٔ د دوستانو په

قدمونو پسے روانیږی۔ پدے وجه ئے روستو (اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗ اَوْلِيَاءَ مِنْ دُوْنِيْ) لفظ ووئیلو۔ او دا واقعه تنظیر دے د حال د مشرکانو او د هغوی د انکار او توبیخ دپاره توطئه ده۔

(ابن عاشورؒ)

كَانَ مِنَ الْجِنِّ: دا صریح دلیل دے چه ابلیس د جناتو نه دے او د ملائکو د جنس نه نه وو، ځکه چه ملائك د نُور نه پیدا دی او ابلیس او جنات د اُور نه پیدا دی۔

فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ : اَیْ خَرَجَ عَنْ طَاعَةِ رَبِّهٖ ۔ (ووتو د طاعت د رب خپل نه) فسق په اصل کښې وتو ته وائی، بیا کله استعمالیږی په لوی عصیان (نافرمانئ) کښې لکه په ﴿ وَمَا يُضِلُّ بِهٖ اِلَّا الْفَاسِقِيْنَ ﴾ (البقره : ٢٦) کښې ذکر شویدی۔

اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ: د الله نه ماسوئ د شیطان تابعداری کول د شیطان سره دوستی کول دی۔ هر هغه حالت چه مشرکان په هغے کښې د خپلو معبودانو عبادت کوی نو دا هغوی لره د الله نه سوئ اولیاء (دوستان) نیول دی۔

اَوْلِيَآءَ: ددے نه مراد دوستان دی په طاعت کولو سره یا مددګاران او معبودان۔

بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ: اَیْ بِئْسَ الشَّيْطَانُ لِلظَّالِمِيْنَ فِيْ بَدَلِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ)۔

بد دے شیطان د ظالمانو دپاره په بدل د الله تعالیٰ کښې۔ او پدے کښې التفات دے د خطاب نه غیبة ته، او دا دلیل وی د مقت (غضب) او تبعید (ورانډے والی)۔

او دوی ئے په لفظ د ظالمین سره ذکر کړل، پدے کښې د دوی بدئ ته اشاره ده چه دوی د الله تعالیٰ حق مخلوق ته ورکړو۔

او بدلاً تمییز دے د اسم د بئس نه تقدیر داسے دے : (بِئْسَ الْبَدَلُ لِلْمُشْرِكِيْنَ الشَّيْطَانُ وَذُرِّيَّتُهٗ) یعنی د مشرکانو دپاره شیطان او د هغه اولاد ډیره بده بدله ده۔

| مَا اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَا خَلْقَ |
|---|
| نهٔ دی حاضر کړی ما دوی پیدائش د آسمانونو او د زمکے ته او نهٔ پیدائش |
| اَنْفُسِهِمْ وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا ﴿٥١﴾ |
| د هُم جنسو د دوی ته او نهٔ یم زهٔ نیونکے ګمراه کونکو خلقو لره مددګاران۔ |
| وَيَوْمَ يَقُوْلُ نَادُوْا شُرَكَآئِيَ الَّذِيْنَ |
| او په کومه ورځ چه وبه وائی (الله) آواز وکړئ شریکانو زما ته هغه کسان |

| زَعَمْتُمْ فَدَعَوْهُمْ |
|---|
| چه ګمان کولو تاسو (چه دوی زما شریکان دی) نو آواز به وکړی دوی هغوی ته |
| فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ |
| نو هیڅ جواب به ورنکړی هغوی دوی ته او وبه ګرځوو مونږ په مینځ د دوی کښې |
| مَّوْبِقًا ﴿٥٢﴾ وَرَأَى الْمُجْرِمُونَ النَّارَ فَظَنُّوا أَنَّهُمْ |
| ځائے د هلاکت۔ او وبه وینی مجرمان اُور لره نو ګمان به وکړی چه بیشکه دوی |
| مُّوَاقِعُوهَا وَلَمْ يَجِدُوا عَنْهَا مَصْرِفًا ﴿٥٣﴾ |
| پریوتونکی دی هغے ته او نۀ به مومی د هغے نه ځائے د اوړیدو۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کښې د ابلیس او د شیطانانو کمزورتیا بیانیږی، او په هغه خلکو رد دے چه هغوی شیطانان او باطل معبودان د الله تعالیٰ سره شریک جوړوی۔

او دا علت دے د (أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ) دپاره۔ یعنی تاسو دوی څنګه په دوستانې سره نیسئ؛ حال دا چه ما خو دوی د آسمانونو او د زمکے د پیدائش په وخت نۀ دی حاضر کړی چه د هغوی نه مے پکښې مدد اخستے وی، او مشوره مے ورسره کړی وی چه دا څنګه پیدا کړم چه تاسو رالګیږئ هغه ما سره شریکان ګنړئ حال دا چه هیڅ قدرت او څه برخه د پیدائش ئے نشته، او نۀ مے چه کله د دوی هُمْ جنس خلك پیدا کول نو په دغه وخت کښې مے هم نۀ دی حاضر کړی چه څه مشوره او مدد مے ترے اخستے وی او نۀ الله د چا مدد ته محتاج دے نو بیا دوی ما سره څنګه شریکوئ؟ او زما په خلاف د دوی تابعداریٔ څنګه کوئ؟۔ نو د دوی په شرکت باندے هیڅ دلیل نشته۔ یعنی هرکله چه دوی دومره عاجز دی نو بیا د الله سره څنګه شریکان جوړ شی۔

مَا أَشْهَدْتُهُمْ : اَیْ لِلِاسْتِمْدَادِ وَلَا لِلْمَشْوَرَةِ یعنی ما د مدد او مشورے اخستو دپاره دوی نۀ دی حاضر کړی۔ یا مطلب دا دے چه دا مشرکان خو د عالَم د پیدائش په وخت کښې نۀ وو حاضر شوی نو بیا دوی څنګه فیصله کوی چه د دوی حال به د الله په نیز باندے ښۀ وی۔

(فتح البیان)

عَضُدًا: مټ یعنی مددګار۔ یعنی څوك چه خلك ګمراه کوی نو هغوی زۀ د خپل ځان او

د دین دپاره مددګاران نهٔ جوړوم.
په سورة سبا (۲۲) آیت کښې الله تعالیٰ همدا دلیل داسې بیان کړیدے: ﴿وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ۝﴾ (او نهٔ (د زمکے او آسمان په پیدائش کښې) د دوی څه حصه شته او نهٔ د دوی نه کوم د الله مددګار شته).

## سوال وجواب

سوال دا دے چه رسول الله ﷺ فرمائی: إِنَّ اللّٰهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ) کله الله تعالیٰ ددین تائید په یو فاجر (ګناهګار) سړی سره کوی. (بخاری: (۳۰۶۲) ومسلم: ۳۱۹)
او دلته وائی چه زهٔ د ګمراه کونکو نه مدد نهٔ اخلم؟ (۱) جواب دا دے چه دلته مراد دا دے چه (مَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا فِي الْخَلْقِ وَالْأَمْرِ) زهٔ ګمراه کونکی خپل مددګاران نهٔ جوړوم په پیدائش او تصرفاتو کښې چه د دوی نه مشوره او مدد واخلم ځکه چه حاجت ئې ورته نشته. او دغه حدیث په باره د شرعی امورو کښې دے چه په شریعت کښې کله نا کله الله تعالیٰ د فاجرانو نه هم کار اخلی. او دا امتحان وی (لکه دے حدیث به په سلفو باندے ډیر اثر کولو او ویٔیل به ئې چه هسے نه چه مونږ د الله په نیز فاجران یو او د دین کار کوو)
(۲) ډیر غوره وجه دا ده چه یو فاجر دے او بل مُضِل. فاجر خپله ګناهګار ته وائی، ددهٔ نه د دین کار اخستے شی، کله کله ئې ددین دپاره استعمال کړی. او مُضل هغه دے چه د بل د ګمراهئ کوشش کوی نو الله تعالیٰ د ګمراه کونکی نه هیڅکله د دین خدمت نهٔ اخلی، مشرك او بدعتی به چرته د خیر لوی کار ونکړی چه دین ته پرے ترقی ملاؤ شی.
وَيَوْمَ يَقُوْلُ: پدے آیت کریمه کښې د آخرت یره ده چه د مشرکانو نه به خپل آلهه براءت کوی. او دا عطف دے په (مَا أَشْهَدْتُهُمْ) باندے. یعنی دوی ته به د دوی شرکاء د حشر په ورځ فائده ورنکړی. (ابن عاشورؒ).
الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم کړیدے چه هغه مشرکانو ته د هغه ورځے حال بیان کړی کله چه به الله تعالیٰ دوی لره مخاطب کړی ورته وائی به چه کوم خلق تاسو په دنیا کښې زما سره په عبادت کښې شریکان ګڼړل، هغوی ته د خپل مدد دپاره آواز وکړئ، دے دپاره چه نن ورځ دوی تاسو د عذاب د اُور نه بچ کړی. او دا خبره به الله دوی ته د زجر او توبیخ په طریقه وائی، نو دوی به هغوی ته په نو مونو اخستو سره آواز وکړی، لیکن هغه معبودان به د دوی د آواز جواب نهٔ ورکوی، ځکه چه په هغه ورځ به هیڅ شخص چه د چا

په دنیا کښې عبادت کړې شوې وی په خپله ژبه ددې خبرې د راوستلو جرأت نهٔ کوی۔
نَادُوْا: یعنی د مدد او سفارش دپاره ورته آواز وکړئ لکه څنګه چه به تاسو د دوی په باره کښې د سفارش او مدد عقیده ساتله۔
شُرَكَآئِيَ : ددې نه مراد نیکان او بدان دواړه قسمه خلك دی چه د هغوی عبادت شویدې۔
فَدَعَوْهُمْ: یعنی دوی به ورته آواز وکړی د الله د حکم مطابق، لیکن هغوی به ورله هیڅ جواب ورنکړی او نهٔ به ورسره مدد وکړی، دغه خلك به جواب ورکولې هم نشی او د یرې نه به هم جواب نهٔ ورکوی۔ پاتې لا دا چه د دوی د طرفنه مدافعت وکړی یا ورته څه فائده ورکړی۔ (ابن عاشورؒ وفتح البیان)
وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ مَّوْبِقًا: نو پدې وخت کښې به مونږ د مشرکانو او د هغوی د معبودانو دپاره یو مشترك ځای د هلاکت جوړ کړو یعنی تول به جهنم ته دیکه کړو۔ یا که د نیکانو خلکو عبادت شوې وی نو هغوی به ترې راجدا کړو او مشرکان به د هلاکت کندې ته ګوزار کړو۔ یا بَيْنَهُمْ ضمیر مؤمنان او کافرانو ته راجع دې۔
مَّوْبِقًا: (۱) ځای د هلاکت۔ چه تول جهنم دې، یا ددې نه مراد خاص ژوره کنده ده په جهنم کښې چه د وینو او زوو نه ډکه ده۔ اول قول غوره دې۔
(۲) ابن الاعرابیؒ وائی: موبق د دوه څیزونو ترمینځ پرده او فاصله راوستونکې شې دې۔
(۳) قاسمیؒ لیکی چه موبق نه مراد عداوت او دشمنی ده چه دا به په سختوالی کښې داسې وی لکه عین هلاکت۔ یعنی الله تعالیٰ به د کافرانو او د هغوی د معبودانو ترمینځ داسې سخته دشمنی پیدا کړی چه په میدانِ محشر کښې به یو بل ته کتل او ملاویدل نهٔ برداشت کوی۔ او دا داسې دې لکه سورة مریم آیت (۸۱/۸۲) کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی:
﴿ وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ آلِهَةً لِّيَكُوْنُوْا لَهُمْ عِزًّا ۝ كَلَّا سَيَكْفُرُوْنَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ۝﴾
یعنی (دوی د الله نه سوئی نور معبودان جوړ کړیدی، دې دپاره چه هغوی د دوی دپاره سبب د عزت جوړ شی، لیکن داسې هیچرې نهٔ کیږی هغوی خو به د دوی د عبادت نه منکر کیږی او د دوی په خلاف به دشمنان کیږی)۔
وَرَاَى الْمُجْرِمُوْنَ النَّارَ: دا د مخکښې «موبق» تشریح ده۔ یعنی د حشر په میدان کښې چه کله ددې مجرمانو مخې ته جهنم راوستې شی نود لرې نه لیدو سره به دوی یقین وکړی چه همدا د دوی ځای د اُوسیدو دې، او ددې نه د تیختې هیڅ صورت نشته دې۔

مفسرین لیکی چه جهنم ته د داخلیدو نه مخکښې چه جهنمیانو ته کوم لوئی غم او پریشانی رسیږی هغې ته دلته اشاره ده۔ او که انسان ددے تصور وکړی نو دا ډیر لوی هیبت دے۔

فَظَنُّوْا: ظن دلته په معنیٰ د یقین سره دے۔

مُّوَاقِعُوْهَا: اَیْ وَاقِعُوْنَ فِیْهَا وَدَاخِلُوْنَ۔ یعنی دوی هغے کښې پریوتونکی او داخلیدونکی دی۔

مَصْرِفاً: ځای د واپس کیدو۔ / ځای د اوړیدو چه هغے ته واوړی۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْآنِ لِلنَّاسِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ وَكَانَ الْإِنسَانُ |
| او یقیناً بیان کړیدی مونږ پدے قرآن کښې خلقو ته د هر قسم بیان نه او دے انسان |
| أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا ﴿٥٤﴾ وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَنْ يُّؤْمِنُوْا |
| زیات د هر شی نه په جګړه کښې۔ او نه دے منع کړے خلقو لره د ایمان راوړو نه، |
| إِذْ جَاءَهُمُ الْهُدٰى وَيَسْتَغْفِرُوْا رَبَّهُمْ إِلَّا |
| کله چه راغے دوی ته هدایت او د بخښنے طلب کولو د رب خپل نه مګر |
| أَنْ تَأْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْأَوَّلِيْنَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ |
| (انتظار) ددے خبرے چه راشی دوی ته طریقه د مخکنو خلقو یا راشی دوی ته عذاب |
| قُبُلًا ﴿٥٥﴾ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ إِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ وَيُجَادِلُ |
| مخامخ۔ او نهٔ لیږو مونږ رسولان مګر زیرے ورکونکی او یره ورکونکی او جګړے کوی |
| الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوْا |
| کافران په باطل سره دے دپاره چه ختم کړی په دے سره حق لره او نیولی دی دوی |
| آيَاتِيْ وَمَا أُنْذِرُوْا هُزُوًا ﴿٥٦﴾ |
| آیتونه زما او هغه څه چه یره ورکړے شویده دوی ته په هغے سره، توقے۔ |

**تفسیر :**　　**مضمون :**

پدے رکوع کښې ډیر زجرونه په بعض اعمالو بیانیږی۔ اول زجر دے په جدال کولو۔ دویم

زجر دے په انتظار د عذاب۔ بیا ئے د رسولانو د رالیږلو حکمة ذکر کړیدے، او زجرئے په جدال (جګړو) ورکړے دے۔ بیا زجر دے په اعراض د آیتونو د الله تعالیٰ نه۔ او په آخره کښې بیا د دنیا تخویف دے، او په (۵۹) آیت کښې د هغے مثال ذکر دے۔ د هغے نه روستو د موسیٰ ﷺ واقعه راوړی۔

پدے آیت کښې ترغیب دے قرآن کریم ته او زجر دے په جدال (جګړو) کولو سره۔

مِنْ كُلِّ مَثَلٍ : (یعنی هر قسم بیان)۔ الله تعالیٰ د انسانانو د هدایت دپاره په قرآن کریم کښې ډیر مثالونه، د تیر شوی قومونو واقعات، او د توحید د باری تعالیٰ دلائل بیان کړیدی۔ دارنګه بیشماره مقاماتو کښې د نیکانو خلقو دپاره زیرے او بدکارانو ته د جهنم دهمکی ورکړیده۔ او ددے تولو دعوتی طریقو مقصد دا دے چه انسان پدے کښې سوچ او فکر وکړی، او په الله باندے ایمان راوړی او نیغه لاره اختیار کړی، لیکن انسان ډیر جګړه مار دے، همیشه د باطلو دلائلو په ذریعه د حق نه د انکار کوشش کوی۔

وَكَانَ الْإِنسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا : یعنی انسان د هر شی نه په جګړه کښې زیات دے، هیڅکله نور مخلوق د الله سره جګړے نکوی، نهٔ د هغهٔ د توحید په باره شك کوی، او نهٔ شرك کوی، او هیڅکله ئے نهٔ په الله او نهٔ د هغهٔ په کتاب اعتراض وکړو بلکه کوم کار دپاره چه پیدا دی هغه کوی۔

## د انسانان د جدال طریقے

د انسانانو جدال په ډیرو طریقو سره دے، الله وائی زما شریکان نشته، دوی ورله شریکان وائی، الله وائی قیامت به راولم، دوی وائی دا به څنګه وشی، الله وائی ما رسول راولیږلو، دوی وائی بشر خو رسول نشی کیدے۔ او دا لا څه چه په الله باندے پړه وراچول هم په جدال کښې داخل دے لکه د حدیث نه معلومیږی :

رسول الله ﷺ یوه شپه د علی او فاطمه رضی الله عنهما خوا ته راغلو (چه وګوری چه د شپے مونځ کوی که نهٔ، وے کتل چه دواړه پراتهٔ وو) نو وے فرمایل: (آلَا تُصَلِّيَانِ؟) آیا تاسو دواړه مونځ ته نهٔ پاڅیږئ؟ نو سیدنا علی ﷺ وویل :

يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَنْفُسَنَا بِيَدِ اللّٰهِ اِنْ شَاءَ اَنْ يَّبْعَثَنَا بَعَثَنَا)۔

اے د الله رسوله ! زمونږ نفسونه د الله په لاس کښې دی که د هغهٔ خوښه وی چه مونږ راپاڅوی نو مونږ راپاڅیږو۔ او که نهٔ وی نو پاتے شو۔ نو رسول الله ﷺ د دوی نه روان شو

او هیڅ ئې ورته ونه وئیل او خپل پتون مبارك ئې ټپولو (لکه د دوی په خبره ئې تعجب او خفګان کولو) او دا آیت ئې ولوستلو ﴿وَكَانَ الْإِنسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا﴾

(بخاري في التهجد باب ٥، ومسلم في المسافرين حديث: ٢٠٦)

د آیت د لوستلو مناسبت دا وو چه دلته رسول الله ﷺ د علي رضي الله عنه په جواب باندې خفه شو ځکه چه د هغه په خبره کښې په الله باندې پره اچول راتلل نو رسول الله ﷺ اشاره کوی چه ډیر اعلیٰ جواب دا وو چه تا داسې وئیلی وې چه کله د الله تعالیٰ فضل وشی نو مونږ راپاڅوی او چه کله په مونږ باندې غفلت غالب شی نو بیا د تهجدو نه محرومیږو۔

ډیر انسانان شته چه هغوی د خپلو عیبونو نسبت الله تعالیٰ ته کوی، داسې نۀ ده پکار۔

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ: پدې آیت کریمه کښې الله تعالیٰ زجر ورکړیدې په ایمان نۀ راوړو سره د عذاب په انتظار کولو باندې۔ یعني د مکې مشرکانو او د هرې زمانې کافرانو حال دا دې چه دوی ته د حق او هدایت دلیلونه راغلل او دوی د سرکشۍ لاره اختیاره کړه، او ایمان ئې رانۀ وړو، او د الله نه ئې د ګناهونو بخنه ونۀ غوښته بلکه دوی دا مطالبه وکړه چه د کوم عذاب دهمکی دوی ته ورکولې شی هغه دې راشی چه مونږ ئې په خپلو سترګو وینو۔

یعنی کافران په ایمان او استغفار باندې په هغه وخت آماده کیږی کله چه په دنیا کښې عذاب په خپلو سترګو سره وینی، یا کله چه آخرت کښې جهنم ووینی، او په دواړو حالتونو کښې د دوی ایمان او استغفار په کار نۀ راځی۔

او په بل تعبیر سره: د ایمان او د استغفار نه بل مانع نشته مګر انتظار د عذاب دې۔ یعنی ښه د ایمان اسباب او دلائل موجود دی لیکن بیا هم ایمان نۀ راوړی او دا وائی چه مونږ ته دې عذاب راکړې شی هله به ایمان راوړو یعني د عذاب په انتظار کښې دی۔

نو الله فرمائی چه کله ئې په تا باندې عذاب راوستو نو بیا به دغه ایمان الله ته څه قبول شی؟ دا خو به ایمان بالشهادة شی او الله تعالیٰ ته ایمان بالغیب قبول دې۔ په ډانګی چه څوك مسلمان شی هغه به څه اسلام وی، اسلام خو هغه دې چه په خپله خوښه وی۔

تقدیر داسې دې: [وَمَا مَنَعَ النَّاسَ مِنَ الْإِيمَانِ وَالْإِسْتِغْفَارِ إِلَّا طَلَبُ أَوِ انْتِظَارُ إِتْيَانِ سُنَّةِ الْأَوَّلِينَ]۔ خلکو لره د ایمان او استغفار نه نۀ دې منع کړې مګر طلب کولو یا انتظار کولو د راتللو د طریقې د پخوانو (فتح البیان)

سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ: أَيْ سُنَّةُ اللّٰهِ فِي الْأَوَّلِينَ۔ طریقې د الله تعالیٰ په پخوانو خلکو کښې چه هغه زلزلې او طوفانونه او تندرونه راوستل دی۔ یا استیصالی عذاب دې چه ټول هلاك شی۔

اَلْعَذَابُ قُبُلًا: ددے نه مراد عذاب دے په بعض کسانو چه دوی یو بل ته گوری۔

❁ دویم فرق: یا د پخوانو خلکو په شان عذابونه، او یا نورے عذاب مراد دے۔

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ: پدے آیت کښې اول د رسولانو د رالیږلو حکمة بیانوی، او بیا زجر دے په جدال او استهزاء سره یعنی رسولان الله تعالیٰ ددے دپاره رالیږی چه خلکو ته زیرے او یره ورکری، دے دپاره چه هغوی ایمان راوړی او عمل صالح وکړی چه د الله د عذابونو نه بچ شی۔ (او دا وجه د ربط ده د ماقبل سره)

لیکن د کافرانو همیشه دا طریقه پاتے شویده چه دوی د بے بنیاده دلائلو په ذریعه د حق انکار کرے او د الله د نخو او د هغه عذاب پورے ئے توقے کړی کوم باندے چه دوی یرولے شی۔

بِالْبَاطِلِ: ددے نه مراد شبهاتِ باطله او اعتراضونه دی۔

لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ: دحض دیکے ورکولو ته وئیلے شی۔ اشاره ده چه د دوی جګړه او باطل شبهات د حق د طلب دپاره نه بلکه د حق د نړولو او د باطل د پورته کولو دپاره دی۔

وَمَا أُنْذِرُوْا هُزُوًا: (وَمَا أُنْذِرُوْا) نه مراد عذابونه دی یعنی د الله آیتونه چه ښه واضح دلیلونه دی هغه هم توقه گنړی، او هغه عذابونه چه دوی پرے یرولے شی هغه هم توقه گنړی، او هغے پورے مسخرے کوی چه عذاب څه ته وائی۔ دا د کافرو طریقه ده۔

اهل علم وائی چه څوك د قرآن او حدیث د مخالفت دپاره او د هغوی د خکته کولو او د یو عالِم قول اُوچتولو دپاره جګړه، بحث او مناظره کوی نو هغه له هم ددے آیت نه یره پکار ده۔

| وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ |
|---|
| او څوك دے لوئی ظالم د هغه چا نه چه بیان کرے شی هغهٔ ته آیتونه د رب د هغهٔ، |
| فَأَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ |
| نو مخ واړوی د هغے نه او هیر کړی هغه عملونه چه مخکښې لیږلی وی لاسونو ددهٔ |
| إِنَّا جَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ يَفْقَهُوهُ وَفِي |
| یقیناً مونږ گرځولی دی په زړونو د دوی باندے پردے چه پوهه نشی پدے او په |

| آذَانِهِمْ وَقْرًا وَإِنْ تَدْعُهُمْ إِلَى الْهُدٰى فَلَنْ يَّهْتَدُوْا |
|---|
| غوږونو د دوی کښې بوج لره او که ته را اوبلې دوی لره هدايت ته نو هيچرې هدايت نه قبلوی |
| إِذًا أَبَدًا ﴿٥٧﴾ وَرَبُّكَ الْغَفُوْرُ ذُو الرَّحْمَةِ |
| په دغه وخت کښې هيڅکله. او رب ستا بخنه کونکے دے خاوند د رحمت دے |
| لَوْ يُؤَاخِذُهُمْ بِمَا كَسَبُوْا لَعَجَّلَ |
| که راونيسی خلقو لره په هغه عملونو چه دوی کړيدی نو خامخا په جلتئ سره به ئے ورکړے وے |
| لَهُمُ الْعَذَابَ بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا |
| دوی ته عذاب بلکه دوی لره وخت مقرر دے، هيچرے به ونهٔ مومی دوی |
| مِنْ دُوْنِهِ مَوْئِلًا ﴿٥٨﴾ وَتِلْكَ الْقُرٰى أَهْلَكْنَاهُمْ |
| مخکښې د هغے نه ځائے د پناهئ. او دغه کلی دی چه هلاك کړيدی مونږ دوی لره |
| لَمَّا ظَلَمُوْا وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ مَّوْعِدًا ﴿٥٩﴾ |
| هر کله چه ظلم اُوکړو دوی، او ګرځولے دے مونږ دپاره د هلاکت د دوی وخت مقرر. |

**تفسير**: پدے آيت کښې زجر دے په اعراض د آيتونو د الله نه.

يعنې د هغه انسان نه بل څوك لوی ظالم کيدے شی چه هغه ته د الله آيتونه ولوستلے شی او هغهٔ ته پرے نصيحت ورکړے شی او په مختلف قِسمه نخو سره حق طرفته د دوی رهنمائی کيدے شی او دے بيا د هغے نه مخ واړوی او توقے ورپورے شروع کړی.

**فَأَعْرَضَ عَنْهَا**: ۱- توقے پورے وکړی.

۲- او ايمان پرے نهٔ راوړی او عمل نهٔ کوی.

۳- او د خپلو ګناهونو نه توبه نهٔ وباسی او کفر په ايمان باندے او ګمراهی په هدايت باندے غوره کړی. نو الله تعالیٰ د دوی په زړونو باندے زرګونه پردے واچولے او په غوږونو ئے ميخونه ووهل دے دپاره چه د قرآن کريم په مقاصدو او معانيو پو هه نشی، او د حق خبرے د اوريدو نه محروم شی. پدے وجه کله چه تهٔ دوی هدايت ته رابلې نو دوی هيڅکله حق نهٔ قبلوی، ځکه چه سخت ضديان دی.

وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ: د قرآن نه د فائدے اخستو ذريعه دا ده چه يو خپل گناهونه رايادول او بل د الله آيتونو ته متوجه كيدل، او په قرآن كښې تدبر كول دي۔

إِلَى الْهُدَىٰ: هدايت نه مراد اسلام، او قرآن دے۔

أَن يَفْقَهُوهُ: كَرَاهِيَةَ أَنْ يَفْقَهُوْهُ۔ يا لِئَلَّا يَفْقَهُوْهُ۔ دے دپاره چه پو هه پرے نشي۔

وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا: اَىْ وَجَعَلْنَا فِيْ آذَانِهِمْ وَقْرًا: او مونږ گرځولے د دوی په غوږونو كښې بوج او دروند والے او كوڼ والے چه فائده من آوريدل نهٔ كوی۔

وَرَبُّكَ الْغَفُورُ ذُو الرَّحْمَةِ: ستا رب ډيره بخنه كونكے او انتهائي مهربان دے، پدے وجه د هغه د مغفرت او رحمت تقاضا دا ده چه كافرانو ته د هغوی په كفر او گناهونو باندے صبر كوی، او في الحال ئے پرے نهٔ رانيسي، كه نهٔ وی د دوی داسے جرمونه دی چه په دوی باندے په جلتئ سره عذاب راتلل پكار وو۔

او ددے عذاب روستو كولو په سبب د دوی نه بعضو ته الله تعالیٰ د اسلام توفيق وركوی، او څوك چه په خپل حال باندے باقي پاتے شو نو د هغوی د كفر او د عناد مطابق سزا وركولو يو وخت مقرر دے چه هيڅوك ئے نشي روستو كولے۔

بَل لَّهُم : دا جواب د سوال دے چه الله ئے في الحال نهٔ رانيسي نو دا به دليل وی چه د دوی دپاره به عذاب نهٔ وی؟ نو جواب كوی چه عذاب ئے خامخا شته خو په خپل وخت به راځي۔

مَّوْعِدٌ: مصدر دے يعني وعده۔ يا ظرف مكان يا زمان دے۔ چه ددے نه مراد يا د آخرت ورځ ده يا په دنيا كښې د بدر او اُحد، او خندق وغيره ورځے دی چه پدے كښې ئے هلاك كړل۔

مَوْئِلًا: ۱ – مَرْجِعًا۔ (ځای د اوريدو) (ابن عباسؓ)

۲ – مَلْجَاً۔ (ځای د پنا هئ)۔ (ابوعبيدةؒ)

لِمَهْلِكِهِم : صيغه د مصدر ده يعنی د هلاكت د هغوی دپاره يو وخت معين وو۔ يا د وخت د هلاكت د هغوی دپاره وخت معين۔ (زجاجؒ)

مَّوْعِدًا: نه مراد معين وخت دے چه هغه په دنيا كښې يوه ورځ ده۔ او مطلب دا دے چه دغه كلي د عاديانو او ثموديانو او قوم لوط وغيره ما هلاك كړل كله ئے چه شرك او گناهونه كول، او ما د هغوی د هلاكت دپاره يوه ورځ مقرر كړے وه چه د هغے نه روستو پاتے نشو۔ نو دغه شان په تاسو باندے به هم په يو معين وخت كښې عذاب راځي، جلتي پرے مهٔ كوئ، او د هغے د راتللو نه مخكښې انكار مهٔ كوئ۔

یا مطلب دا دے چه پخوانی مے په دنیا کښ هلاك کړل، او دا موجوده کافران که د دوی نه خوك په دنیا کښ هلاك نشی، نو د دوی د هلاکت دپاره ما یو معین وخت چه قیامت دے مقرر کړیدے په هغے کښ به دوی هلاکیږی، نو په هیڅ شان سره د عذابونو نه نشی بچ کیدے ترڅو پورے ئے چه شرك او ګناهونه پریښی نهٔ وی۔

| وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِفَتَاهُ لَا أَبْرَحُ حَتَّىٰ أَبْلُغَ |
|---|
| او کله چه اُووئیل موسیٰ (علیه السلام) خادم خپل ته زهٔ به همیشه (روان) یم تردے چه اُورسیږم |
| مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا ﴿٦٠﴾ فَلَمَّا بَلَغَا |
| ځائے د جمع کیدلو د دوو دریابونو ته یا به ځم ډیره زمانه۔ نو هرکله چه اُورسیدل دواړه |
| مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا فَاتَّخَذَ |
| ځائے د یو ځائے کیدلو ددے دواړو ته نو هیر کړو دواړو ماهی خپل نو ونیوله هغهٔ |
| سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا ﴿٦١﴾ فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ |
| لاره خپله په دریاب کښ سورنګ۔ نو هرکله چه تیر شو دواړه اُووئیل دهٔ |
| لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا لَقَدْ لَقِينَا |
| خدمتګار خپل ته راکړه مونږ ته ناشته (خوراك) زمونږ یقیناً ملاؤ شوی یو مونږ |
| مِن سَفَرِنَا هَٰذَا نَصَبًا ﴿٦٢﴾ قَالَ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا |
| ددے سفر زمونږ نه ستړی والی ته۔ اُووئیل هغهٔ، آیا تا اُولیدل کله چه ځائے ونیوو مونږ |
| إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَمَا أَنسَانِيهُ إِلَّا الشَّيْطَانُ |
| کټ ته نو یقیناً هیر کړو ما مهی لره او نهٔ دے هیر کړے ما نه دا مګر شیطان |
| أَنْ أَذْكُرَهُ وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا ﴿٦٣﴾ |
| چه یاد کړے مے وے هغه (تاته) او اُونیوله دهٔ لاره خپله په دریاب کښ ناشنا۔ |
| قَالَ ذَٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلَىٰ آثَارِهِمَا |
| ووئیل موسیٰ دا هغه ځائے دے چه مونږ طلب کولو، نو راواپس شو دواړه په نخو د قدمونو |

| قَصَصًا ﴿٦٤﴾ فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا آتَيْنَاهُ |
|---|
| واپس تلونکی۔ نو وموندلو دواړو یو بنده د بندګانو زمونږ نه چه ورکړے وو مونږ هغهٔ ته |
| رَحْمَةً مِنْ عِنْدِنَا وَعَلَّمْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا عِلْمًا ﴿٦٥﴾ |
| رحمت د طرف زمونږ نه او خودلے وو مونږ هغهٔ ته د خپل طرف نه خاص علم۔ |

**تفسیر** : ددے ځای نه روستو د موسیٰ علیه السلام او د خضر علیه السلام واقعه بیانیږی چه مناسبت او فوائد ئے روستو ذکر کیږی۔

ددے واقعے تفصیل په حدیث د بخاری ومسلم کښې راغلے دے چه موسیٰ علیه السلام یوه ورځ په بنی اسرائیلو کښې ودریدو، ډیر ښائسته تقریر ئے وکړو نو د بیان نه روستو ورته یو تن وویل : [هَلْ تَعْلَمُ اَحَدًا اَعْلَمَ مِنْكَ ؟] آیا تا ته د خپل ځان نه بل لوی عالِم معلوم دے؟ (یعنی ستا نه لوی عالم بل شته؟) هغه وویل : نهٔ، (د هغهٔ دا خبره په خپل اجتهاد صحیح وه لیکن د الله خوښه نهٔ شوه) (فَعَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ اِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ اِلَيْهِ) ۔ نو الله پرے ملامتیا وویله ځکه چه هغهٔ ته ئے علم ونهٔ سپارلو۔ (دا خبره په ظاهره کښې روغه وه ځکه چه په انسانانو کښې د نبی نه بل لوی عالِم نهٔ وی لیکن الله اُوچت بندګان په ورو خبرو باندے هم متوجه کوی)

نو الله ورته وفرمایل : [بَلٰی عَبْدُنَا خَضِرٌ اَعْلَمُ مِنْكَ] ۔ آؤ، زمونږ یو بنده چه خضر ئے نوم دے هغه ستا نه په علم کښې زیات دے۔

(دا دلیل دے چه خضر علیه السلام د موسیٰ علیه السلام نه زیات علم لرلو، اګرکه موسیٰ علیه السلام د اُولو العزم پیغمبرانو نه دے او مرتبه ئے د خضر علیه السلام نه اُوچته ده)

بیا ورته الله تعالیٰ وفرمایل چه اُوس به ته د هغه شاګردی کوے؟ (پدے مکلف شو) نو دهٔ وویل چه اے الله ! زما رسیدل به هغه ته څنګه کیږی؟ (الله ورته ځای هم ونهٔ خودلو دے دپاره چه په سفر کښې تکلیف برداشت کړی) او صرف نښه ئے ورکړه چه روان شه او ماهی ځان سره واخله (پوخ شوے) دا چه کوم ځای ژوندے شو، او درنه ورك شو، نو دغه ځای کښې به خضر ملاویږی، نو دهٔ ځان سره ملګرے یوشع علیه السلام (چه پدے وخت لا نبی شوے نهٔ دے) واخستو او توښه هم ورسره وه، دواړه روان شو۔

منزل ئے کولو تردے چه یوه ورځ او یوه شپه منزل ئے وکړو او د هغه علاقے نه واوړیدل تردے چه لوړه پرے راغله، خپل ملګری ته ئے وویل چه ماهی راواخله، هغه وویل چه مونږ چه

مخکښې کوم ځای دمه کړې وه هلته ما ماهي وليدهٔ چه ژوندې شو او په درياب کښې ننوتو ليکن ما نه هير شو چه تا ته مې خبره ياده کړې وې (موسیٰ علیه السلام ورته غصه ونکړه ځکه چه دا هيره د الله د طرفنه وه) نو دواړه بيرته هغه علاقې ته راروان شو چه هغې ته مجمع البحرين (د دوو دريابونو د راجمع کيدو ځای) وائي، وې کتل چه يو تن پروت دې او څادر ئې اغوستې دې، موسیٰ علیه السلام پرې سلام واچولو نو هغه ناشنا وګنړلو، وې ويل:
[اَنّٰی بِاَرْضِكَ السَّلَامُ]- پدې زمکه کښې خو څوك سلامونه نهٔ اچوي، تهٔ څوك ئې؟ هغه وويل: موسیٰ يم، هغه وويل: موسیٰ د بني اسرائيلو؟ دهٔ وويل: آو، څنګه راغلې؟ دهٔ وويل: علم طلب کوم- هغه ورته وويل: تا له الله ډير علم درکړې دغه بس دې، او ما ته ئې خپل علم راکړې- موسیٰ علیه السلام ورته وويل چه زهٔ خامخا شاګردي کوم، نو هغه پرې شرط ولګولو چه بنهٔ ده خو زهٔ چه څه کوم ما نه به د هغې په باره کښې تپوس نکوې چه دا ولې کوې؟ (مطلب دا دې چه د درس مينځ کښې به تپوس نکوې لکه دا د بعضو خلکو غلط عادت دې، پدې سره د درس وقعت خرابيږي) بيا دوي روان شو-
درې کارونه خضر علیه السلام وکړل او په درې واړو کښې پرې موسیٰ علیه السلام اعتراض وکړو، نو هغه د ځان نه جدا کړو- نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمائي: ارمان چه موسیٰ علیه السلام صبر کړې وې (چه الله به دا قصه اُوږده بيان کړې وې) مونږ به ډيره فائده اخستې وې-
پدې واقعه کښې ډيرې زياتې فائدې دي چه يوه مستقله رساله پرې ليکلې کيږي- او هغه تقريباً صاحب د محاسن التاويل (علامه قاسميؒ) د واقعې په آخر کښې راجمع کړيدي او ډير ناشنا والې ئې کړيدې، د کتو لائق دي-

## ددې واقعې فوائد

۱- دا واقعه د نفي د علم الغيب دپاره بيان شويده چه ټول عِلمونه د الله تعالیٰ سره دي، او مخلوق په غيبو نهٔ پوهيږي- ۲- د ايمان او عمل صالح د فائدو راښکاره کولو دپاره ذکر شويده چه کشتۍ والا، او دارنګه د هلك مور او پلار مؤمنان وو، او د خزانې والا يتيمانانو پلار نيك عمله وو-
۳- هجرة لِتَعَلُّمِ الدِّيْنِ- دين او علم دومره اَهم شې دې چه ددې دپاره به سفرې کولې شي او خپل کلې او کور به پريخودې شي، موسیٰ علیه السلام وريسې د نبوت نه پس سفر کړيدې-
٤- پدې کښې د ټولو مؤمنانو دپاره دا سبق پروت دې چه [اَلْاُمُوْرُ قَدْ تَجْرِيْ عَلٰى غَيْرِ ظَوَاهِرِهَا] کله به کارونه د ظاهر نه خلاف روان وي، پدې کښې به فائده وي، يعنې کله به تا

تـه پـه ظـاهـره کښې د کافرانو غلبه ښکاري، دا به امتحان وي په مینځ کښې به حقیقت جدا وي چـه مسلمانان به الله غالبه کوي. موسیٰ ﷺ پـه ظـاهـره کښې کشتۍ خرابوي په مینځ کښې ئې فائده ده چه د بادشاه د بیګار نه وساتلے شي.

هـلـلـك وژنـې پـدے کښې د مور او پلار او د هغه دپاره فائده ده. د بخیلانو دیوال جوړوي په دے کښې فائده ده. نو صحابه کرامؓ ته اشاره ده چه اُوس به تاسو د کافرانو نه کمزوري یئ لیکن الله به تاسو ته غلبه درکوي.

۵- په دے کښې نادره فائده د اتباع الرسول ﷺ هم ده. هغه دا چه (اِنَّ الرَّسُوْلَ ﷺ قَدْ يَقُوْلُ لَـكُمْ شَيْئًا لَاتَبْلُغُهٗ عُقُوْلُكُمْ فَلَا بُدَّ مِنَ الْاِتِّبَاعِ). رسـول الله ﷺ به کله تاسو ته یوه داسے خبره وکړي چه ستاسو عـقـلـونه به نهٔ ور رسیږي، نو په هغه به اعتراض نکوئ بلکه د هغهٔ تـابـعداري به کوئ لکه خضر ﷺ تـه الله تـعـالیٰ ناشنا حکمونه کړي وو چه د موسیٰ ﷺ ذهـن نـهٔ ور رسیدو، نو دغه شان به رسول الله ﷺ ته الله تعالیٰ کله ناشنا حکمونه کوي دا به منئ. په خضر ﷺ اعتـراضات کیدل حال دا چه دا اعتراضونه صحیح نهٔ وو نو دغه شان په رسول الله ﷺ به څوك اعتراضات کوي خو د هغه اعتراضونه به صحیح نهٔ وي.

۶- او پدے کښې آداب د طلب العلم دي.

ابـن عاشورؒ وائي: او پدے کښ رد دے په یهودو باندے چه دوی له پکار دي چه دوی خلکو تـه د بني اسرائیلو د انبیاء علیهم السلام واقـعـات بیان کړي او د علم او د حکمة د حاصلولو دپاره سفر وکړي نهٔ د خپلو مالونو او بادشاهۍ د فراخولو دپاره. (ابن عاشورؒ)

## مناسبتونه

۱- دلتـه ئې دا قـصـه ذکر کړه پدے کښې یهودیانو ته دا تنبیه ورکول دي چه تاسو زما ددے نبي نـه تپوسونه کوئ، که دا خبر درکړي نو نبي به وي او که درئې نکړي نو نبي به نهٔ وي، دا خبـره ستـاسو خطاء ده څکه چه نبي کریم ﷺ دپاره دا ضروري نهٔ ده چه په ټولو واقعاتو او قـصـو به پوهه وي لکه څنګه چه ستاسو نبي موسیٰ ﷺ د ډیرو خبرو نه خبر نهٔ وو الله تعالیٰ ورتـه روستو خبر ورکړو. (فتح البیان)

نو تاسو د اصـحـاب کهف پـه بـاره کـښې تپوس کړے وو نو واخلئ زهٔ تاسو ته ددے نه هم زیات عـجـیـبـه او ناشنـا واقـعـه بیـانـوم چـه د هـغـے خبر ما خپل نبي ته د وحي په ذریعه ورکړیدے.

۲- ابن عاشورؒ وائي: مخکښې د آدم ﷺ او د ملائکو قصه بیان شوه او د شیطان کبر او فخر بیان شو او شیطان د آدم ﷺ د فضیلت او کمالاتو اقرار ونکړو بلکه حسد ئې وکړو نو هغه مثال وو د ګمراهانو، خواهش پرستو، متکبرانو او حسد ګرو دپاره نو اوس د موسیٰ ﷺ قصه راوړي چه دا د هغې برعکس مثال دے، کمال والا خلك د بل کمال والا په کمال او فضیلت باندے اقرار کوي، او د هغوي نه فائده اخلي، او کوشش کوي چه څوك لوي کمال والا پیدا کړي چه هغه نه زیات کمال حاصل کړي، او دا د ایمان والو طریقه ده، نو پدے کښې د دواړو ډلو (کافرانو او مؤمنانو) ترمینځ مقابله په صفاتو کښې راغله۔

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ: ددے موسیٰ نه مراد مشهور پیغمبر موسیٰ بن عمران علیهما السلام دے او بخاري کښې چه راغلي دي چه نوف البکالي به وئیل چه دا بل موسیٰ بن میشی بن یوسف بن یعقوب دے، او دا د موسیٰ بن عمران (علیهما السلام) نه مخکښې پیغمبر وو نو هغه خبره صحیح نهٔ ده، په هغه باندے عبد الله بن عباس ﷺ رد کړیدے۔

**فائده**: قصه ئې د موسیٰ ﷺ د وینا نه شروع کړه، پدے کښې د هغهٔ کلکے ارادے ته اشاره ده، او بل پدے کښې اشاره ده چه ددهٔ خادم دا سفر ډیر لوي ګڼړلے وو، او یریدو چه پدے کښې به مونږ ته مشقت راورسیږي چه د سفر نه به مو بند کړي یا دا چه د علم دپاره ئې دا سفر ډیر لرے ګڼړلو نو موسیٰ ﷺ ورته خپل همت او ددے کار اهمیت ښکاره کړو چه زهٔ به دا کار نهٔ پریږدم او ضرور به خپل مطلب ته ځان رسوم۔ (ابن عاشورؒ بتصرف)

لِفَتَاهُ: د فتیٰ (هلك، ځوان) نه مراد د موسیٰ ﷺ شاګرد او خادم دے چه نوم ئې یوشع بن نون بن افرائیم بن یوسف ﷺ دے، د موسیٰ ﷺ سره به ګرځیدو او د هغه خدمت به ئې کولو۔ او دا ئې غلام نهٔ وو بلکه دا د موسیٰ ﷺ نه روستو الله تعالیٰ نبي جوړ کړیدے۔ لکه قصه ئې په سورة المائده کښې ذکر شویده۔ او پدے خبره باندے واحدي اجماع د علماؤ نقل کړیده۔ او بعض وائي چه دا ئې خورئے وو۔

ددے نه د علم دا فائده راوځي چه په طلب د علم کښې ځان سره ملګرے اخستل پکار وي۔

لَا أَبْرَحُ: زهٔ به همیشه روان یم۔ ددے نه د علم ادب دا معلومیږي چه علم دپاره به کلك عزم کولے شي او په معمولي تکلیفونو به علم نهٔ پریږدي۔

مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ: یعنی ځاي د راجع کیدو د دوه دریابونو ته۔ پدے مجمع البحرین کښې د مفسرینو ډیر اقوال دي (۱) یو قول دا دے چه د طنجه علاقې په خوا کښې دوه دریابونه یو ځاي شویدي چه یو دا مقام د اسبانیا او د مغرب (حکومت) په مینځ کښې دے، او د بحرین

نه مراد بحر ابيض متوسط او بحر محيط اطلسي دے، او دغه ځاى ته مُضَيّق هم وائي او د جبل طارق سره نزدے دے۔ (۲) دويم دا چه دا د بحيرهٔ روم او بحيرهٔ فارس د راجمعه كيدو ځاى دے۔ اول قول د اكثرو مفسرينو دے۔

او مجمع البحرين كښې اشاره ده چه موسىٰ ﷺ هم د علم يو درياب دے، او د بل درياب (خضر ﷺ) سره يو ځاى كيږي۔

أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا : حقب ډيرے زمانے ته وئيلے شي، او صحيح دا ده چه ددے اندازه نۀ ده معلومه۔ (نحاسؒ) او اشاره ده چه د علم دپاره سفر كول عبادت دے، پدے كښې چه څومره وخت ولګيږي دا ټول عبادت دے، او دا وخت ضائع كيدل نۀ دي۔

امام شعبيؒ وائي : كه يو تن د شام نه يمن ته يو مياشت سفر د يو حديث دپاره وكړي، نو زۀ به دا ونۀ وايم چه ددۀ وخت ضائع شو۔ او اشاره ده چه علم په هره زمانه او هر عمر كښې او هر لوى شخص له طلب كول هم ضروري دي، داسے نۀ چه يو څو كتابونه ووائي او بيا ځان لوى كنړي، او د بل چا نه د علم طلب ورته عيب او د خپل شان كمے ښكاري۔

نَسِيَا حُوتَهُمَا : موسىٰ ﷺ چه كله سفر ته روان شو نو د الله په حكم سره ئے يو ماهي په كسوره كښې كيخودو چه دوي به په لاره كښې د هغے نه د خپل حاجت مطابق خوراك هم كولو، او يوشع بن نون ته ئے حواله كړو او وے وئيل چه دا ګوره، او چرته چه دا ددے كسورے نه اُوځي او غائب شي نو ما ته خبر راكړه۔ ځكه چه الله تعالىٰ د خضر ﷺ سره د ملاقات ځاى هغه خودلے وو چرته چه ماهي غائب شي۔ ليكن د الله كار داسے اُوشو چه كله دواړه د درياب غاړے ته نزدے يو ګټے ته ورسيدل هلته ئے تكيه ولګوله موسىٰ ﷺ اُودۀ شو او يوشع ﷺ ويښ ناست وو نو ناڅاپه ماهي ژوندے شو او د كسورے نه ئے توپ كړل او په درياب كښې ورته د سورنګ په شان اُوبه وچے شوے او په هغے كښې ورك شو۔

(نَسِيَا حُوتَهُمَا) كښې ئے نسبت د نسيان دواړو ته پدے وجه وكړو چه د يوشع نه هير شو چه موسىٰ ﷺ ته حال ووائي او د موسىٰ ﷺ نه هير شو چه د يوشع نه ئے د ماهي په باره كښې تپوس كړے وے۔

دواړه ددے ځاى نه دوباره په سفر روان شو۔ يو اُوږد مسافت مزل كولو نه روستو موسىٰ ﷺ ته لوږه اُورسيده او د خوراك دپاره ئے ماهي وغوختو، نو يوشع بن نون ووئيل چه ما نه خو د ماهي خبره تا ته كول هير شوي وو، مونږ له هغه ګټ خوا ته واپس تلل پكار دي، كوم ځاى چه مونږ دمه كړے وه، هلته په ناشنا انداز كښې ماهي درياب ته ننوتے وو۔

نو موسیٰ علیه السلام وویل چه مونږ له هغه ځای ته رسیدل دی کوم ځای چه ماهی غائب شویدے، هغه سرے چه مونږه ئے تلاش کوو هلته به ملاویږی۔

نو دواړه قدم په قدم په همغه لاره راواپس شو په کومه چه تلی وو دے دپاره چه مقصدی ځای ته راورسی۔ نو هلته د دوی ملاقات د خضر علیه السلام سره اُوشو چه هغه له الله تعالیٰ خپل فضل او کرم ورکړے وو۔

مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا : مفسرین لیکی چه موسیٰ علیه السلام پدے سفر کښې ستړے شو ځکه چه دا سفر مخلوق ته وو او طور ته چه تللو نو هلته نهٔ وو ستړے شوے ځکه چه هغه سفر خالق ته وو۔ دا وجه ده چه د قرآن په لوستلو انسان دومره نهٔ ستړے کیږی او د بل کتاب په لوستلو انسان ډیر زر ستړے کیږی۔

او دلته پرے ستړی والے پدے وجه هم راغلے دے چه ددے ګټے نه اخوا سفر غیر مقصودی دے، او په غیر مقصودي سفر کښې انسان زر ستړے کیږی۔

وَمَا أَنْسَانِيْهُ إِلَّا الشَّيْطَانُ : شیطان د انسان نه خبره هیروی پدے طریقه چه زړهٔ په وسوسو مشغوله کړی، نو مُهمه خبره به درنه پاتے شی۔ پدے کښې هم اشاره وه چه د موسیٰ علیه السلام نه دلته د ماهی خبره هیره شوه، نو دغه شان د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ان شاء الله هیره شوه او د وحی په روستو والی په تکلیف شو نو دغه شان د انبیاء علیهم السلام نه هیره کیږی، دوی به پدے خبره نهٔ ملامته کیږی۔

فِي الْبَحْرِ عَجَبًا : ناشنا والے پکښې دا وو چه مړ ماهی راژوندے شو چه دوی د هغے نه یو طرف خوړلے هم وو او بیائے دریاب ته توپ کړل او په دریاب کښې د هغه د روانیدو لاره هم ښکاره کیده چه اُوبه ورته د سورنګ په شان ودریدے۔

فَارْتَدَّا عَلٰى آثَارِهِمَا قَصَصًا : (واپس شو په خپلو قدمونو پسے واپس راتلونکی) اَیْ يَقُصَّانِ اَثَرَهُمَا ۔ یعنی په خپلو منډونو ئے ځپے کیخودے او راروان وو۔ دے دپاره چه لاره خطاء نکړی۔ قصص په لغت کښې اِتِّبَاعُ الْاَثَرِ۔ (یعنی د قدمونو د نشاناتو پسے روانیدلو) ته وئیلے شی۔ او دا مزل ئے یوه ورځ او یوه شپه کړے وو۔

فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا : ددے نه مراد په نیز د عامو مفسرینو خضر علیه السلام دے چه نوم ئے بَلْیَا بن مَلْكَان دے او په خضر باندے یادیږی ځکه چه په یو ځای کیناستو وچه ګیاه وه نو هغه ددهٔ د پاځیدو نه روستو شنه شو۔

## خضر ؑ څوك دے؟

ددۀ پـه باره کښې دوه اختـلافه دی۔ (١) آیا دا ملائك دے او که انسان؟ مرجوح قول دا دے چه دا مـلائك دے ځـکـه چه الله تعالیٰ ورله ډیر ژوند ورکړے او داسے کارونه ئے کړی لکه د مـلائکو پـه شان، او نښه ئے دا ده چه د کشتۍ نه ئے تخته ماته کړیده او خلك پرے نۀ دی پوهه شوی۔ لیکن دا رایه خطاء ده، ځکه چه په حدیث د بخاری کښې دی چه دوی دواړه چه کـله کشتۍ کښې کیناستـل (فَعُرِفَ الْخَضِرُ فَحَمَلُوْهُمَا بِغَيْرِ نَوْلٍ) نو کشتۍ والا خضر لره وپیژندو او دواړه ئے په غیر د کرایه نه سوارۀ کړل۔

(٢) دویـم دا ولـی دے او که نبی؟ نو غوره دا ده چه دا نبی دے او عامو محدثینو په کتاب الانبیـاء کـښې راوړیـدے او بل دلـته (رحمةً) لفظ ورله استعمال شویدے، او ددے اطلاق اکثر پـه نبوت باندے کیږی، لکه دا خبره د ابن عباس ؓ نـه نقل ده لکه سورة هود آیت (٦٣) کـښې تیر شو ﴿وَآتَانِيْ مِنْهُ رَحْمَةً﴾ بـلـه دا چه د موسیٰ ؑ پـه شان لـوی پیغمبر د امتی څنګه شاګردی وکړی۔ دا د الله تعالیٰ د حکمة نه ډیره بعیده ده۔

(٣) دریم اختلاف دا دے چه دا مُعَمَّر دے او که نۀ؟ د صوفیاؤ قول دا دے چه دا د آدم ؑ د شـا نـه پیـدا شـوے څوی دے، او د هـغـه وخـت نه ژوندے دے او په علاقو کښې ګرځی او بیا صـوفیـاء دعـوے کـوی چـه مـونږ سره خضر ملاؤ شو۔ او بعضو پکښې لا دا طریقه اختیار کړیده چه خلکو ته لاس ورکوی نو غتهه ګوته ورله نیسی، او وائی چه د خضر ؑ په لاس کـښې پـه غتـهه ګـوتـه کـښې هـډوکے نشتـه، پـه هـر چا باندے د خضر ګمان کوی او دا خبرے تفسیر روح المعانی او قرطبی وغیره لیکلی دی۔

صحیح خبره داده چه دا د الله تعالیٰ نبی وو، د بنی اسرائیلو یو قوم ته رالیږلے شوے وو، او پـه هـغـه زمانه کښې وفات شویدے، او د وفات دلیل ئے دا دے چه د رسول الله ﷺ مدد ته نۀ دے راغلـے۔ بـلـه دا چـه هـر کـلـه چـه دا انسان دے بیا ئے ولے د وحوشو او د طیورو سره ژوند غـوره کـړیـدے او د انسـانـانـو خواله نۀ راځی، امت څو مره تربیت ته محتاج دے او هغه نۀ راځی چه د امت مشری وکړی۔

او ددے ډیر دلائـل دی چـه پـه خپـل ځـای کـښې بیـانیـږی، او بـعـضـو ته په تفسیر د سورة آلـعمران آیت (٨١) کښې اشاره شویده۔ د عامو محدثینو او شیخ الاسلام ابن تیمیة وینا ده چه خضر ؑ وفـات شـویدے، که ژوندے وے نو د نبی کریم ﷺ خوا ته به راغلے وے او په

هغهٔ باندے ایمان راوړل به واجب وے۔

الله تعالیٰ په سورة الانبیاء آیت (٣٤) کښې فرمائي : ﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ اَفَإِنْ مِتَّ فَهُمُ الْخَالِدُوْنَ ۝﴾ (ستا نه مخکښې مونږ هیڅ انسان ته همیشوالے نهٔ دے ورکړے، آیا که تهٔ مړ شے نو دوی به همیشه دپاره وسیږی؟)۔

او دے نه روستو آیت کښې د ریات تاکید دپاره فرمائي : ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ﴾ الآية۔ هر نفس والا مرګ څکونکے دے)۔ او نبی کریم ﷺ فرمائي : [اَرَأَيْتَكُمْ لَيْلَتَكُمْ هٰذِهٖ، فَإِنَّ عَلٰى رَأْسِ مِائَةِ سَنَةٍ مِنْهَا لَا يَبْقٰى مِمَّنْ هُوَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ اَحَدٌ] دا شپه یاد لرئ څکه چه په زمکه نن چه څومره انسانان ژوندی دی، د دوی نه به هیڅوك هم د سلو کالو نه روستو باقی پاتے نهٔ وی۔ (بخاری باب السمر فی العلم رقم ٤٢؛ رقم الحدیث : ١١٦ مسلم : ٦٦٤٢)

او د مسلم په یو بل روایت کښې دی : [وَاُقْسِمُ بِاللّٰهِ ! مَا عَلَى الْاَرْضِ مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوْسَةٍ تَأْتِيْ عَلَيْهَا مِائَةُ سَنَةٍ] قسم په الله ! په زمکه چه څومره ساه والا دی په دوی باندے به سل کاله تیر نشی)۔ مسلم (٦٦٤٤)

د پورته ذکر شوی دلائلو نه ښکاره ثابتیږی چه خضر ؑ وفات شویدے۔

په صحیح بخاری کښې دی چه موسیٰ ؑ کله د هغه سره ملاؤ شو نو وے وئیل چه زهٔ ستا نه د علم حاصلولو دپاره راغلے یم نو خضر ووئیل چه ستا دپاره دا کافی نهٔ ده چه الله تعالیٰ تا ته تورات درکړیدے او په تا باندے وحی نازلیږی۔ ما سره چه کوم علم دے د هغے حاصلول ستا دپاره مناسب نهٔ دی او تا سره چه کوم علم دے د هغے حاصلول ما دپاره مناسب نهٔ دی۔ بیا یو چینچڼ په دریاب کښې مکوخه اُووهله نو خضر اُووئیل چه قسم په الله ! زما او ستا علم د الله د علم په مقابله کښې داسے دے لکه څنګه چه دے چینچڼ په دریاب کښې مکوخه وهلے ده۔ (صحیح بخاری : ١٢٢)

مِنْ لَّدُنَّا عِلْمًا : خضر ؑ سره چه کوم علم وو هغه د الله خاص عطیه وه، چه بعض انبیاء علیهم السلام ته څه خاص خبرے ورښائی چه هغه ئے بل نبی ته نهٔ وی خودلی پدے وجه د بعض ګمراهانو خلقو دا خبره کول چه الله تعالیٰ د انبیاؤ نه سوئ نورو خلقو ته علم لدنی ورکوی کوم چه د ظاهری شریعت نه مختلف وی، دا ګمراه کونکے رائے ده، او د شریعت نه د آزادی حاصلولو دپاره یوه بهانه ده۔

الله خضر ؑ ته د بعض غیبی کارونو علم ورکړے وو نو په قرآن کښې ئے د هغے صراحت وکړو۔ که یو بل شخص د خپل ځان نه د علم لدنی دعویٰ کوی نو د هغه به نهٔ منلے کیږی،

خکه چه د هغهٔ سره د خضر ؑ په شان د قرآن نه دلیل موجود نهٔ دے چه الله هغه ته یو خاص علم لدنی ورکړیدے. که دا چرته وحی نهٔ وے نو په ظاهره کښې د موسیٰ ؑ اعتراضونه په خضر ؑ باندے صحیح وو لیکن چونکه خضر ؑ ته دغه کارونه په وحی سره خودلے شوی وو، پدے وجه پدے باندے به بل څوك نشی قیاس کولے چه په ظاهره کښې د شریعت خلاف کوی، او بیا دا بهانه کوی چه مونږ سره باطنی علم دے.

(مِنْ لَدُنَّا عِلْمًا) عِلْمًا نکره ده په اثبات کښې راغلے ده، خصوص پیدا کوی، نو ددے نه مراد د بعض باطنی امورو علم دے چه هغه په سبب د وحی سره معلوم وو. دلیل دا دے چه د قصے په آخر کښې فرمائی: ﴿ وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ﴾ ما دا کارونه په خپل حکم سره نهٔ دی کړی.

| قَالَ لَهُ مُوسَىٰ هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰ أَنْ تُعَلِّمَنِ |
|---|
| اُووئیل دهٔ ته موسیٰ (ؑ) آیا روان شم زهٔ تا سره پدے شرط چه تعلیم به راکوے ما ته |
| مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا ﴿٦٦﴾ قَالَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ |
| د هغے نه چه خودلے شویدے تا ته هدایت. اُووئیل هغهٔ، یقیناً تهٔ طاقت نهٔ لرے ما سره |
| صَبْرًا ﴿٦٧﴾ وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ |
| د صبر کولو. او څنګه به صبر اُوکړے تهٔ په هغه خبره چه نهٔ دے راګیر کړے تا هغه |
| خُبْرًا ﴿٦٨﴾ قَالَ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا |
| په علم کښې. اُووئیل هغهٔ زردے چه مونده به کړے ما که الله وغواړی صبر کونکے |
| وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا ﴿٦٩﴾ قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي |
| او نافرمانی به نهٔ کوم ستا د هیڅ حکم. ووئیل خضر (ؑ) نو که تهٔ زما تابعداری کوے |
| فَلَا تَسْأَلْنِي عَنْ شَيْءٍ حَتَّىٰ أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا ﴿٧٠﴾ |
| نو تپوس مهٔ کوه زما نه د هیڅ شی په باره کښې تردے پورے چه بیان کړم تا ته د هغے نه یاداشت (خبر). |

**تفسیر**: موسیٰ ؑ په ډیر ادب سره خضر ؑ ته وویل چه آیا تهٔ ما ته اجازه راکوے

چه زهٔ تا سره وګرځم دیے دپاره چه ما ته ستا د خودلے شوی هدایت نه علم راکړے۔
پدے کښې د آدابو د طلب د علم نه دا ده چه شاګرد به د استاذ نه اجازه غواړی، او مدرسه کښې به داخله اخلی، بے اجازته به پردے لنګر نهٔ خوری، پدے به ګنهګاریږی۔ دویم : (رُشْدًا) نه معلومیږی چه په استاذ باندے لازم ده چه شاګرد ته به هغه خبرے ورښائی چه د هغه د ایمان، د عمل او د عقیدے فائده پکښې وی، هسے بکواسے او قصے بعض استاذان کوی او طالبان وخندوی، بی ادبه ئے اموخته کړی، او هیڅ دین ورته ونهٔ ښائی دا ظالم او خائن استاذ دے۔
(عُلِّمْتَ) نه معلومیږی چه تا ته علم مفت خودلے شویدے نو ما نه به هم عوض نهٔ اخلے۔
رُشْدًا: یعنی د هدایت او رڼړا او د کامیابۍ خبرے به راته ښائے۔ رُشْد او رَشَد په یو معنیٰ دے۔ هُوَ الْوُقُوْفُ عَلَى الْخَيْرِ وَإِصَابَةُ الصَّوَابِ۔ دا د خیر په خبرو خبریدو او حق ته رسیدو ته وئیلے شی۔ اَیْ عِلْمًا ذَا رُشْدٍ اَرْشُدُ بِهٖ۔ یعنی داسے علم چه د هدایت او فائدے والا وی چه زهٔ په هغے سره حق ته ورسیږم او فائده حاصله کړم۔
شوکانیؒ لیکلی دی چه دا ددے خبرے دلیل نهٔ دے چه خضر علیه السلام د موسیٰ علیه السلام نه افضل وو، ځکه چه کله داسے هم کیږی چه لوئی علم او مرتبے والا د خپل ځان نه وړوکی نه یو خاص علم حاصلوی چه د هغه مشر سره نهٔ وی۔ موسیٰ علیه السلام ته الله تعالیٰ تورات ورکړے وو چه په هغے کښې د احکامو د شریعت سره نور ډیر علوم وو، او په هغه باندے وحی نازلیدله او خضر علیه السلام ته خو الله تعالیٰ صرف یو خاص قسم علم غیب ورکړے وو چه په هغے سره مقصود موسیٰ علیه السلام ته خبردارے ورکول وو چه د ټولو نه لوئی علم والا صرف الله دے، هغه چه کوم بنده ته غواړی د هغے نه د خپل حکمت مطابق ورکوی۔
صاحب د «فتح البیان» لیکلی دی چه ډیرو ګمراهانو دا آیت بنیاد جوړ کړیدے چه ولی د نبی نه افضل وی، ځکه چه دلته الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته چه نبی وو حکم وکړو چه هغه د خضر علیه السلام نه علم حاصل کړی۔ دا ښکاره کفر دے، او ددے خبرے جواب هغه دے چه کوم امام شوکانیؒ لیکلے دے چه کله یو لوئی علم او حکمت والا انسان هم د وړوکی نه یو خاص علم حاصلوی۔
إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا : استاذ له پکار دی چه د شاګرد نه د کلک عزم مطالبه وکړی۔ او د هغهٔ عزم معلوم کړی۔ او استاذ له پکار دی چه خپل شاګرد ته د مدرسے او د خپلو حالاتو اظهار وکړی چه دلته دا فلانی فلانی مشکلات دی آیا پدے باندے صبر

کولے شے؟۔
وَكَيْفَ تَصْبِرُ: دا علت او سبب د نهٔ طاقت بیانوی۔ خضر علیه السلام ووئیل چه الله تعالیٰ ما ته چه کوم علم راکړیدے، کله چه زهٔ د هغے عملی مظاهره وکړم نو تهٔ ئے نشی برداشت کولے۔ او په ما باندے به اعتراض کوے، ځکه چه الله تعالیٰ ما ته د کوم بعض غیبی کارونو علم راکړیدے د هغے تائید به په هغه علم د وحی سره نهٔ کیږی کوم چه الله تا ته درکړیدے۔ او چونکه تهٔ د شریعت والا یو رسول ئے پدے وجه د داسے کار په لیدو سره به ستا دپاره سکوت (غلے پاتے کیدل) جائز نهٔ وی کوم چه ستا د علم مطابق ناجائز او منکر وی۔

(فتح البیان)

خُبْرًا: علم ته وئیلے شی، / په یو شی باندے علم راوستل۔
قَالَ: موسیٰ علیه السلام چونکه د علم د طلب مضبوطه اراده کړے وه، پدے وجه ئے ووئیل چه زهٔ به ان شاء الله تا سره صبر کوم، او د خپلے رائے د خلاف کیدو سره به ستا د هیڅ فیصلے مخالفت نهٔ کوم۔
سَتَجِدُنِيْ: طالب العلم لره پکار دی چه د خپل وس مطابق کلك عزم وکړی۔
إِنْ شَآءَ اللّٰهُ: ئے راوړه اشاره ده نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته چه هر کار کښې ان شاء الله وایه، دا د انبیاء علیهم السلام طریقه ده۔
وَلَآ أَعْصِيْ لَكَ أَمْرًا: دا دلیل دے چه شاګرد باندے د مدرسے او د استاذ د شرطونو پابندی لازم ده۔ بیا د مدرسے دوه قسمه قوانین وی یو هغه چه د شریعت خلاف وی نو ددے منل نشته۔ او دویم هغه چه د امور اداریه ؤ نه وی، د شریعت خلاف نهٔ وی، د هغوی خاص ترتیب وی، نو د هغے پابندی لازم ده۔ د داخلے فارم کښې چه کوم شرائط وی په هغے پابندی پکار ده کله چه د شریعت خلاف نهٔ وی۔ (اَلْمُسْلِمُوْنَ عَلٰى شُرُوْطِهِمْ) (ابوداود: ۳۵۹۶) والترمذی: ۱۳۵۲ وسنده صحیح) مسلمانان به په خپلو شرطونو کلك ولاړ وی۔
أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا: (نوے کړم زهٔ تا ته د هغے نه بیان) ددے مطلب دا دے چه په مینځ د سبق کښې به تپوس نکوے بلکه چه کله خبره پوره شوه زهٔ به ئے درته خپله بیانوم چه ددے دا فائده وه۔

| فَانْطَلَقَا حَتّٰى إِذَا رَكِبَا فِي السَّفِيْنَةِ خَرَقَهَا |
|---|
| نو روان شو دواړو تردے چه سوارهٔ شو دواړه په کشتئ کښې نو سورئ ئے کړه هغه، |

| قَالَ أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا |
|---|
| اُووئیل موسیٰ (علیه السلام) آیا سوری کړه تا دا، دے دپاره چه غرق کړے ته اهل ددے |
| لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا ﴿٧١﴾ قَالَ أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ |
| یقیناً تا راتلل وکړل یو کار ناشنا ته۔ اُووئیل خضر آیا نهٔ دی وئیلی ما چه یقیناً ته |
| لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٧٢﴾ قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا |
| طاقت نهٔ لرے ما سره د صبر کولو۔ اُووئیل موسیٰ مهٔ رانیسه ما په هغه څه |
| نَسِيتُ وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا ﴿٧٣﴾ فَانْطَلَقَا حَتَّىٰ |
| چه هیر کړهٔ ما او مهٔ اچوه په ما باندے د کار زما نه تنگسیا۔ نو روان شو دواړه تردے |
| إِذَا لَقِيَا غُلَامًا فَقَتَلَهُ قَالَ أَقَتَلْتَ |
| چه کله مخامخ شول یو هلك سره نو قتل ئے کړو هغه لره، اُووئیل موسیٰ آیا اُووژلو تا |
| نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا ﴿٧٤﴾ |
| یو نفس پاك بغیر د بدلے د نفس نه، یقیناً راتلل دے اُوکړل کار ډیر بد ته۔ |

**تفسیر** : د خضر علیه السلام طریقه دا وه چه په علاقو کښې به گرځیدو گویا که هغوی روان دعوت کولو او خضر علیه السلام الله تعالیٰ په څه کارونو مقرر کړے وو چه دا فلانے کار وکړه نو دعوت ئے هم کولو او ورسره ئے دغه کارونه هم کول۔ دلته ئے یوشع علیه السلام ذکر نکړو ځکه چه هغه خادم دے، یا ئے هغه د ځان نه واپس کړیدے۔

حَتَّىٰ إِذَا رَكِبَا فِي السَّفِينَةِ : دوی ددے کلی نه اخوا په کشتئ کښې اُوریدل نو د کشتئ خواله چه راغلل، خلکو خضر علیه السلام وپیژندو چه دا خو هغه فلانے نیك عمله سړے دے نو هغه ئے بغیر د کرایه نه سور کړو۔ خضر علیه السلام چه کشتئ کښې کیناستو نو په خپل تبرگی سره ئے د کشتئ یوه تخته ماته کړه، موسیٰ علیه السلام ولیدو او نورو خلکو نهٔ لیدو (دا معجزه وه) او سوری وشو او اُوبه هم نهٔ راننوتے۔

قَالَ أَخَرَقْتَهَا : موسیٰ علیه السلام وویل چه تا خو په کشتئ کښې سوری کړلو سره د کشتئ والود ډوبولو اراده کړیده، تا خو ډیره غټه غلطی کړیده چه کشتئ دے خرابه کړه، ډیرے

گناه خلق ډیے هلاك كول غوختي، او احسان ډیے هیر کړیدے۔
إِمْرًا: ۱- اَیِ الْعَظِیْمُ الْمُفْظِعُ۔ یعني لوی او ګبراهټ والا (ناشنا) کارته ډیے راتلل وکړل۔ او دیے ته ئے منکر ونۀ وئیلو ځکه چه في الحال خو کشتئ والا غرق شوي نۀ وو بلکه ذریعه د غرقیدو وه۔ (ابن عاشورؒ)
۲- ابوعبیدۃ وائي: اَلْاَمْرُ الدَّاهِیَةُ الْعَظِیْمَةُ)۔ دا لوی مصیبت ته وائي۔
۳- عَجَبًا۔ ناشنا کار۔ (قتیبیؒ) (فتح البیان)
قَالَ اَلَمْ اَقُلْ: خضر علیه السلام موسیٰ علیه السلام ته خپل شرط رایاد کړو چه ما خو تا ته مخکښې وئیلي وو چه ته به زما په هیڅ کار باندے اعتراض نۀ کوے، ځکه چه تا ته د هغې سبب معلوم نۀ دے۔ وارننګ ئے ورله ورکړو۔ موسیٰ علیه السلام ووئیل چه ما نه هیر شویدی۔ پدے وجه ما پدے باندے مۀ رانیسه او دومره سختي راسره مۀ کوه چه ما د خپل ځان سره په پریخودو باندے مجبور کړے بلکه زما د غلطئ نه نظر اخوا کړه۔ (دے نه معلومه شوه چه که شاګرد نه یوه خطائي وشي نو په اول ځل به د مدرسے نه نشي جدا کولے)۔
دلته په ظاهره کښې دا کار د موسیٰ علیه السلام د شریعت خلاف وو نو ځکه پرے هغه انکار وکړو لیکن چونکه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته وئیلي وو چه دا شخص ستا نه په بعض کارونو کښې ښۀ پوهه دے، نو ځکه موسیٰ علیه السلام صبر کوی۔ او که دا وحي نۀ وے نو د موسیٰ علیه السلام اعتراض په خپل ځای صحیح وو۔
او پدے کښې اشاره ده دے ته چه پیغمبر به کله یو کار کوی، او ستاسو عقل به نۀ ور رسیږي او په هغې کښې به ناشنا حکمتونه وي، نو هغه ته به تسلیمیږئ۔ او د علم فائده ترے دا راووتله چه کله به د مدرسے په یو کار کښې فائده وي چه په ظاهره کښې به یو طالب العلم ته هغې کښې فائده نۀ ښکاري نو اعتراض به نۀ کوی۔
نَسِیْتُ: دا الفاظ پدے سورت کښې زیات راغلي پدے کښې په مشرکانو رد دے چه رسول الله ﷺ نه ان شاء الله هیره شوه او وحي روستو شوه، نو دوی دا د هغۀ د نبوت نه د انکار سبب وګرځولو، حال دا چه په انبیاء علیهم السلام باندے هم هیره راځي۔
بل پدے کښې رد د شرك دے چه انبیاء علیهم السلام نه هم خبره کله نا کله هیریږي دلیل دے چه دوی غیبدان نۀ دي، او دوی بغیر د اسبابو ظاهریه ؤ نه د چا حاجتونه نشي پوره کولے، خپله محتاج بندګان دي۔
وَلَا تُرْهِقْنِيْ مِنْ اَمْرِيْ عُسْرًا: (مه اچوه په ما باندے د خپل کار نه سختي) اَیْ لَا تُعْسِرْ

عَلَیٰٓ مُتَابَعَتِكَ) یعنی په ما باندے خپله تابعداری مهٔ سختوه۔
**فَانْطَلَقَا** : د کشتئ د سفر پوره کولو نه روستو دواړه په اُوچه لاره روان شو۔ یو ځای کښې څه هلکانو لوبے کولے۔ نو خضر ﷺ د هغوی نه یو هلك راونیولو (کوم چه د هغه د علم مطابق کافر وو) او په لاس سره ئے د هغهٔ نه سر جدا کړو (په لاس سره بغیر د چاړے نه سر نهٔ کټ کیږی لیکن دا معجزه وه)۔
**نُّكْرًا** : اَیْ اَنْکَرَ مِنَ الْاَوَّلِ ۔ دا د اول کار نه زیات ناشنا وو ځکه چه په اول کښې خو خلك غرق شوی نهٔ وو۔ بله دا چه که اُوبه کشتئ ته راتلی نو د خلکو په لامبو وهلو سره د بچ کیدو امکان شته۔ او کله چه د تن نه سر جدا شی نو بیرته راواپس کیدل ئے ممکن نهٔ وی او فی الحال انسان ختم شی۔ بله دا چه په ظاهره کښې دا بی گناه شخص دے۔
بله دا چه ماشوم دے۔ ظاهره کښې هیڅ بد کار ئے نهٔ دے کړے چه د قتل مستحق شی۔ نو ځکه موسیٰ ﷺ په خضر ﷺ باندے پدے مقام کښې سخت رد وکړو۔
دارنګه اِمْر هغه کار ته وائی چه د هغے هیبت زیات وی او نُکر هغه دے چه د هغے فساد ښکاره شی۔

## د خضر ﷺ په لاس وژلے شوی هلك په باره کښې

پدے کښې اختلاف دے چه دا وژلے شوے هلك څنګه وو؟ (۱) بعض مشائخ وائی چه دا بالغ هلك وو او غټه ګیره ئے وه او مشرك او قطاع الطریق وو۔ او دهٔ ته چه غلام وئیلے شویدے نو د غلام اطلاق کله نا کله په لوی سړی هم کیږی لکه په حدیث د معراج کښې دی موسیٰ ﷺ وویل : (بُعِثَ هٰذَا الْغُلَامُ بَعْدِیْ) (چه دا هلك زما نه روستو رالیږلے شویدے) چه پدے زمانه کښې رسول الله ﷺ د (۵۳) کالو په عمر وو۔
(۲) لیکن تحقیقی قول دا دے چه دا وړوکے ماشوم وو۔ د دوه وجونه یو دا چه دلته ﴿اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً﴾ نفس زکیه، (پاك نفس) ته وئیلے شی او دا د ماشومانو نفس وی، د قطاع الطریق نفس پاك نهٔ وی۔ او بله دا چه که دا غټ سړے وے نو موسیٰ ﷺ ته څه معلومه وه چه دهٔ قتل نهٔ دے کړے، او قطاع طریقی ئے نهٔ ده کړے او دا پاك دے، دا پته خو په هغه وخت کښې لګیږی چه دا ماشوم وی او ماشومان قتل نشی کولے۔ او بل دلیل پرے حدیث دے :
مسلمؒ، ابوداودؒ او ترمذیؒ د ابی بن کعب ﷺ نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ فرمائی :
[اَلْغُلَامُ الَّذِیْ قَتَلَهُ الْخَضِرُ طُبِعَ يَوْمَ طُبِعَ كَافِرًا، وَلَوْ اَدْرَكَ (وَفِیْ رِوَايَةٍ : فَلَوْ عَاشَ) لَاَرْهَقَ اَبَوَيْهِ

طُغۡيَانًا وَ كُفۡرًا] (مسلم فی القدر حدیث : ۲۹ والفضائل حدیث : ۱۷۲ وابوداود فی السنة باب ۱۶) والترمذی فی التفسیر سورة (۱۸) باب ۲) واحمد فی المسند ۵/۱۱۹، ۱۲۱)

((کوم هلك چه خضر قتل کړے وو هغه پیدائشی کافر وو، که بالغ شوے وے نو خپل والدین ئے په سرکشئ او کفر باندے مجبوره کول))۔

او د اول قول والا دا وینا چه (د نا بالغ ماشوم وژل نشته) ددے جواب دا دے چه د قتل دپاره ډیر اسباب کیدے شی، چه هغه الله تعالیٰ ته معلوم وی او یو نبی ته ئے وښائی، لکه دلته دا تول کارونه په وحی سره شوی وو۔

بلـه دا چه الله تعالیٰ ته دا معلومه وه چه دا انسان کافر دے، الله په تقدیر کښ لیکلی وو نو د هغے مطابق ئے حکم د هغه په قتل وکړو دے دپاره چه مور او پلار ګمراه نکړی، او بیا دا د هغه حدیث خلاف نهٔ دے چه (كُلُّ مَوۡلُوۡدٍ يُوۡلَدُ عَلَى الۡفِطۡرَةِ) هر ماشوم په فطرتِ اسلامی باندے پیدا کیږی۔ ځکه چه دا هم په اسلام پیدا شوے وو لیکن الله ته معلومه وه چه دا روستو کفر کوی او د خلکو د ګمراهئ ذریعه ګرځی نو مخکښ نه ئے پرے فیصله وکړه۔

او دا کار اګرکه په شریعت محمدیه کښ جائز نهٔ دے چه یو تن نه لا ګناه صادره شوے نهٔ ده او هغه پدے بهانـه قتل کړے شی، لیکن په شریعت د خضر ﷺ کښ جائز وو نو هیڅ اشکال نشته۔ (فتح البیان والقاسمی)

بِغَيۡرِ نَفۡسٍ : ددے نه معلومه شوه چه د ماشومانو وژل جائز نهٔ دی لیکن دلته په وحی سره وژلے شویدے۔

مفسرین لیکی چه موسیٰ ﷺ نه د سخت تأثر په وجه سره دا سوچ کول هیر شو چه خضر په یو داسے سبب سره ددهٔ قتل کول حلال ګنړلی دی چه دهٔ ته معلوم نهٔ دے۔

یا دا چه موسیٰ ﷺ دا اعتراض قصداً وکړو ځکه چه دخپل شریعت خلاف کارئے ولیدو۔

| قَالَ أَلَمۡ أَقُل لَّكَ إِنَّكَ لَن تَسۡتَطِيعَ مَعِيَ صَبۡرًا ﴿۷۵﴾ |
|---|
| ووئیل هغهٔ آیا نهٔ دی وئیلی ما تا ته چه یقیناً طاقت نهٔ لرے ما سره د صبر کولو۔ |
| قَالَ إِن سَأَلۡتُكَ عَن شَيۡءٍۭ بَعۡدَهَا |
| اُووئیل موسیٰ که تپوس وکړو ما ستا نه په باره د یو شی کښ روستو ددے نه |

فَلَا تُصَاحِبْنِیْ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّیْ عُذْرًا ﴿۷۶﴾

نو مۀ ملګرے کوه ما لره ځان سره یقیناً ته اُورسیدے زما د طرف نه عذر ته۔

فَانْطَلَقَا حَتّٰی إِذَا أَتَیَا أَهْلَ قَرْیَةِ نِ اسْتَطْعَمَا

نو روان شو دواړه تردے چه کله راغلل دواړه یو کلي والو ته نو خوراك ئے طلب کړو

أَهْلَهَا فَأَبَوْا أَنْ یُّضَیِّفُوْهُمَا

د اُوسیدونکو د هغے نه نو انکار اُوکړو هغوی ددے نه چه میلمستیا ورکړی دواړو ته

فَوَجَدَا فِیْهَا جِدَارًا یُّرِیْدُ أَنْ یَّنْقَضَّ فَأَقَامَهٗ

نو موندۀ کړل دواړو په هغے کښې یو دیوال نزدے وو چه پریوتے وے نو نیغ ئے کړو هغه،

قَالَ لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَیْهِ

اُوویل موسیٰ (ﷺ) که تا غوختے وے نو اخستے به دے وے په دے باندے

أَجْرًا ﴿۷۷﴾ قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَیْنِیْ وَبَیْنِكَ

مزدوری۔ اُوویل هغه دا وخت د جدائي دے په مینځ زما او په مینځ ستا کښې،

سَأُنَبِّئُكَ بِتَأْوِیْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَّلَیْهِ صَبْرًا ﴿۷۸﴾

زر دے چه خبر به دے کړم په حقیقت د هغے خبرو چه طاقت نۀ لرلو تا په هغے د صبر کولو۔

**تفسیر**: دلته ئے ورسره (لَكَ) لفظ زیات کړو۔ سفیانؒ وئیلی دی چه پدے کښې د مخکښې په نسبت تاکید زیات دے۔ ځکه چه پدے کښې زیاته زورنه ورکول دی۔
او ددے نه معلومه شوه چه که طالب العلم دویم کرت نقصان وکړو نو سخته زورنه ورکول پکار دی۔

**بَعْدَهَا** : اَیْ بَعْدَ هٰذِهِ الْمَرَّةِ۔ دے ځل نه روستو۔

**فَلَا تُصَاحِبْنِیْ** : ای ما ځان سره مۀ ملګرے کوه۔ او په یو قراءت کښې (فَلَا تَصْحَبْنِیْ) دے یعنی ما سره ملګرتیا مۀ کوه۔ هرکله چه موسیٰ ﷺ ولیدل چه زما په تپوسونو زما ملګری ته تکلیف رسیږی، نو زر ئے عذر پیش کړو چه که دریم کرت ته ما دا کار وکړو نو ما د ځان نه جدا کړه چه تا ته تکلیف ونۀ رسیږی اګرکه د موسیٰ ﷺ د علم زده کولو سره ډیر

حرص وو۔ (فتح البیان وابن عاشور) رسول الله ﷺ فرمائي :

(يَرْحَمُ اللّٰهُ مُوسٰى لَوَدِدْنَا لَوْ صَبَرَ حَتّٰى يُقَصَّ عَلَيْنَا مِنْ اَمْرِهِمَا)

ارمان چه دهٔ صبر کړے وے نو مونږ ته به الله ډیر عجائبات بیان کړی وے۔ (بخاری: ۱۲۲)

**مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا**: یعنی تهٔ به معذوره ئے زما په جدا کولو کښې۔

دا کلام د هغه چا دے چه سخت پښیمانه وی او حال دے ته مجبوره کړے وی چه اقرار وکړی، او د انصاف په لاره روان شی۔

**فَانْطَلَقَا** : دواړه بیا مخکښې روان شو تردے پورے چه د شپے په وخت یو ښار ته اُورسیدل، هلته دواړو د کلی والو نه خوراك طلب کړو نو هیچا میلمستیا ورنکړه۔ په دغه کلی کښې یو دیوال وو چه پریوتونکے وو، خضر په هغے باندے لاس راخکلو او هغه نیغ شو۔ موسیٰ ؑ ووئیل چه تا له پدے کار اجرت اخستل پکار دی، ځکه چه مونږ ته د پیسو ضرورت دے او دے خلقو زمونږ میلمستیا هم ونکړه۔

**اَهْلَ قَرْيَةٍ**: ددے کلی نه مراد ځوك وائی چه (اَيله) وه۔

او ځینی وائی چه دا د آذربیجان په خوا کښې یو کلے دے (باجروان) ورته وائی۔

او ځینی وائی چه دا په اندلس کښې یو کلے دے۔

او ما (ابوزهیر) ته د مغرب د علاقے یو شیخ (احمد الحفو) خبر راکړو چه زهٔ خپله دغه کلی ته ورغلے یم، دا د طنجه په خوا کښې د دریاب په غاړه کلے دے (ځکه چه خضر ؑ دغه مخکښې کارونه په دریاب کښې او د دریاب په غاړه وکړل او بیا دغه کلی ته ورغلل لکه (فَانْطَلَقَا حَتّٰى اِذَا اَتَيَا اَهْلَ قَرْيَةٍ) الفاظو نه هم معلومیږی)۔ او دائے هم ووئیل چه په دغه کلی والو کښې (په اکثرو کښې) اُوس هم دغه مرض شته چه بل نه خو ښه میلمستیا غواړی مگر خپله چاته میلمستیا نهٔ ورکوی۔ والله اعلم۔

(وذلك فی الحرم المکی فی سنة ۲۰۰٤ء)

**فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا** : ددے نه معلومیږی چه میملنو ته میلمستیا ورکول واجب دی او میلمستیا طلب کول په سوال کښې نهٔ داخلیږی کوم چه حرام دے۔

**يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ** : اراده د هر شی جدا جدا وی نو د دیوال اراده میلان دے۔ او انقضاض په جلتئ سره یو شے راپریوتل دی۔ (یعنی دیوال مائل وو پریوتو ته)

**فَاَقَامَهٗ**: نو خضر ؑ پرے لاس راخکلو نو سم شو (دا هم معجزه وه)۔

**قَالَ لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا**: یعنی تا به د دوی نه ددے دیوال په برابرولو

مزدوری اخستے وے، یعنی دا خلك مونږ ته میلمستیا نهٔ راکوی او تهٔ ورله دیوالونه جوړوے (خیال ئے دا وو چه دا خو مشرکان او رذیل خلك دے او دیوال د هم دوی دے) بلکه د دوی نه د ضرورت په بناء مزدوری اخستل پکار وو۔

موسیٰ علیه السلام ته چا ووئیل چه کله تهٔ د مصر نه مدین ته تللے نو هلته دے د چا نه سوال نهٔ دے کړے بلکه ﴿رَبِّ إِنِّيْ لِمَا أَنْزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ﴾ دے وئیلے وو یعنی صرف الله ته دے حاجت ښکاره کړے وو او دلته دے د مخلوق نه سوال کړیدے؟ نو هغهٔ ووئیل چه ما دا کار د ملګری د خاطره کړیدے، آه۔ او د ملګری د خاطره په کله نا کله مستحب هم پریخودے شی۔

او ددے نه دا خبره هم معلومه شوه چه د موسیٰ علیه السلام خبره په عدل بناء وه چه څوك درسره احسان نهٔ کوی نو تهٔ ئے هم ورسره مهٔ کوه او د خضر علیه السلام عمل احسان دے۔ او احسان اعلیٰ وی د عدل نه۔

هٰذَا فِرَاقُ: ۱ – دا وخت د جدائی دے زما او ستا ترمینځ۔

۲ – هٰذَا الْإِعْتِرَاضُ مُفَرِّقٌ بَيْنِيْ وَبَيْنِكَ) دا اعتراض زما او ستا جدائی راوستونکے دے۔

سَأُنَبِّئُكَ : خضر علیه السلام ووئیل چه تهٔ د خپلے وعدے مطابق زما ملګرتیا پریده۔ او هرچه تیر شوی کارونه دی نو د هغے په حقیقت به دے خبر کړم۔

| |
|---|
| أَمَّا السَّفِيْنَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِيْنَ يَعْمَلُوْنَ فِي الْبَحْرِ فَأَرَدْتُّ |
| هرچه کشتئ وه نو وه د مسکینانو دپاره چه کار ئے کولو په دریاب کښې نو اراده اُوکړه ما |
| أَنْ أَعِيْبَهَا وَكَانَ وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ يَّأْخُذُ كُلَّ |
| چه عیبجنه کړم هغے لره ځکه چه وو اخوا د دوی نه یو بادشاه چه نیوله به ئے هره |
| سَفِيْنَةٍ غَصْبًا ﴿۷۹﴾ وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ |
| (روغه) کشتئ په زور سره۔ او هرچه هلك وو نو وو مور او پلار د هغهٔ مؤمنان |
| فَخَشِيْنَا أَنْ يُّرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ﴿۸۰﴾ فَأَرَدْنَا |
| نو اُویریدلو مونږ چه وابه چوی دے دواړه په سرکشئ او کفر کښې۔ نو اراده وکړه مونږ |
| أَنْ يُّبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكَاةً وَّأَقْرَبَ |
| چه بدل به ورکړی دوی ته رب د دوی غوره ددهٔ نه په پاکئ کښې او ډیر نزدے |

رُحْمًا ﴿٨١﴾ وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَامَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي الْمَدِينَةِ

په رحم کولو کښې۔ او هرچه دیوال وو نو وو دپاره د دوه هلکانو یتیمانانو په ښار کښې

وَكَانَ تَحْتَهُ كَنْزٌ لَّهُمَا وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا فَأَرَادَ رَبُّكَ

او وه لاندې د هغې نه خزانه ددې دواړو او وو پلار د دوی نیك سړے نو اُوغوختل رب ستا

أَنْ يَبْلُغَا أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنْزَهُمَا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ

چه اُورسی دوی ځوانئ خپلې ته او را اُوباسی خزانه خپله د وجے د رحمت د رب ستا نه

وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِعْ

او نۀ دے کړے ما دا کار په اختیار خپل سره دا حقیقت وو د هغې چه وَس طاقت نۀ لرلو تا

عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿٨٢﴾

په هغې باندې د صبر کولو۔

**تفسیر** :أَمَّا السَّفِينَةُ : خضر علیه السلام ووئیل چه هغه کشتئ چه په هغې کښې ما سورے کړے وو، او په کوم باندې چه تا زۀ ملامته کړے وم، د لسو غریبانو سړو وه چه ددې په ذریعه به ئے خلق د دریاب د یو بې غاړې نه بلې غاړې ته رسول او پدې سره به ئے خپله روزی گټله۔ یا به ئے پکښې ښکار کولو، ددې علاقې بادشاه یو ظالم سړے وو چه هره غوره او صحیح سالمه کشتئ به ئے په زوره بغیر د عوض ورکولو نه نیوله یعنی بیگار به ئے پرې کولو۔ ما دا عیبجنه کړه دے دپاره چه هغه دا وانخلی۔

لکه دا د ظالمانو بادشاهانو کار وی چه د آبادئ وغیره دپاره د عوامو خلکو نه کار اخلی او د هغوی مالونه او گاړی وغیره پکښې استعمالوی، او هیڅ عوض نۀ ورکوی لکه فرعونیانو به د اهرامو په آبادولو کښې عوام استعمالول۔ البته که دا کار د عوامو د مصلحت دپاره وی نو د هر چا نه د هغه د وَس مطابق کار اخستل جائز دی۔ (ابن عاشورؒ)

مطلب دا شو چه زما پدې کار کښې خو ظاهر کښې لږ ضرر وو لیکن ډیره فائده پرې مرتب کیده او د دغه ضرر تدارك کیږی چه بیرته به ورته تخته ولگوی مگر د مزدورئ نه به وران نشی۔ او هرچه د خلکو غرقیدل دی نو هغه د الله په حکم سره نۀ کیدل۔

ددې نه دا فائده معلومه شوه چه د انبیاء علیهم السلام او صالحینو طریقه دا ده چه

هغوی د یتیمانانو او مسکینانو او د کمزورو خلکو د مالونو حفاظت کوی۔

❁ بلـه دا هـم مـعـلـومـه شـوه چه د یو نبی نبوت د انسانانو دپاره صرف دینی او اُخروی فائده نهٔ ده بلکه پدے کښې دنیاوی فائدے هم شته۔

فَكَانَتْ لِمَسَاكِيْنَ : ددے نـه مـعلومیږی چه مسکین هغے ته وائی چه د هغهٔ څه نا څه وی، خپله خواری مزدوری کوی لیکن نصاب ورسره نهٔ وی چه زکاة پرے فرض شی۔

وَأَمَّا الْغُلَامُ : او هـغـه هـلـك چه ما قتل کړے وو، د هغهٔ والدین د ایمان والا وو، او هغه په پیدائشی توګه سره کافر وو، زهٔ یریدم چه غټ به شی او والدین به هم د کفر او سرکشئ په لاره روان کړی۔ پدے وجـه ما اراده وکړه چه الله تعالیٰ به ددهٔ والدینو ته ددهٔ په بدله کښې یو داسے هلك ورکړی چه په نیکئ، صلاح او د ګناهونو نه په پاکئ کښې به ددهٔ نه غوره وی او د خپلو والدینو مطیع او منونکے به وی۔

پدے کښې د ایمان او عمل صالح فائده معلومه شوه چه دنیا کښې هم فائده ورکوی او په عمل صالح سره د یو سړی د ډیرو پښتونو او نسلونو حفاظت کیږی۔

زَكَاةً: أَيْ دِينًا وَصَلَاحًا وَتَقْوىٰ وَطَهَارَةً مِنَ الذُّنُوبِ۔ یعنی په دینداریٔ او نیك عملیٔ او تقویٰ او د ګناهونو نه په پاکیٔ کښې۔

وَأَقْرَبَ رُحْمًا: ((او ډیر به نزدے وی په مهربانیٔ کښې په مور او پلار باندے))۔

ابـن عباسؓ وائی چه د رحماً معنیٰ مَوَدَّة ده۔ یعنی نزدے به وی په مینه کښې۔ نو ددے دواړو نه یوه جینیٔ پیدا شوه چه د هغے نه بیا نبی پیدا شو۔ (فتح البیان)

ددے نـه دا فـائده معلومه شوه چه بنده له پکار دی چه د الله تعالیٰ په تقدیر باندے راضی شی، څـکه چه ددے ماشوم مور او پلار ته دا پته نهٔ وه چه زمونږ ماشوم چا پدے نیت وژلے دے چه دا مـونږ چرته ګمراه نکړی بلکه هغوی به پدے کار باندے څومره خفګان کړے وی لیـکـن د هغوی دپاره په همدے کښې فائده وه چه د ایمان حفاظت ئے وشو۔ کله کله به تا ته یو مصیبت ورسیږی تا ته به هغه ډیر بدی ښکاری لیکن مینځ کښې به په هغے سره ستا د ایمان حفاظت کیږی۔ د الله تعالیٰ په خپل مخلوق کښې عجیب حکمتونه وی۔

وَأَمَّا الْجِدَارُ : او هـغـه دیوال چه هغه ما نیغ کړے وو، د ښار د دوه یتیمانو بچو وو چه د هغے نه لاندے د دوی خزانـه ښخه وه، او د دوی پلار نیك سړے وو، پدے وجه ستا رب په دوی بانـدے فـضـل او کـرم کـول غـوختـل چـه دیـوال ولاړ پاتی شی دے دپاره چـه دواړه په غټیدو سره هغه راوباسی او فائده ترے واخلی۔

ددے نه دا فائده معلومیږی چه د پلار نیکی د اولادو د نفس او د مال د حفاظت سبب جوړیږی۔ بعض وائی چه ددے دواړو یتیمانانو پلار هغه مال دفن کړے وو۔
خینی علماء وائی چه د دوی اُوم یا لسم نیکه مال خخ کړے وو۔ او دا ددے خبرے دلیل دے چه الله تعالیٰ د خپل نیك بندګانو ډیرو پشتونو پورے د اولادو حفاظت کوی۔ کوم عوام خلك چه د علماؤ عزت کوی الله تعالیٰ ئے په بچو کښې علماء پیدا کوی، او کوم خلك چه د علماؤ احترام نهٔ کوی الله تعالیٰ ئے په بچو کښې علماء نهٔ راولی۔
**وَمَا فَعَلْتُهٗ عَنْ اَمْرِیْ** : یعنی دا څه چه ما کړیدی د الله په حکم سره مے کړیدی، په خپلے رائے او خوښے سره مے نهٔ دی کړی، نو معلومه شوه چه پدے باندے بل څوك نشی قیاس کیدے چه څوك د ظاهر د شریعت خلاف وکړی پدے بهانه چه پدے کښې فائده ده۔
**حکمة** : اول کښې ئے (فَاَرَدْتُّ) خان ته نسبت وکړو۔ ځکه چه هغه کار په ظاهره کښې خالص عیب وو نو خان ته نسبت مناسب دے، او دویم کښې مِنْ وجه فائده ده او مِنْ وجه نقصان، پدے وجه ئے (فَاَرَدْنَا) دواړو ته نسبت وکړو۔ او د دیوال جوړول سراسر خیر دے نو دلته ئے الله ته نسبت وکړو (فَاَرَادَ رَبُّكَ)۔
**ذٰلِكَ تَاْوِیْلُ** : تا چه زما کومے خبرے نهٔ شوے برداشت کولے نو د هغے همدا تاویل (او حقیقت) دے۔
**لَمْ تَسْطِعْ** : پدے کښې ئے ادغام وکړو ځکه چه د خبرے په آخر کښې آسانی پکار ده، نهٔ تشدد، او په ادغام کښې هم آسانی وی۔

| وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِی الْقَرْنَيْنِ قُلْ سَاَتْلُوْ |
|---|
| او تپوس کوی دوی ستا نه په باره د ذو القرنین کښې، اُووایه! زر دے چه بیان به کړم |
| عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا ﴿۸۳﴾ |
| په تاسو باندے د هغه نه څه خبر (د نصیحت)۔ |

**تفسیر** : پدے کښې د یهودیانو او د مشرکانو د دریم تپوس جواب ذکر کیږی چه هغه په باره د ذو القرنین کښې وو۔ او دا واقعه د ډیرو غرضونو دپاره ذکر کیږی
(۱) یو دا چه مشرانو له پکار دی چه د خپل رعیت خدمت وکړی مګر مشرکان راولګیدل خپل قوم ئے اُور ته بوتلل، د هلاکت کندے ته ئے ګوزار کړل۔

(۲)– ذو القرنین خو د آخرت منونکے وو ﴿فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ﴾ او تاسو اے مشرکانو ! آخرت نهٔ منئ۔ تپوس د هغه چا په باره کښې کوئ چه ستاسو نه په عقیده کښې خلاف دے۔

(۳) ذو القرنین د دین د نشر واشاعت او دعوت دپاره سفر او هجرت کړیدے۔ او په دے واقعه کښې د الله تعالیٰ ناشنا قدرتونه ښکاره کیږی۔

(٤) ایمان او عمل صالح سره دنیا او آخرت دواړه برابریږی او که چا کښې ایمان نهٔ وی نو ذو القرنین ورته سزا ورکړیده۔

## ذو القرنین څوك وو ؟

ددے په باره کښې د مفسرینو او مؤرخینو ډیر اقوال دی :

یو قول دا دے چه دا اسکندر بن فیلقوس یونانی وو چه دهٔ تول دنیا فتح کړے وه او اسکندریه ښارئے آباد کړے وو۔ قرطبیؒ د سهیلیؒ نه نقل کړیدی چه د اسکندر په نوم دوه کسان تیر شویدی۔ یو د ابراهیم ﷺ په زمانه کښې وو چه هغهٔ د هغهٔ سره د بیت الله طواف کړے وو، او دویم اسکندر مقدونی یونانی وو چه د هغه زمانه د عیسی ﷺ نه درے سوه کاله مخکښې یادیږی۔

حافظ ابن کثیرؒ د ازرقیؒ وغیره قول نقل کړیدے چه په قرآن کریم کښې ذکر شوے ذو القرنین هغه دے چه د ابراهیم ﷺ په زمانه کښې موجود وو۔ او دهٔ نوم په روایت د ابن عباس کښې عبد الله بن الضحاك دے۔ او بعض وائی چه مصعب بن عبد الله دے۔

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په خپل کتاب «الرد علی المنطقیین» کښې لیکلی دی چه اسکندر بن فیلبس یونانی هغه نهٔ دے د کوم نوم چه په قرآن کریم کښې ذو القرنین ذکر شویدے، ځکه چه دا مشرك وو، او دهٔ وزیر ارسطو وو، او د هغه تول قوم مشرکان وو۔

او ذو القرنین د الله نیك او مومن او موحد بنده وو، او د هغه زمانه ډیره مخکښې ده۔ (او دهٔ بادشاهی هم په عراق باندے وه بیائے توله دنیا لاندے کړے وه)

او دغه شان خبره حافظ ابن القیم رحمه الله په «اغاثة اللهفان» کښې هم ذکر کړیده او وئیلی ئے دی چه د دواړو ترمینځ د ډیرو صدو فرق دے، او د دواړو په دینونو کښې هم ډیر زیات تباین او جدائی وه۔ ذو القرنین د الله یو نیك صالح او موحد بنده وو او تول ژوند ئے د بت پرستو په خلاف جنګ کولو، او ددے مقصد دپاره د زمکے د مشرق او مغرب کنارو ته

رسیدلے وو۔ دهٔ د یاجوج او ماجوج د بندولو دپاره دیوال جوړ کړے وو۔
بعض خلقو دهٔ ته نبی وئیلے دے۔ (لکه فخر الدین الرازیؒ او حافظ ابن حجرؒ وئیلی دی چه دا د عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ نه هم نقل شویدی (فتح الباری ٣٨٣/٦)
(لیکن صحیح دا ده چه نبی نهٔ دے لکه دا د علی بن ابی طالب ﷺ نه نقل شویدی) او اسکندر مَقْدُونی مشرك وو او د بتانو عبادت بـه ئے کولو او ددهٔ د مملکت خلك هم مشرکان وو۔ آه۔
علامه ابن عاشورؒ په خپل تفسیر کښې دا ذکر کړیدی چه دا د چین د بادشاهانو نه یو بادشاه وو او د عیسیٰ ﷺ د زمانے نه (٢٤٧) کاله مخکښې تیر شویدے او د اسکندر مقدونی نه یو صدئ روستو راغلے دے، او ددهٔ نوم (تسینشی هوانقتی) یا (تُسِیْن شِی هُوَانْقِ تِیْ) دے او په دغه مخکنو اقوال ئے رد کړیدے۔ او وئیلی ئے دی چه دهٔ د مغول او د چین د خلکو ترمینځ دیوال وهلے دے لکه په کتابونو د جغرافیا او تاریخ کښې په لوی دیوال مشهور دے۔ آه۔ لیکن دا قول هم ضعیف دے۔

## ذو القرنین ورته ولے وائی؟

دهٔ ته ذو القرنین پدے وجه وئیلے شی چه دا د فارس او روم دواړو بادشاه وو، ❁ یا پدے وجه چه ددهٔ د سر په ویښتو کښې دوه چوټئ وے، ❁ یا پدے وجه چه دهٔ په مشرق او مغرب باندے حکمرانی کړے وه۔ ❁ یا ددهٔ په تاج کښې دوه ښکرے وے۔ ❁ یا پدے وجه چه ددهٔ په زمانه کښې د خلکو دوه پیړئ تیرے شوے او دے ژوندے وو۔ ❁ یا پدے وجه چه د نمر ځای د راختلو او ځای د ډوبیدو ته رسیدلے وو۔ ❁ یا پدے وجه چه دے د نسب په اعتبار سره د مور او پلار دواړو د طرف نه ډیر شرافت او اُوچت نسب والا وو۔ او داسے نور وجوهات تفسیر قرطبیؒ وغیره لیکلی دی۔
سَأَتْلُوا عَلَيْكُم مِّنْهُ ذِكْرًا: یعنی زر دے چه زهٔ به تاسو ته ولولم ددهٔ نه څه خبر چه په هغے کښې نصیحت دے۔ (اَیْ مَا بِهِ التَّذَكُّرُ) یعنی چه په هغے سره نصیحت حاصلیږی۔
ابن عاشورؒ وائی چه د ذو القرنین قصے ته ئے تلاوت او ذکر وویلو پدے کښې اشاره ده چه ددهٔ د خبرونو نه هغه ذکر کیږی چه په هغے سره نصیحت حاصلیږی او هسے قصه نهٔ ده۔ او پدے کښې اشاره ده چه ددهٔ احوال او اخبار ډیر دی خو دغه تپوس کونکو دپاره بعض احوال مفید دی چه هغوی پکښې فکر وکړی او نصیحت ترے واخلی۔ (التحریر والتنویر)

مِّنْهُ : (اَیْ مِنْ خَبَرِهٖ) یعنی د هغه د بعض خبرونو نه۔
۲– ذِکْرًا: (اَیْ خَبَرًا) څه بیان او خبر۔ (فتح البیان)

| إِنَّا مَكَّنَّا لَهُ فِي الْأَرْضِ وَآتَيْنَاهُ مِنْ كُلِّ |
|---|
| یقیناً مونږ طاقت ورکړے وو هغهٔ ته په زمکه کښې او ورکړے وو مونږ هغهٔ ته د هر |
| شَيْءٍ سَبَبًا ﴿۸۴﴾ فَأَتْبَعَ سَبَبًا ﴿۸۵﴾ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ |
| شی نه سامان د ضرورت۔ نو روان شو په لاره۔ ترڅو چه کله اُورسیدو ځائے د ډوبیدو |
| الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَوَجَدَ عِنْدَهَا |
| د نمر ته وې مونډلو هغه چه ډوبیدو په دریاب تور کښې او وې مونډو د هغې سره |
| قَوْمًا قُلْنَا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِمَّا أَنْ تُعَذِّبَ وَإِمَّا أَنْ تَتَّخِذَ |
| یو قوم لره، اُووئیل مونږ اے ذو القرنین ! یا عذاب ورکړه دوی ته او یا اُونیسه |
| فِيهِمْ حُسْنًا ﴿۸۶﴾ قَالَ أَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُ |
| په دوی کښې ښه لاره۔ اُووئیل هغهٔ چا چه ظلم وکړو نو زردے چه عذب به ورکړو هغهٔ ته |
| ثُمَّ يُرَدُّ إِلَىٰ رَبِّهِ فَيُعَذِّبُهُ |
| (په دنیا کښې) بیا به واپس کړے شی رب خپل ته نو عذاب به ورکړی هغهٔ ته |
| عَذَابًا نُكْرًا ﴿۸۷﴾ وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا |
| عذاب ناشنا۔ او هر چه هغه څوك دی چه ایمان ئے راوړو او عمل ئے وکړو نیك |
| فَلَهُ جَزَاءً الْحُسْنَىٰ وَسَنَقُولُ لَهُ مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا ﴿۸۸﴾ |
| نو هغه لره به په بدله کښې جنت وی او زردے چه وایو به هغهٔ ته د خپل کار نه آسانی۔ |

**تفسیر** : دلته نه د هغه خبرو بیان شروع دے چه الله د ذو القرنین په باره کښې رسول الله ﷺ ته د وحی په ذریعه خودلی وے۔ الله تعالیٰ هغهٔ ته فوجی طاقت، مال او دولت، فکر او نظر، اولوئی شهرت او دبدبه ورکړے وه، او د هر شی د حاصلولو ذریعه ئے ورکړے وه، یعنی علم، طاقت، آلات او اسلحه او نور تول وسائل ئے هغه ته مهیا (آسان، تیان) کړی وو، او

ددې تمامو وسائلو او ذرائعو په استعمالولو سره د مشرق او مغرب انتهاء ته رسیدلے وو۔
مَكَّنَّا لَهُ فِي الْأَرْضِ: مونږ طاقت ورکړے وو هغه ته۔
سَبَبًا: سبب په اصل کښې پرې ته وئیلے شي، دلته ترې (یو شي ته رسیدونکے وسیله) مراد ده۔ یعنې سامان۔ ددې یو مصداق دے، ۱- تَعْلِيْمُ الْأَلْسِنَةِ۔ چه په مختلفو ژبو پوهه وو۔
۲- [أَيْ عِلْمًا يَتَسَبَّبُ بِهِ إِلَى كُلِّ مَا يُرِيْدُ]۔ داسې علمونه وو چه د هغې په ذریعه به ئې خپل مقصد ته ځان رسولو۔
فَأَتْبَعَ سَبَبًا: ۱- دلته د سبب نه مراد لاره ده، په طرف د مغرب۔
۲- یا روان شو د خپل علم پسې۔ یعنې د خپل علم مطابق۔ او همدا ظاهره معنیٰ ده۔
اَتْبَعَ او دتَبِعَ فرق دا دے چه اتبع دے ته وائي چه یو شي پسې روان شي او ورپورې پیوسته شي۔ اوتبع دے ته وائي چه ورپورې پیوسته نشي۔ (اصمعیؒ)
لیکن حق دا ده چه تَبِعَ، اوإِتَّبَعَ او أَتْبَعَ درې واړه لغات په یوه معنیٰ دي یعنې روانیدل۔
د مغرب په انتهاء کښې دوی اُولیدل چه نمر په یوه داسې چینه کښې پریوزي چه د هغې خټه توره او ګرمه وه۔ مفسرینو لیکلي دي چه ددې چینې نه مراد بحر اټلانټک (بحر محیط) دے چه ذو القرنین ددې غاړې ته رسیدلے وو او هلته بند شوے وو او هلته د نمر د پریوتو په وخت داسې معلومیده چه دا په دریاب کښې ډوبیږي ورنه نمر خو په څلورم آسمان کښې دے۔
شوکانيؒ لیکلي دي چه هیڅ وړاندې خبره نۀ ده چه ذو القرنین ددې دریاب نه پورې وتلے وي، او د زمکې آخري سر ته رسیدلے وي چرته چه نمر ډوبیدو، هلته دۀ ته یو قوم ملاؤ شو چه په هغوي باندې الله تعالیٰ دا غالب او حاکم کړو، هغوي ته دۀ د دینِ ابراهیمي دعوت ورکړو، نو څه خلقو قبول کړو او څه خلقو انکار وکړو۔ الله اُووئیل چه اے ذو القرنین! ستا خوښه ده که غواړې چه انکار کونکو ته عذاب ورکړې او که غواړې نو د معافي نه کار واخله او حق طرف ته دوی رابله۔ او الله تعالیٰ دۀ ته دا خبره د الهام په ذریعه خودلے وه۔
فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ: ددې نه مراد د خټو والا توره چینه یعنې بحر اسود دے۔ او د نمر د غائبیدو معنیٰ دا نۀ ده چه نمر په چینه کښې پریوتو څکه چه نمر خو بره په آسمان کښې په خپل مدار کښې روان دے، لاندې نۀ راکوزیږي، خو الله تعالیٰ داسې تعبیر وکړو (وَجَدَهَا تَغْرُبُ) یعنې ذو القرنین داسې وموندله او دۀ ته داسې ښکاره کیده چه نمر په یو چینه کښې ډوبیږي لکه د دریاب غاړې له یو تن ورشي او د نمر پریوتو وخت وي نو هغۀ ته داسې

ښکاری چه نمر په دریاب کښې ډوب شو۔ (بیضاویؒ)
لیکن امام کرخیؒ وئیلی دی چه الله تعالیٰ پدې قادر دے چه د نمر ککوړے (جثه) وړه کړی او چینه فراخه کړی پداسے شان سره چه د نمر سترګه په چینه کښې ډوبه شی اګرکه زمونږ عقلونه به دے ته نهٔ ور رسیږی۔ او دارنګه د انبیاء علیهم السلام او د حکماؤ نه دا بعیده نهٔ ده چه د هغوی دپاره دا حالت واقع شی۔
زهٔ وایم چه همدا خبره صحیح معلومیږی ځکه چه که تاسو د انټرنیټ ویډیو وګورئ چه په هغے کښې نمر د ختو په چینه کښې داسے ډوبیږی لکه چه د اُوچت ځای نه تیل خلك په یوه کنده کښې اچوی او د هغې نه براسونه پورته کیږی۔ او دا هغه حقائق دی چه قرآن بیان کړیدی او اُوس راښکاره کیږی۔ فاعتبروا یا اولی الابصار۔ و سبحان القادر العلیم۔
حَمِئَةٍ: تورے ختے ته وائی۔
قُلْنَا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ: دا ورته په طریقه د الهام وئیل شویدی، یا د هغه وخت د نبی په واسطه سره ورسره خبرے شویدی۔
إِمَّا أَنْ تُعَذِّبَ: زمونږ په اسلام کښې هم د قیدی په باره کښې داسے اختیار دے چه وژنې ئے اوکه همداسے ئے پریدی او که فدیه ترے اخلی۔
تَتَّخِذَ فِيهِمْ حُسْنًا: ۱– حسنًا نه مراد احسانی پریخودل، یا فدیه اخستو سره پریخودل دي۔ ۲– یا ددے نه مراد دوی حق ته دعوت کول دی او د شریعت تعلیم ورکول دی۔
أَمَّا مَنْ ظَلَمَ: أَيْ أَصَرَّ عَلَى كُفْرِهٖ وَشِرْكِهٖ۔ چا چه ظلم وکړو یعنی په خپل کفر او شرك ئے همیشوالے وکړو۔ او په دنیا کښې ئے فساد خوړولو او خلکو ته ئے د ګمراهئ دعوت ورکولو نو هغهٔ ته به مونږ د قید او بند او د قتل سزا ورکوو۔ یعنی په شرك سره به په دنیا کښې مونږ عذاب ورکوو او په آخرت کښې به الله تعالیٰ عذاب ورکوی۔
فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُ: کښې اشاره ده چه دهٔ به خلك ایمان ته رابللی نو که هغوی په کفر همیشوالے وکړی نو دے به ورته عذاب ورکوی۔
جَزَآءَ نِ الْحُسْنٰى: یعنی بدله چه ښائسته ده چه هغه جنت دے۔ (جزاء) منصوب بنا بر تمییز دے یعنی ددهٔ دپاره به جنت وی په اعتبار د بدلے سره۔ (قاله الفراءؒ)۔
وَسَنَقُوْلُ لَهٗ مِنْ اَمْرِنَا يُسْرًا: یعنی هغه ته به نن مونږ نهٔ سخته خبره کوو او نهٔ به ورته په یو داسے کار حکم کوو چه په هغه باندے ګران پریوزی۔ یعنی ایمان او عمل صالح ګران کار نهٔ دے بلکه دین آسان دے۔

| |
|---|
| ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٩﴾ حَتّٰى إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ |
| بیا روان شو په لاره (د مشرق) تردے چه کله اُورسیدو ځائے د راختلو د نمر ته |
| وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلٰى قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَلْ لَّهُمْ |
| (نو) وے موندلو هغه چه راختلو په داسے قوم چه نۀ وه ګرځولے مونږ هغوی لره |
| مِّنْ دُوْنِهَا سِتْرًا ﴿٩٠﴾ كَذٰلِكَ وَقَدْ أَحَطْنَا |
| مخے د نمر ته څه پرده۔ دغسے (کارئے د دوی سره هم اُوکړو) او یقیناً راګیر کړی وو مونږ |
| بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ﴿٩١﴾ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٩٢﴾ |
| هغه (سامانونه) چه ددۀ سره وو په علم خپل کښې۔ بیا روان شو په لاره۔ |
| حَتّٰى إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمَا |
| تردے چه کله اُورسیدو مینځ د دوه غرونو ته وے موندلو اخوا د هغے نه |
| قَوْمًا لَّا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ قَوْلًا ﴿٩٣﴾ |
| داسے قوم چه نزدے نۀ وو چه پوهه شوی وے په خبره۔ |

**تفسیر** : د مغرب انتهاء ته د رسیدو نه روستو ذو القرنین مشرق طرف ته واپسی لاره اختیار کړه او په لاره کښې چه څومره قومونه راغلل هغوی ته ئے د دین ابراهیمي دعوت ورکړو، کومو خلقو چه د هغه دعوت قبول کړو هغوی ئے په خپل حال پریخودل، او چا چه انکار وکړونو هغه ئے د ذلت اورسوائی سره مخامخ کړل، د هغوی په مال او دولت ئے قبضه وکړه، او ددے قومونو نه ئے داسے خلق د ځان سره کړل چه د هغوی په ذریعه ئے په نورو قومونو باندے په غلبے حاصلولو کښې مدد واخستو تردے پورے چه د نمر راختلو ځای یعني د مشرق انتهاء ته ورسیدو۔

هلته ئے یو داسے قوم مونده کړه چه د تمدن نه بالکل وراندے برېنډ اُوسیدل، نۀ د دوی کورونه وو او نۀ هلته څه ونه وه چه دوی د نمر د ګرمائش نه بچ کړی۔

سعید بن جبیرؒ وائی چه دا خلق سور رنګ والا، لنډی قدونو والا وو چه په غارونو کښې به وسیدل او مهیان به ئے خوړل۔

عَلٰى قَوْمٍ: ځینې وائي دا زنج قوم وو. او بعض وائي چه دا د هود علیه السلام د مؤمنانو نسل وو او د دوی د علاقې نوم (حاجیالق) یا (جابلق) وو چه په سریانئ ژبه کښې ورته (مرقسا) (یا مرقیسا) وائي او دوی یأجوج او مأجوج ته نزدې وو. (فتح البیان والقرطبي)

مِّنْ دُوْنِهَا سِتْرًا: (د نمر مخې ته پرده) ځینې وائي چه د دوی کورونه ځکه نهٔ وو چه دوی په داسې زمکه وسیدل چه هلته آبادي نهٔ ټینګیږي ځکه چه نرمه زمکه وه. او مجاهدؒ وائي چه دوی جامې هم نهٔ اغوستې، او د وحشي ځناورو په شان ژوند به ئې تیرولو.

او ابوداود الطیالسيؒ د حسن بصريؒ نه نقل کړیدي چه دوی چه کله نمر راخیژي نو اُوبو ته ننوزي، کله چه نمر پریوزي نو راوځي او د ځاروو په شان څریږي.

قتادةؒ وائي: دوی په داسې زمکه کښې وسیږي چه هغه ونه نهٔ راتوکوي نو دوی چه کله نمر راخیژي په سورنګانو کښې داخل شي، او کله چه نمر د نیمائي آسمان نه زائل شي نو دوی خپلو فصلونو ته راوځي.

ابن جریرؒ وائي چه د دوی په زمکه کښې غرونه نشته نو سورنګانو ته ځکه داخلیږي.

علامه شعراويؒ په خپل ((تفسیر الشعراوي)) کښې لیکي چه دې خلکو ته الله تعالیٰ داسې کلکه څرمن ورکړیده چه د ګرمئ او د یخنئ دواړو برداشت کولې شي، د جامو او کپړو هیڅ پرواه د دوی سره نشته، لکه بعض حیواناتو ته الله تعالیٰ داسې څرمن ورکړې وي چه په منجمده واوره کښې ژوند تیروي، او د یخنئ سره هیڅ حساسیت نهٔ لري. او ځینې مفسرینو وئیلي دي چه ذو القرنین داسې ځای ته لاړو چه هلته یوه ورځ درې میاشتې وه، یا ورځ ئې شپږ میاشتې وه نو دې د نمر د موجودیدو په وخت کښې ورغلو او څو پورې چه دې هلته موجود وو نمر نهٔ وو پریوتې او داسې ښکاري چه دا (اقصی الشمال) آخري شمالي طرف وو. (تفسیر الشعراوي ۱/۵۴۷۴)

ابن عاشورؒ وائي چه ظاهر دا ده چه ذو القرنین د الیابان (جاپان) د دریاب غاړې ته ورسیدو چه دا په حدودو د منشوریا او مشرقي کوریا کښې واقع دې. (التحریر والتنویر)

كَذٰلِكَ: یعنی ۱- كَذٰلِكَ بَلَغَ. دغه شان ورسیدو مشرق ته هم.

۲- ظاهر دا ده چه تقدیر داسې دې: (كَذٰلِكَ حَكَمَ فِيْهِمْ) دغه شان فیصله ئې وکړه د دوی په باره کښې هم کومه ئې چه د مغرب والو په باره کښې کړې وه.

وَقَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا: الله تعالیٰ ذو القرنین ته په دنیا کښې ډیر اُوچت مقام او ډیر لوئې سلطنت ورکړې وو چه د هغې څه حال مخکښې بیان شو، د هغهٔ قوت، د فوج د ډیر

والي او نور مادي او روحاني اسبابو او وسائلو صحیح اندازه صرف الله ته معلومه ده۔
خبر: په معنیٰ د علم سره دے۔ دلته الله تعالیٰ نور زیاتي حالات بیان نکړل چه ذو القرنین د دوی سره څه وکړل، نو کیدے شي چه د مخکنو خلکو په شان دعوت ئے ورکړے وي او هغوی ته ئے د ترقي اسباب برابر کړي وي۔ (شعراویؒ)
ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا: د مشرق انتهاء ته رسیدلو نه روستو ذو القرنین د مشرق او مغرب ترمینځ د شمال مغرب لاره اختیار کړه، او په تلو سره په شمال مغرب کښې داسے ځای ته اُورسیدو چه هلته دوارو طرفونو ته دوه اُوږده او اُوچت غرونه وو، او د دواړو په مابین کښې یو ځای خالي وو۔ هلته د انسانانو یو داسے جماعت وسیدو چه په هیڅ خبره نۀ پو هیدل ځکه چه د دوی ژبه عجیبه او ناشنا وه او په هغوی کښې د پو هے صلاحیت هم کم وو۔
السَّدَّیْنِ: دا دوه غرونه چرته دي؟
پدے په باره کښې د خلقو ډیر اقوال دي:
(۱) چا وئیلي دي چه دا د ارمینیا او آذربیجان په علاقه کښې دوه غرونه دي۔ (ابن عباسؓ)
(۲) چا لیکلي دي چه دا د ترکي مشرقي علاقه ده کوم ځای چه د ترکي سرحد ختمیږي۔
(۳) امام ابن حزمؒ په خپل کتاب «الملل والنحل» کښې لیکلي دي چه دا ځای د شمال په آخر سر کښې د دنیا آخرے غاړه باندے دے۔ رازيؒ لیکلي دي چه په ظاهره کښې دا ځای په شمال کښې واقع دے۔ اسکندر د دواړو غرونو ترمینځ دغه کولاو ځای بند کړے وو چه د هغے اُوږدوالے سل فرسخه (درے سوه میله) وو او دا به یاجوج او ماجوج آبادئ طرف ته د راتلو دپاره د لارے په توګه استعمالولو۔
قرآن وائي چه دا خلق د دواړو غرونو نه اخوا اُوسیدل او د دوی زمکه ډیره فراخه ده او بحر اټلانټك (یعني بحر محیط) پورے خوره شویده۔ (فتح البیان)
لَا یَکَادُوْنَ: دوی د ذو القرنین په خبره پوره نۀ پو هیدل لکه د نورو خلکو په شان یا خو ئے ژبه ناشنا وه او یا بل د دوی پو هه هم کمه وه۔

## یاجوج ماجوج چرته دي؟

پدے وخت کښې خلك د یاجوج ماجوج په باره کښې اختلاف کوي چه دا کوم ځای کښې دي؟ بعض وائي پدے وخت کښې سائنس ډیره ترقي کړیده نو دوی چا څنګه نۀ دي لیدلي؟ جواب دا دے چه دا په داسے ځای کښې وسیږي چه الله تعالیٰ خلکو ته د هغے نه علم نۀ دے

ورکړے او اوس نزدے زمانه کښې سائنسدانو لیکلی دی چه اتم براعظم اکتشاف شویدے۔ او دوی به قیامت ته نزدے راوځی۔ او ددے وجه نه هغه مفسرین خطاء شویدی چه هغوی وئیلی دی چه د دوی نه مراد تتاریان دی۔ او ابن عاشورؒ وئیلی دی چه د دوی نه مراد مغولیان او تتاریان دی چه دا ډیر مفسدان وو۔

او بعض خلك د یورپ کافر یادوی چه مفسدان دی، او بعض خلکو ددے نه مراد چینیان اخستی دی۔

ظاهر دا ده چه دا انسانان دی او په زمکه کښې دننه پټ دی او زمکه کُرَوی الشکل ده، موږه ئے په یو طرف کښې یو او دوی په بل طرف کښې، دلیل پرے دادے چه ذو القرنین ورته یو دیوال وهلے دے نو که چرته نورے لارے دوی ته کولاوے وے او دوی په ظاهری زمکه وے نو په بل طرف به راتاؤ شوی وے۔ خلك په زرګونو میلونو مزلونه کولے شی۔ ددے نه معلومیږی چه صرف یوه سوره وه چه هغه ورله ذو القرنین په دیوال سره بنده کړه۔ او د روستو آیت ﴿ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ ﴾ نه معلومیږی چه دوی الله تعالیٰ په زمکه کښې بند پریخی دی۔ او د یو اُورد حدیث نه معلومیږی چه [إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ يَحْفِرُونَ السَّدَّ كُلَّ يَوْمٍ حَتَّى إِذَا كَادُوا يَرَوْنَ شُعَاعَ الشَّمْسِ قَالَ الَّذِي عَلَيْهِمْ ارْجِعُوا فَسَتَفْتَحُونَهُ غَدًا فَيَعُودُونَ إِلَيْهِ أَشَدَّ مَا كَانَ حَتَّى إِذَا بَلَغَتْ مُدَّتُهُمْ] یاجوج او ماجوج په زمکه کښې فساد کوونکی دی، دوی هره ورځ دغه دیوال وکنی تردے چه کله نزدے شی نو د نمر شعلے وینی، نو کوم مشر چه پرے مقرر دے هغه ووائی چه اوس واپس شئ صبا له به ئے کولاؤ کړئ، نو دوی چه صبا له دیوال خواله راشی نو هغه د مخکښې نه هم زیات سخت شوے وی تردے چه کله د دوی موده پوره شی او الله وغواړی چه دوی په خلکو باندے راولیږی نو دوی به دیوال وکنی تردے چه کله نزدے شی چه د نمر شعلے وینی مشر به ورته ووائی چه صبا له به ئے کولاؤ کړئ ان شاء الله۔ نو صبا له چه راشی په همغه حال به ئے کولاؤ وینی۔ الی آخر الحدیث۔ (احمد: (١٠٦٤٠)، ترمذی، ابن ماجه (٤٠٨٠)، ابن حبان، حاکم او بیهقی فی البعث عن ابی هریرة ﷺ – السلسلة الصحیحة ٤/٣١٣ رقم: (١٧٣٥)

یعنی دوی نه اوس ان شاء الله هیریږی او بیا به د ان شاء الله د وئیلو په برکت سره راکولاویږی۔ په دنیا کښې دجال موجود دے چا ئے اوسه پورے ځای بالضبط نهٔ دے لیدلے، شوك وائی برمودا تکون کښې دے۔ مګر بالضبط معلومات نشته۔ نو دغه شان یاجوج ماجوج هم دی۔

قَالُوْا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوْجَ وَمَأْجُوْجَ مُفْسِدُوْنَ

اُووئیل دوی (په ذریعه د ترجمان) اے ذو القرنین ! یقیناً یاجوج او ماجوج فسادونه کوی

فِي الْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلٰى أَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا

په دے زمکه کښې نو آیا اُوکرخوو مونږ تا لره خرچه چه جوړ کړے ته په مینځ زمونږ

وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿٩٤﴾ قَالَ مَا مَكَّنِّي

او په مینځ د دوی کښې یو دیوال۔ اُووئیل هغهٔ، هغه چه طاقت راکړیدے ما ته

فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُوْنِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ

په هغے کښې رب زما غوره دے، نو مدد اُوکړئ ما سره په طاقت (د سړو) چه اُوکرځوم

بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿٩٥﴾ آتُوْنِي زُبَرَ الْحَدِيْدِ حَتّٰى إِذَا

په مینځ ستاسو او په مینځ د دوی کښې دیوال۔ راوړئ ما ته ټوټے د اُوسپنے تر دے چه کله

سَاوٰى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ انْفُخُوْا حَتّٰى إِذَا

ئے برابر کړو په مینځ د سرونو د غرونو کښې، وے وئیل اُوپو کئ (دے ته بنئ) تر دے چه کله

جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُوْنِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴿٩٦﴾

ئے اُوګرځولو اُور۔ وے وئیل راوړئ ما ته چه راواړوم په دے باندے تانبه (ویلی کړے

فَمَا اسْطَاعُوْا أَنْ يَّظْهَرُوْهُ وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهُ

شوے)۔نو طاقت نهٔ لری دوی چه راوخیژی پدے باندے او طاقت نهٔ لری هغے لره

نَقْبًا ﴿٩٧﴾ قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ مِّنْ رَّبِّي فَإِذَا

د سوری کولو۔ اُووئیل هغه دا خاص رحمت دے د طرف د رب زما نه پس هرکله چه

جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ﴿٩٨﴾

راشی وعده د رب زما وبه ګرځوی دے لره ذره ذره او ده وعده د رب زما حقه (یقینی)۔

**تفسیر** : دے خلقو ذو القرنین ته ووئیل چه د دواړو غرونو نه اخوا د یاجوج ماجوج قوم

وسیږي، دوی ته چه کله هم موقعه ملاویږي، د دواړو غرونو په مینځنئ لارے سره مونږ طرف ته راځي او قتل او لوټ مار کوي او د لوټ مار نه روستو واپس ځي. نو آیا تهٔ به زمونږ نه په عوض اخستو سره زمونږ او د دوی ترمینځ کوم مانع او رکاوټ جوړ کړے؟

ذو القرنین په اثبات کښې جواب ورکړو او وے وئیل چه ما ته ستاسو د هیڅ عوض ضرورت نشته دے. الله چه کوم مال او دولت او ملك او سلطنت ما ته راکړیدے هغه د هغه عوض نه ډیر غوره دے کوم چه تاسو ما ته راکول غواړئ. تاسو صرف په مزدورانو، صنعت کارو او ضروری آلاتو سره زما مدد وکړئ، دے دپاره چه زهٔ ستاسو او د دوی ترمینځ یو مضبوط دیوال ودروم، یعني دا ډره بنده کړم په کوم طرف چه تاسو ته دا خلق راځي.

ما ته د اُوسپنے ټکړے راکړئ. کله ئے چه د دواړو غرونو په مینځنی ځای کښې د اُوسپنے د خختو نه دوه برابر دیوالونه جوړ کړل نو خلقو ته ئے ووئیل چه اُوس د دواړو دیوالونو په مینځ کښې اُور اُولګوئ تردے پورے چه اُوسپنه دومره ګرمه شي چه اُور ترے جوړ شي.

کله چه اُوسپنے نه اُور جوړ شو نو ذو القرنین دوی ته ووئیل چه اُوس ما ته ویلی کړے شوے تانبه راکړئ دے دپاره چه دا په ګرمه اُوسپنه باندے واړوم او دا د اُوسپنے سره ونخلي.

دا رکاوټ دومره اُوږد او خوئے وو چه دے نه روستو د یاجوج ماجوج راتلل بند شو، او هغه دومره پیړ او سخت وو چه د دوی دپاره په هغے کښې سورے کول ممکن نهٔ شو.

ذو القرنین اووئیل چه دا دیوال ددے ځای اُوسیدونکو دپاره زما د رب رحمت دے چه اُوس به یاجوج ماجوج پدے لاره سره نهٔ راځي چه ظلم او زیاتے وکړي. لیکن کله چه قیامت ته نزدے د یاجوج او ماجوج د راوتلو وخت راشي نو الله تعالیٰ به دا دیوال ذره ذره کړي او زمکه به برابره شي، او د مخکښې په شان لاره به جوړه شي. د الله وعده حقه ده چه قیامت راتلونکے دے او انسانانو ته به د هغوی د اعمالو مطابق هغه جزا او سزا ورکوي.

## یاجوج ماجوج څوك دی؟ .

اکثر مفسرین وائي چه دا عجمی نومونه دی ددے وجه نه دا غیر منصرف استعمالیږي، او بعض وائي چه دا عربي دی، جوړ دی د (أجّ) نه او دا منډے وهلو ته وائي او تَأَجُّجْ د اُور لمبه کیدو ته وئیلے شي. یا دا د (أَوْجَةٌ) نه دی، اختلاط (ګډون) یا سختے ګرمئ ته وائي.

یا د (أَوَج) نه دی په معنیٰ د تیزے منډے سره. د دوی د نسب په باره کښې اختلاف دے ځینی وائي چه دوی د یافث بن نوح علیه السلام اولاد دے، او ترکیان او صقالبه د دوی

نسبيان دی، او په دوی کښې چينيان هم داخل دی۔
بعض وائی چه ياجوج د ترکو نه او ماجوج د جِبل او ديلم نه دی۔ بعض خلقو د دوی لنډ قد او بعضو اُوږد قد وئيلے دے۔ بعض محققينو وئيلی دی چه په داغستان علاقه کښې (چه دا د روس تابع علاقه ده) د کوه قاف (قاف غر) نه شا ته دوه قبيلے اُوسيدلے چه د هغے نومونه ((آقوق)) او ((ماقوق)) وو۔ عربو چه عربئ کښې استعمال کړل نو ياجوج او ماجوج ئے ترے جوړ کړل۔ ډيرو نورو قبيلو به دوی لره پيژندل او د دوی ذکر د اهل کتابو په کتابونو کښې راغلے دے۔ ددے دوارو قبيلو د نسل د ډير والی نه په شمال او مشرق کښې قومونه موجود شو او د روس او د ايشيا په ممالکو کښې خوارهٔ شو۔ (القاسمی وفتح البيان)
بهر حال ياجوج او ماجوج چه هر څوك وی، دومره خبره خو د صحيح احاديثو نه ثابته شويده چه قيامت ته نزدے به د ذو القرنين جوړ شوے ديوال ذره ذره کړے شی، او د ياجوج او ماجوج فوج به راروان شی۔ امام احمدؒ، ترمذیؒ او حاکمؒ وغيره د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت کړيدے او محدث البانی رحمه الله ددے تصحيح کړيده چه دا خلق به د ټولو کوهيانو اُوبه اُوڅکی او خلق به د دوی د يرے نه په قلعه ګانو کښې بند شی۔ خپل غشی به آسمان طرف ته اُوولی نو هغه به د وينو نه ککړ دوی ته واپس راځی، نو دوی به وائی چه مونږ زمکے والا مغلوبه کړل او د آسمان والو نه زيات اُوچتے مرتبے والا شو۔ نو الله تعالیٰ به د دوی په ترخونو کښې يوه بيماری پيدا کړی چه د هغے په وجه به ټول په ټوله هلاك شی۔ رسول الله ﷺ فرمائی: ((قسم په الله! چه د هغه په لاس کښې د محمد ساه ده چه د زمکے چارپيان به ددوی غوښے اُوخوری او چاق به پرے شی او د الله شکر به ادا کوی))۔ (ترمذی فی التفسير ۱۸، باب ۵، وابن ماجه فی الفتن باب ۳۳ واحمد ۲/۵۱۰،۵۱۱ واسناده صحيح- البانی)
او ياجوج ماجوج ټول کافران دی ځکه چه رسول الله ﷺ د اسراء په شپه دوی ته د ايمان دعوت ورکړے وو ليکن دوی اجابت ونکړو۔ (فتح البيان)
بِقُوَّةٍ: د قوت نه مراد طاقت د سړو او د نفرئ دے۔ يا آلات د جوړولو يا مجموعه۔
رَدْمًا: ردم هغه ديوال ته وائی چه د سد نه زيات مضبوط وی ځکه چه ردم په اصل کښې يو کاڼړے په بل کاڼړی جوخت کيخودل دی۔
الصَّدَفَيْنِ: دا د غر دوارو طرفونو ته وئيلے شی۔ ابو عبيدهٔ وائی کله لوی او اُوچتے آبادئ ته هم صدف وئيلے شی۔
زُبَرَ: جمع د زُبْرَةٌ ده لکه د غُرْفَةٌ پشان، ټکړو ته وئيلے شی۔ مفسرين ليکی چه ددے ديوال

مینځ کښې ئې لرګی او سکاره بند کړل او دغه تکړے د وسپنے پکښې کیخودے او بیا ئې ورته په بنځ سره پوکی وکړل نو اُور پکښې بل شو او ټول دیوال تلك سور انګار شو۔

دا دیوال چا دیوارِ چین (د چین دیوال) ګڼړلے دے چه ددے اُوږدوالے درے زره درے سوه (۳۳۰۰) کیلو میټره دے۔ او دا دیوال د بحر اصفر نه شروع دے چه د چین د بیکنګ (دار الخلافة) مشرقی بنار نه شروع دے او مخامخ په (مکدن) بنار ورغلے دے۔ او دا دیوال د کانړو او پخو خښتو نه او بعض ځای کښې د خاورو نه جوړ دے۔ (ابن عاشورؒ)

لیکن پدے بانده د ذو القرنین د دیوال ټول صفات نۀ تطبیق کیږی۔ بعض وائی دا په روس علاقه کښې دے او هغه د اُوسپنے دے لیکن په هغے کښې هم دغه ټول صفات نۀ ښکاره کیږی کوم چه په آیت او حدیث کښې راغلی دی۔

اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا : قطر تانبے ته وائی۔ او دا د ذو القرنین کرامت دے ورنه داسے ګرم دیوال ته انسان په ډیرو میلونو خوا ته نشی ورتللے د وجه د سخت ګرمائش نه۔ یا به ورسره داسے اسباب او آلات وو چه په هغے سره به ئې دغه کارونه کول لکه چه مخکښې الله تعالیٰ د هغه دغه طاقتونه اجمالاً ذکر کړل۔

فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي: اُوس ذو القرنین د خلکو ذهن جوړوی او د آخرت دعوت ورکوی او هغے ته ئې متوجه کوی چه داسے چرته فخر ونکړئ چه مونږ داسے دیوال جوړ کړو چه هیڅوك دا نشی ماتولے، ددے طاقت دپاسه د الله تعالیٰ طاقت دے چه هغے ته هیڅ طاقت نشی ټینګیدے۔ نو د دغه ورځے دپاره په ایمان او عمل صالح سره تیاری پکار ده۔

او ددے نه دا نۀ معلومیږی چه دا دیوال به د قیامت نه مخکښې نۀ ماتیږی، نو کیدے شی چه اُوس د زلزلو او براکینو په وجه ختم شوے وی بلکه مطلب دا دے چه دا ګمان ونکړئ چه دا به نۀ ماتیږی بلکه ماتیدل ئې شته که اُوس مات نشو نو قیامت راتلونکے دے د الله په حکم به هر شے او هر غر فناه کیږی نو دا دیوال به هم ذره ذره شی۔ (قاسمیؒ)

| وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ وَنُفِخَ |
|---|
| او پرېږدو به مونږ بعض د دوی په دغه ورځ چه چپے به وهی په بعضو کښې او پوکے به وکړے شی |
| فِي الصُّورِ فَجَمَعْنَاهُمْ جَمْعًا ﴿٩٩﴾ وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ |
| په شپیلئ کښې نو راجمع به کړو دوی لره په راجمع کولو۔ او پیش به کړو جهنم |

| يَوْمَئِذٍ لِلْكَافِرِينَ عَرْضًا ﴿١٠٠﴾ الَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ |
| --- |
| په دغه ورځ به کافرانو باندې په پيش کولو سره. هغه کسان دي چه وې سترګې د دوی |
| فِي غِطَآءٍ عَنْ ذِكْرِي وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا ﴿١٠١﴾ |
| په پرده کښې د ياداشت زما نه او وو دوی چه طاقت ئې نهٔ لرلو د اوريدو (د حق). |

**تفسير**: دا د الله تعالىٰ قول دے، يعنې د دجال د مرګ نه روستو چه کله ياجوج اوماجوج راوځي نو د سختے ګنړے په وجه به يو بل سره ملاويږي، او هر طرف ته به منډے تړړے وهي او شوکے او ظلم او زياتے به کوي. صاحب د ((فتح البيان)) ليکلي دي چه په هغه وخت کښې به عيسىٰ عليه السلام ځان سره مؤمنان واخلي او د طور غر طرف ته به منډه کړي، بيا به الله تعالىٰ د دوی په پوزو کښې يو چينجے پيدا کړي چه ټول په توله به مړهٔ شي، او مکے او مدينے او بيت المقدس ته به داخل نهٔ شي او نهٔ به هغه خلقو ته اُورسيږي کوم چه د الله په ذکر کښې مشغول وي. او دوی به چپے ځکه وهي چه دوی د نفرئ په اعتبار سره ډير زيات دي. مفسرينو ليکلي دي چه د دوی د هريو تن زر کسان اولاد پيدا کيږي. او دا ياجوج ماجوج راوتل د قيامت لويه نښه ده او متواترو صحيح احاديثو کښې راغلے ده.

(۲) يا يَمُوجُ بَعْضُهُمْ نه مراد عام مخلوقات دي، او مطلب دادے چه د قيامت په ورځ به پيريان اوانسانان به په يو بل کښې ګډوډ شي.

وَنُفِخَ فِي الصُّورِ : او اسرافيل عليه السلام به په صُور (شپيلئ) کښې پوکے ووهي. مفسرينو ليکلي دي چه دا به دويم صور وي چه ددے نه روستو به الله تعالىٰ تمام مخلوقات دوباره راژوندي کوي او ميدان محشر ته به ئې د حساب او جزا دپاره راجمع کوي.

وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِلْكَافِرِينَ عَرْضًا : په هغه ورځ به الله تعالىٰ جهنم د کافرانو مخے ته راولي او دوی به ئې ويني او د هغه د غصے او قهر نه ډك آواز به واوري نو په سخت غم او ستومانئ کښې به واقع شي. حديث کښې دي : چه جهنم د درياب لاندے دے الله تعالىٰ به ورپسے ملائك وليږي چه په جهنم کښې به ئې اويا زره زنځيرونه اچولي وي او د هر زنځير سره به اويا زره ملائك وي ګويا که نهه څلويښت لاکه (۴۹۰۰۰۰) ملائك به ئې د قيامت ميدان ته راکاږي او د کافرانو مخے ته به ئې کړي.

(صحيح مسلم عن ابن مسعود رضي الله عنه رقم (۷۳٤۳)

الَّذِیْنَ کَانَتْ أَعْیُنُهُمْ: دا به هغه کافران وی چه په دنیا کښې ئې په سترګو باندې پرده پرته وه او د آوریدو قوت ئې بالکل ختم شوے وو، په دے وجه نهٔ په دے دلائلو او براهینو سره دوی ته څه فائده اُورسیده کوم چه د الله په وحدانیت باندې دلالت کوی، او نهٔ دوی ته د قرآن د تلاوت او د هغهٔ په آیتونو کښې د سوچ او فکر کولو توفیق ورکړے شو، او د دوی طاقت د آوریدو داسے ختم شوے وو چه د حق او د هدایت د خبرے د آوریدو نه بالکل محروم شوی وو۔

أَعْیُنُهُمْ: ۱-د سترګو نه مراد ظاهری سترګے دی، او په دے باندې هم د الله تعالیٰ ذکر کیږی چه آسمان او زمکے او کائناتو ته او خپل ځان ته فکر وکړی او بیا خپل رب یاد کړی۔

۲-د زړونو سترګے هم مراد کیدے شی۔

لَا یَسْتَطِیْعُوْنَ سَمْعًا : ۱-لِشِدَّةِ الْعَدَاوَةِ ـ د آوریدو طاقت ئې نهٔ لرلو د وجه د سختے دشمنئ او ضد نه۔ ۲- أَوْ لِغَلَبَةِ الشَّقَاوَةِ عَلَیْهِمْ. یا په دوی باندې بد بختی غالبه شویده۔

| أَفَحَسِبَ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا أَنْ یَّتَّخِذُوْا عِبَادِیْ مِنْ دُوْنِیْ أَوْلِیَآءَ إِنَّا أَعْتَدْنَا |
|---|
| آیا ګمان کوی کافران چه اُونیسی بندګان زما سوا زما نه دوستان یقیناً مونږ تیار کړیدے |
| جَهَنَّمَ لِلْکَافِرِیْنَ نُزُلًا ﴿۱۰۲﴾ قُلْ هَلْ نُنَبِّئُکُمْ بِالْأَخْسَرِیْنَ |
| جهنم کافرانو لره میلمستیا۔ اُووایه آیا خبر درکړو تاسو ته په هغه کسانو چه ډیر تاوانیان دی |
| أَعْمَالًا ﴿۱۰۳﴾ الَّذِیْنَ ضَلَّ سَعْیُهُمْ فِی الْحَیَاةِ الدُّنْیَا |
| په اعتبار د عملونو سره۔ هغه کسان دی چه برباد دے کوشش د دوی په ژوند دنیوی کښې |
| وَهُمْ یَحْسَبُوْنَ أَنَّهُمْ یُحْسِنُوْنَ صُنْعًا ﴿۱۰۴﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا |
| او دوی ګمان کوی چه یقیناً دوی ښائسته کوی عمل لره۔ دا هغه کسان دی چه کفر ئې کړیدے |
| بِآیَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهٖ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِیْمُ |
| په آیتونو د رب د دوی او په ملاقات د هغهٔ نو برباد دی عملونه د دوی نو وبه نهٔ دروو |
| لَهُمْ یَوْمَ الْقِیَامَةِ وَزْنًا ﴿۱۰۵﴾ ذٰلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ |
| د دوی دپاره په ورځ د قیامت هیڅ تول۔ دا (چه ذکر شو) بدله د دوی جهنم دے |

بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا ﴿١٠٦﴾

په سبب د هغې چه کفرئې کړیدے او نیولی ئې دی آیتونه زما او رسولان زما په توقو سره

**تفسیر:** **مضمون:**

دا آیت متعلق دے د (۳) آیت سره ﴿وَيُنذِرَ الَّذِينَ قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا﴾۔ یعنی قرآن کریم کومو خلکو ته یره ورکوی؟ دا هغه خلك دی چه د الله سره شریکان جوړوی۔ داسے خلکو ته الله تعالیٰ پدے آیتونو کښ خلور کرته کافران وئیلی دی۔

دویم دا چه د دوی اعمال برباد دی او سره د عملونو نه به ئې الله تعالیٰ اُور ته بوځی۔ او پدے آیتونو کښ الله تعالیٰ د عمل دوه قسمونه بیانوی، یو عمل مقبول او بل عمل مردود، او دے ته شرائط د عمل صالح هم وئیلے شی، او مردود اعمالو کښ ریاء کاری، بدعت، دنیا طلبی، بل کفربآیات الله (یعنی د الله تعالیٰ د آیتونو نه تأثر نهٔ اخستل) او د آخرت د یرے د وجه نه عمل نهٔ کول، ترك الاتباع (د رسول الله ﷺ تابعداری پریخودل)۔

عمل د هغه چا قبول دے چه نیك عمل کوی، په اخلاص ئې کوی، په اتباع د سنت ئې کوی۔ او په هغې کښ بدعت او ریاء نهٔ وی، او د الله د یرے په بناء وی، او دنیا طلبی پکښ نهٔ وی۔ بیا فرمائی چه د چا عمل قبول شو جنت ئې ځای دے، او د چا عمل چه مردود شو نو جهنم ئې ځای دے۔ او په مینځ کښ د الله تعالیٰ د علم تذکره کوی د یو خاص مناسبت د وجه نه۔

نو پدے آیت کریمه کښ رد د شرك دے او مشرکانو ته زجر او توبیخ دے۔ فرمائی : آیا د هغه خلکو دا گمان دے چه دوی زما نه سوئ نور بندگان دوستان او ارباب (آلهه) نیسی ددے دپاره ئې نیسی چه دوی ورسره مینه کوی، او د هغوی نه امید لری چه دوی به زمونږ حاجتونه پوره کړی۔ په سورة مریم آیت (۸۱/۸۲) کښ همدا مضمون الله تعالیٰ داسے بیان کړیدے : ﴿وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا كَلَّا سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ○﴾ (دوی د الله نه سیوئ نور خلق معبودان نیولی دی، دے دپاره چه هغوی د دوی دپاره د عزت باعث شی، لیکن داسے هیچرے نهٔ کیږی، هغوی خو به د دوی د عبادت نه منکر شی او اُلټه به د دوی دشمنان جوړ شی)۔

نو ددے جزاء پټه ده : [اَفَظَنُّوا اَنَّ ذٰلِكَ يَنْفَعُهُمْ مَعَ اِعْرَاضِهِمْ عَنْ تَدَبُّرِ آيَاتِ اللّٰهِ وَتَمَرُّدِهِمْ عَنْ

قَبُوْلِ الْحَقِّ] آيا د دوی دا گمان دے چه کنے دا کار به دوی ته فائده ورکړی سره ددے نه چه دوی د الله د آيتونو نه مخ اړوی او د حق د قبلولو نه سرکشی کوی۔
يا جزاء داسے ده : (اَظَنُّوْا اَنَّ ذٰلِكَ الْاِتِّخَاذَ لَا يُغْضِبُنِيْ وَلَا اُعَاقِبُهُمْ عَلَيْهِ) ۔ آيا د دوی دا گمان دے چه پدے کار به زهٔ په دوی غضب ونکړم او دوی ته به سزا ورنکړم۔ هيڅکله ډيے داسے گمان نکوی۔ يا جزاء داسے ده : (اِنَّهُمْ لَا يَكُوْنُوْنَ لَهُمْ اَوْلِيَاءَ) دا گمان ډيے نکوی چه دغه معبودان به د دوی دپاره دوستان شی او فائده به ورته وکړی۔
او ابن جريرؒ وغيره وئيلی دی چه د (عِبَادِيْ) نه مراد ملائك او عزير او عيسیٰ عليهم السلام او د دوی په شان نور نيكان بندگان دی۔ نو پدے كارونو سره دغه خلك مشركان شو۔
سوال دا دے چه ملائكو او پيغمبرانو او نيكانو سره دوستی كول خو جائز دی؟
جواب دا دے چه دلته د اولياء نه مراد (وِلَايَةُ الْعُبُوْدِيَّة) دے يعنی داسے محبت ورسره كوی چه هغه ته عاجزی كوی، او د هغهٔ بندگی شروع كړی او د الله حق ورته وركړی، او بغير د اسبابونه د هغه نه اميد او خوف لري، او دا حرام دے او هرچه دينی محبت دے نو هغه خو لازم دے۔
او دا آيت (عِبَادِيْ) ښكاره دليل دے چه ډيرو مشركانو د الله تعالیٰ سره بندگان شريكان جوړ كړيدی نو ځكه ورته الله تعالیٰ بار بار كافران وئيلی دی۔ نو شرك صرف دے ته نهٔ وائی چه بت ته سجده وكړی۔
لِلْكٰفِرِيْنَ : دلته ئے دے مشركانو ته كافران ووئيل ځكه چه دوی د الله تعالیٰ د حقيقت نه منكر شو۔ دارنگه د الله تعالیٰ حق ئے بل چا ته وركړو او د الله تعالیٰ د صفاتو نه منكر شو۔
قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ : پدے آيت كريمه كښې د دوی د عملونو بربادی ذكر ده چه د كافرانو نيك عملونه د آخرت په لحاظ سره برباد دی، الله ئے نهٔ قبلوی ځكه چه په ايمان باندے نهٔ دی، او د توحيد په بنياد نهٔ دی بلكه شرك ئے ورسره يو ځای كړيدے۔ او بيا ئے د دوی دپاره بد انجام خودلے دے۔
اَعْمَالًا : عمل ئے په بربادیٔ كښې ذكر كړو ځكه چه كه د يو انسان ښځه، بچی مړهٔ شول يا ئے مال نقصانی شو نو دا دومره لويه خبره نهٔ ده، دا امتحان خو په انبياء عليهم السلام او صالحينو باندے هم راځی خو چه عمل برباد شی نو دا پوره برباد شو، سرمايه ترے لاړه، د كوم شی دپاره چه پيدا وو او دنيا او آخرت پرے ښهٔ كيده، جنت پرے حاصليدو هغه برباد شی نو دا لوی تاوان دے، پدے وجه الله تعالیٰ مشركان د عمل په تاوان باندے يرولی دی۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ : پدے کښې د دوی دوه نور صفتونه بیانیږی، او ددے نه د نیك عمل شرطونه دا حاصلیږی چه نیك عمل به هله قبلیږی چه بنده پکښې د الله نه او د هغه د دین نه متأثر شی چه دا د الله حکم دے، او د هغه په کتاب کښې او د هغه د رسول په احادیثو کښې راغلی دی پدے وجه ئے کوم، نو دے خلکو کښې تأثر بآیات الله نشته، نو که نیك عمل کوی څه به پرے وشی؟۔ په هر عمل کښې د الله او د رسول نه متأثره کیدل ضروری دی، که یو تن په دین باندے عمل کوی لیکن د یو مُلا او عالِم د وجه نه نو دا دین او نیك عمل نهٔ دے بلکه د عملونو بربادی ده۔ څکه چه دے پکښې د یو عالِم نه متأثره شو نهٔ د الله نه۔ او پدے مرض کښې ځومره خلك مبتلا دی۔ عقلمند دِے فکر وکړی!!۔

وَلِقَائِهِ : دا ددے خلکو دریم مرض دے چه دوی د الله تعالیٰ ملاقات نهٔ منی یعنی بعث بعد الموت۔ او د الله د دیدار نه منکر دی۔ نو ددے خلکو د عملونو وزن ختم شو۔

بیا دا آیتونه اول کښې د مشرکینو په باره کښې دی، چه هغوی د الله سره شرك کولو او د قرآن کریم نه ئے انکار کولو، او د الله تعالیٰ د ملاقات نه هم منکر وو نو د دوی نیك عملونه هم برباد دی، د ابوجهل حجونه او نور نیك عملونه ټول ضائع وو۔ او بیا پدے کښې عموم او اشارات دی۔ صحابه کرامؓ دا آیتونه نورو خلکو ته هم شامل گرځولی دی۔

سیدنا علی بن ابی طالب ﷺ فرمائی :

[هُمُ الرُّهْبَانُ وَالْقِسِّيْسُوْنَ حَبَسُوْا أَنْفُسَهُمْ فِي الصَّوَامِعِ] (تفسیر الامام الطبرانیؒ)

ددے نه مرا هغه پیران او د نصاراؤ علماء دی چه ځانونه ئے په گیرجو کښې رابند کړی وو او بدعات ئے رائج کړی وو او په هغے به ئے عمل کولو او گمان ئے دا وو چه مونږ ښه کار کوو۔

سعد بن ابی وقاص او عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی چه د دوی نه مراد یهود او نصاریٰ دی چه د دوی عقیدے خرابے وے او گمان ئے ښهٔ لرلو۔

او علی بن ابی طالب ﷺ دا هم فرمائی : چه ددے نه مراد حَرُوْرِیه ډله ده (یعنی خوارج) (بغویؒ وابن کثیرؒ)

ابن کثیرؒ وائی : [هٰذِهِ الآيَةُ عَامَّةٌ فِي كُلِّ مَنْ عَبَدَ اللهَ عَلَى غَيْرِ طَرِيْقَةٍ مَرْضِيَّةٍ يَحْسَبُ أَنَّهُ مُصِيْبٌ فِيْهَا وَأَنَّ عَمَلَهُ مَقْبُوْلٌ، وَهُوَ مُخْطِئٌ وَعَمَلُهُ مَرْدُوْدٌ]۔

دا آیت عام دے هر هغه چا ته چه د الله تعالیٰ بندگی په هغه طریقه کوی چه هغه الله ته خوښه نهٔ وی (یعنی دسنت خلاف وی) پدے گمان چه دے پکښې حق والا دے او ددهٔ عمل

مقبول دے، او حال دا چه هغه په خطاء وی او عمل ئے مردود وی)۔
خوارج هغه خلك وو چه په ظاهره کښې ئے خو ډیر عبادتونه کول لیکن عقیدے ئے خرابے شوے وے، د قبر عذاب ئے نهٔ منلو، حائضه ښځه باندے ئے د مانځه اعاده لازم گرځوله، مسئله د تحکیم کښې ئے عقیده خرابه وه، په مسئله د شفاعت کښې هم په خطاء وو۔ او په گناهِ کبیره به ئے خلك کافر گنړل۔ اگر که دوی الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول او قیامت منلو۔
او سلفو وئیلی دی چه دا آیت ریاکارو ته هم شامل دے چه ډیره خواری وکړی لیکن ضائع دی ځکه چه اخلاص پکښې نهٔ وی۔ ځکه چه ریاء کار هم د الله د آیتونو نه متأثر نهٔ وی، او د مخلوق رعایت کوی په باره د عبادت کښې۔
.دارنګه دا هغه چا ته هم شامل دی چه د دنیا طلبئ دپاره عبادتونه کوی، د دوی عقیده برابره وی؛ بندګی د الله دپاره کوی لیکن مقصد ئے دنیا حاصلول وی۔ ځکه چه پدے کښې هم تَاَثُّر بِآيَاتِ الله نشته۔

## فوائد الآیة:

(۱) مشرك خپل عمل ته بد نهٔ وائی بلکه هغے ته ښهٔ وائی، نو معلومه شوه چه بد عمل یواځے هغه نهٔ دے چه خلك ورته بد وائی بلکه ډیر کرته به خلك ورته ښهٔ وائی لیکن د الله په نیز به بد وی۔ (۲) وَهُمۡ يَحۡسَبُوۡنَ اَنَّهُمۡ يُحۡسِنُوۡنَ: ډاکو خپلے ډاکے ته ښه نهٔ وائی مګر کار بد کوی لیکن لوی نقصانی هغه څوك دے چه کوی بد عمل او ګمان کوی چه زهٔ ښه سړے یم۔ پدے وجه بنده به په باب د عمل کښې ډیر احتیاط کوی۔
۳- مخکښې ئے (ضَلَّ سَعۡيُهُمۡ) ووئیل او بیا ئے دوباره (فَحَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ) ووئیل نو د دواړو فرق دا دے چه د (ضَلَّ سَعۡيُهُمۡ) نه مراد نیك عملونه دی، او (فَحَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ) نه دنیاوی عملونه مراد دی چه دا هم په آخرت کښې پکار نهٔ راځی۔ دا فرق دومره غوره نهٔ دے۔
❁ ښه وجه دا ده چه د اول سعی نه مراد دنیا کښې کوششونه بربادیدل دی، نو د دوی د نیك عمل په دنیا کښې هم فائده نشته۔ او (فَحَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ) نه د آخرت په اعتبار سره بربادیدل مراد دی۔ یا د مخکښې سعی نه مراد هغه کوششونه دی چه دین کښې ئے کړیدی او د روستو بطلان د عمل نه مراد هغه نیك عملونه دی چه د مخلوق سره ئے کړیدی لکه صلة الرحم، او احسان د خلکو سره۔ (طبرانیؒ)
❁ یا د تکرار وجه دا ده چه مخکښې ئے خبر ورکړو چه د دوی کوشش برباد دے او بیا ئے د

دغـه بـربـادئ سبب بیان کړو چه کفر بآیات الله وبلقاء الله دے نو د زیات اهتمام دپاره روستو دوباره تصریح وکړه چه د عملونو بربادیدو وجه دغه کفر دے

وَزْنًا: وزن تول ته وائی، دا مطلب نهٔ دے چه د دوی عمل به نهٔ تللے کیږی، عمل د کافر هم تـللے کیږی، بـلکه مراد ترے ثقل (دروند والے) دے۔ یعنی په عمل کښ به ئے دروند والے نهٔ وی چه تول پرے دروند شی۔ او په محاوره کښ وزن کنایه وی د عزت او قدر نه، یعنی هیڅ قدر او عزت به ئے نهٔ وی، الله به پرے هیڅ باك نهٔ کوی۔

په قیامت کښ د هر انسان درے څیزونه تللے کیږی یو عملنامه، دویم اعمال، او دریم انسان خپله تللے کیږی۔ لکه چه تفصیل ئے په سورة الاعراف آیت (۸) کښ ذکر شویدے۔

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ : (ذلك) اشاره ده د عمل بربادئ او عدم وزن ته۔ او (جهنم) عطف بیان دے د (جزاء) دپاره۔ او مطلب دا دے چه دا عمل بربادیدل جزاء ده او دا بعینه جهنم دے۔ یعنی داسے نهٔ ده چه د چا عمل برباد شو نو جنت ته به هم نهٔ ځی او جهنم ته هم نهٔ۔

بِمَا كَفَرُوْا وَاتَّخَذُوْا : یعنی ددے جهنم سبب دا دے چه دوی د کفر سره د الله آیتونه او د هغه رسولان په توقو نیولی دی۔

نو پدے کښ بل شرط تـه اشاره ده چه د الله د آیتونو نه متأثر نهٔ دے۔ او بل د رسول الله ﷺ د اتباع په ځای د هغه نه مسخره جوړوی۔ نو نهٔ پکښ اتباع شته او نهٔ پکښ د قرآن نه تاثر شته، نو عمل به ئے په څه سره قبول شی؟۔

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ |
| یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه کوی نیك، وی به دوی لره جنتونه |
| الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ﴿۱۰۷﴾ خَالِدِيْنَ فِيْهَا لَا يَبْغُوْنَ عَنْهَا |
| د فردوس میلمستیا تیاره۔ همیشه به وی په هغے کښ نهٔ به طلب کوی د هغے نه |
| حِوَلًا ﴿۱۰۸﴾ قُلْ لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَاتِ رَبِّيْ |
| اوړیدل بل طرف ته۔ اُووایه که چرته شی دریاب سیاهی دپاره د خبرو د رب زما |
| لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَنْ تَنْفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّيْ وَلَوْ |
| خامخا ختم به شی دریاب مخکښ ددے نه چه ختم شی خبرے د رب زما او اګر که |

| |
|---|
| جِئۡنَا بِمِثۡلِهٖ مَدَدًا ﴿۱۰۹﴾ قُلۡ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثۡلُكُمۡ |
| راولو مونږ په شان د هغې په مدد کښې. اُووایه یقیناً زۀ انسان یم ستاسو په شان، |
| يُوحَىٰٓ إِلَيَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمۡ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞ |
| وحی کیدے شی ما ته ددے خبرے چه معبود ستاسو حقدار د بندګئ یو دے |
| فَمَن كَانَ يَرۡجُواْ لِقَآءَ رَبِّهِۦ فَلۡيَعۡمَلۡ عَمَلٗا صَٰلِحٗا |
| نو څوك چه اُمید لری د ملاقات د رب خپل نو اُودے کړی عمل نیك |
| وَلَا يُشۡرِكۡ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدَۢا ﴿۱۱۰﴾ |
| او نۀ دِے شریکوی په عبادت د رب خپل کښې هیڅوك. |

**تفسیر**: د کافرانو د انجام بیانولو نه روستو، اُوس د هغه خلقو انجام بیانیږی چه په دے دنیا کښې په الله او د هغۀ په رسول باندے ایمان راوړی، په نبی کریم ﷺ باندے د نازل شوی کتاب تصدیق کوی، او په ژوند کښې نیك اعمال کوی چه الله تعالیٰ د دوی د میلمستیا دپاره د فردوس باغونه تیار کړیدی چه هلته به همیشه دپاره وسیږی، او هیڅ کله او په هیڅ حال کښې به د هغه ځای نه وتل نۀ خوښوی. د بخاری روایت دے چه نبی کریم ﷺ فرمایلی دی: ((تاسو چه کله د الله نه جنت غواړئ نو فردوس غواړئ کوم چه د جنت مرکزی او اعلیٰ مقام دے، د جنت ټول نهرونه د همدے نه راوځی)). (بخاری: ۲۷۹۰)

فردوس په لغت کښې هغه باغ دے چه په هغې کښې کنړے ونے وی او انګور پکښې زیات وی، او جنت هغه دے چه په هغې کښې کجورے زیاتے وی.

حِوَلًا: (اُوړیدل). ځکه چه په جنت کښې هر قسم آزادی ده، نو د انسان به بل ځای ته زړۀ نۀ کیږی د هغې د خانست او مزیدار والی د وجه نه. بلکه دنیا به ورته د مور د خیټې په شان ښکاری او تعجب به کوی چه پدے کښې مونږ څنګه ژوند تیرولو.

قُلۡ لَّوۡ كَانَ ٱلۡبَحۡرُ مِدَادٗا: پدے کښې د الله تعالیٰ علم محیط ذکر کیږی.

## شان نزول

یهودیانو وئیلی وو چه مونږ ته الله تعالیٰ ډیر علم راکړیدے ځکه چه په تورات کښې د الله تعالیٰ علم ذکر دے، نو زمونږ دومره علم دے لکه د الله په شان. (ډیرے ادبه وو)

نو دا آیت د هغوی په رد کښې نازل شو چه په تورات کښې خو د الله تعالیٰ د یو څو خبرو علم دے چه هغه د هغهٔ شریعت دے۔ د الله تعالیٰ علمونه نهٔ ختمیدونکی دی۔ پدے طریقه دا د مضمون د سورت سره مناسب شو۔ چه د یهودو د بل اعتراض جواب پکښې وشو۔

❁ دویم پدے کښې رد دے په شرك فی العلم باندے چه علم محیط خو صرف د الله تعالیٰ دے، د نورو اولیاؤ نشته، نو هغوی څنګه په بندګئ تاسو نیسئ، ستاسو آلهه ستاسو د حال نه خبر نهٔ دی نو مستحق د عبادت هم نهٔ دی۔

❁ دریم : د الله تعالیٰ علم محیط ولے ذکر شویدے ؟ نو دا د قرآن عادت دے چه کله په یو مقام کښې ایمان او اعمالو او قرآن ته ترغیب ورکړی نو هلته د الله علم بیانیږی پدے کښې ترغیب وی عمل صالح ته چه اے بنده ! تهٔ چه هر څای عمل وکړے نو هغه الله ته معلوم دے۔ لکه دا طریقه په سورة لقمان (۷) آیت کښې هم ذکر شویده۔ ځکه چه هلته د احسان موضوع ده۔

مطلب دا دے چه که د الله د علومو او حکمتونو د کلماتو لیکل شروع شی او د دریاب اُوبه د سیاهی په توګه استعمال کړے شی نو الهی کلمات به ختم نهٔ شی او د دریاب اُوبه به ختمے شی۔ او که ددے دریاب په شان بل دریاب هم د سیاهی په توګه استعمال کړے شی نو هم به ختم شی او د الله کلمات به نهٔ ختمیږی۔ او په سورة لقمان کښې دی چه اوه دریابونه ورسره نور ملاؤ شی هغه به هم ختم شی۔

كَلِمَاتُ رَبِّي : اکثر مفسرین وائی چه د کلماتو نه مراد د الله تعالیٰ علمونه دی، او هغے ته کلمات ځکه وائی چه د خبرو ډیر والے دا کمال دے، د چا چه خبرے زیاتے وی، نو د هغه علم ډیر وی او طاقت ئے زیات وی، او څومره چه خبرے کمے وی، نو طاقت او د علم کمی ته اشاره وی۔ د انسانانو علمونه کم دی، یو تن به یوه ګینټه خبره وکړی، که لږ ډیر پوهه وی نو دوه درے ګینټے به ئے وکړی، که نور زیات وی یوه ورځ به ئے وکړی او که علم ئے نور هم زیات وی نو د طاقت د کمی د وجه نه بیا هغه نشی کولے۔ نو دلته الله تعالیٰ درے قسمه صفات ثابت شو، قدرت، علم او د الله کلام (خبرے)۔ نو داسے علیم او طاقتور ذات سره تاسو شریکان جوړوئ۔ او آیا هغه ذات چه ستا په هر حال پوهه دے، تهٔ ورله بیا هم اخلاص نهٔ کوے او د هغه دپاره عملونه نهٔ کوے۔

قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ : پدے آیت کښې د رسول الله ﷺ صدق او د الله تعالیٰ د توحید بیان دے۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته فرمائی چه تهٔ دے مشرکانو ته چه ستا د رسالت

تـکـذیب کوی ووایه ! چه زهٔ خو ستاسو په شان یو انسان یم، په ما او تاسو کښې فرق صرف دا دے چه الله تـعـالـیٰ پـه مـا بـانـدے وحی نازلوی۔ قرآن هم ما ته الله تعالیٰ د وحی په ذریعه راکـړیـدے۔ دا زمـا کـلام نهٔ دے۔ کـه ستاسو نه یو شخص زما تکذیب کوی، نو هغه دے د قـرآن پـه شـان کـلام راوړی۔ ما چه تاسو ته د تیرے شوے زمانے کوم واقعات بیان کړیدی دا هم ما ته الله تعالیٰ د وحی په ذریعه خودلی دی، ما ته د غیبو هیڅ علم نشته دے۔

اِنَّمَا اِلٰـهُکُمْ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ: یعنی زما د وحی خلاصه دا ده چه ستاسو د بندګئ لائق صرف یو ذات دے، د هغه هیڅوك شریك نشته دے۔

فَمَنْ کَانَ یَرْجُوْا : هـرکـلـه چـه الله تـعـالیٰ یواځے د بندګئ لائق دے نو مونږ له څه پکار دی؟ نـو فـرمـائـی چـه څـوك ایـمـان لری چه هغه به د الله تعالیٰ مخے له ورځی، نو هغه له د شـریـعـت مـطـابـق نـیـك عـمـل کـول پـکار دی، او پکار ده چه په هیڅ حال کښې هم د الله په عبادت کښې نور خلق شریکان نهٔ کړی۔

نـو پدے کښې لنډ دعوت دا دے چه که آخرت مـنے نو هغے له تیارے په نیك عمل کوه خو چه ریاء او شرك درنه ونشی۔

حـافظ ابن کـثیرؒ لیکلی دی : دا آیت دلیل دے چه د الله تعالیٰ په نیز د عمل د قبلیدو دپاره دوه شرطـونـه دی۔ یـو دا چـه هـغـه بـه د شـریـعـت مـطـابق وی، او دویم دا چه پدے سره به مـقـصـود صرف د الله خـوشحالی وی۔ شهرت، نوم، ریاکاری، یا کوم بل دنیاوی غرض به مقصد نهٔ وی۔

لِقَآءَ رَبِّهٖ: د مـلاقـات نه مراد د الله تعالیٰ سره ملاویدل او د هغهٔ نه خیرونه حاصلول دی۔

نـو دا سـوال نـهٔ پـیـدا کـیـږی چـه د آخرت د راتللو امید کول خو غلط دی بلکه د آخرت په راتللو او د بعث بعد الموت په واقع کیدو خو یقین ضروری دے۔

جواب دا دے چه د (لِقَآءَ رَبِّهٖ) مـعنیٰ د آخرت د راتللو نهٔ ده، آخرت خو به خامخا راځی، که څـوك ئے منی او که نهٔ، بلکه د (لِقَآءَ رَبِّهٖ) مـعنیٰ ده، د الله سره ملاویدل او د هغهٔ نه خیرونه حاصلول دی، او دا په درجه د امید کښې دی۔

او دا بـنـاء دے پـه یـوه ښـائـسـتـه مـحـاوره بـانـدے هغه دا چه یو بادشاه چه ورکونکے وی، او څـوك د هـغـه نـه امـیـد لری چه څه به راکړی نو هغه ځان سره تحفه او ډالئ وړی چه بادشاه تـه پـرے ځـان نـزدے کـړی نـو الله هـم غـنـی او جواد بادشاه دے، که څوك غواړی چه د الله نه خیـرونـه حـاصـل کـړی چه هغه د الله دیدار، د عرش سورے، د جنت نعمتونه دی نو د هغے د

حاصلولو طریقه دا ده چه الله ته دِے ځان په نیك عمل او توحید باندے نژدے کړی۔
نو بناء پدے باندے دِے خبرے ته ضرورت رانغلو چه یَرْجُوْ په معنیٰ د یَعْتَقِدُ (عقیده ساتی) سره واخلے، یا په معنیٰ د یَخَافُ (یریږی) سره واخلی ځکه هغه بے ضرورته تاویل دے۔
الله تعالیٰ دِے مونږ تولو موحدینو او د کتاب او سنت تابعدارو ته خپل خیرونه راکړی۔ آمین یا رب العالمین۔
اَحَدًا: هیڅ یو تن۔ که نیك وی او که بد، حیوان وی او که جماد، مړے وی که ژوندے۔

## څلور قسمه شرکونه

دلته څلور قسمه شرکونه رد شویدی (١) شرك حقیقی چه انسان د غیر الله عبادت وکړی لکه نذر د غیر الله، سجده غیر الله ته وکړی۔ (٢) اَلشِّرْكُ الْاَصْغَرُ ۔ ریاء پکښې داخل دے چه پدے سره عمل بربادیږی۔
(٣) اَلْاُجْرَةُ بِالدِّیْنِ ۔ په دین باندے مزدوری اخستل دا هم د شرك یوه نوعه ده، چه صرف اُجرت مقصود شی یعنی تعلیم او تعلم او جهاد صرف د مال دپاره کوی، د الله رضا پکښې مقصد نهٔ وی۔
(٤) عبادت کول دی په طریقه د عادت باندے چه نهٔ ئے الله ته فکر وی او نهٔ غیر الله ته۔ بلکه عبادت به د الله تعالیٰ په محبت او د هغهٔ نه په یره سره کولے شی۔
صاحب د ((فتح البیان)) او ابن کثیرؒ وغیره پدے مقام کښې د شرك خفی متعلق ډیر روایات راجمع کړیدی هغے ته دِے رجوع وکړے شی۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات او خصوصیات د سورت

١- واقعه د اصحاب کهف۔
٢- د دوه سړو (باغ والا) واقعه۔
٣- د موسیٰ علیه السلام او د خضر علیه السلام د ملاقات واقعه۔
٤- د ذو القرنین واقعه۔
٥- او د عمل تقسیم، مقبول او مردود ته او د عمل شرطونه پکښې ذکر دی۔
ختم شو تفسیر د سورة الکهف په ډیر احسان د رب العالمین په شپه د جُمعے۔
جمادی الثانیه 20 /1436ھ الموافق: 9/4/2015ء بجه: 11:25 pm

بسم الله الرحمن الرحيم

| آیاتها (۹۸) | (۱۹) سورة مریم مکیة (٤٤) | رکوعاتها (٦) |
|---|---|---|

سورة مریم مکی دے، پدے کښې اته نوی آیتونه او شپږ رکوع دی۔

# تفسیر سورة مریم

**نوم :** ددے نوم سورة مریم دے۔ صاحب د ((فتح البیان)) لیکلی دی چه په ټول قرآن کښې د مریم علیها السلام د نوم نه سِویٰ د بلے کومے ښځے نوم نهٔ دے راغلے۔ ددے نوم په قرآن کریم کښې دیرش کرته راغلے دے،آه۔ (بلکه زمونږ په شمار سره درے دیرش کرته دے)

## مناسبت د سورت

۱- مخکښې نفی د علم الغیب وه د غیر الله نه، اُوس د هغوی تضرع او عاجزی بیانوی نو عبادت د هغه چا نهٔ دے پکار چه نهٔ په غیبو پوهیږی او محتاج وی۔

۲- مخکښې رد د عقیدے د اتخاذ الولد اجمالاً وو دلته ئے تفصیل ذکر کوی۔ او د اتخاذ الولد مثال راوړی په مریم علیها السلام او عیسیٰ علیه السلام سره چه نصاراؤ د الله خوی وګنړلو۔

۳- ظاهر مناسبت دا دے چه مخکښې ترغیب وو ایمان او عمل صالح ته نو دلته د بعض پیغمبرانو او صالحینو اعمال بیانوی دپاره د اقتداء کولو ددے خلکو۔

٤- عمل صالح سبب د رحمت د الله تعالیٰ دے چه په دغه خلکو ئے کریدے۔

## موضوع د سورت

۱- دے سورت کښې زمونږ مشائخ وائی چه تَضَرُّعُ الْمُنْتَجِبِيْن ذکر کیږی یعنی د نیکانو بندګانو عاجزی بیانیږی چه دوی لائق نهٔ دی چه د الله سره شریک کړے شی ځکه چه دوی خپله الله تعالیٰ ته محتاج دی، او د هغهٔ نه دعاګانے غواړی، نهٔ زکریا او نهٔ یحییٰ او نهٔ مریم او نهٔ عیسیٰ وغیره۔ (علیهم السلام)

۲- بعض نور مفسرین وائی چه موضوع ددے سورت رد د عقیدے د اتخاذ الولد دے چه هغه په واقعه د زکریا علیه السلام او د مریم علیها السلام کښې واضحه ده او په آخر د سورت کښې

هم دی ﴿ أَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا﴾ آیت (۹۱)۔
۳- ظاهر دا ده چه دغه مخکنی ځیزونه جانبی خبری دی، او اصلی موضوع ددے سورت ذِكْرُ عِبَادَاتِ الصَّالِحِيْنَ لِلْاِقْتِدَاءِ بِهِمْ۔
د نیکانو خلکو عبادتونه بیانوی دے دپاره چه خلك د هغے اقتداء وکړی۔
او ددے سره نږدے موضوع دا ذکر کیږی چه د الله رحمت په دغه خلکو شویدے نو دا په هغوی باندے وقف نهٔ دے بلکه د الله رحمت هر هغه چا ته فراخه دے چه څوك د هغے په اسبابو راتلل وکړی۔
په بل تعبیر سره پدے سورت کښ اسباب د رحمت د الله تعالیٰ ذکر کیږی چه هغه تقریباً شپیته اسباب دی۔ ددے وجه نه پدے سورت کښ به د رحمة لفظ زیات ذکر کیږی او د (رحمٰن) لفظ پکښ پنځلس کرته ذکر شویدے۔
خو د قرآن کمال دا دے چه اضداد هم بیانوی، نو پدے سورت کښ به اسباب د غضب هم بیانیږی چه دے ته اسباب د حِرْمَانُ الرَّحْمَة هم وائی یعنی د رحمت نه د محروم کیدو اسباب۔ لکه څوك چه الله تعالیٰ دپاره اولاد وائی هغوی ته الله په غضب دے، او څوك چه کفر او شرك کوی، او اختلاف د پیغمبرانو سره کوی، او د آخرت منکر وی، او د عمل نه په غیر رحمت او جنت غواړی ﴿ أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيَاتِنَا﴾۔ آیت (۷۷) او څوك چه په حق کښ جګړه ماران وی۔ ﴿ وَتُنْذِرَ بِهٖ قَوْمًا لُدًّا ﴾ آیت (۹۷) دا خلك د رحمت لائق نهٔ دی۔
اول سبب د رحمت پدے سورت کښ ﴿ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا﴾ دے یعنی عبادت د رب العالمین۔ نِدَاءً خَفِيًّا (الله ته عاجزی کول او د هغه نه دعاګانے غوښتل)۔ (سَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَعَشِيًّا) یعنی د الله تعالیٰ ذکر کول۔ حنانیت (وَحَنَانًا) الزکاة، التقویٰ، بِرُّ الْوَالِدَيْنِ ، اَلْخَلْوَةُ بِاللهِ ۔ (د الله د بندګئ دپاره یواځے کیدل) تزکیة النفس وغیره۔ عبادت، اَلدَّعْوَةُ اِلَى اللهِ۔ اَلسُّجُوْدُ لِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ۔
اَلْبُكَاءُ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ ۔ اَلْاِيْمَانُ وَالتَّوْبَةُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ ۔ (سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا)

## خلاصه د سورت :

اول نه د انبیاء علیهم السلام واقعات دی، او بیا د واقعاتو نه روستو الله تعالیٰ د پیغمبرانو صفت راوړیدے ترغیباً دپاره د اقتداء، ﴿ إِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيَاتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُكِيًّا﴾ یعنی تاسو هم دغه شان صفت اختیار کړئ، او بیا د مجرمانو حال بیانوی، بیا د تائبینو حال بیانوی، بیا اقتداء بالملائکه بیانوی۔ یعنی د الله تعالیٰ د امر داسے تابعداری وکړئ

لکه څنګه ئې چه ملائک کوي۔ او په آخري دوه رکوع ګانو کښې تخویفات دي او اسباب د غضب دي، نو ګویا که په اول کښې رحمتونه ذکر کیږي،

او په آخر کښې غضب په کافرانو او مشرکینو دے۔ او د آخرت او د رسول منکرینو او مشرکانو ته ئې سخت تخویفات ورکړیدي۔ نو په سورت کښې د کفرونو او شرکونو رد هم دے، او د پیغمبرانو اتباع ته دعوت هم پکښې ذکر دے، او د الله تعالیٰ د رحمت اسباب هم پکښې ذکر دي، ډیر نرم سورت دے، او پدے کښې دعوت دے چه اے انسانانو ! داسے معاشره جوړه کړئ لکه څنګه چه د بني اسرائیلو د نیکانو وه چه تول د الله تعالیٰ اذکار، طاعتونه، دعاګانې، الله ته عاجزیانې، سجدے او ژړاګانې وے، او داسے معاشره د صحابه کرامو هم جوړه شوے وه د سورت مریم مطابق۔ او زمونږ معاشره د منافقت، سخت زړئ او کږو زړونو والو ده۔ که پدے صفاتو معاشره جوړه نۀ شوه او شخصي په انسان کښې راغلل نو هغه پرے جوړیږي او کامیابئ ته رسیږي۔ ولله الحمد۔

**د نزول زمانه :** دا سورت په مکه مکرمه کښې د مسلمانانو حبشو ته د هجرت کولو نه مخکښې نازل شوے وو۔ محمد بن اسحاقؒ په خپل کتاب «السیرة» کښې د ام سلمه رضی الله عنها نه او امام احمد بن حنبلؒ په مسند کښې د ابن مسعود ﷺ نه روایت کړیدے چه کله حبشو ته مهاجرین د نجاشي مخے ته پیش شو، او هغه د جعفر بن ابي طالب ﷺ نه د قرآن د څه حصے بیانولو غوختنه وکړه نو هغه ددے سورت ابتدائي آیتونه ولوستل چه په هغے سره نجاشي متاثر شو او ذومره ئې اوژړل چه د هغه ګیره په اوښکو سره لمده شوه۔ د هغه د دربار نورو نصاراؤ علماؤ هم اوژړل او نجاشي اُووئیل چه دا کلام او عیسیٰ ﷺ چه کوم کلام راوړے وو دواړه د یو مصدر نه راغلي دي۔

صاحب د «تیسیر الرحمن» لیکي : پدے سورت کښې د زکریا، یحیٰی، عیسیٰ، ابراهیم او نورو انبیاء علیهم السلام واقعات بیان شویدي او د مکے مشرکانو د معاشرے نه وتلو سره د مدینے یهودو او نصاراؤ ته د اسلام د دعوت پیش کولو دپاره زمکه هواره شویده، او هغوی ته دا یقین ورکړے شویدے چه نبي کریم ﷺ کوم نوے او پردے دین نۀ دے راوړے بلکه دا هغه دین دے چه تولو تیر شوو انبیاء کرامو خپلو قومونو ته پیش کړے وو، او چه د هغے خلاصه او نچوړ دا دے چه دا زمکه د الله ده او هغه تول انسانان صرف د خپل عبادت دپاره پیدا کړیدي۔ وبالله التوفیق۔

بِسْمِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ط

| |
|---|
| كٓهٰيٰعٓصٓ ﴿١﴾ ذِكْرُ رَحْمَةِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ |
| الله پوهه دے په مطلب ددے حروفو۔ دا یاداشت د رحمت د رب ستا دے په بنده خپل |
| زَكَرِيَّا ﴿٢﴾ إِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ﴿٣﴾ |
| چه زکریا علیه السلام وو۔ کله چه آواز وکړو هغه رب خپل ته آواز پټ۔ (په عاجزئ) |
| قَالَ رَبِّ إِنِّيْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّيْ وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ |
| ووئیل هغه اے ربه زما یقیناً کمزوری شویدی هډوکی زما او تک سپین شویدے سر زما |
| شَيْبًا وَلَمْ أَكُنْۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ﴿٤﴾ وَإِنِّيْ خِفْتُ |
| د بوډاوالی په وجه او نه یم زۀ په دعا ستا پاندے اے ربه بد بخته۔ او یقیناً زۀ یریږم |
| الْمَوَالِيَ مِنْ وَّرَآءِيْ وَكَانَتِ امْرَأَتِيْ عَاقِرًا فَهَبْ لِيْ |
| د تربورانو نه روستو زما نه (په دین باندے) او ده ښځه زما شنډه نو اُوبخه ما ته |
| مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ﴿٥﴾ يَّرِثُنِيْ وَيَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ |
| د خپل طرف نه وارث (د دین)۔ چه وارث شی زما او وارث شی د اولادو د یعقوب (علیه السلام) |
| وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ﴿٦﴾ يٰزَكَرِيَّا إِنَّا نُبَشِّرُكَ |
| او اُوګرځوه دۀ لره اے ربه غوره کړے شوے۔ اے زکریا! یقیناً مونږ زیرے درکوو تا ته |
| بِغُلٰمِ ۨاسْمُهٗ يَحْيٰى لَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا ﴿٧﴾ |
| په یو هلك چه نوم د هغه یحیٰی دے، نۀ دے ګرځولے مونږ دۀ لره مخکښې همنامے۔ |

**تفسیر** : كٓهٰيٰعٓصٓ: دا حروف مقطعات دی، ددے معنیٰ صرف الله ته معلومه ده۔ او د قرآن حقانیت ته پکښې اشاره ده۔ او ددے سورت ډیرو اسرارو (رازونو) ته اشاره ده۔ او په طریقه د تخمین باندے بعض علماؤ وئیلی دی چه پدے کښې اشارات دی د الله نومونو او صفتونو ته۔ ابن جریرؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړیدی چه کاف کښې د الله کفایت ته او په هاء کښې هدایت ته، او په یاء کښې یَد (لاس) ته او په عین کښې عون الله (د الله مدد) ته (یا عالم ته) او په صاد کښې صادق الوعد ته اشاره ده۔ یعنی الله کافی دے، هادی دے، د الله لاس د

انبیاؤ او صالحینو سره دے، او الله مدد کوی (او په هر څه عالِم دے) او هغه رشتینی وعدے والا دے۔

د ابن مسعود ﷺ وغیره نه نقل دی چه کاف د ملك نه او هاء د الله نه او یاء او عین د عزیز نه او صاد د مُصوّر نه راخستے شویدی یعنی الله مالك دے او الله دے (یعنی معبود دے) او هغه عزیز او مصور ذات دے۔ (فتح البیان)

ذِکْرُ: دا خبر د مبتداء (هٰذَا) دے۔ نو پدے آیت کریمه کښې الله تعالیٰ په خپل بنده زکریا علیه السلام باندے د خپل فضل او کرم او رحمت تاسو ته یادوی کوم چه د بنی اسرائیلو ډیر لوئی مرتبے والا نبی وو، او د یحییٰ علیه السلام پلار وو۔ یعنی ما په زکریا رحم کړے وو هغه واورئ، اشاره ده دے خبرے ته چه هغه باندے چه رحم شوے نو په څه صفاتو سره هغه ځان کښې راولئ نو په تاسو به هم رحم وکړم۔

په زکریا علیه السلام ډیر رحمتونه شویدی خو دلته بعض راوړی چه په هغے سره د شرك رد وشی چه الله دپاره اولاد مهٔ وایئ چه که عیسیٰ علیه السلام بی پلاره پیدا دے، نو ولے زکریا علیه السلام ته ئے گنے په بوډاوالی کښې بچے ورنکړو، او دا واقعه د اثبات د آخرت دپاره هم دلیل دے چه بوډاوالی کښې اولاد ورکولو باندے قادر دے نو دغه شان مړی هم راژوندی کولے شی۔

نو دارنگه الله هغه ذات دے چه کوم نیکان بندگان د هغهٔ نه دعاگانے غواړی او هغه ته عاجزی کوی د هغه بندگیانے کوی، نو د هغوی حاجتونه قبلوی، او دنیا هم ورکوی او آخرت هم۔

په صحیح مسلم رقم (۶۳۱۲) کښې ابو هریره ﷺ د رسول الله ﷺ وینا نقل کوی چه زکریا علیه السلام د پیشے او کاروبار په اعتبار سره نجار (ترکان) وو۔ آه۔

یعنی د خپل لاس د کسب نه به ئے خوراك کولو۔

نِدَآءً خَفِيًّا: دهٔ د شپے په تیارهٔ کښې کله چه دنیا اُوده وه د خپل رب نه په پټه دعا وکړه او وے وئیل چه اے ربه! زما هډوکی کمزوری شویدی او د مر وبښته مے بیخی سپین شویدی، او ددے نه مخکښې هیڅ کله هم داسے نهٔ دی شوی چه تا زما دعا نهٔ وی قبوله کړی۔

مفسرین لیکی چه دا د الله تعالیٰ په دربار کښې یو قسم توسل وو چه اے الله! زهٔ بوډا شوے یم او زما حالت د رحم قابل شویدے، او ددے نه مخکښې به تا زما دعاگانے قبلولے، پدے وجه پدے ځل هم زما دعا قبوله کړه او ما مهٔ نا امیده کوه۔

(خَفِيًّا) ئے ورسره څکه ووئیلو چه نداء (آواز) ته وائی او آواز کښې خو ښکاره والے وی نو دلته وائی چه دا پټ آواز وو۔ بیا دا آواز ئے په پټه ولے کولو ؟

(۱) یوه وجه دا ده چه دا د ریاء نه لرے ده، او د زړه صفائی ته ډیر نزدے ده۔

(۲) لِئَلَّا يُلَامُ عَلٰى طَلَبِهٖ لِلْوَلَدِ فِىْ غَيْرِ وَقْتِهٖ)۔ دے دپاره چه څوك ئے ملامته نکړی چه بې وخته (په بوډاوالی کښې) څنګه څوی غواړی۔

(۳) ظاهر دا ده چه اصل په دعاګانو کښې پټوالے دے، او دا افضل دے نو په افضیلت ئے عمل وکړو، او پټوالی کښې د الله په ذات یقین زیات وی چه الله زما د زړه آواز آوری، او ادب پکښې زیات وی۔

(رَبِّهٗ) نه معلومه شوه چه اولیاء او انبیاء علیهم السلام ئے الله تـه نهٔ دی وسیله کړی چه د ابراهیم علیه السلام په وسیله ئے درنه غواړم۔

نو دلته درے وسیلے ذکر دی، یو رب لفظ، او دویم خپله کمزوری، او دریم (وَلَمْ اَكُنْ) یعنی د الله په صفاتو، یعنې چه زهٔ دے په دعا قبلولو عادت کړے یم نو اُوس دا دعا هم قبوله کړه۔

وَاشْتَعَلَ الرَّاْسُ شَيْبًا: یعنی لمبه شو سر زما په اعتبار د سپینوالی سره۔ یا تك سپین شو سر زما د وجه د بوډاوالی نه۔

وَاِنِّىْ خِفْتُ الْمَوَالِیَ: اُوس الله تعالیٰ ته د خپلے دعا غوښتو عذر پیش کوی چه اے الله ! د مال او د دنیا دپاره ئے نهٔ غواړم چه ماله به پیسے وګټی بلکه ستا د دین غم راسره دے، او دے تـه د نیت صفائی وائی۔ یعنی زما نه روستو زما د قوم د کارونو اختیار چه زما د کومو رشتـه دارانـو (تـربـورانـو) پـه لاس کښې ورځی هغه ددے لائق نهٔ دی چه په هغوی بهروسه وکړے شی، په هغوی کښې داسے څوك نشته چه د دعوت او تبلیغ کار جاری اُوساتی۔ زما یره ده چه دوی به زما د دعوت الی الله کار ته نقصان اُورسوی۔ او زما ښځه د ځوانئ زمانے نه شنډه ده، پدے وجه ته خالص په خپل فضل او کرم سره ما ته یو هلك راکړه چه د علم او نبوت او دعـوت او تبـلیـغ پـه کـارونو کښې زما او د یعقوب (علیه السلام) د خانـدان د نورو انبیاؤ (علیهم السلام) وارث شی۔ او اے زما ربه ! ته دا اُوچت اخلاق او کردار والا جوړ کړه۔

خِفْتُ الْمَوَالِیَ : بـعـض مـفـسـرینو ونیلی دی چه زکریا علیه السلام د خپلـو تربورانو نه په څه کښې یـریـدو ؟ نو وجه ئے دا ونیلے ده چه یریدو چه ددهٔ د مال میراث به ویسی او دهٔ غوښتله چه ددهٔ بچے میراث خور شی، نو د الله نه ئے څکه اولاد وغوښتل۔ نو دا خبره د دوی د اسلام د اصولو نه ډیر غفلت دے۔ د انبیاء علیهم السلام ترکه د ټولو مسلمانانو مشترکه صدقه

ده، هغه میراث نهٔ کرځي. نو صحیح دا ده چه دلته میراث د دین مراد دے ځکه چه د ابراهیم علیه السلام او د یعقوب علیه السلام د دین نه سوئ کوم مال پاتے وو چه دے پرے پریدو.

رَضِيًّا: ١- اَیْ مَرْضِيًّا عِنْدَكَ. غوره کړے شوے ستا په نیز.

٢- مَرْضِيًّا فِيْ اَخْلَاقِهٖ وَاَفْعَالِهٖ. یعنی غوره کړے شوے وی په اخلاقو او افعالو کښې.

مخکښې سورة آل عمران (٣٨) آیت کښې ذکر شوی وو چه زکریا علیه السلام ته دا دعا په هغه وخت رایاده شوه چه د مریم علیها السلام سره ئے په محراب کښې ناشنا یے موسمه میوے ولیدے نو دهٔ ته هم طمع او توجه پیدا شوه.

مفسرین لیکی چه دیارلس کاله روستو دا دعا قبوله شوه. کله دعا دومره روستو هم قبلیږی، پدے کښې د الله تعالیٰ حکمتونه وی.

یَا زَكَرِيَّا: سیوطیؒ په «اتقان» کښې لیکلی دی چه د بعض پیغمبرانو نومونه د بره آسمان نه راغلی دی چه هغه دا دی: اسماعیل، اسحاق، یحیی، عیسیٰ او محمد (علیهم السلام).

سَمِيًّا: همنامے (یو شان نوم والا) ١- په انسانانو کښې دا نوم بل چا دهٔ نه مخکښې نهٔ وو ایښے. لکه په عربو کښې د حسن او حسین نوم چا نهٔ وو ایښے، اول رسول الله ﷺ د خپلو نمسو دپاره کیخودو. ٢- یا سمی په معنیٰ د مثل او مشابه سره دے، (د مُسَامَاةٌ یا سُمُوٌّ نه دے) د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه شنڼو بنځو ددے نه مخکښې دهٔ په شان بچے نهٔ وو زیږولے. او پدے کښې دهٔ زیات فضیلت ته اشاره ده چه دهٔ نوم آسمانی دے.

او بله دا چه دهٔ په شان نوم د بل چا نهٔ وو نو دا هم دهٔ تعظیم او تشریف ته اشاره ده.

یحیی په عجمیٔ کښې نِعْمَةُ الرَّب ته وئیلے شی یعنی د الله نعمت او په عربیٔ کښې ئے معنیٰ د ژوند ده.

| قَالَ رَبِّ اَنّٰى یَكُوْنُ لِیْ غُلٰمٌ وَّكَانَتِ امْرَاَتِیْ عَاقِرًا وَّقَدْ |
|---|
| اُووئیل هغه اے ربه! په کوم طریقه به وی ما لره هلك او ده بنځه زما شنده شوے او یقیناً |
| بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِیًّا ﴿٨﴾ قَالَ كَذٰلِكَ قَالَ |
| رسیدلے یم زهٔ د بوډاوالی د وجه نه آخری عمر ته. اُووئیل جبریل دغه شان وئیلی دی |
| رَبُّكَ هُوَ عَلَیَّ هَیِّنٌ وَّقَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ |
| رب ستا چه دا کار په ما باندے آسان دے او یقیناً ما پیدا کړے ئے تهٔ مخکښې ددے نه او نهٔ |

تَكُ شَيْئًا ﴿٩﴾ قَالَ رَبِّ اجْعَل لِّي آيَةً ۚ قَالَ آيَتُكَ

وې نهٔ هیڅ شے۔ اُوونیل دهٔ اے ربه زما اُوګرځوه ما لره یوه نخه، اُوونیل الله نخه ستا دا ده

أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ﴿١٠﴾ فَخَرَجَ

چه خبرے به نشے کولے د خلقو سره درے شپے حال دا چه تهٔ به روغ ئے۔ نو را اُووتو هغه

عَلَىٰ قَوْمِهِ مِنَ الْمِحْرَابِ فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ أَن سَبِّحُوا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴿١١﴾

په قوم خپل د عبادت خانے نه نو اشاره ئے وکړه هغوی ته چه پاکی وایئ صبا او بیګا۔

**تفسیر**: زکریا علیه السلام چه دا زیرے وموندو نو د ظاهری حالاتو په وجه د الله په عظیم قدرت باندے ئے حیرانتیا ښکاره کړه او وے وئیل چه زما ربه! زما به هلك څنګه وی، زما ښځه شنډه ده، او زهٔ د بوډاوالی داسے حالت ته رسیدلے یم چه ددے نه روستو څه تدبیر او کوم علاج فائده نهٔ ورکوی۔

یوه بله رائے دا ده چه دهٔ د زیری موندلو نه روستو د خپلے ښځے حالت ته نظر وکړو نو د بچی د پیدا کیدو کیفیت پیژندل ئے غوختل۔ او دا تپوس د استبعاد او انکار دپاره نهٔ دے څکه چه بیا ئے بچے ولے په داسے عمر کښې غوختلو۔

عِتِيًّا: ډیرے زمانے ته۔ دا د عُتُوٌّ نه دے تجاوز ته وئیلے شی۔ او دا کنایه ده د يُبْسُ الْمَفَاصِل نه یعنی د ډیر بوډاوالی په وجه د اندامونو د وچیدلو نه۔

قَالَ كَذٰلِكَ: جبریل علیه السلام ورته ووئیل۔ یا دا هم د الله تعالیٰ وینا ده: اَیْ اَنْتَ كَذٰلِكَ۔ ته به په همدے حالت کښې ئے۔ یا اَلْاَمْرُ كَذٰلِكَ۔ خبره همدغه شان ده څنګه چه مخکښې ذکر شوه چه ستا به بچے ضرور پیدا کیږی۔

هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ: د هغهٔ د تعجب او حیرانتیا لرے کولو دپاره ئے زیات وفرمایل چه ستا رب وائی چه داسے کول ما ته آسان دی چه د بوډا او شنډے ښځے نه بچے پیدا کړم۔ او زما د قدرتِ مطلقه په اعتبار سره پدے کښې ستا دپاره هیڅ حرانتیا نهٔ ده پکار څکه چه ما تهٔ پخپله ددے نه مخکښې د یوے سپکے نطفے په ذریعه د عدم (نشتوالی) نه وجود ته راوستے. او د مور او پلار په ذریعه پیدا کول خو زیات آسان دی۔

نو پدے کښې د اتخاذ الولد د عقیدے رد هم دے لکه دا د هغے دپاره مقدمه ده، او پدے آیتونو کښې د الله تعالیٰ د رحمت نه دا ذکر ده چه هغه بندګانو ته داسے زیری ورکوی او

هغه په هر شی قدرت لری، او بنده له د هغه د رحمتونو نه نا امیدی نهٔ ده پکار۔ او په الله باندے دا گمان مهٔ کوه چه هغه سره صرف وهل تکول او جهنم او اُور او عذابونه دی بلکه هغه رحیم دے۔

قَالَ رَبِّ اجْعَل لِّيْ آيَةً : زکریا علیه السلام ووئیل، زما ربه! ما ته کومه نخه راوخایه دے دپاره چه پو هه شم چه واقعی حمل ځای نیولے دے، او زما زړهٔ ته زیات اطمینان حاصل شی۔

شوکانیؒ لیکی چه ددے سوال نه مقصد دا وو چه کله حمل راشی نو دهٔ ته معلومه شی، ځکه چه د زیری ورکولو په وخت د هغهٔ یو مُعیّن وخت نهٔ وو خودلے شوے۔

ابن الانباریؒ وائی چه د زیری په آوریدو سره ددهٔ په زړهٔ کښ دا خواهش پیدا شو چه اُوس په جلتیٔ سره ددهٔ په کور کښ بچے پیدا شی۔ پدے وجه وے غوختل چه د الله د طرف نه چه په دهٔ باندے کوم احسان کیدونکے دے، د هغے سمدستی نخه اُوخودلے شی، آه۔

(فتح البیان)

قَالَ آيَتُكَ : الله تعالیٰ فرمائی چه ستا دپاره به نخه دا وی چه ستا ژبه او جسم به بالکل صحیح او سالم وی، او بیا به هم تهٔ درے ورځے او درے شپے هیڅا سره خبرے نشے کولے۔

او د ژبے بندیدو حکمتونه سورة آل عمران کښ ذکر شویدی چه ذکر او عبادت په اخلاص سره وکړی، د دنیاً خبرے بالکل ونکړی، او په ذکر سره په بدن کښ قوت پیدا کیږی۔

سَوِيًّا: دا یا صفت د لَيَالٍ دے په معنیٰ د مُتَسَاوِيَاتٍ سره، یعنی درے شپے برابرے۔

ظاهر دا دے چه دا حال دے د (تُکَلِّمَ) د ضمیر مخاطب نه۔ اَیْ حَالَ کَوْنِكَ سَوِيًّا ۔ یعنی په داسے حال کښ چه تهٔ به بنه روغ او برابر ئے او خبرے به نشے کولے۔ په سورة آل عمران (٤١) آیت کښ درے ورځے ذکر وے او دلته درے شپے نو دواړه مراد دی۔

فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ: د داعی سری بغیر د دعوت نه وخت نهٔ تیریږی، نو دهٔ پدے حالت کښ هم دعوت چلولو۔ کله چه د زکریا علیه السلام آواز بند شو نو د محراب نه را اُووتو او فوراً خپل قوم خوا ته راغلو او هغوی ته ئے د اشارے په ژبه کښ ووئیل چه تاسو صبا او بیگاه د الله په تسبیح او تحمید (حمدونو وئیلو) کښ مشغول شئ۔

دلته د «اَوْحیٰ» معنیٰ اشاره ده، لکه په سورة آل عمران کښ (رمزاً) لفظ راغلے دے، چه د هغے معنیٰ اشاره کول دی۔ مجاهدؒ وائی چه دهٔ په زمکه کښ لیکلو سره خلقو سره خبرے کرے وے۔ په عربی ژبه کښ (وحی) د لیکلو په معنیٰ کښ هم استعمالیږی۔

سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا : ځینی وائی چه مراد ترے د سهار او مازیگر مونځ دے لیکن اول

قول غوره دے۔

| يَا يَحْيَىٰ خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ |
| --- |
| اے یحییٰ واخله کتاب په قوت سره او ورکړے وو مونږ هغه ته پوهه د دین |
| صَبِيًّا ﴿١٢﴾ وَحَنَانًا |
| په وړوکوالی کښې۔ او (ورکړے وو مو هغه ته) شفقت کول (په خلقو باندے) |
| مِّن لَّدُنَّا وَزَكَاةً وَكَانَ تَقِيًّا ﴿١٣﴾ وَبَرًّا بِوَالِدَيْهِ وَلَمْ يَكُن |
| د خپل طرف نه او وو دے متقي۔ او نیکی کونکے د مور او پلار سره او نهٔ وو دے |
| جَبَّارًا عَصِيًّا ﴿١٤﴾ وَسَلَامٌ عَلَيْهِ يَوْمَ |
| سرکشه، نافرمان (د الله نه)۔ او سلامتیا ده (د الله د طرفنه) په دهٔ باندے په کومه ورځ |
| وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ﴿١٥﴾ |
| چه پیدا شو او په کومه ورځ چه مړ کیږی به او په کومه ورځ چه دوباره به ژوندے کیږی۔ |

**تفسیر** : دلته په خبره کښې اختصار شوید ے۔ د زکریا علیه السلام په کور کښې هغه هلك په طبعي طریقه پیدا شو، د هغه نوم خپله الله تعالیٰ یحییٰ کیخودو، او کله چه هغه عقل مند شو نو الله تعالیٰ هغهٔ ته د جبریل علیه السلام په واسطه ووئیل، اے یحییٰ ! د تورات علم ښه طریقے سره حاصل کړه، ځکه چه بنی اسرائیلو به تورات لوستلو، او د موسیٰ علیه السلام نه روستو به د بنی اسرائیلو ټولو انبیاء کرامو او علماؤ او احبارو به د خلقو ترمینځ ددے د تعلیماتو مطابق فیصلے کولے۔ پدے وجه ضروری وه چه هغه تورات په ښهٔ شان ولولی، او پدے کښې د موجودو احکامو او شرائعو پوهه حاصله کړی۔

ځینی وائی چه ددے کتاب نه مراد د یحییٰ علیه السلام یو خاص کتاب وو اګرکه مونږ ته به هغه نهٔ وی معلوم۔ اول قول غوره دے۔

پدے آیت کښې د اسباب د رحم نه تسبیحات وئیل او د الله په کتاب باندے عمل کول او د هغے پوهه حاصلول ذکر دی۔

بِقُوَّةٍ : یعنی په کوشش سره (مجاهدٌ) او عزیمت او همت سره۔ د الله په کتاب کښې به ډیر کوشش کولے شی۔

وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا : الله تعالیٰ یحییٰ علیه السلام ته په ورِوکوالی کښې علم او حکمت، د تورات د پوهے او د نیك اعمالو توفیق ورکړے وو. حکم هوښیارتیا ته هم وائی. او دارنګه عقل ته هم. هغهٔ به د حکمة او د رازونو او د عقلمندئ نه ډکے خبرے کولے. د هغهٔ د حکمتونه یو دا وه چه د الله تعالیٰ نه ډیر یریدو، ډیره ژړا به ئے کوله. بل حکمة ئے دا وو چه ماشومانو ورته په ورِوکوالی کښې وویل چه مونږ سره لوبے وکړه نو دهٔ ورته وویل : [لَمْ نُخْلَقْ لِهٰذَا] مونږ دے دپاره نهٔ یو پیدا کړے شوی. راځئ چه مونځ وکړو. (اخرجه الحاکم فی تاریخه) عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی : اُعْطِيَ الْفَهْمَ وَالْعِبَادَةَ وَهُوَ ابْنُ سَبْعِ سِنِيْنَ) د اوو کالو په عمر ورته پوهه او عبادتونه ورکړے شوی وو.

او عبد الله بن عباس رضی الله عنه دا هم فرمائی : [مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ قَبْلَ اَنْ يَّحْتَلِمَ فَهُوَ مِمَّنْ اُوْتِيَ الْحُكْمَ صَبِيًّا] چا چه د بلوغ نه مخکښې قرآن ولوستو نو دا د هغه چا نه دے چه هغه ته حکمة (پوهه) د ورِوکوالی په زمانه کښې ورك کړے شوید ے.

(البیهقی فی شعب الایمان رقم (۱۷۹۸) وابن ابی حاتم وابن مردویه).

وَحَنَانًا : ۱- شفقت، ۲- رحمت. ۳- محبت. ٤- نرمی. په هغه کښې د خپلو والدینو، خپلوانو، او پردو او د الله د ټولو مخلوقاتو دپاره د رحمت او شفقت او نرمئ یے حده جذبه موجوده وه. او دا یو صفت چه چا کښې موجود وی نو هغه به سیده جنت ته داخلیږی.

(۲) د ﴿وَحَنَانًا مِنْ لَّدُنَّا﴾ یو بل مطلب دا هم دے چه د الله شفقت او رحمت همیشه د هغوی شاملِ حال وو.

وَزَكَاةً : یعنی هغهٔ ته ما د نفس پاکی ورکړے وه. یعنی هغه د ګناهونو نه بالکل پاك، او داسے نیك بنده وو چه د ګناه ئے هیڅ کله سوچ هم نهٔ وو کړے.

زکاة دلته معنیٰ ده تطهیر او برکت او ترقی او نیکئ ده. اَیْ جَعَلْنَاهُ مُبَارَكًا لِلنَّاسِ يَهْدِيْهِمْ اِلَى الْخَيْرِ). یعنی مونږ دهٔ ته برکت او خیر ورکړے وو چه خلکو ته به ئے خیر طرفته رهنمائی کوله.

وَلَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا: او د خپل مور او پلار داسے تابعدار او فرمانبردار وو چه کله ئے هم د هغوی په هیڅ خبره ضد نهٔ وو کړے، او نهٔ ئے د هغوی نافرمانی کړے.

جَبَّارًا: سرکش، متکبر، هغه شخص چه د خپل ځان دپاسه بل څوك نهٔ منی.

عَصِيًّا : (نافرمان). یعنی د خپل رب او د والدینو نافرمان نهٔ وو. جباریت او عصیان د غضب اسباب دی.

وَسَلَامٌ عَلَیْهِ : الله تعالیٰ دهٔ ته د تهولو آفتونو او مصیبتونو نه د امن او سلامتیا خبر ورکړو، او په دهٔ باندې ئې سلام او تحیه ولیږله۔ په کومه ورځ چه هغه پیدا شو په هغه ورځ د شیطان د چونډارې لګولو نه په امن کښې شو، یا پرې الله تعالیٰ په دغه وخت کښې سلام ووئیلو۔ او کله چه وفات شو نو د قبر د فتنو نه محفوظ شو۔ او کله چه به دوباره پورته کړې شي نو دوی ته به هیڅ ګبراهټ نهٔ پیوسته کیږي۔

او د انسان دغه درې وختونه د پریشانۍ دي پدې وجه ئې پدې درې واړو کښې د سلامتیا اعلان ورته وکړو۔ او دا د الله تعالیٰ په یحییٰ علیه السلام خصوصي انعام او مهرباني وه۔ او د مرګ په وخت کښې انسان باندې سخته راځي لکه یحییٰ علیه السلام شهید شویدې لیکن د الله د عذاب نه په سلامتیا کښې وو۔

او دلته ئې سلام نکره راوړه او روستو د عیسیٰ علیه السلام په بیان کښې (وَالسَّلَامُ) معرفه ؟ وجه دا ده چه دا د الله تعالیٰ د طرفنه سلام دې او د هغه د طرفنه لږ هم ډیر وی۔

او پدې کښې هر انسان ته دعوت دې چه که تا کښې دا صفات پیدا شو نو تا ته الله تعالیٰ سلامتیا درکوی۔

| وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا |
|---|
| او یاد کړه پدې کتاب کښې مریم (او د هغې واقعات) کله چه په ډډه شوه د کور والو خپلو نه |
| مَكَانًا شَرْقِيًّا ﴿١٦﴾ فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُونِهِمْ حِجَابًا فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا |
| یو ځائې نمر خاتهٔ طرف ته۔ نو وې نیوله اخوا د دوی نه پرده نو اُولیږلو مونږ هغې ته |
| رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ﴿١٧﴾ قَالَتْ إِنِّي |
| روح خپل (جبریل) نو شکل ئې جوړ کړو هغې ته انسان برابر۔ اُووئیل هغې یقیناً زهٔ |
| أَعُوذُ بِالرَّحْمَٰنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ﴿١٨﴾ قَالَ إِنَّمَا أَنَا |
| پناهي غواړم په رحمٰن سره ستا نه که یې تهٔ تقویٰ دار۔ اُووئیل هغه یقیناً زهٔ |
| رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَامًا زَكِيًّا ﴿١٩﴾ |
| رالیږلې شوې د رب ستا یم (هغه وائی) دې دپاره چه اُوبخم تا ته هلک پاک۔ |

**تفسیر** : اُوس ددې ځای نه تفصیلي واقعه د مریم علیها السلام او د عیسیٰ علیه السلام بیانیږي۔

پدے کښې خو یو غرض جواب د شبهے د مشرکانو او نصاراؤ دے، چه دوی به وئیل چه د مریم او د عیسیٰ علیهما السلام نه عجیبه او ناشنا کارونه ښکاره شویدی، معلومیږی چه دوی متصرف او حاجت روا دی، او پدے وجه نصاراؤ مریم او عیسیٰ ﷺ ته اِلٰه وئیلے دے او د مکے مشرکانو په خپلو بعضو بتانو کښې د مریم شکل جوړ کړے وو. نو دلته د دوی الله تعالیٰ ته عاجزی او د دوی د عبدیت دلائل بیانوی چه دوی خو په هر حالت کښې الله ته محتاج وو. نو پدے کښې رد د اتخاذ الولد هم دے.

دویم غرض پدے کښې دعوت ورکول دی اسبابو د رحمت د الله تعالیٰ ته.

چونکه د یحییٰ ﷺ او عیسیٰ ﷺ په پیدائش کښې یو قسم مشابهت دے چه الله تعالیٰ یحییٰ ﷺ د انتهائی بوډا پلار او بالکل شنډے مور نه پیدا کړو، او عیسیٰ ﷺ ئے بغیر د پلار نه پیدا کړو او د دواړو په پیدائش کښې د الله تعالیٰ د عظیم قدرت اظهار دے، پدے وجه په سورتِ آلِ عمران، پدے سورت او سورتِ انبیاء کښې د دواړو ذکر د یو بل نه روستو شویدے.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ: د کتاب نه مراد قرآن کریم دے. یعنی ته پدے قرآن کښې د مریم واقعه ولوله، او بیا ئے خلقو ته ئے ولوله. مریم بنت عمران علیها السلام د داؤد ﷺ د نسل نه د بنی اسرائیلو د یو دیندارے او شریفے کورنۍ جینۍ وه. د دوی د ولادت قصه په سورة آل عمران کښې تیره شویده. د پیدا کیدو نه روستو دے د خپل ماما زکریا ﷺ په کور کښې تربیت وموندلو، او عقلمند کیدو نه روستو ډیره زاهده، عابده او شپه ژوندۍ کونکے شوه. کله چه الله تعالیٰ ددے د خیټے نه د عیسیٰ ﷺ د پیدا کولو اراده وکړه، نو د مسجد اقصیٰ نه لرې اخوا مشرق طرف ته لاړه. دا ولے تلے وه؟.

چا وئیلی دی چه ماهواری پرے راغلے وه، نو د غسل دپاره لرے لاړه. دا قول بعید دے ځکه چه د خپل کور نه وتل او هسے یو جدا ځای کښې غسل کول مناسب نهٔ ښکاری.

صحیح وجه دا ده چه د عبادت دپاره لرے تلے وه، دے دپاره چه د خلکو د نظرونو او شور شرغب نه محفوظه شی او په بنی اسرائیلو کښې دا کار زیات وو چه د الله تعالیٰ دپاره به ئے خلوت کولو او دے ته بَدَاوَه هم وائی.

نو دا اسبابو د رحمت د الله تعالیٰ نه د الله سره خلوت کول دی.

شَرْقِيًّا : د ابن عباس ﷺ نه روایت دے چه په اهل کتابو باندے هم کعبے طرف ته مخ اړولو سره مونځ کول واجب وو، لیکن د مریم علیها السلام ددے عمل په وجه سره دوی مشرقی جهت خپله (بِدَعِی) قبله جوړه کړه، او د نمر راختلو طرف ته ئے مخ کولو سره

مونځونه شروع کړل۔
فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُوْنِهِمْ حِجَابًا : یعني د دغه ځای وسیدونکو خلکو مخې ته ئې د ځان دپاره پرده ووهله ځکه چه حیاء پکښې زیاته وه چه څوك ئې د عبادت په حال کښې ونهٔ وینی۔
فَاَرْسَلْنَا اِلَيْهَا رُوْحَنَا : هلته جبریل علیه السلام د الله په حکم سره ددې مخې ته د یو مکمل انسان په شکل کښې راغلو۔
دلته د مریم علیها السلام ډیر کرامتونه ښکاره شویدی، جبریل علیه السلام ئې د سړی په شکل لیدلے دے، او هغه ورسره خبرے اترے کړیدی، او بچے ئې بغیر د خاوند نه پیدا شویدے، بل دا چه سمدست پیدا شویدے، بل دا چه د وچې کجورے نه ورته تازه کجورے راپریوتی دی، شپږم دا چه کجوره په خوزولو نهٔ خوزیږی، او دے خوزولے ده۔ اُوم دا چه عیسیٰ علیه السلام په وړوکوالی کښې خبرے کړیدی او ددے براءت ئې بیان کړیدے۔ په بنی اسرائیلو کښې دا کرامتونه زیات وو او ددے آیتونو نه معلومیږی چه کرامتونه د هغه چا ډیروی چه عبادات ئې زیات وی۔
بَشَرًا سَوِيًّا : یعني انسان وو چه هیڅ صفت د بنیادم پکښې ورك نهٔ وو۔ او الله تعالیٰ پیرانو او ملائکو ته دا قدرت ورکړیدے چه مختلف شکلونه اختیارولے شی۔ لکه کله به جبریل علیه السلام رسول الله ﷺ ته د دحیة بن خلیفه الکلبی رضی الله عنه په شکل راتللو۔
قَالَتْ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِالرَّحْمٰنِ : کله چه مریم علیها السلام اُولیدل چه یو خاص نیك انسان ددے د پردے لحاظ کولو نه بغیر ددے مخې ته راروان دے، نو ددے په ذهن کښې شبهه پیدا شوه چه چرته دا سړے په کوم بد نیت سره خو نهٔ دے راغلے، پدے وجه ئې د خپلے ډیرے پاکئ او د عفت د اثر په وجه ووئیل چه اے انسانه! که تهٔ د الله نه یریږے نو زهٔ دے حده مهربان ذات په ذریعه ستا نه پناه غواړم نو زما خوا ته مهٔ راځه۔ او د الله تعالیٰ ئې رحمٰن صفت ذکر کړو ځکه چه ددے اراده وه چه الله تعالیٰ به پدے رحم وکړی او د هغه چا نه به ئې محفوظه کړی چا چه ددے په گمان ددے د بدئ اراده کړیده۔ (ابن عاشورؒ)
په بنی اسرائیلو کښې د رحمٰن لفظ ډیر مشهور وو نو پدے کښې رد دے په مشرکانو چه تاسو رحمٰن نهٔ منئ، او حال دا چه نیکانو صالحینو دا لفظ د الله تعالیٰ دپاره استعمال کړیدے۔ دارنگه اے مشرکانو! تاسو مریم (علیها السلام) د الله تعالیٰ سره شریکوئ حال دا چه هغه د الله تعالیٰ پورے خپله پناه غواړی، الله تعالیٰ ته محتاجه ده۔ د غیبو علم هم ورسره نشته، جبریل نهٔ پیژنی بلکه د انسان گمان پرے کوی۔

إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا: اَیْ اِنْ كَانَ يُرْجٰى مِنْكَ التَّقْوىٰ فَلَا تَأْتِنِیْ ۔ کـه ستـا نـه د تقوىٰ امید کیدے شي نو زما خوا ته مهٔ راځه۔

امـام بـخاريؒ د ابو وائلؒ نه نقل کـړيدي : (عَلِمْتُ اَنَّ التَّقِیَّ ذُوْ نُهْيَةٍ) (بـخاري كتاب التفسير باب ۳۸) دے تـه دا مـعلومه وه چه متقي سړے عقلمند وي، پردو ښځو خواله نهٔ ورځي، او دا ترغيبي جمله وي چه تقوىٰ ښه شے دے ځان کښې ئے پیدا کړه نو زما خواله مهٔ راځه۔

لِأَهَبَ لَكِ: د اَستـازي كـلام پـه اصل كښې د مُرسِل (لیږونکي) وي یعني الله وائي چه زهٔ درتـه بـخښـم۔ پـدے طريقه چه زهٔ به ستا په گریوان کښې پوکے وکړم چه دا به د الله تعالىٰ د طرفنه د هلك دركولو سبب جوړ شي او داسے هلك به وي چه د گناهونو نه به پاك وي۔

لکه چه الله تعالىٰ په سورة التحريم آيت (۱۲) کښې فرمايلي دي :

﴿ وَمَرْيَمَ ابْنَةَ عِمْرَانَ الَّتِيْ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا ﴾

او سورة الانبیاء آیت (۹۱) کښې ئے فرمايلي دي : ﴿وَالَّتِيْ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهَا مِنْ رُّوْحِنَا﴾ په دواړو آيتونو کښې دا بيان شويدي چه الله هغے طرف ته د جبريل عليه السلام په ذريعه د هغے په رحِم کښې د عيسىٰ عليه السلام روح اُوپوکلو۔

يا مطلب دا دے چه زهٔ تا ته زيرے درکوم په هلك سره چه ستا د خيټے نه به پيدا کيږي۔

په يو قراءت کښې ((لِيَهَبَ لَكِ)) راغلے دے۔ يعني زهٔ ستا د رب پيغام راوړونکے يم، تا ته ددے خبرے دپاره راغلے يم چه هغه به تا ته يو داسے هلك درکوي چه د گناهونو نه به پاك وي۔

| قَالَتْ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ |
|---|
| اُووئيل هغے څنګه به وي زما دپاره هلك او نهٔ دے لګولے لاس ما سره هيڅ بنده |
| وَلَمْ اَكُ بَغِيًّا ﴿۲۰﴾ قَالَ كَذٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ |
| او نهٔ يم زهٔ بدکاره۔ اُووئيل هغهٔ دغسے وئيلي دي رب ستا دا کار په ما باندے آسان دے |
| وَلِنَجْعَلَهٗ اٰيَةً لِّلنَّاسِ وَرَحْمَةً مِّنَّا |
| او دے دپاره چه اُوګرځوو مونږ دهٔ لره نخه دپاره د خلقو او رحمت زمونږ د طرف نه |
| وَكَانَ اَمْرًا مَّقْضِيًّا ﴿۲۱﴾ |
| او دے دا کار فيصله کړے شوے۔ |

**تفسیر**: مریم علیها السلام ته ددے خبرے نه ډیر زیات تعجب وشو او دا تعجب بناء دے په عادت باندے، او د الله د قدرت نه تعجب نۀ کوی، وے وئیل چه زما به هلك څنګه کیږی، نۀ زما کوم خاوند شته او نۀ زۀ بدکاره ښځه یم ؟! ځکه چه د اولاد د پیدا کیدو عادةً همدا دوه صورتونه دی۔ یا مطلب ئے دا وو چه ددے بچی د پیدا کیدو به کوم کیفیت وی؟، آیا زۀ به په آینده کښ کوم خاوند کوم او که الله تعالیٰ به ئے همداسے بغیر د خاوند نه پیدا کوی؟۔ نو دا تپوس د کیفیت دے۔

د مس اطلاق اکثر په نکاح کیږی ددے وجه نه ئے دا په مقابله د (بَغِيًّا) کښ راوړو۔

بغی هغه زناکاره ده چه سړی لټوی۔ او دا صفت د زنانه دپاره زیات استعمالیږی، نو پدے وجه تاء راوړو ته ضرورت نۀ وی، لکه د طالق او حائض په شان۔

او مبرّد وائی چه دا په اصل کښ بَغُوْیٌ دے په وزن د فعول، او پدے کښ مذکر او مؤنث برابر وی کله چه په معنیٰ د فاعل وی۔

**قَالَ كَذٰلِكِ**: جبریل علیه السلام ووئیل، آو، تۀ به همداسے ئے، اګرکه ستا کوم خاوند نشته او تۀ څه بدکاره ښځه نۀ ئے ځکه چه ستا رب په هر شی باندے قادر دے، هغه وائی چه داسے کول ما ته ډیر آسان دی۔ هغه آدم علیه السلام بغیر د مور او پلار نه پیدا کړے، او حواء رضی الله عنها ئے صرف د سړی نه پیدا کړے، او باقی اولاد د آدم علیه السلام ئے د مور او پلار په ذریعه پیدا کړی، سویٰ د عیسیٰ علیه السلام نه چه هغه الله تعالیٰ په غیر د پلار نه پیدا کړے۔

**وَلِنَجْعَلَهٗٓ اٰيَةً**: دا عطف دے په (نَخْلُقَهٗ) مقدر باندے۔ یعنی دے دپاره ئے پیدا کوو چه دا د الله تعالیٰ د عظیم قدرت نښه وګرځی۔ او دا نښه د الله د قدرت ده چه ددے په وجه خلکو ته هدایت وکړے شی۔ نو دارنګه د اثبات د آخرت دپاره نښه ده۔

**وَرَحْمَةً مِّنَّا**: او الله عیسیٰ علیه السلام لره د هغۀ د قوم دپاره رحمت جوړ کړے وو، لکه چه هر نبی د خپل قوم دپاره رحمت وی۔ نو هغۀ خپل قوم ته د الله تعالیٰ د توحید او صرف د یو الله د عبادت تعلیم ورکول شروع کړل، او د هغۀ په وجه انجیل نازل شو چه بنی اسرائیلو ته ډیره فائده ملاؤ شوه۔ دارنګه ددے امت دپاره هم رحمت دے چه په آخره زمانه کښ به راکوزیږی او لوی دجال به وژنی۔

**وَكَانَ اَمْرًا مَّقْضِيًّا**: یعنی ستا د بچی پیدا کیدل یو داسے کار دے چه د الله تعالیٰ په علم (تقدیر) کښ فیصله کړے شویدے، اُوس به داسے نۀ وائے چه اے الله ! ما ته ئے مۀ راکوه۔

| فَحَمَلَتۡهُ فَانتَبَذَتۡ بِهٖ |
|---|
| نو حامله شوه په هغه (یا پورته کړو دے په خیټه کښں هغه) نو جدا شوه په هغه سره |
| مَكَانًا قَصِيًّا ﴿۲۲﴾ فَأَجَآءَهَا ٱلۡمَخَاضُ إِلَىٰ جِذۡعِ ٱلنَّخۡلَةِ قَالَتۡ |
| یو ځائے لرے ته۔ نو راوسته هغے لره درد د پیدائش سټے د کجورے ته اُووئیل هغے |
| يَٰلَيۡتَنِي مِتُّ قَبۡلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسۡيًا مَّنسِيًّا ﴿۲۳﴾ |
| اے افسوس دے چه مړه شوے وے مخکښں ددے نه او وے زهٔ هیره تیره۔ |

**تفسیر**: مفسرینو لیکلی دی چه کله جبریل علیه السلام هغے ته د الله فیصله واوروله نو د الله په فیصله باندے راضی شوه، او یو قسم اطمینان ئے محسوس کړو، نو جبریل علیه السلام د هغے خوا ته نزدے راغلو او د هغے په ګریوان کښں ئے پوکے وکړو لکه همدا خبره په حدیث د حاکم کښں راغلے ده وقال صحیح علی شرط مسلم۔ (فَنَفَخَ فِيْ جَيْبِ دِرْعِهَا) (د هغے د قمیص په ګریوان کښں ئے پوکے وکړو)۔ او قرآن کښں دی ﴿فَنَفَخۡنَا فِيهِ﴾ اَیْ فِيْ جَيْبِ دِرْعِهَا)

یو قول دا دے چه د هغے په لمن کښں ئے پوکے وکړو، او یو دریم روایت دے چه د هغے په خوله کښں ئے پوکے وکړو، (لیکن دا قولونه ضعیف دی) بهر حال د پوکی اثر د هغے رحم ته ورسیدو، او د الله په حکم سره حمل قرارے ونیولو۔ دے نه روستو هغه د خلقو د خبرو د یرے نه د خپل قوم نه لرے د غرشا ته یا یوے کندے ته لاړه۔

**فَحَمَلَتۡهُ**: فاء ئے راوړه، یعنی سمدست حامله شوه په هغهٔ سره۔ او دا ځکه چه که پدے باندے نهه میاشتے تیریږی، نو خلك به پرے بدنامه لګوی چه دا حمل ډیے د کوم ځای نه راوړو۔ نو ډیره به پریشانه وی او خطره وه چه څوك به ئے قتل کړی۔

او ددے د حمل د مودے په باره کښں مفسرینو نور اقوال هم لیکلی دی، یو قول دا دے چه د حمل موده نهه میاشتے وه۔ مګر ډیره غوره دا ده چه یوه ګینټه کښں حامله شوه او په بله ګینټه کښں د هغے حمل پیدا شو۔ د حمل دردونه چه پرے کله راغلل، نو د خلقو د خبرونه دا ویریدله نو د بیت المقدس او د خپل قوم نه لرے بیت اللحم نومے کلی ته لاړه کوم چه د بیت المقدس نه صرف اته میله لری وو چه هلته دا د خلقو د سترګو نه غائبه شوه۔دے دپاره چه د دوی طعنونو نه بچه شی۔

آخر د ولادت وخت رانزدے شو او د درد سختی زیاته شوه نو د کجورے یوے ونے خوا ته

لاړه دے دپاره چه د ولادت په وخت د هغې نه مدد واخستے شي، او کله چه دے ته د خلقو د شرم او پیغور خیال راغلو، نو د بشري تقاضے مطابق ئے ووئیل چه هائے ارمان! چه زهٔ ددے نه مخکښ مړهٔ شوے وے، ارمان! چه زهٔ یوه هیره تیره قصه جوړه شوے وے۔

فَأَجَآءَهَا الْمَخَاضُ : یعنی محتاجه کړه دے لره درد د ولادت۔ پدے کښ هم رد دے په مشرکانو چه مریم د دردونه نهٔ ده بچ شوے، دنیا دار الاسباب دے چه په نیکانو خلکو هم تکلیفونه راځي، نو دوی اِلٰهه نشي کیدے، هسے نهٔ چه ددے نه څوك اِلٰه جوړ کړي۔

إِلٰى جِذْعِ النَّخْلَةِ : د ونے ستے ته څکه راغله چه د ولادت په وخت کښ زنانه تکیه ته محتاج وي۔

مِتُّ قَبْلَ هٰذَا : سوال دا دے چه د مرګ تمنا کول خو منع دي، نو دے څنګه مرګ غوښتے دے؟ جواب دا دے چه د مرګ تمنا زمونږ په امت باندے منع ده او د هغوی دپاره منع نهٔ وه۔ (۲) یا دا چه دائے د زیاتے حیاء د وجه نه وئیلي دے۔ او کله نا کله د دین د حفاظت د وجه نه د مرګ آرمان کولے شي۔ لکه دا مسئله په تفسیر د سورة البقره آیت (۹٤) کښ تفصیلي سره لیکلے شویده۔

نَسْيًا مَّنْسِيًّا : دا په محاوره بناء دے چه یو شے د انسان نه هیر شي دا دوه قسمه دے یو دا چه شے هیر شي خو دا ورته یاد وي چه ما نه یو شے هیر شوے وو۔ او دویم هغه هیره ول دی چه بیا دا هم هیر شي چه ما نه یو شے هیر شوے وو۔ نو منسیا معنیٰ داده چه دا هیره هم هیره شوے وے۔

قرآءة واني چه ((نَسْی)) په حیض سره ککړه شوے کپړے ته واني، یعنی هائے ارمان! چه زهٔ د حیض هغه کپړه وے چه هغه ګوزار کړے شي۔

| فَنَادٰىهَا مِنْ تَحْتِهَآ اَلَّا تَحْزَنِىْ قَدْ جَعَلَ |
|---|
| نو آواز اُوکړو دېته (هغه رسول) د لاندے ځائے ددے نه چه مهٔ خفه کیږه یقیناً ګرځولے ده |
| رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ﴿۲٤﴾ وَهُزِّىْٓ اِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسٰقِطْ |
| رب ستا لاندے ستا نه روانه چینه۔ او خوزه وه ځان ته سته د کجورے نو راغورځوی به |
| عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ﴿۲٥﴾ فَكُلِىْ وَاشْرَبِىْ وَقَرِّىْ عَيْنًا فَاِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ اَحَدًا |
| تا ته کجورے تازه۔ نو خوره او څکه او یخوه سترګے نو که اُووینے تهٔ د انسانانو نه یو تن |

فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا فَلَنْ

نو وایئ (هغه ته) یقیناً ما نذر کړیدے د رحمٰن دپاره د روژے (د چپوالی) نو هیچرے به

أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنسِيًّا ﴿٢٦﴾ فَأَتَتْ بِهِ قَوْمَهَا

خبرے نۀ کوم نن ورځ د هیڅ انسان سره۔ نو رائے وړو (بچے) قوم خپل ته

تَحْمِلُهُ قَالُوا يَا مَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْئًا

چه پورته کړے ئے وو (په غیږ کښې) ووئیل دوی اے مریم! یقیناً تا راتلل وکړل یو شی

فَرِيًّا ﴿٢٧﴾ يَا أُخْتَ هَارُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ امْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ﴿٢٨﴾

ډیر ناشنا ته۔ اے خورے د هارون، نۀ وو پلار ستا بد سړے او نۀ وه مور ستا بدکاره۔

**تفسیر:** مریم علیها السلام په یوه ډیره کې ښاندے وه او جبریل علیه السلام د ډیرئ نه لاندے وو کله ئے چه د مریم د غم نه ډکه خبره واوریده نو هغے ته ئے آواز وکړو او رته ئے ووئیل چه اے مریم! غم مۀ کوه، الله تا ته یو داسے بچے درکړیدے چه د قوم سردار، او د عزت او شرافت او اُوچتے مرتبے والا به وی۔ یو بل قول دا دے چه (سَرِيّ) د وړوکی نهر په معنیٰ کښې دے، یعنی الله ستا په قدمونو کښې د معجزے په توګه یو نهر جاری کړیدے۔ همدا قول ظاهر دے ځکه چه په حدیث کښې راغلے دے امام بخاری د ابو اسحاق هغه د براء بن عازب نه موقوفاً نقل کړیدے: (سَرِيًّا : نَهْرٌ صَغِيرٌ بِالسُّرْيَانِيَّةِ) سری په سریانئ ژبه کښې وړوکی نهر ته وئیلے شی۔ (صحیح بخاری: ۳٤۳۵) والصحیحة (۱۸۸/۳)

او صحابی چه د قرآن تفسیر وکړی دا په حکم د مرفوع کښې وی۔ او پدے باره کښې مرفوع روایت هم شته، طبرانی په کبیر (۱/۱٦۷/۳) کښې راوړیدے لیکن هغه ضعیف دے د ایوب بن نهیك متروك په وجه۔

بعض وائی چه عیسیٰ علیه السلام ورسره خبرے وکړے، لیکن اوله خبره صحیح ده چه جبریل علیه السلام ددے د ولادت په وخت کښې یو ځای کښې ناست وو، ددے د خبرے نه روستو ئے ورته آواز وکړو۔

**فائده:** په یو ځا ښاندے چه خفګان راځی د هغے دوه سببونه وی یو فقدان (ورك کیدل) د ظاهری اسبابو۔ دویم اسباب باطنیه ختمیدل لکه د شرم وغیره نه یره۔ نو الله دلته دواړه

ذکر کړل چه خوراك څکاك هم شته او چه څوك اعتراض کوي نو عیسیٰ ﷺ به د هغې جواب ورکوي۔

وَهُزِّيٓ: د کجورې څانګه ونیسه او هغه وخوزوه ، ددې نه به تا ته تازه کجورې راغورزېږي۔ دا ددې کرامت دې چه تنه د کجورې ددې په خوزولو سره خوزیدلې ده۔

رُطَبًا جَنِيًّا: (کجورې تازه)۔

فَكُلِي وَاشْرَبِي وَقَرِّي عَيْنًا: کجورې خوره او د نهر تازه اُوبه څکه، او خپل څوي ته ګوره او سترګې پرې یخوه، او غم مهٔ کوه، او کله چه تهٔ یو انسان ووینې چه تا نه ستا د بچي په باره کښې تپوس وکړي، نو په اشارې سره هغه ته وایه چه ما د الله دپاره د غلي وسیدو نذر منلې دې، نن ورځ به زهٔ د هیڅ انسان سره خبرې نهٔ کوم۔ مفسرین لیکي چه دې ته دا حکم پدې وجه ورکړې شو چه د ناپوهو سره ددې د خبرو نمبر رانشي او د عیسیٰ ﷺ خبرې د هغې د براءت او پاکدامنۍ قطعي او یقیني دلیل جوړ شي چه ټول خلق غلي کړي۔

فَقُولِيٓ إِنِّي نَذَرْتُ: یعني دا یو قول (وینا) ورلره جائز وه چه ما نذر منلې دې۔ یا دا قول په اشاره سره دې څکه چه اشاره عالمي لغت دې۔

او د بنی اسرائیلو په دین کښې د خبرو بندولو روژه هم عبادت وو۔ او زمونږ په دین کښې دا منسوخ شویدې۔ رسول الله ﷺ یو تن ولیدو چه په نمر کښې ولاړ وو نو وې فرمایل : ددې سړي دپاره څه شویدي؟ خلکو وویل : [نَذَرَ اَنْ يَّقُوْمَ وَلَا يَقْعُدَ وَلَا يَسْتَظِلَّ وَلَا يَتَكَلَّمَ وَيَصُوْمَ] دهٔ دا نذر کړیدې چه دې به ولاړ وي، نهٔ به کیني او سوري ته به نهٔ کیني او خبرې به نهٔ کوي او روژه به ئې نیولې وي) رسول الله ﷺ وفرمایل : حکم ورته وکړئ چه خبرې وکړي، سوري ته شي، او کیني او خپله روژه دې پوره کړي۔ او دا سړې ابو اسرائیل وو۔

(بخاري : ٦٧٠٤)

لِلرَّحْمٰنِ: دا لفظ بیا راغلو اشاره ده چه د الله د رحمت بل سبب د الله دپاره روژې نیول دي۔

فَاَتَتْ بِهٖ قَوْمَهَا: (راغې ورو هغه لره خپل قوم ته) کله چه مریم علیها السلام د نفاس نه فارغه شوه، او د الله تعالیٰ د انعاماتو او اکراماتو په لیدلو سره یو قسم اطمینان ورته حاصل شو نو خپل بچې عیسیٰ ﷺ ئې په غیږه کښې نیولې وو، خپل قوم خوا ته راغله۔ خلقو د هغې په غیږه کښې د بچي لیدلو سره د غم او حیرانتیا نه ډکه او سوې جذبه ښکاره کړه، څکه مریم د ډیرلوئي دیني خاندان لور وه۔ خلقو په هغې باندې انکار کولو سره ووئیل چه اے مریم! تا خو ډیر بد کار کړیدې چه ناجائز بچې دې راروان کړې۔

د یوے پیغلے نه په داسے طریقه بچے پیدا کیدل خو واقعی چه د تعجب او ناشنا والی خبره ده، نو خلك پرے اعتراض کوی لیکن دے خلکو لره بد اخلاقی کریده ځکه چه د مریم تقویٰ او بزرگی او پاکدامنئ ته هم کتل پکار دی، او پکار ده چه د هغے نه اول تحقیق وکرے شی، روستو پرے اعتراض وکرے شی که د اعتراض لائقه وی۔ خو دوی سمدست اعتراض شروع کرو۔

فَرِيًّا: ١- عَجِيْبًا نَادِرًا۔ (ابو عبیدة) عجیبه ناشنا۔ ٢- اَلْعَظِيْمُ اَیْ مِنَ الْاَمْرِ۔ لوی کار۔ دا په خیر او شر دواړو کښں استعمالیږی۔ (مجاهدؒ)

يَا اُخْتَ هَارُوْنَ: د زیاتے زورنے ورکولو دپاره ئے ورته ووئیل، اے د هارون خورے! ستا پلار خو کوم بدکاره نۀ وو او نۀ ستا مور زناکاره ښځه وه۔ دا د خلکو عادت وی چه مور او پلار نیکان وی هغه ورته ذکر کوی۔

هَارُوْنَ: (١) ددے نه مراد د موسیٰ علیه السلام ورور هارون دے، ځکه چه مریم د هغے د نسل نه وه۔ یا پدے وجه چه خلقو به مریم د هارون علیه السلام په شان عابده او صالحه گنړله۔ پدے وجه ئے د هغه په نوم یادولو سره دے ته پیغور ورکړو۔

(٢) یو دویم قول دا دے چه پدے نوم سره ددے یو ورور وو چه په نیکئ او صلاح کښں مشهور وو۔ د صحیح حدیث نه ددے تائید کیږی۔ امام احمدؒ، مسلمؒ، ترمذیؒ او نسائیؒ وغیره د مغیره بن شعبه رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زۀ د نجران عیسایانو ته ولیږلم۔ نو هغوی ووئیل چه تاسو په خپل قرآن کښں د مریم په باره کښں ﴿يَا اُخْتَ هَارُوْنَ﴾ لولئ، حال دا چه موسیٰ علیه السلام خو د عیسیٰ علیه السلام نه په سلونو کلونو مخکښں تیر شویدے؟۔ ( هغه وائی ما له جواب نۀ راتللو) نو زۀ چه راواپس شوم دا خبره مے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ذکر کره، هغه راته وفرمایل:

[اَلَا اَخْبَرْتَهُمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا يُسَمُّوْنَ بِالْاَنْبِيَاءِ وَالصَّالِحِيْنَ قَبْلَهُمْ] (تا دوی ته ولے نۀ وئیل چه دے خلقو به خپلو ماشومانو ته د انبیاء او صالحینو نومونه کیخودل)۔

(صحیح مسلم فی الادب حدیث ٩، والترمذی فی تفسیر سورة ١٩، باب ١ واحمد ٤/٢٥٢)

یعنی هارون د مریم د ورور نوم وو۔

(٣) یا هارون په دغه زمانه کښں یو نیك عمله سړے وو چه مریم د هغۀ سره په نیکئ کښں مشابه وه۔ او دے قول ته ابن کثیرؒ ترجیح ورکړیده۔ مگر دویم قول ظاهر دے۔

| فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ |
|---|
| نو اشاره اوکړه دې هغې ته اووئیل دوی څنګه به خبرې اوکړو مونږ د هغه چا سره |
| كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا ﴿٢٩﴾ قَالَ إِنِّي عَبْدُ اللهِ آتَانِيَ |
| چه دې په غیږه کښې ماشوم۔ اووئیل هغه (بچی) یقیناً زهٔ بند د الله یم ، راکوی به ما ته |
| الْكِتَابَ وَجَعَلَنِي نَبِيًّا ﴿٣٠﴾ وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا أَيْنَ مَا |
| کتاب او ګرځوی به ما پیغمبر۔ او ګرځوی به ما برکت والا ( فائده مند) هر ځائے |
| كُنْتُ وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ |
| چه یم زهٔ، او وصیت به کوی ما ته د مانځه او د زکوٰة ترڅو پورې چه همیشه یم زهٔ |
| حَيًّا ﴿٣١﴾ وَبَرًّا بِوَالِدَتِي وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا ﴿٣٢﴾ |
| ژوندې۔ او نیکی کونکے د مور سره او نهٔ ئې دې ګرځولے ما لره سرکشه بد بخته۔ |
| وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُ وَيَوْمَ |
| او سلامتیا ده په ما باندې په کومه ورځ چه پیدا کړې شوم زهٔ او په کومه ورځ |
| أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا ﴿٣٣﴾ ذَٰلِكَ عِيسَى ابْنُ |
| چه مړ کیږم به او په کومه ورځ به چه دوباره راپورته کولے شم ژوندې۔ دا عیسیٰ ځوی |
| مَرْيَمَ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴿٣٤﴾ |
| د مریم دې، (وایم زهٔ) وینا حقه هغه چه په هغې کښې دوی شکونه کوی۔ |

**تفسیر** : مریم علیها السلام بچی طرف ته اشاره وکړه او خلقو ته ئې ووئیل چه ددهٔ نه تپوس وکړئ، نو خلقو ووئیل چه مونږه د غیږې بچی سره څنګه خبرې وکړو؟ عیسیٰ ؑ د هغوی خبره واوریده نو خبرې ئې شروع کړې او وې وئیل چه زهٔ د الله بنده یم، هغه په ازل کښې فیصله کړیده چه هغه به ما ته انجیل راکوی، او ما به نبی ګرځوی، او زهٔ چه چرته هم یم نو هغه ما لره د خیر او برکت او د دعوت والا ګرځولے دے، زهٔ به د خپل رب پیغام خلقو ته رسوم۔

مفسرین لیکی چه کله عیسیٰ ؑ اول ځل خبره وکړه نو خپل ځان ئې د الله بنده یاد کړو

او د هغه د خوی کیدو نه ئے انکار وکړو۔
وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا: برکة یا د بُرُوْكُ الْبَعِيْر نه دے او معنیٰ ئے ده د اوښ کیناستل۔
۱- نو معنیٰ دا ده: (جَعَلَنِيْ ثَابِتًا فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ) او زۀ ئے گرځولے یم مضبوط په دین د الله تعالیٰ۔
۲- یا برکت زیادت او علو (پورته والی) ته وائی۔ یعنی زۀ ئے په تولو څیزونو کښې زیات او پورته گرځولے یم۔
۳- نَفَّاعًا لِلْعِبَادِ۔ خلکو ته فائده ورکونکے۔ ځکه چه دۀ به مړی ژوندی کول او خلکو ته به ئے دین بیانولو۔
٤- مُعَلِّمًا لِلْخَيْرِ۔ د خیر او دین تعلیم ورکونکے۔
٥- آمِرًا بِالْمَعْرُوْفِ نَاهِيًا عَنِ الْمُنْكَرِ۔ ځوك چه د دعوت کار کوی هغه مُبارك دے۔ نو دا یو اځے د عیسیٰ ﷺ صفت نشو۔
مَا دُمْتُ حَيًّا: یعنی تر مرګه پورے به زۀ مونځ کوم او زکاة به ورکوم۔ دا په دوه خبرو دلیل دے، یو دا چه عبادتونه به تر مرګه پورے کولے شی، نو کوم صوفیاء چه ددے قائل دی چه کله نفس د قوتِ قدسیه سره پیوسته شی، بیا ورته عبادتونه معاف شی، دا سراسر خطاء ده، او د شریعت نه ځان رابنکل دی۔
دویم دا معلومه شوه چه [اَلْاَمْوَاتُ لَايُصَلُّوْنَ وَلَا يُزَكُّوْنَ]۔ مړی نۀ مونځونه کوی او نۀ زکاتونه ورکوی)۔
او کوم حدیث کښې چه راغلی دی چه ما په لیلة الاسراء کښې موسیٰ ﷺ په قبر کښې ولیدو چه مونځ ئے کولو۔ (صحیح مسلم: ٦٣٠٦) نو هغه د برزخ امور دی، نۀ د دنیاء هغه د تلذذ په طریقه کول دی او په طریقه د تکلیف سره نۀ دی۔
وَبَرًّا بِوَالِدَتِيْ: مفسرینو لیکلی دی چه دا د عیسیٰ ﷺ په ژبه سره اقرار او اعلان وو چه الله تعالیٰ هغه بغیر د پلار نه پیدا کړیدے۔ عیسیٰ ﷺ دا هم وونیل: او الله زۀ متکبر او گناهگار نۀ یم گرځولے، (اَلشَّقِيُّ هُوَ الَّذِيْ يُذْنِبُ وَلَا يَتُوْبُ)۔
شقی یعنی بد بخته هغه انسان دے چه گناهونه کوی او توبه ترے نۀ وباسی۔
(اَلْعَاقُّ)۔ شقی معنیٰ نافرمانه۔ یعنی زۀ به تواضع او عاجزیٔ والا یم۔ او د هغهٔ د تواضع نه دا وه چه هغه به د ونو پاڼرے خوړلے او په خاورو به کیناستو، او ځان له ئے کور نۀ وو جوړ کړے۔ (فتح البیان)
وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُّ: یعنی د الله د طرف نه امن او سلامتیا به ما سره شاملِ حال

وی، په هغه ورځ چه کله زهٔ پیدا شوم او په هغه ورځ به هم وی چه کله زهٔ مړ کیږم او کله چه زهٔ دویم ځلې ژوندے راپورته کولے شم. وئیلی کیږی چه ددے ښکاره کلام نه روستو بیا عیسیٰ ﷺ تر څو پورے چه د خبرو عمر ته نهٔ وو رسیدلے هیڅ خبره ونکړه.

ذٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ : دا د الله تعالیٰ قول دے چه تر اوسه پورے چه څه د عیسیٰ ﷺ په باره کښې بیان شوا او څه چه هغهٔ په خپله ژبه سره د خپل ځان په باره کښې ووئیل، همدا د هغهٔ حقیقت دے، او همدا هغه حقه خبره ده چه پدے کښې خلق اختلاف کوی، عیسیٰ ﷺ هغه نهٔ دے چه د هغهٔ په باره کښې یهودیان وائی چه دا جادوگر وو، او د یوسف نجار ځوی وو، او نهٔ هغه دے چه د هغهٔ په باره کښې د نصاراو یوه ډله وائی چه دا الله وو.

او بله ډله وائی چه د الله ځوی وو. او دریمه ډله وائی چه د دریے معبودانو نه یو وو. د دوی نه چه کومو خلقو ووئیل چه دا د الله تعالیٰ بنده او د هغهٔ رسول او د هغهٔ روح او د هغهٔ کلمه وه هغوی مسلمانان شو. (فتح)

قَوْلَ الْحَقِّ : ۱- منصوب بنا بر مدح دے (اَیْ اَمْدَحُ قَوْلَ الْحَقِّ) زهٔ صفت کوم د حقے وینا.

۲- اَیْ اَقُوْلُ قَوْلَ الْحَقِّ. زهٔ وایم د عیسیٰ ﷺ په باره کښې وینا د حقیقت مطابق.

يَمْتَرُوْنَ: دا د مِرَاء نه دے جګړے کولو ته وئیلے شی. یا د مِرْيَةٌ نه دے شك کولو ته وائی.

| مَا كَانَ لِلّٰهِ أَنْ يَّتَّخِذَ مِنْ وَّلَدٍ سُبْحَانَهُ إِذَا قَضٰى |
|---|
| نهٔ دی مناسب الله تعالیٰ لره چه اونیسی څه اولاد، پاك دے هغه، کله چه فیصله کوی |
| أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُوْلُ لَهُ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۳۵﴾ وَإِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ |
| د یو کار نو یقیناً وائی هغهٔ ته چه شه نو هغه اوشی. او یقیناً الله تعالیٰ رب زما دے |
| وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿۳۶﴾ فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ |
| او رب ستاسو دے نو بندګی کوئ د هغه، دا لاره نیغه ده. نو اختلاف وکړو ډلو |
| مِنْۢ بَيْنِهِمْ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| (ضدیانو) په مینځ خپل کښې نو هلاکت دے د هغه کسانو دپاره چه کفرئے کړیدے |
| مِنْ مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۳۷﴾ أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ |
| د حاضرئ د ورځے لوئی نه. څه ښه آوریدونکی به وی دوی او څه ښه لیدونکی به وی |

يَوْمَ يَأْتُوْنَنَا لٰكِنِ الظّٰلِمُوْنَ الْيَوْمَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۸﴾

په کومه ورځ چه رابه شي مونږ ته لیکن ظالمان نن ورځ په ګمراهۍ ښکاره کښې دي۔

**تفسیر** : الله تعالیٰ دپاره دا خبره په هیڅ طریقه صحیح نۀ ده چه هغه خپل ځان دپاره کوم اولاد ونیسی، هغه د جاهلانو او د ناپوهو ددے خبرے نه بالکل پاك دے، هغه خو چه کله د یو شی فیصله کوی، نو وائی چه شه نو هغه شے کیږی۔ او د کوم ذات باری تعالیٰ چه دا صفت دے د هغه اولاد څنګه کیدے شی۔

مَا كَانَ لِلّٰهِ: په معنیٰ د مَا صَحَّ سره دے۔ او مِنْ وَّلَدٍ کښې (مِنْ) زیات شو چه دا دلالت کوی په نفی د یو او د ډیرو۔

وَاِنَّ اللّٰهَ رَبِّیْ: دا د عیسیٰ ﷺ د کلام تتمه ده چه بیشکه الله زما او ستا رب دے، پدے وجه د هغۀ عبادت کوئ، همدا نیغه لاره ده، څوك چه پدے باندے روان شی هغه به رُشد او هدایت مونده کوی، او څوك چه ددے مخالفت کوی هغه به ګمراه کیږی۔ او دا قول ئے راجدا کړو څکه چه دا د عیسیٰ ﷺ د نبوت نه روستو خبرے دی او هغه په وړوکوالے کښې وے۔

او دا آیت رد دے په مشرکانو چه عیسیٰ ﷺ خو خپل رب ته دعوت ورکولو او ځان ئے مربوب ګنړلو نو هغه څنګه اِلٰه کیدے شی۔

فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَيْنِهِمْ: اهل کتابو د عیسیٰ ﷺ د حقیقت په باره کښې د هر څه د ښکاره کیدو نه روستو اختلاف وکړو لکه چه مخکښې بیان شو چه یهودو هغه ته جادوګر او د هغه مور ته ئے زانیه (زناکاره) ووئیله (عِیَاذًا بالله) او نصاریٰ د هغۀ په باره کښې په دومره طبقو باندے تقسیم شو چه د هغوی هیڅ شمار نشی کیدے۔ او د هغه کفری عقیدو په وجه ټول د الله په نظر کښې کافران شو۔ پدے وجه الله تعالیٰ دهمکی ورکړه او وے وئیل چه د قیامت په ورځ به کله چه هغوی د الله تعالیٰ مخے ته حاضر شی نو هلاکت او تباهی به د هغوی قسمت جوړیږی، او جهنم ته به دیکه کولے شی۔

بخاریؒ او مسلمؒ د عباده بن صامت ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ فرمائی : ((چا چه ګواهی ورکړه چه د الله تعالیٰ نه سویٰ هیڅوك حقدار د بندګئ نشته، د هغۀ هیڅ شریك نشته، او محمد (ﷺ) د هغۀ بنده او رسول دے، او عیسیٰ د الله بنده او د هغۀ رسول دے، او د هغۀ کلمه ده چه مریم ته ئے رااړتولے وه او د هغۀ د طرف نه یو روح دے او جنت حق دے، او جهنم حق دے نو الله تعالیٰ به ئے جنت ته داخل کړی اګرکه ددۀ عمل

هر څنګه وي))۔ (بخاري:۳۴۳۵) مسلم:(۱۴۹)
مَشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيْمٍ: (۱) دا صيغه د مصدر ده اَیْ مِنْ شُهُوْدِ يَوْمٍ۔ د حاضريدو د ورځې لوی نه۔ (۲) یا ظرف دے مَکَان الشُّهُوْدِ فِيْهِ۔ ځای د حاضریدو نه په دغه ورځ کښې۔
(۳) یا د ګواهۍ د دغه ورځې نه په دوی باندے۔
اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ: د قیامت په ورځ چه د کافرانو کوم حال وي د هغے الله تعالیٰ خبر ورکوي چه کله خلق د حساب او جزا دپاره میدان محشر ته راشي نو د هغوي د آوریدو او لیدلو قوت به د حیرتناك حده پورے تیز وي، او په دنیا کښې د دوي حال دا وو چه نهٔ دوي حقه خبره آوریدله، او نهٔ د حق لاره دوي ته په نظر راتله، ځکه دوي په حق باندے د ځان پوهه کولو دپاره کله هم د الله په آیتونو او نخو کښې د سوچ او فکر کوشش نهٔ دے کړے۔
الله تعالیٰ په سورة السجده آیت (۱۲) کښې فرمایلي دي: ﴿وَلَوْ تَرٰى اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ رَبَّنَا اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا﴾ (مجرمان به خپل رب ته سر ټیټولو سره وائي، اے ربه زمونږ! مونږ په ښه شان ولیدل او وامو وریدل) لیکن په هغه ورځ لیدل او آوریدل به دوي ته فائده نهٔ ورکوي۔ او پدے کښې تولے هغه باطل پرستے ډلے داخلیږي چه د عیسیٰ علیه السلام په باره کښې غلطه عقیده لري۔

| |
|---|
| وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ اِذْ قُضِيَ الْاَمْرُ وَهُمْ |
| او یره ورکړه دوي لره د ورځې د افسوس نه کله چه فیصله به اوشي د کار (د دوي) او دوي |
| فِيْ غَفْلَةٍ وَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۹﴾ اِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْاَرْضَ |
| (اُوس) په غفلت کښې دي او دوي ایمان نهٔ راوړي۔ یقیناً مونږ په میراث اخلو زمکه او |
| وَمَنْ عَلَيْهَا وَاِلَيْنَا يُرْجَعُوْنَ ﴿۴۰﴾ |
| او هغه څوك پدے باندے دي او خاص مونږ ته به دوي راګرځولے شي۔ |

**تفسیر**: اُوس نبی کریم ﷺ ته خطاب کوي چه تهٔ خلق د هغه ورځې نه اُویروه په کومه ورځ چه به تول خلق افسوس نه کوي، ګناهګار به خپل ګناهونه رایاد کړي او نیك سرے به دا سوچ کوي چه دهٔ ولے زیات نیك کارونه نهٔ کول۔
يَوْمَ الْحَسْرَةِ: ۱- قیامت ته د حسرت (افسوس) ورځ وائي ځکه چه قیامت کښې د هر چا افسوس شته، هر څوك چه مر شي هغه پښیمانه کیږي، نیکان به پښیمانه وي پدے

چه ولے ئے زیاته نیکي نۀ کوله او بدان به وائي چه مونږ ولے گناه نۀ پریخوده۔

۲- بِذَبْحِ الْمَوْتِ۔ یعنی مرگ به د گډ په شکل راوستے شي او د جنتیانو او د جهنمیانو ترمینځ به ذبح شي چه اُوس د دواړو ډلو دپاره مرگ ختم۔ نو کافران به دغه وخت افسوس کوي۔ بیا رسول الله ﷺ دا آیت ولوستو (بخاري ومسلم)

او حدیث کښې دي چه (لَيْسَ يَتَحَسَّرُ أَهْلُ الْجَنَّةِ إِلَّا عَلَى سَاعَةٍ مَرَّتْ بِهِمْ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِ اللَّهِ) جنتیان په هیڅ شي افسوس نۀ کوي مگر په هغه وخت باندے چه دوی نه په غیر د ذکر د الله تعالیٰ کښې تیر شویدے۔ (الطبراني في المعجم الکبیر (۱۶۶۰۸) و شعب الایمان (۵۰۹) ومسند الشامیین وسنده ضعیف یزید بن یحیی القرشي لیس بقوي قال الذهبي في المیزان : لا یعرف، وقال ابو حاتم : لیس بالقوي) السلسلة الضعیفة (۴۹۸۶)

إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ: په هغه ورځ به د ټولو کارونو فیصله کیږي، حساب به کیږي، عملنامے به راتاو کړے شي، او د هر چا مخے ته به کیخودے شي، جنتیان به جنت ته او جهنمیان به جهنم ته اُولیږلے شي، لیکن نن حال دا دے چه په خلقو باندے سخت غفلت طاري دے، په آخرت کښې به د دوی انجام څه وي، ددے هیڅ فکر نشته، بلکه اکثر خلق په آخرت باندے ایمان نۀ لري۔

إِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْأَرْضَ: الله تعالیٰ خبر ورکړیدے چه یوه ورځ به داسے راځي چه په زمکه به موجود تمام مخلوقات فناء کیږي، هیڅوك به باقي پاتے نۀ وي، صرف د الله ذات به پاتې کیږي، هغه به د زمکے او د تمامو مخلوقاتو یواځے وراث وي۔ او بیا به ټول په ټوله دویم ځلی ژوندي کیدو سره د هغۀ خوا ته راځي۔ او د هغۀ په حضور کښې به ودریږي او د خپلو عملونو حساب به ورکوي او د نیکئ یا بدئ بدله به موندۀ کوي۔

دا آیت دلیل دے چه وارث صرف الله تعالیٰ دے او څوك چه دا وائي چه «الله نبي وارث» نو دا شرکي کلمه ده۔ لکه دا خبره بار بار تیره شوه۔

| وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَبِيًّا ﴿٤١﴾ إِذْ |
|---|
| او یاد کړه په کتاب کښې ابراهیم علیه السلام، یقیناً هغه وو ډیر رشتینے پیغمبر۔ کله چه |
| قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ |
| اُووئیل هغۀ پلار خپل ته اے پلاره! ولے بندگي کوے د هغه چا چه نۀ آوري او نۀویني |

وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا ﴿٤٢﴾ يَا أَبَتِ إِنِّي قَدْ جَاءَنِي

او نهٔ دفع کولے شي ستا نه څهٔ تکلیف۔ اے پلاره زما یقیناً ما ته راغلے دے د

مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِي أَهْدِكَ صِرَاطًا

علم (پوهے) نه هغه چه نهٔ ده راغلے تا ته نو تابعداری اُوکړه زما، ویه ښایم تا ته لاره

سَوِيًّا ﴿٤٣﴾ يَا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطَانَ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ عَصِيًّا ﴿٤٤﴾

برابره۔ اے پلاره زما بندګی مهٔ کوه د شیطان، یقیناً شیطان د رحمٰن نه نافرمان دے۔

**تفسیر:** دلته د ابراهیم ؑ او د هغهٔ د کافر پلار آزر واقعه بیانیږی۔

پدے واقعه کښې ډیر غرضونه دی (۱) پدے واقعه کښې اسباب د رحمت هم شته چه دعوت الی الله، صدیقیت، هجرت د الله دپاره۔ (۲) ظاهری مقصد پکښې رد د شرک دے چه الله دپاره اولاد مهٔ وایئ او هغه سره شریکان مهٔ جوړوئ۔ ابراهیم ؑ یو مشر پیغمبر دے، په بت پرستئ خومره رد کوی تردے چه د پلار نه پرے جدا کیږی۔

(۳) پدے کښې اقتداء د نیکانو هم ده۔ او ددهٔ واقعه ئے په مشرکانو باندے د رد پاره مخکښې راوړه۔

(٤) او پدے کښې رسول الله ﷺ ته تسلی ده چه د مکے د مشرکانو په تکلیفونو صبر کوه ځکه چه د دوی حال د ابراهیم ؑ د قوم سره مشابه دے۔ (ابن عاشورؒ)

الله تعالیٰ خپل نبی ته فرمائی: چه کوم خلق ځان ته د ابراهیم ؑ اولاد وائی او په هغه باندے فخر کوی، لږ هغوی ته پدے قرآن کریم کښې د هغهٔ واقعه بیان کړه چه د دوی د خپل پلار آزر سره راپیښه شوے وه چه د مکے د بت پرستو په شان بت پرست وو، او ابراهیم ؑ ډیر لوئی صدق او صفائی والا او د الله نبی وو۔

صِدِّيقًا نَّبِيًّا: صدیق دا مبالغه ده په صدق کښې ځکه چه ابراهیم ؑ د الله د اوامرو په عملی کولو کښې انتهائی رشتینی وو، په هیڅ شان ددے نه نهٔ منع کیدو۔

او هرکله چه هر نبی صدیق وی او هر صدیق کښې دا ضروری نهٔ ده چه هغه به نبی وی نو ددے وجه نه ئے د صدیق نه روستو نبی لفظ زیات کړو۔

يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ: ابراهیم ؑ خپل پلار ته د بت پرستئ نه د منع کولو دپاره په ډیر ښائسته ادب سره ووئیل، اے زما پلاره! تهٔ د داسے بتانو ولے عبادت کوے چه نهٔ آوری او نهٔ

وينـي، او نـهٔ تـا تـه د نـفـع او نقصان رسولو قدرت لري۔ يعني عبادت خو ډير لوئي تعظيم دے، دا بے ساه بتان خو ددے لائق هم نـهٔ دي چـه يـو عقلمند انسان دے تـه څـه حيثيت ورکړي۔ بيا تـهٔ ولے د دوي عبادت کوے ؟!۔ پدے آيت کښې او لانديني درے آيتونو کښې دا خبره د فکر قابل ده چه ابراهيم عليه السلام خپـل پـلار تـه د هر نصيحت پيش کولو نه مخکښې (اے زمـا پـلاره ! بابا جي) وئـيـلـي دي، پـدے سـره مـقـصـد انتهائي درجه نرمي او د محبت ښکاره کول دي، دے دپاره چه دهغه زړهٔ خپـل طرف تـه رامائل کړي۔ او د الله په حکم باندے عمل کول وو چه څوي له په هر حال کښې د خپـل پـلار احترام کول پکار دي۔

وَلَا يُغْنِيْ: نشي دفع کولے ستا نه۔ فائده نشي درکولے۔

يَا أَبَتِ : په اصل کښې يَا أَبِيْ دے، تـاء عـوض د يـاء نه راغلے ده، دا وجه ده چه دواړه نهٔ جمع کيږي۔

يَا أَبَتِ إِنِّيْ قَدْ جَاءَنِيْ: دوي دوباره په ډيره نرمئ او ادب سره خپـل پـلار لره حق طرف تـه راوبـلـلـو او وے وئـيـل اے پـلاره ! مـا سـره يـو داسـے علم دے چه تا سره نشتـه دے، پـدے وجه نـاراضـه نـهٔ شے او زمـا خبره اُومنه، دے دپاره چه زهٔ تا په هغه لاره روان کړم چه د اعـتـدال او انـصـاف لاره ده، نهٔ پدے کښې افراط شته چه څوك د عبادت مستحق نهٔ دے د هغهٔ عبادت وکـړے شي، او نـهٔ تـفـريـط شتـه چـه څوك د عبادت مستحق دے، د هغهٔ عبادت پرېخودے شي۔ او هـمـدا حـال د اخـلاقـو او اعـمـالـو په باب کښې هم دے چه دا لاره هر ښه اخلاقو او اعمالو طرف ته بوځي او بدو اخلاقو او اعمالو نه ئے لرې ساتي۔

او دا هم ښائي چه اګرکه په عام عرف کښې څوي د پلار تابعداري کوي لکن حقه دا ده چه د حـق تـابعداري وکړے شي او څوك چه د هدايت محتاج وي هغه د کامل انسان تابعداري وکـړي۔ او کـلـه چه کتاب او سنت د چا سره وي نو اګرکه هغه کشر وي د هغه تابعداري به کولے شي۔

مِنَ الْعِلْمِ : د عـلـم نه مراد علم د وحي، علم د توحيد او علم د آخرت دے۔ (ابو حيانؒ) او چا سره چه علم د وحي وي نو هغه خلکو ته نيغه لاره خودلے شي۔

فَاتَّبِعْنِيْ : اَیْ فِی الْاِیْمَانِ وَالتَّوْحِیْدِ۔ يـعـنـي زمـا تابعداري وکړه په ايمان او توحيد قبلولو کښې۔

يَـا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطَانَ : دريـم ځـل هـم دوي خـپـل پـلار په نرمئ او ادب سره مخاطب کړو، ليکن په کومه بت پرستئ کښې چه هغه اختـه وو د هغے بدي ئے ورتـه ښکاره بيان کړه

او د هغې نه د منع کولو کوشش نے وکړو۔ وے وئيل اے پلاره ! تهٔ د شيطان عبادت مهٔ کوه، يعنی انسان د بت عبادت د شيطان په حکم سره کوی، او شيطان دا کار د هغهٔ په نظر کښې ښائسته جوړولو سره پيش کوی، پدے وجه د بت عبادت په حقيقت کښې د شيطان عبادت وی۔ او پدے نهی او انکار کښې د تاکيد پيدا کولو دپاره ابراهيم عليه السلام دا خبره زياته کړه چه شيطان خو د الله تعالیٰ سرکش او نافرمان بنده دے، پدے وجه ددهٔ تابعداری خو په هر حال کښې د الله تعالیٰ نافرمانی ده۔ او نافرمان لائق دے چه د هغهٔ نه نعمتونه راښکلے شی او عذابونه پرے نازل شی۔ (فتح البيان)

| |
|---|
| يَا أَبَتِ إِنِّيْ أَخَافُ أَنْ يَّمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ فَتَكُوْنَ |
| اے پلاره زما يقيناً زهٔ يريږم ددے نه چه وبه رسی تا ته عذاب د رحمٰن نه نو شے به تهٔ |
| لِلشَّيْطَانِ وَلِيًّا ﴿٤٥﴾ قَالَ أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِيْ يَا إِبْرَاهِيْمُ |
| د شيطان دوست۔ اُووئيل هغهٔ آيا اعراض کوے تهٔ د معبودانو زما نه اے ابراهيمه، |
| لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِيْ مَلِيًّا ﴿٤٦﴾ |
| که منع نشوے (ددے خبرو نه) خامخا په کاڼرو به اُولم تا او پريده ما ډيره موده۔ |
| قَالَ سَلَامٌ عَلَيْكَ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ |
| اُووئيل ابراهيم (عليه السلام) سلام دے په تا باندے (لاړم) زر دے چه بخښنه به غواړم تا لره |
| رَبِّيْ إِنَّهٗ كَانَ بِيْ حَفِيًّا ﴿٤٧﴾ |
| د رب خپل نه يقيناً هغه دے په ما باندے ډير مهربان۔ |

**تفسير** : څلورم ځل هم دوی خپل پلار ته په ښائسته ادب سره آواز وکړو، او ددے نصيحتونو باعث ئے ورته بيان کړو او د بت پرستئ د بد انجام نه ئے ويرولو، او وے وئيل چه که هغهٔ ددهٔ خبره ونهٔ منله نو يره ده چه د الله عذاب به په هغهٔ باندے نازل شی ځکه چه څوک چه د الله نافرمانی کوی او د هغه دشمن خپل دوست جوړوی، هغه الله تعالیٰ د خپل رحمت نه لرے کوی لکه څنگه چه د شيطان سره شويدی، بيا به هغه په عذاب او لعنت کښې د شيطان ملګرے او د هغهٔ شريک شی۔

إِنِّيْ أَخَافُ : مفسرين ليکی چه تردے وخته پورے د ابراهيم عليه السلام يقين نهٔ وو چه دے به

په کفر مړ شي نو څکه ئې داسې الفاظ استعمال کړل چه زما يره ده چه تا ته به عذاب ورسيږي که توبه دې ونۀ ويستله.

قَالَ أَرَاغِبٌ أَنتَ : آزر ددې پيغمبرۍ نصيحتونو نه هيڅ اثر قبول نکړو، او په نهايتِ سختئ سره ئې د توحيد دعوت سره ډغره ووهله، او دهمکي ورکولو سره ئې ووئيل چه اے ابراهيمه ! آيا ستا زما د معبودانو نه نفرت دے چه تۀ د دوی عيبونه بيانوے؟! ياد ساته ! چه که تۀ ددے بدو خبرو نه منع نۀ شوے، او خپل نصيحتونه دې بند نکړل نو زۀ به تا په کاڼرو سره ووِلم او هلاك به دې کړم.

د لَأَرْجُمَنَّكَ يو دويم مطلب دا هم بيان شويدے چه بيا به زۀ هم په بدو او قبيحو الفاظو سره تا په ټول قوم کښې مشهور کړم، او ګوره غوره دا ده چه تۀ ما نه لرے لاړ شے مخکښې ددے نه چه ستا صحيح سالم جسم او عزت ته زما د طرف نه نقصان ورسيږي. (فتح)

وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا : دا په مخکښې جمله (لَأَرْجُمَنَّكَ) باندے عطف دے، او عطف د انشائيه په خبريه باندے د سيبويه په نيز جائز دے. يا تقدير داسے دے [لَأَرْجُمَنَّكَ فَاحْذَرْنِي وَاهْجُرْنِي] زۀ به دې په کاڼرو ووِلم نو زما نه ويريږه، او ما ډيره موده پريږده).

اراغب : آزر د ابراهيم عليه السلام ادب لفظ (يَا أَبَتِ) په مقابله کښې (يَا بُنَيَّ) ونۀ وئيل او د ابراهيم نوم ئې روستو راوړو او خبر ئې په مبتدا باندے مخکښې کړو او په اول کښې ئې ورله همزه د استفهام راوړه دپاره د رټنے او زورنے او تعجب ورکولو. دا ئې ډيره سخت زړي وه. او بل طرفته موحد د مشرك دپاره هم خير خواه وی.

مَلِيًّا: أَيْ زَمَانًا طَوِيلًا. ډيره زمانه.

ابن عباسؓ ئې معنی کوی : [اِجْتَنِبْنِيْ سَوِيًّا سَالِمًا] . ما نه جدا شه روغ رمټ مخکښې ددے نه چه تا ته زما د طرفنه عذاب ورسيږی) وهو المنقول عن قتادةؒ والحسنؒ مثله.

(فتح البيان)

قَالَ سَلَامٌ عَلَيْكَ: ابراهيم عليه السلام د خپل کافر پلار انتهائی سخت جواب آوريدو سره هم په ډير ادب سره ووئلو او د هغۀ دپاره ئې د سلامتيا دعا وکړه. ګويا که دا وئيل ئې غوختل چه اګر که تۀ ما ته د کاڼرو ويشتلو او سنګسارولو دهمکي راکوے ليکن زما نه به تا ته هيڅ تکليف نۀ رسيږی، زۀ به د خپل رب نه ستا د بخښنے دعا غواړم، هغه په ما باندے ډير کرم او رحمت کونکے دے، ما به نۀ نا اميده کوی.

مفسرينو ليکلی دی چه ابراهيم عليه السلام د بدئ جواب په نيکئ سره ورکړو لکه چه الله

تعالیٰ د مؤمنانو په صفت کښې بیان کړیدی په سورة الفرقان آیت (۶۳) کښې فرمائی :
﴿ وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلَامًا ۝ ﴾ کله چه بې علمه خلق د دوی سره خبرے کوی نو دوی وائی چه سلام دِے وی۔ (یعنی زهٔ تا سره جګړه کول نهٔ غواړم)۔
سوال دا دے چه په مشرکانو باندے سلام اچول خو صحیح نهٔ دی نو ابراهیم علیه السلام په خپل پلار باندے څنګه سلام اچوی؟
(۱) جواب دا دے چه د ابراهیم علیه السلام دپاره به په هغه وخت کښې سلام اچول جائز وو۔
(۲) بیا جواب دا دے چه سلام په دیرو معانو سره استعمالیږی، سلام کله په مړو وی هغے ته سلام الدعاء وائی او کله په ژوندو وی هغے ته سلام التحیه وائی، او کله سلام په معنیٰ د مرحبا او هرکلی وئیلو سره وی لکه په سورة الانعام آیت (۵۴) کښې ذکر شویدی ﴿ فَقُلْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ ﴾ ۔ او کله سلام د متارکة (پریخودو) وی۔ لکه د سورة الزخرف په آخر آیت (۸۹) کښې دی ﴿ وَقُلْ سَلَامٌ ﴾ او د سورة الفرقان آیت (۶۳) مخکښې ذکر شو۔ نو مطلب دا شو چه زما د طرفنه روغ جوړ پاتے شوے، زهٔ به تا ته څه نهٔ وایم۔
سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي: مفسرینو دا هم لیکلی دی چه د ابراهیم علیه السلام د خپل پلار سره دا وعده چه هغه به د الله نه ددهٔ دپاره بخښنه طلب کوی، ددے توقع په بنیاد وه چه هغه به اسلام راوړی او په کفر به نهٔ مری، نو هغه د اوږدے مودے پورے د هغه دپاره بخښنه طلب کوله۔ شام ته د هجرت کولو، د مسجدِ حرام جوړولو او د اسحاق او اسماعیل علیهما السلام د پیدائش نه روستو ئے هم د هغه دپاره دعا کوله لکه چه الله تعالیٰ سورة ابراهیم آیت (۴۱) کښې فرمائیلی دی : ﴿ رَبَّنَا اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ الْحِسَابُ ۝ ﴾
(اے زمونږ ربه ! د قیامت په ورځ ما معاف کړه او زما مور او پلار او ټول مؤمنان هم)۔
لیکن کله چه هغهٔ ته یقین وشو چه دا د الله تعالیٰ دشمن دے نو د هغهٔ نه ئے خپله بیزاری اعلان کړه لکه الله تعالیٰ په سورة التوبه آیت (۱۱۴) کښې فرمایلی دی : ﴿ وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ ۝ ﴾ (او د ابراهیم د خپل پلار دپاره د بخښے دعا غوختل صرف د هغه وعدے په سبب وو چه دوی د هغهٔ سره کړے وه، بیا کله چه هغهٔ ته دا خبره راښکاره شوه چه دا د الله دشمن دے نو دوی د هغه نه بیزاری ښکاره کړه، واقعی ابراهیم ډیر نرم زړے او بُردبار او صبرناك وو)۔
حَفِيًّا : حَفَاوَةٌ او حَفْوَةٌ شفقت او مهربانیٔ ته وئیلے شی۔

| وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللهِ وَأَدْعُوْ |
|---|
| او په ډډه کیږم تاسو نه او د هغه چا نه چه رابلئ ئے تاسو سوئ د الله نه او دعا غواړم |
| رَبِّيْ عَسٰى أَلَّا أَكُوْنَ بِدُعَآءِ رَبِّيْ شَقِيًّا ﴿٤٨﴾ |
| د رب خپل نه امید دے چه نهٔ به یم زهٔ په دعا د رب خپل بد بخته۔ (محرومه)۔ |
| فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ |
| نو هرکله چه ډډه ئے اُوکړه د دوی نه او د هغه چا نه چه دوی ئے بندګی کوله |
| مِنْ دُوْنِ اللهِ وَهَبْنَا لَهٗٓ إِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَكُلًّا جَعَلْنَا |
| سوئ د الله تعالیٰ نه، اُوبخلو مونږ دهٔ ته اسحاق او یعقوب او هریو ګرځولے وو مونږ |
| نَبِيًّا ﴿٤٩﴾ وَوَهَبْنَا لَهُمْ مِّنْ رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ |
| پیغمبر۔ او بخلی وو مونږ دوی ته د رحمتونو خپلو نه او ګرځولے وه مونږ دوی لره |
| لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ﴿٥٠﴾ |
| ژبه د ثناء (یعنی ذکر نیک) اُوچت۔ |

**تفسیر** : ابراهیم علیه السلام ووئیل : ستا دا کور او ښار پریدم او بل ځای ته به ځم، او د الله نه سوئ د کومو معبودانو چه تاسو عبادت کوئ زهٔ د هغے نه د وړاندے کیدو اعلان کوم، او زهٔ صرف د خپل رب عبادت کوم، زما امید دے چه زما رب به زما دعا نهٔ ضائع کوی او ما ته به اهل وعیال راکوی چه په غربت کښې به زما د اُنس او سکون باعث ګرځی۔

**بِدُعَآءِ رَبِّيْ شَقِيًّا**: په دعاء باندے بدبخته کیدو مطلب دا چه الله تعالیٰ د هغهٔ دعاء قبوله نکړی او رد شی، او ددے دعاء نه مراد بچی او اولاد غوښتل وو۔ نهٔ د پلار دپاره دعا غوښتل۔

او پدے کښې اشاره ده چه ستاسو معبودان ستاسو دعاګانے نهٔ قبلوی، او زما رب زما دعاء قبلوی۔ او دعاء په معنیٰ د عبادت سره هم استعمالیږی، نو زهٔ د الله په عبادت باندے بد بخته نهٔ یم ځکه چه د الله تعالیٰ په عبادت کښې هر خیر موجود دے، د زړهٔ خوشحالی، عزت، دنیاء او جنت پرے ملاویږی۔ او د غیر الله عبادت تول له بد بختی ده، ستړے ستومانه

به وی، بابا ئے را په شا کړے وی په هر څه کښې په دهٔ بوج وی، او د ذرے هومره خیر ورله نشی ورکولے بلکه سبب د جهنم ئے جوړیږی۔
او عیسیٰ ئے ووئیله پدے کښې تواضع او عاجزیٔ ته اشاره ده، او پدے خبره باندے تنبیه ده چه د الله تعالیٰ دعاء قبلول د هغه د طرفنه یو احسان دے، په هغه باندے واجب نهٔ ده۔
**فَلَمَّا اعۡتَزَلَهُمۡ** : ابراهیم ﷺ چه کله د الله تعالیٰ د خاطره خپل خاندان، کور او کلے پریخودو او بیت المقدس ته لاړو نو الله تعالیٰ هغهٔ ته د اسحاق په شان ځوی او د یعقوب په شان نمسے ورکړو، دواړه په روستو زمانه کښې نبیان شو، او د دوی په موندلو سره د هغهٔ یواځے والے لرے شو او د سترګو یخوالے ورته نصیب شو۔
او ددے ځای نه هغه حدیث معلومیږی: [إِنَّكَ لَاتَدَعُ شَيْئًا اتِّقَاءَ اللّٰهِ إِلَّا أَعْطَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا مِنْهُ] السنن الکبری للبیهقی (۱۱۸۱۰) وابن ابی شیبة (۹۹۵) بسند صحیح)
(تهٔ د الله د ویرے د وجه نه یو شے نهٔ پریدے مګر الله به تا ته د هغے نه ضرور غوره درکوی)
نو مشرك پلار ئے پریخودو الله تعالیٰ ورته انبیاء بچی ورکړل۔
**وَوَهَبۡنَا لَهُمۡ** : اُوس الله تعالیٰ د هغه بچو فضیلتونه بیانوی، یعنی تولو ته یعنی ابراهیم، اسحاق او یعقوب علیهم السلام ته الله د خپل فضل او کرم او د خپل رحمت پوره حصه ورکړه، نبوت ئے ورکړو، نیکان اولاد ئے ورکړل، رزق ئے ورکړو، او د بیت المقدس د زمکے مالکان ئے جوړ کړل، او د عالَم په قومونو کښې ئے دوی ته نیك نوم ورکړو، لهذا تمام ملتونو او دینونو والا د ابراهیم ﷺ او د هغهٔ د اولادو تعریفونه او صفات کوی او هغوی ته خپل نسبت کوی۔ (القاسمیؒ)
**مِّن رَّحۡمَتِنَا**: د رحمة نور مصداقات (۱) په دین باندے استقامة (مضبوطوالے) (۲) اَلتَّعَلُّقُ بِاللّٰهِ۔ د الله سره تعلق ساتل۔ (۳) اَلۡمَالُ وَسَعَةُ الرِّزۡقِ۔ مالونه او فراخه رزقونه۔
او د نبوت نه روستوئے رحمة ذکر کړو، اشاره کوی چه نبوت د الله یو رحمت دے چه چا ته ئے ورکړی۔
د بخاریؒ او مسلمؒ صحیح حدیث دے چه نبی کریم ﷺ نه تپوس وشو چه د تولو نه ښه خلق کوم دی؟ نو هغه وفرمایل: یوسف نبی الله بن یعقوب نبی الله بن اسحاق نبی الله بن ابراهیم خلیل الله۔ په یو بل روایت کښې دی: ((کریم (یعنی عزتمند) بن کریم بن کریم بن کریم یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم دے))۔ (بخاری: ٤٦٨٨)
**لِسَانَ صِدۡقٍ عَلِيًّا** : ۱- حُسۡنُ الشُّهۡرَةِ ۔ ښائسته شهرت۔ ۲- اَلثَّنَاءُ الۡجَمِيلُ۔ ښائسته

صفتونه ئے تول خلك کوی۔ او صدق او علیًا صفتونو راوړو کښې اشاره ده چه د دوی کوم صفتونه کیږی نو دوی ددے مستحق دی، او د دوی مجاهدے د هیچا نه پټے نهٔ دی۔ (القاسمیؒ) او پس د مرګ نه ښائسته شهرت او صفتونه د الله تعالیٰ د طرفنه یو لوی فضیلت وی چه په خلکو کښې په ښهٔ صفاتو یادیږی۔

| وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مُوسَىٰ إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا وَّكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا ﴿٥١﴾ |
|---|
| او یاد کړه پدے کتاب کښې موسیٰ علیه السلام یقیناً وو هغهٔ غوره کړے شوے او وو رسول نبی۔ |
| وَنَادَيْنَاهُ مِنْ جَانِبِ الطُّورِ الْأَيْمَنِ وَقَرَّبْنَاهُ نَجِيًّا ﴿٥٢﴾ |
| او آواز کړے وو مونږ دهٔ ته د ښی طرف د طورغر نه او نزدے کړے وو مونږ دهٔ لره رازدار۔ |
| وَوَهَبْنَا لَهُ مِنْ رَّحْمَتِنَا أَخَاهُ هَارُونَ نَبِيًّا ﴿٥٣﴾ وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ |
| او بخلے وو مونږ دهٔ ته د رحمت خپل نه ورور ددهٔ هارون نبی۔ او یاد کړه پدے کتاب کښې |
| إِسْمَاعِيلَ إِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا ﴿٥٤﴾ وَكَانَ يَأْمُرُ |
| اسماعیل (علیه السلام) یقیناً هغهٔ وو رشتینے وعدے والا او وو رسول نبی۔ او دهٔ به حکم کولو |
| أَهْلَهُ بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهِ مَرْضِيًّا ﴿٥٥﴾ |
| خپل اهل ته په مانځه او زکوٰة او وو دے په نیز د رب خپل غوره کړے شوے۔ |

**تفسیر**: د ابراهیم علیه السلام نه روستو اُوس د موسیٰ علیه السلام غوره تذکره کیږی۔ چه ددهٔ مرتبه او مقام هم د الله تعالیٰ په نظر کښې ډیر اُوچت وو۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته فرمائی چه تهٔ په قرآن کریم کښې د موسیٰ بن عمران علیهما السلام متعلق آیتونه هم د خلقو مخے ته تلاوت کړه۔ ځکه چه مونږ دوی هم د پیغمبریٔ او د خپل کلام دپاره چانړ کړی وو، لکه چه الله تعالیٰ په سورة الاعراف آیت (١٤٤) کښې فرمایلی دی: ﴿إِنِّي اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ﴾ (ما تهٔ د خلقو په مقابله کښې چانړ کړے ئے)۔ الله تعالیٰ ورسره د ملائك رالیږلو نه مخکښې خپله خبرے کړے وے۔ (ابن عاشورؒ)

**مُخْلَصًا**: دا په یو قراءت کښې په زیر د لام سره هم لوستلے شویدے، نو مطلب به دا وی چه دوی هم خپل عبادت زمونږ دپاره خالص کړے وو۔ او هغه هم زمونږ رسول او نبی وو، مونږ په هغه کښې هم دواړه صفتونه جمع کړی وو۔ دا هم د پنځه لوئی اولوا العزم

رسولانو نه یو وو. رسول هغه وی چه هغه ته کتاب ورکړے شوے وی، او نبی هغه وی چه هغه باندے وحی نازلیږی او د الله د طرفنه خپل امت ته پیغام رسوی لیکن هغه ته کوم جدا کتاب نهٔ وی ورکړے شوے. (نیسابورتی)

الطُّوْرِ الْاَيْمَنِ: یعنی هغه طور د موسیٰ علیه السلام ښی طرفته وو. یعنی په لاره روان وو نو د ښی طرف نه ورته آواز وشو.

وَقَرَّبْنَاهُ نَجِيًّا: موسیٰ علیه السلام د مدین نه په واپسئ کښې د طور غر په خوا کښې تیر شو، هلته دوی ته د اُور ضرورت راپیښ شو، وے لیدل چه غر طرف ته یوه ونه وه چه د هغے د مینځ نه آواز راغلو چه اے موسیٰ! زهٔ الله یم. نو الله تعالیٰ دے نزدے کړو او ددهٔ سره ئے خبرے اترے وکړے او بغیر د واسطے د وحی نه الله تعالیٰ دهٔ ته خپلے خبرے آورولے، او دهٔ د الله خبرے آوریدلے، بل چا نهٔ آوریدے لکه ټیلیفون کښې چه خبرے کیږی بل څوك ئے نهٔ آوری.

اَخَاهُ هَارُوْنَ نَبِيًّا: موسیٰ علیه السلام د خپل رب نه سوال کړے وو ﴿وَاجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ○ هَارُوْنَ اَخِيْ○﴾ (طه: ۲۹) چه ما ته زما ورور هارون خپل وزیر جوړ کړه نو الله تعالیٰ هغه هم د خپل رحمت نه نبی جوړ کړو. لکه الله ورته وفرمایل: ﴿قَالَ قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يَا مُوْسٰى○﴾ (اے موسیٰ! ستا غوختنه پوره کړے شوه). (طه: ۳۶).

پدے واقعه کښې هم ډیر فوائد دی (۱) الله تعالیٰ پیغمبران رالیږی نو دا نبی (محمد رسول الله ﷺ) څه نوے نبی نهٔ دے. (۲) الله تعالیٰ خبرے لری.

(۳) بعض بندګان د هغوی د تقویٰ د وجه نه ځان ته زیات نزدے کوی.

(٤) په عبادتونو کښې اخلاص ډیر اُوچت صفت دے.

(٥) الله تعالیٰ رحم والا دے په هر چا باندے رحم کوی لکه څنګه ئے چه په دغه پیغمبرانو کړیدے. نو تهٔ هم دعا کوه الله تعالیٰ به دربانده ناشنا رحمتونه کوی.

(٦) بکار ده چه ورور د ورور دغه شان خیر خواهی وکړی.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ: بله واقعه د اسماعیل علیه السلام بیانیږی پدے کښې دعوت وی ددے انبیاؤ د صفتونو په شان صفتونو پیدا کولو طرفته، دے دپاره چه په بنده باندے د الله تعالیٰ خصوصی رحمتونه وشی.

كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ: رښتینے وعدے والا هر نبی وی لیکن په اسماعیل علیه السلام کښې په خصوصی طور سره موجود وو. کله چه به ئے کوم انسان سره کومه وعده کوله نو په هر

حال کښې به ئې هغه پوره کوله. او د تولو نه لویه او خطرناکه وعده د خپل ځان د قربانۍ کولو متعلق ئې د خپل پلار ابراهیم ﷺ سره وکړه او وې وئیل : ﴿سَتَجِدُنِیٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلصَّٰبِرِینَ﴾ (ته به ما ان شاء الله د صبر کونکو نه مونده کړې). (الصافات:۱۰۲).

او په یو روایت کښې دی چه اسماعیل ﷺ یو چا سره وعده کړې وه نو په هغه ځای کښې ئې ورته یوه میاشت (یا دوه ویشت ورځې) پورې انتظار کړې وو. او هغه شخص نه هیر شوی وو بیا د هغې نه روستو راغې (الصمت لابن ابی الدنیا رقم ٤٥٨)

او په حدیث د ابوداود کښې دی : عبد الله بن ابی الحمساء ﷺ وائی چه ما د رسول الله ﷺ سره د هغه د نبوت نه مخکښې څه بیعه وکړه او د هغه راباندې څه بقایا پاتې شوه ما ورسره وعده وکړه چه زۀ به ئې په فلانی مکان کښې تا ته راوړم نو ما نه هیر شو بیا مې درې ورځې روستو رایاد شو نو چه راغلم رسول الله ﷺ په همغه ځای کښې ناست دې، نو ما ته ئې وویل :

(یَا فَتَی لَقَدْ شَقَقْتَ عَلَیَّ أَنَا هٰهُنَا مُنْذُ ثَلاثٍ أَنْتَظِرُكَ) اې ځوانه ! تا خو په ما باندې ډیر تکلیف راوستو زۀ دلته د درې ورځو نه ستا انتظار کوم.

(سنن ابی داود : ٤٩٩٨ وسنده ضعیف لاجل عبد الکریم بن عبد الله بن شقیق وهو مجهول (البانی)

دا که مونږ وې نو مونږ به څو مره بهانې کولې او دا به مو وئیلې چه زمونږ نه ئې ډیر عبادتونه خراب کړل مګر د وعدې په پابندئ کښې که ستا نه نفلی عبادت هم خراب شی خیر دې، فرضی مونځ له څه او بیرته خپل د وعدې ځای ته حاضری ورکوه.

رَسُولًا نَّبِیًّا: دۀ ته خو مستقل کتاب نۀ وو ورکړې شوې، لیکن بعض مفسرین وائی چه دۀ ته ئې رسول پدې وجه ووئیلو چه دا ابراهیم ﷺ د بنو جُرهم قبیلې دپاره رالیږلې وو چه دوی ته به د دین دعوت کوی. چه دا د یمن د عربو قبیله وه او د اسماعیل ﷺ د مور په اجازه په مکه کښې پاتې شوی وو.

وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلَاةِ : د اهل نه مراد دلته د هغه تول امت وو، او اهل ئې ورته ځکه وویل چه دوی ورو کې قوم وو لکه مور، ځامن او د بنو جُرهُم نه سخرانه ئې وه، بیا روستو د عربو امت د هغه په اولاد کښې راغلې دې نو هغه هم د هغه اهل دی، او د هغه په شریعت کښې مونځ او زکاة او نور د دین حنیف کارونه وو کوم چه دۀ د پلار ابراهیم ﷺ ملت وو.

(ابن عاشور)

عِنْدَ رَبِّهِ مَرْضِيًّا : د الله په نیز غوره کړې شوې وو. ١ - أَيْ زَاكِيًا صَالِحًا . یعنی پاك،

نیك عمله۔ ۲- قَائِمًا لِلّٰهِ بِطَاعَتِهٖ۔ د الله دپاره د هغه په طاعت مضبوط ولاړ وو۔

۳- یا د نبوت او رسالت دپاره ئے غوره کړے وو۔ او دا انتهائی کامل صفت دے ځکه چه د الله په نیز غوره کړے شوے انسان هغه وی چه په هر طاعت باندے په اعلیٰ درجاتو سره کامیاب وی۔ (فتح البیان)

نو پدے واقعه کښې هم د الله تعالیٰ د رحمت د حاصلولو اسباب ذکر شو۔

| |
|---|
| وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِدْرِيسَ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَبِيًّا ﴿۵۶﴾ وَرَفَعْنَاهُ |
| او یاد کړه پدے کتاب کښې ادریس، یقیناً وو دے رشتینے نبی۔ اوپورته کړے وو مونږ دهٔ لره |
| مَكَانًا عَلِيًّا ﴿۵۷﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِم مِّنَ |
| مرتبے اُوچتے ته۔ دا هغه کسان دی چه احسان کړیدے الله تعالیٰ په دوی باندے د |
| النَّبِيِّينَ مِن ذُرِّيَّةِ آدَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ |
| پیغمبرانو نه د اولاود د آدم (علیه السلام) نه دی او د هغه چا نه چه سوارهٔ کړی وو مونږ د نوح سره |
| وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْرَائِيلَ وَمِمَّنْ هَدَيْنَا |
| او د اولادو د ابراهیم او د یعقوب نه وو او د هغه خلقو نه چه هدایت ورته کړے وو مونږ |
| وَاجْتَبَيْنَا إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ |
| او غوره کړی وو مونږ، هرکله چه به لوستلے شو په دوی باندے آیتونه د رحمٰن |
| خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا ﴿۵۸﴾ (س) فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ |
| نو پریوتل به سجده کونکی او ژړا کونکی۔ نو راغلل روستو د دوی نه ناکاره نائبان |
| أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴿۵۹﴾ |
| چه برباد ئے کړو مونځ او روان شو د خواهشاتو پسے نو زر دے چه ملاؤ به شی سزا د سرکشئ سره۔ |

**تفسیر:** سیوطی په ((التحبیر)) کښې لیکی چه دهٔ نسب داسے دے: ادریس بن شیث بن آدم (علیه السلام)۔ دهٔ خپل نوم اخنوخ وو۔ او ځینی وائی چه دا د نوح (علیه السلام) د پلار نیکهٔ وو۔ ځکه د نوح (علیه السلام) نسب داسے دے: نوح بن لامك بن متوشلخ بن اخنوخ۔ (الثعلبی وغیره)

او امام بخاريؒ په خپل صحيح كښې په كتاب الانبياء كښې پدې خبره جزم كړيدے چه ادريس د نوح عليه السلام نيكه يا د هغه د پلار نيكه وو۔ (ابن عاشورؒ وفتح البيان)

او بعض علماؤ وئيلي دي چه ادريس دا بعينه الياس عليه السلام دے، او دا د بني اسرائيلو پيغمبر دے۔ او دا خبره امام بخاريؒ د ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنهم نه نقل كړيده۔ (المنار)

او ابن جرير الطبريؒ وغيره دا خبره رد كړيده او د اولے خبرے تائيد ئے ذكر كړيدے

(المحرر الوجيز لابن عطيةؒ)

او څينې مفسرين وائي چه دا ادريس بن يرد بن مهلائيل بن قينان بن انوش بن شيث بن آدم عليه السلام دے۔ (الدر المنثور)

ابن عاشورؒ ليكي چه د يونان والو په نيز دده نوم (هرمس) دے، او د مصريانو په نيز (توت) يا (تحُوتي) يا (تهوتي) د لهجو په فرق سره۔

او ادريس اول هغه شخص دے چه د ښارونو د آبادئ بنياد، او د علم قواعد او د تربيت قواعد ئے وضع كړيدي۔ اول هغه شخص دے چه قلم باندے ئے ليكل كړيدي، او په نجوم باندے ئے حساب كړيدے، او د ستورو د گرځيدو قواعد ئے بيان كړيدي، او په اُور باندے ئے څيزونه جوړ كړيدي، نو دديے وجه نه دهٔ ته د علم الكيمياء نسبت كيږي او اول ئے خلكو ته د كندلو چل خودلے دے، او اول ئے وسله جوړه كړيده او د كفارو سره ئے جنگ كړيدے، پدے وجه دے د علومو، او د حضارت او د عقلي انتظامانو (پروگرامونو) اولنے باني دے۔

(ابن عاشور وفتح البيان) والله تعالىٰ اعلم۔

وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا : دديے اُوچت ځاى نه مراد (۱) اُوچتوالے د مرتبے دے په نيز د الله تعالىٰ او د هغے اندازه الله تعالىٰ ته معلومه ده۔ او دهٔ ته ئے د نبوت شرافت وركړے او د خپلو مقربو بندگانو نه ئے گرځولے وو۔ (۲) يا دديے نه مراد ليدل د رسول الله ﷺ دي هغه لره په شپه د معراج كښې په څلورم آسمان كښې، چه هغے ته الله تعالىٰ د رسول الله ﷺ د ملاقات دپاره پورته كړے وو۔ او د مجاهدؒ نه نقل دي چه ادريس عليه السلام د عيسىٰ عليه السلام په شان ژوندے څلورم آسمان ته پورته كړے شويدے۔ (فتح البيان) اول قول غوره دے۔

او دهٔ په باره كښې چه نورے كومے قصے مشهوري دي چه دهٔ د ملك الموت سره دوستي اچولے وه او هغه اول اُور ته ښكاره كړو او بيا ئے جنت ته بوتللو نو بيا د جنت نه نهٔ راوتلو او اُوس په جنت كښې د جنتيانو دپاره جامے گنډي۔

يا د كعب الاحبارؒ نه نقل دي چه يو ملائك دده ملاقات له راغلو نو دهٔ ورته وويل چه ما د

ملك الموت نه خلاص کړه، هغهٔ وویل چه زهٔ به ستا په باره کښې خبره وکړم، نو ملائك د دوارو وزرو په مینځ کښې کینولو او آسمان ته ئې پورته کړو ملك الموت ورته وویل چه ما ته ستا حاجت معلوم دے، د ادریس خو وخت پوره دے، نو ملك الموت ترے په همغه ځای کښې د ملائك د وزرو په مینځ کښې ساه واخستــه او وفات شو۔ (اخرجه ابن ابی حاتمؒ)

نو دا د بنی اسرائیلو قصے دی چه د انبیاء علیهم السلام بی ادبی ئې پکښې کړیده۔

اولٰئِكَ الَّذِيْنَ : اُوس الله تعالیٰ پدے آیتونو کښې زمونږ د اقتداء دپاره ددے انبیاء کرامو صفات بیانوی۔ د زکریا علیه السلام نه واخله تر ادریس علیه السلام پورے چه کوم انبیاء کرام پدے سورت کښې ذکر شویدی، هغوی ته اشاره ده چه الله تعالیٰ هغوی ته ډیر دنیوی او دینی نعمتونه ورکړی وو۔ دا انبیاء کرام، د آدم، ابراهیم او یعقوب علیهم السلام د اولادو نه وو،

(دا قیدونه ورسره ځکه وائی چه اشاره کوی چه دا د نوی زمانے او زړے زمانے والا خلك وو او ټول یو شان انسانان وو او ټولو د الله تعالیٰ حقوق ادا کړی وو او د الله تعالیٰ بندګی ئې کړے وه نو اے موجوده امته ! تاسو به هم د دوی په شان کار کوئ چه په تاسو رحم او نعمتونه وشی)۔

وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا: دے ټولو ته مونږ د حقے لارے هدایت کړے وو، او د نبوت په شان لوئی مقام او مرتبے دپاره مو چانړ کړی وو، او دے خلقو چه به کله د الله تعالیٰ کلام آوریدو چه په هغے کښې به د توحید دلائل او د نصیحت نورے خبرے وے، نو الله ته به په سجده پریوتل او د ډیرے خشوع او خضوع په وجه به ئې ژړل۔ او د الله تعالیٰ د کتاب نه به ئې فائده اخستــه۔ حافظ ابن کثیرؒ وائی : د علماؤ اجماع ده چه ددے انبیاء کرامو په اتباع کښې ددے آیت د تلاوت نه روستو سجده کول مشروع او مستحب دی۔

فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ: تر دے ځای پورے د انبیاء کرامو علیهم السلام فضائل او محاسن (ښائسته صفات) ذکر شو، دے دپاره چه خلق د دوی اتباع وکړی او د دوی لاره خپله کړی۔ اُوس هغه خلق ذکر کیږی چه د انبیاء کرامو نه روستو راغلل او د هغوی په نقش قدم باندے روان نشو، د هغوی دعوت ئې شاته ګوزار کړو، او مونځونه ئې ضائع کړل۔

اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ : (۱) د مونځ ضائع کول دا دی چه مونځونه بیخی پریدی۔ (۲) هغه د خپل وخت تیریدو نه روستو کوی۔ (۳) د جُمعے پریخودل۔ (٤) خشوع او ادب د مانځه پریخودل۔ (٥) یا د هغے ضروری ارکان او یا شرطونه پریخودل، او چا چه مونځ بالکل

پریخودو یا د هغې نه ئې انکار وکړونو هغه په درجه اولیٰ ددې آیت په حکم کښې داخل دې۔ د مفسرینو ترمینځ اختلاف دې چه پدې آیت کریمه کښې د مونځ ضائع کونکو نه کوم خلق مراد دي؟۔ چا وئیلي دي: یهودیان مراد دي۔ او چا وئیلي دي: نصاریٰ مراد دي۔ او مجاهدؒ وئیلي دي چه ددې نه مراد د امت محمدیه هغه خلق دي چه په آخري زمانه کښې به راځي، د حیواناتو په شان به په لارو کښې په یو بل باندې سوریږي، نۀ به د انسانانو نه شرمیږي، او نۀ به د الله نه یریږي۔ د خپل نفس د خواهشاتو تابعداري به کوي، په ګناهونو کښې به ډوب شوي وي، شراب به څکي، د دروغو ګواهي به ورکوي، حرام به خوري، په لهو ولعب کښې به مشغول وي او فسق او فجور به کوي۔ دا خلق به ډیر خراب او بدِ جانشینِ وي، د دوی انجام به ډیر خراب وي۔

وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ: د شهواتو اتباع څه شے ده؟ نو علي بن ابي طالب ﷺ فرمائي: [مَنْ بَنَى الْمَشِيْدَ وَرَكِبَ الْمَنْظُوْرَ وَلَبِسَ الْمَشْهُوْرَ] لوی لوی آبادیانې کول او داسې اسونو او ګاړو باندې سوریدل چه هغې ته خلك په اُوچته سترګه ګوري، او داسې جامې اغوستل چه (ناشنا وي) خلك ئې صفت کوي۔ (یعني لباس د شهرت) او پدې کښې نور شهوات هم داخل دي لکه زنا، غلا او تول د دنیا څیزونه۔ (القرطبيؒ)

**فائده**: کوم انسان چه پوره بندګي کول غواړي نو هغه نه به ډیر شهوات پاتې کیږي لکه مثلاً چه یو انسان پنځه وخته پابندئ سره مونځ کوي نو هغه نه به ډیر شهوات پاتې وي، چرته به چکر نشي وهلے، د ښځې خواله به نشي ورتللے، د مونځونو په نزدې وختونو کښې به کوم کار ته نۀ وځي چه مونځ ترې خراب نشي، لنډه دا چه د شهواتو حاصلولو سره پوره عبادات نشي کیدے۔

يَلْقَوْنَ غَيًّا: د غی یوه معنیٰ د شر ده یعنی زر دې چه دوی به د شر سره ملاو شي۔ یعنی بد انجام سره۔ یا ((غی)) په جهنم کښې یو کوهے، یا یوه کنده ده یعنی د قیامت په ورځ به داسې خلق د جهنم دغه کوهي یا کندې ته ګوزارلے شي۔ یا غی ګمراهئ ته وائي۔ یا تاوان او نا امیدئ او هلاکت ته وائي۔

| إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ |
|---|
| مګر هغه څوك چه توبه ئې اُوویستله او عمل ئې وکړو نیك نو دغه کسان داخلیږي به |

الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ شَيْئًا ﴿٦٠﴾ جَنَّاتِ عَدْنٍ الَّتِي

جنت ته او ظلم به نشي کیدے په دوی باندے هیڅ قسم۔ جنتونه د همیشه اوسیدو هغه

وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ عِبَادَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّهُ كَانَ وَعْدُهُ

چه وعده ئے کړیده رحمٰن د بندګانو خپلو سره په غیب باندے یقیناً ده وعده د الله

مَأْتِيًّا ﴿٦١﴾ لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا

راتلونکے۔(پوره کړے شوے)۔ نه به آوری په هغے کښ فضول خبرے لیکن آوری به

سَلَامًا وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴿٦٢﴾ تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي

سلامونه او دوی لره به رزق د دوی وی په هغے کښ صبا او بیګاه۔ دا هغه جنت دے

نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴿٦٣﴾

چه په میراث کښ ئے ورکوو مونږ د بندګانو خپلو نه هغه چاته چه تقویٰ داروی۔

**تفسیر**: یعنی ددے بدو جانشینو نه چه کوم خلق توبه وباسی او د مونځونو حفاظت کوی، د خواهشاتو غلامی پریدی، او د عمل صالح ژوند اختیار کړی، الله تعالیٰ به دوی د خپلو سلفو صالحینو سره جنت ته داخلوی، او د دوی نیك اعمال به معمولی شان هم نهٔ ضائع کوی، ځکه توبه مخکنی ګناهونه ختموی، او هغه جنت چه هغے ته به دوی داخلیږی د هغے نوم (جنت عدن) دے چه د هغے وعده الله تعالیٰ د خپلو هغه بندګانو سره کړیده چه د هغهٔ په حق ذات باندے بغیر د لیدلو نه ایمان لری۔

جَنّٰتِ عَدْنٍ: دا بدل دے د (الْجَنَّةَ) نه ځکه چه (الجنة) د تولو جنتونو نوم دے او د عدن جنت پکښ بعض حصه ده۔

إِنَّهُ كَانَ وَعْدُهُ مَأْتِيًّا: یعنی دا مهٔ وایه چه جنت یو غائب شے دے، ملاؤ به شی او که نهٔ، نو الله تعالیٰ د زیات تاکید دپاره فرمائی چه د الله تعالیٰ دا وعده به ضرور پوره کیږی، پدے کښ د شك کولو هیڅ ګنجائش نشته دے۔

(انه) دا ضمیر رحمٰن ته راجع دے۔ یا ضمیر شان دے۔ ځکه چه دا مقام د تعظیم او تفخیم دے۔

مأتی اسم مفعول دے یعنی داسے وعده ده چه دے ته راتلل کیدے شی یعنی الله به ورته

ضرور راتلل کوی او دا به پوره کوی۔
لَا يَسْمَعُوْنَ : د جنتیانو نور صفات : یعنی جنتیان به هیڅ فضول او لغوه خبرے نهٔ آوری بلکه ملائك به دوی ته سلامونه کوی، یا خپل مینځ کښې به یو بل باندے سلام کوی۔ لکه چه الله تعالیٰ په سورة الواقعه آیت (۲۶/۲۵) کښې فرمایلی دی : ﴿ لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا تَأْثِيْمًا ○ إِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ○﴾ نهٔ به هلته بکواس آوری او نهٔ د گناه خبره، صرف سلام سلام آوازونه به وی)۔
إِلَّا سَلٰمًا : یعنی دوی به همیشه په نعمتونو کښې وی او د سلامتیا خبرے به آوری او هیڅکله به د مصیبت او خفگان خبره وانهٔ وری، لکه دنیا کښې چه یو تن په نعمت کښې وی ناڅاپه د خفگان خبره واوری، نو هغه نعمت پرے کدوړ شی، جنتیان به داسے نهٔ وی۔
یا استثناء منقطع ده اَیْ لٰکِنْ سَلَامُ بَعْضِهِمْ عَلٰى بَعْضٍ ۔ یعنی لیکن سلام د بعضو به وی په بعضو باندے۔
وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيْهَا : یعنی هر وخت به دوی ته د دوی د خوښے مطابق خوراك ملاویږی۔ د صبا او بیگاه نه مراد هر وخت دے۔
تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِىْ : الله تعالیٰ فرمائی چه دا به هغه جنت وی چه مونږه ئے خپل هغه بندگانو ته ورکوو چه تقویٰ والا وی، په خوشحالیٔ او په غم هر حال کښې زمونږ تابعدار وی، غصه خوری، او خلقو ته معافی کوی، لکه چه الله تعالیٰ په سورة المؤمنون ابتدائی آیتونو کښې د مؤمنانو صفاتو ذکر کولو سره فرمایلی دی : ﴿ قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴾ او په آخر کښې ئے فرمایلی دی : ﴿ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴾ د کومو مؤمنانو چه په تیر شوی آیتونو کښې صفات بیان شویدی دا خلق به د فردوس وارثان جوړیږی چه په هغے کښې به همیشه وسیږی۔
بیا ادنیٰ درجه تقویٰ دا ده چه انسان د شرك او د کفر نه بچ شی۔ دا به هم په اتفاق د مسلمانانو سره جنت ته داخلیږی په یو وخت د اوقاتو کښې، کله چه الله تعالیٰ وغواړی۔ او اعلیٰ تقویٰ دا ده چه انسان د کفر، شرك او کبیره گناهونو نه ځان وساتی او په واجباتو او مستحباتو باندے راتلل کوی۔

| وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهٗ |
|---|
| او (ملائك وائی) نهٔ نازلیږو مونږ مگر په حکم د رب ستا، د هغه په اختیار کښې دی |

| مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا |
|---|
| هغه څه چه مخکښې دی زمونږ نه او هغه چه روستو دی زمونږ نه او هغه څه چه |
| بَيْنَ ذٰلِكَ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴿٦٤﴾ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| په مینځ ددے کښې دی او نهٔ دے رب ستا هیره ونکے۔ رب د آسمانونو او د زمکے دے |
| وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ |
| او د هغے چه په مینځ د دواړو کښې دی نو بندګی خاص کړه هغه لره او صبر کوه |
| لِعِبَادَتِهِ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ﴿٦٥﴾ |
| دپاره د بندګئ: د هغه آیا پیژنے ته هغه لره همنامے (هم صفتے)۔ |

**تفسیر**: (۱) په آیت کښې د ملائکو د عاجزئ بیان دے دپاره د رد د شرك في العبادة او رد د مشرکین بالملائکه والجن، چه ملائکو ته بغیر د اجازت نه چرته د تللو اختیار نشته نو نور اولیاء به د څه اختیار ولری۔ (۲) دویمه وجه د ربط دا ده چه دلته الله تعالیٰ د انبیاء علیهم السلام پسے د ملائکو تذکره ځکه وکړه چه دلته الله تعالیٰ مونږ ته دعوت راکوی چه تاسو تشبه بالملائکه وکړئ، یعنی د ځان نه داسے متقیان جوړ کړئ لکه د ملائکو په شان، دے دپاره چه جنت در کړی، د ملائکو کار څه دے؟ هغه د الله تعالیٰ د امر تابعداری ده، لکه مخکښې آیت کښې راغلل چه متقیانو ته به جنت ملاویږی او متقی هغه چاته وائی چه د الله د امر تابعدار وی لکه د ملائکو په شان۔

## شان نزول

ددے آیت شان نزول دا دے چه څه ورځو دپاره د وحی نازلیدل بند شو، نو رسول الله ﷺ پریشانه شو۔ دے نه روستو چه کله جبریل علیه السلام نبی ﷺ ته تشریف راوړو نو نبی ﷺ هغه ته ووئیل [مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَزُورَنَا أَكْثَرَ مِمَّا تَزُورُنَا] چه ته مونږ ته ډیر ولے نهٔ راځے؟ (مونږ ستا د ملاقات زیات شوق لرو) نو دا آیت نازل شو۔ او الله تعالیٰ جواب وکړو د طرفه د ملائکو نه چه اے جبریله! ته داسے ووایه ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾۔ امام احمدؒ، امام بخاریؒ او نورو محدثینو د ابن عباس رضی الله عنه نه همدا روایت کړیدے۔

(بخاری فی التفسیر سورة ۱۹، باب ۲ والتوحید باب ۲۸)

د آیت مطلب د جبریل علیه السلام په ژبه دا دے چه اے محمده (ﷺ)! مونږ ملائك زمکے ته یا د یو آسمان نه بل آسمان ته ستا د رب د حکم نه بغیر نهٔ راکوزیږو، الله تعالیٰ مونږ ته دا اختیار نهٔ دے راکړے چه هرچرته بغیر د اجازت نه لاړ شو لکه د انسان چه ډیر حده پورے دا اختیار شته۔ د هغهٔ علم هر شی لره راګیرونکے دے۔ هیڅ شے د هغهٔ نه پټ نهٔ دے، یوه ذره هم د هغهٔ د نظر نه غائبه نهٔ ده، مونږ هر کار د هغهٔ د اجازت نه روستو کوو۔

پدے وجه زما ستا خوا ته نهٔ راتلل، د هغهٔ د حکم نهٔ کیدو په وجه سره وو، ددے سبب دا نهٔ دے چه الله تعالیٰ تهٔ هیر کړے ئے، یا ئے تا له پریخے وو۔ لکه چه الله تعالیٰ په سورة الضحیٰ کښ فرمایلی دی: ﴿مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى ۝﴾ نهٔ تا لره رب پریخے دے او نهٔ ستا نه بیزاره شویدے۔

بِاَمْرِ رَبِّكَ: د امر نه حکم شرعي او حکم ګوني دواړه مراد کیدے شی۔

مَا بَيْنَ اَيْدِيْنَا : ۱- ددے نه مراد د دنیا حالات دی او مَا خَلْفَنَا نه مراد د آخرت حالات دی۔ او مَا بَيْنَ ذٰلِكَ هغه خلویښت کاله دی چه د دوو شپیلو ترمینځ به راځی۔ (سعید بن جبیرؒ)

۲- یا مخکښی او روستنی ټول حالات او مکانات مراد دی، یا تیرے شوے زمانے او راتلونکے زمانے او ددے ترمینځ۔

۳- مَا بَيْنَ اَيْدِيْنَا آسمان دے او مَا خَلْفَنَا زمکه ده، او مَا بَيْنَ ذٰلِكَ ددے ترمینځ چه کومه فضاء ده، دا ټول د الله تعالیٰ په اختیار کښ دی۔ دا ټول مطلبونه صحیح دی۔

وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا: سوال پیدا شو چه اے جبریله! آیا پټ تریے نشے راتللے؟ نو جواب کوی چه ستا رب نه هیڅ شے او خبره نهٔ هیریږی۔

ددے یو بل مطلب دا دے چه ستا رب اګرکه ستا نه وحی روستو کړی خو هغه تهٔ نهٔ ئے هیر کړے او نهٔ ئے تهٔ پریخے ئے۔

رَبُّ السَّمٰوٰتِ : ستا رب د آسمانونو او د زمکے رب دے، او ددے ترمینځ چه څومره مخلوقات دی، د هغوی ټولو رب دے، ددے ذات باری تعالیٰ په باره کښ دا څنګه تصور کیدے شی چه غفلت او هیره په هغه باندے راتلے شی۔ پدے وجه اے زما نبی! تهٔ د هغه عبادت کوه او په ټول ژوند کښ پدے باندے ثابت قدم وسیږه۔ آیا ستا په علم کښ ستا د رب څوك شبیه (مشابه) او مَثیل، او څوك مد مقابل شته چه هغه طرف ته تهٔ التفات او توجه وکړے، دے دپاره چه هغه ستا حاجت پوره کړی؟!

کله چه داسے خبره نهٔ ده نو د هغهٔ نه سوئ هیڅ چاره نشته چه د هغه مخے ته انسان

تسلیم شي، او سرخکته کړي، او د هغهٔ عبادت وکړے شي، او پدے لاره کښې په راتلونکې هر تکلیف باندے صبر وکړے شي۔

فَاعْبُدْهُ : دا خطاب اول نبي ته دے او بیا هر مؤمن ته۔ او معلومه شوه چه د رحمت د حاصلولو لویه ذریعه د الله تعالیٰ بندګي کول دي۔

وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهٖ : په تهولو څیزونو کښې ګران شے عبادت دے، یو تن به د دنیا دپاره ډیره سختنه برداشت کوي، تهوله ورځ به په تنګ دکان کښې ناست وي، نهٔ به تنګیږي، بنه پابندي او ډیوټي به ورکوي، لیکن کله چه د عبادت موقعه راشي نو بیا به ورته شل بهانے کوي۔ ددے وجه نه د الله تعالیٰ په عبادت سره د هغه محبت، جنت ملاویږي او د نفس تزکیه پرے زیاته کیږي، ددے وجه نه د بعض سلفو طریقه دا وه چه کله به ئے ځان ته سزا په عبادت سره ورکوله چه ما نه دا فلانے کار یا خبره غلطه شویده، نو زهٔ به دومره رکعاته نفل کوم۔ پدے وجه الله تعالیٰ د (وَاصْطَبِرْ) قید ولګولو چه ځان ډیر صبرناك کړه په بندګئ د الله تعالیٰ۔ او پدے باندے همیشه مضبوط وسیږه، د دنیا څیزونه دے د الله تعالیٰ د بندګئ نه غافل نکړي۔

لِعِبَادَتِهٖ : لام په معنیٰ د عَلیٰ دے یا لام په خپله معنیٰ دے، یعنی د عبادت دپاره ځان کښې ډیر صبر پیدا کړه۔

هَلْ تَعْلَمُ لَهٗ سَمِيًّا : یعني د الله تعالیٰ بندګي ځکه پکار ده چه د هغه په شان همنامے او هَمْ صفتے څوك نشته چه هغه هم مستحق د عبادت وګرځي۔ یعني د الله تعالیٰ سره په حقیقي نوم او صفت کښې څوك شریك نشي کیدے چه د الله په شان عالِم او قادر او رحم والا وي۔ عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي چه د الله تعالیٰ نه سوئ هیڅوك رحمٰن نشي کیدے۔ (ابن کثیرؒ)

او که په بعضو صفتونو کښې مشابهت لفظي راشي لکه بنده هم رحیم دے او الله تعالیٰ هم، مګر په حقیقي رحمت کښې دواړه هیڅکله نشي شریك کیدے، د الله تعالیٰ جدا رحمت دے او د بندګانو جدا۔ او سَمي کله شریك ته هم وائي، یعني آیا تهٔ د الله تعالیٰ سره بل اِلٰه او وَلَد پیژنے چه هغه ته هم اِلٰه وویل شي؟! هیڅکله نهٔ۔

| وَيَقُولُ الْإِنسَانُ أَإِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا ﴿٦٦﴾ |
|---|
| او وائي انسان آیا کله چه زهٔ مړ شم نو خامخا راویستلے کیږم به ژوندے۔ |

| أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِن قَبْلُ وَلَمْ يَكُ |
|---|
| آیا نهٔ دی یاد انسان ته چه بیشکه پیدا کړے وو مونږ دے مخکښې ددینه او نهٔ وو دے |
| شَيْئًا ﴿٦٧﴾ فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ |
| هیڅ شے۔ نو قسم دے په رب ستا خامخا راجمع به کړو دوی لره او شیطانانو لره |
| ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴿٦٨﴾ |
| بیا به ضرور حاضر کړو دوی لره گیر چاپیره د جهنم نه په زنګنونو پراته۔ |

**تفسیر** : پدے آخری رکوع کښې عام تخویفات او اسباب د غضب د الله تعالیٰ ذکر کیږی دے دپاره چه بنده د هغے نه ځان وساتی او د الله تعالیٰ رحمت حاصل کړی۔ او د آخرت منکرینو مشرکانو او جګړه ماروته او الله تعالیٰ ته د اولادو نسبت کونکو ته رټنے ورکوی۔
پدے آیتونو کښې رټنه ده په انکار د بعث بعد الموت، یعنی د دوباره ژوندی کیدو او د قیامت نه منکر انسان وائی چه آیا زهٔ به د مړکیدو نه روستو دوباره ژوندے کولے شم ؟ ! نو دا استفهام انکاری دے۔ یعنی دا هیچرے نشی کیدے۔
او د انسان نه مراد هر کافر او منکر د آخرت دے، بعض مفسرین (ابن جریج) وائی چه دا عاص بن وائل دے۔ او ځینی وائی : اُبی بن خَلَف یا ولید بن المغیره مراد دے چه ددهٔ په باره کښې دا آیت نازل شویدے۔
أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنسَانُ : نو الله تعالیٰ ددهٔ ددے کفری عقیدے رد کوی فرمائی چه آیا دهٔ دا حالت هیر کړیدے چه ما دا هرکله اول ځل پیدا کړو نو ددے نه مخکښې دا موجود نهٔ وو۔ نو آیا زهٔ ددهٔ په دوباره پیدا کولو باندے قادر نهٔ یم؟ یعنی چه د عدم (نشتوالی) نه مے موجود کړو نو آیا دا کنے ډیره آسانه نهٔ ده چه د قبر نه ئے راپاځوی۔
فَوَرَبِّكَ: الله تعالیٰ په خپل ځان باندے قسم کوی چه اے زما نبی ! مونږ به دا ټول منکرین د قیامت او شیطانان د محشر په میدان کښې د جهنم نه گیر چاپیره راجمع کړو، پداسے حال کښې چه یرے به وهلی وی، ذلیل او خوار په ګوډو باندے به پرمخے وی، او جهنم ته به گوری، په دوی کښې به د اُودریدو طاقت نهٔ وی۔
لکه چه الله تعالیٰ په سورة الجاثیه آیت (٢٨) کښې فرمایلی دی : ﴿ وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً ﴾ (او تهٔ به وینے چه هر امت به په ګوډو باندے پریوتے وی)۔

مفسرينو ليکلي دي چه الله تعالیٰ د دوی حشر د خپل ذليل ترين مخلوق شيطانانو سره د دوی د سپکاوی ښکاره کولو دپاره کوی۔
دارنګه دیے ته هم اشاره مقصود ده چه د دوی شرك او کفر د شيطانانو د اتباع نتيجه وه، پدیے وجه تابع او متبوع دواړه به جهنم ته راجمع کولے شی۔
جِثِيًّا : دا جمع د جَاثٍ ده د جَثَا عَلٰى رُكْبَتَيْهِ نه دیے يعنی په خپلو ګونډو (زنګنانو) به پراته وی د وجه د سختتے یرے نه۔ یا پدیے وجه چه دوی به په دنیا کښې خپلو معبودانو ته دغسے پراته وو۔ یا جِثِيًّا په معنیٰ د جَمَاعَاتٍ (جماعتونو، ډلو) سره دیے او په اصل کښې جمع د جُثْوَةٌ ده او جُثْوَةٌ د خاورو او کاڼرو مجموعے ته وائی۔ ابن عباس وائی : جِثِيًّا : اَیْ قُعُوْدًا: يعنی ناست به وی۔ (فتح البيان)

| ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيْعَةٍ اَيُّهُمْ اَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ |
|---|
| بيا به خامخا را اوباسو د هرے ډلے نه هريو د دوی نه چه ډير سخت وو په رحمٰن باندے |
| عِتِيًّا ﴿٦٩﴾ ثُمَّ لَنَحْنُ اَعْلَمُ بِالَّذِيْنَ هُمْ اَوْلٰى بِهَا |
| په نافرمانیٔ کښې۔ بيا مونږ ښهٔ پوهه يو په هغه کسانو چه هغوی ډير لائق وی جهنم ته |
| صِلِيًّا ﴿٧٠﴾ وَاِنْ مِّنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا كَانَ |
| په داخليدو۔ او نشته ستاسو نه څوك مګر ورتلونکے به وی جهنم ته، دا ده |
| عَلٰى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِيْنَ |
| په رب ستا باندے ضروری فيصله کړے شوے۔ بيا به بچ کړو هغه کسان |
| اتَّقَوْا وَّنَذَرُ الظّٰلِمِيْنَ فِيْهَا جِثِيًّا ﴿٧٢﴾ |
| چه تقویٰ ئے کړیده او پرے به دو مونږ ظالمان په هغے کښې په زنګنونو پراتهٔ۔ |

**تفسير** : بيا به ددیے ټولو ډلو نه الله تعالیٰ هغه خلق راجدا کړی چه په دنيا کښې زيات سرکش او متکبر وو، د خپل نفس د خواهشاتو تابعداری ئے کوله، او احکام الٰهيه ؤ ته ئے څه خاص اعتبار نهٔ ورکولو۔ الله تعالیٰ وائی، مونږ ته ښهٔ معلوم دی چه دوی په جهنم کښې د سوزيدلو زيات حقدار دی، نو دوی به اول جهنم ته ګوزار کړے شی، بيا به نور جهنميان ګوزار کړے شی۔

مِنۡ کُلِّ شِیۡعَةٍ : یعنی د هر امت او هرې ډلې او هر دین والا کافرانو نه.
شیعه هره هغه ډله ده چه د یو دین پسې روانه وي. او زمخشري وائي چه شیعه هغه ډلې ته وائي چه د سرکشانو (ګمراهانو) نه د یو سرکش (ګمراه) پسې روانه وي. ﴿ إِنَّ الَّذِینَ فَرَّقُوا دِینَهُمۡ وَکَانُوا شِیَعًا﴾ (الانعام : ۱۵۹) . (یقیناً هغه خلك چه دین ئې تس نس کړو او شو دوی ډلې)
أَشَدُّ عَلَی الرَّحۡمٰنِ عِتِیًّا: جُرۡأَةً وَتَمَرُّدًا وَفُجُوۡرًا . یعنی په الله کوم یو سخت زړه ور او سرکشه او بدکاره زیات دې. او عتیا مخکښې تیر شو تجاوز ته وائي یعنی څوك په الله باندې تجاوز کونکې دې چه دا هر کافر او مشرك دې، او بیا فاسقان مجرمان دي.
یا اَعۡصٰی لِلّٰهِ وَاَعۡتٰی. یعنی ډیر نافرمان او ډیر سرکشه دې. (فتح البیان)
بعض وائي : معنیٰ دا ده : مونږ به راوباسو د هر دین والو نه د هغوی قائدین او مشران په شر کښې. (قتادة)
په أَشَدُّ لفظ کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ به ډیر ګناهګاران معاف کوي. او که ددې نه مراد صرف کافران واخستې شي، نو بیا معنیٰ دا ده چه د کافرانو نه کوم ډیر سرکشان وي هغه به ترې راجدا کړې شي، او ډلې ډلې به جوړې کړې شي او جهنم ته به په ترتیب سره ګوزار کړې شي. نَعُوۡذُ بِاللّٰهِ مِنَ الۡخِذۡلَانِ.
وَإِنۡ مِّنۡکُمۡ إِلَّا وَارِدُهَا: پدې آیت کریمه کښې الله تعالیٰ خپله یوه حتمي فیصله آوروي ده چه مومن وي که کافر، د هر یو به ضرور د جهنم سره واسطه راځي، بیا به الله تعالیٰ په خپل فضل او کرم سره تقوىٰ والو ته د هغې نه نجات ورکوي، او کومو خلقو چه په دنیا کښې د کفر او استکبار ژوند تیر کړې وي، او لوی لوی ګناهونه ئې کړي وي نو په جهنم کښې به د سخت عذاب تیرولو دپاره پریخودې شي.
وَإِنۡ مِّنۡکُمۡ: دا جمله په معنیٰ د قسم سره ده، یعنی قسم په الله چه هر انسان به جهنم ته داخلیږي او احادیثو کښې هم دې ته (اِلَّا تَحِلَّةَ الۡقَسَمِ) وئیلې شویدې.

## د ورود نه څه مراد دې؟

د تفسیر علماؤ پدې باره کښې اختلاف دې چه په آیت کښې د ((ورود)) نه څه مراد دې؟.
(۱) یوه رائې دا ده چه نیك او بد ټول به جهنم ته داخلیږي، لیکن نیکانو ته به یخیږي او بیا به ددې نه وېستلې کیږي او کوم خلق چه د جهنم د عذاب مستحق وي، هغوی به پکښې پریخودې شي، او اُور به نهٔ مخکښې نه دوی دپاره یخیږي او نهٔ پس د راتیریدو د

تقویٰ والو نه. ددے رائے والو په نیز د ((ورود)) معنیٰ د دخول ده.

او د جابر بن عبد الله ﷺ د هغه حدیث نه ئے دلیل نیولے دے چه په هغے کښ نبی کریم ﷺ فرمایلی دی چه هر نیك او بد به جهنم ته داخلیږی لیکن مؤمن دپاره به اُور یخ کړے شی او په سلامتیا سره به شی. (مسند احمد ١٤٥٦٠) واسناده ضعیف لجهالة ابی سمیة).

او ورود په معنیٰ د دخول سره په ډیرو آیتونو کښ راغلے دے لکه ﴿اَنْتُمْ لَهَا وَارِدُوْنَ﴾ (انبیاء: ٩٨) (تاسو به هغے ته ننوتونکی یئ) ﴿فَاَوْرَدَهُمُ النَّارَ﴾ (هود: ٩٨) (یعنی داخل به ئے کړی اُور ته) ﴿لَوْ كَانَ هٰٓؤُلَآءِ اٰلِهَةً مَّا وَرَدُوْهَا﴾ (انبیاء: ٩٩) (که دوی چرته معبودان وے نو اُور ته به نهٔ داخلیدے) او دارنګه په یو حدیث کښ دی:

[لَا يَمُوْتُ لِمُسْلِمٍ ثَلَاثَةٌ مِّنَ الْوَلَدِ فَيَلِجُ النَّارَ اِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ] د مسلمان درے بچی نهٔ مره کیږی چه هغه اُور ته داخل شی مګر د قسم پوره کولو په وجه به داخلیږی چه هغه (ورود) دے. (بخاری باب الایمان والنذور باب قول الله واقسموا بالله جهد ایمانهم (١١/٥٤١) رقم (١٢٥١) ومسلم فی البر والصلة والآداب رقم (٢٦٣٢) او د سلفو د اقوالو نه هم ددے تائید کیږی.

سیدنا عبد الله بن رواحه ﷺ وژړل نو ښځه هم ورسره په ژړا شوه، دهٔ ترے تپوس وکړو ولے ژاړے ؟ هغے ووېل: ستا د ژړا د وجه نه. نو هغے ووېل تا ولے وژړل؟: نو دهٔ ورته ووېل: چه ما ته دا آیت رایاد شو چه الله مونږ ته خبر راکړیدے چه تاسو کښ به هر یو اُور ته داخلیږئ او دا خبرئے نهٔ دے راکړے چه تاسو به ترے بیرته ووځئ.

(مجمع الزوائد: ١٠٢٢٠) الرحیق المختوم ص: ٣٦١)

او حسن بصریؒ یو تن ولیدو چه خندل ئے، نو ورته ئے ووېل چه تا له دا خبر راغلے دے چه اُور ته به ځے ؟ هغه ووېل: آؤ، آیا تا له دا خبر راغلے چه تهٔ به ترے بیرته وځې؟ نو هغه ووېل: نهٔ، نو وے فرمایل: فَفِيْمَ الضِّحْكُ؟. نو بیا دا دومره خندا ولے کوے.

(الطبری: ٢٤٠٤٢) وابن کثیر)

او د مؤمنانو اُور ته داخلیدل چه کله په هغوی باندے عذاب نهٔ وی د ډیرو حکمتونو دپاره کیږی، یو دا چه پدے سره د دوی خوشحالی زیاتیږی کله چه دوی پوهه شی چه دوی د اُور نه خلاصیږی. دویم پدے کښ په کافرانو باندے غم زیاتول دی چه کله هغوی مؤمنان وینی چه د اُور نه وځی او دوی پکښ باقی پاتے کیږی.

دریم دا چه کله دوی په کافرانو باندے عذاب وینی نو دا به سبب شی د زیات خوند حاصلولو د دوی په نعمتونو د جنت سره.

(۲) دويمه رائے دا ده چه د ((ورود)) نه مراد (مرور) يعنى تيريدل دى، لكه ﴿ وَلَمَّا وَرَدَ مَاءَ مَدْيَنَ ﴾ القصص:۲۳) كښې راغلے دے۔ يعنى مؤمن او كافر، نيك او بد ټول به په هغه پُل صراط باندے ورتيريږى كوم چه په جهنم باندے كيخودے شى، نيكان خلق به د خپلو خپلو اعمالو مطابق تيز يا په آرام سره تيريږى، او څوك چه د جهنم د عذاب مستحق وى په هغے كښې به د الله په حكم سره غورزيږى۔

ددے تائيد د سورة الانبياء آيت (۱۰۱) نه كيږى: ﴿إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ۝﴾ (بيشكه كومو خلقو دپاره چه زمونږ د طرف نه د مخكښې نه نيكى ثابته شويده، هغوى ټول به د جهنم نه لرے ساتلے شى)۔

او امام احمدؒ، مسلمؒ، ترمذيؒ، حاكمؒ او بيهقيؒ وغيره ددے آيت په تفسير كښې د ابن مسعود ﷺ نه روايت كړيدے چه رسول الله ﷺ فرمائى: ((ټول خلق به جهنم ته ورځى بيا به د خپلو خپلو اعمالو مطابق د هغے دپاسه تيريږى))۔ الحديث۔ (مسلم: ۵۰۳)

او دا حديث د جابر بن عبد الله والا حديث په مقابله كښې صحيح دے۔ او مسلمؒ د ام مبشرؓ نه روايت كړيدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل: ((كوم كسان چه په بدر او حديبيه كښې شريك شويدى د هغوى نه به هيڅوك جهنم ته نهٔ داخليږى، حفصے ووئيل، آيا الله نهٔ دى وئيلى: ﴿ وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ﴾ (ستاسو نه هريو به هغے ته ورځى؟)۔ نو نبى ﷺ وفرمايل: آيا تا د هغه دا قول نهٔ دے آوريدلے: ﴿ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا ﴾ بيا به مونږ تقوىٰ والو ته نجات وركړو)۔ مگر اول قول ډير غوره ښكاره كيږى، دلائل ئے ډير ښكاره دى۔

او د حديث د ام مبشرؓ مطلب به دا وى چه مؤمنان به هم اُور ته داخليږى ليكن الله تعالىٰ به ئے په اُور باندے نهٔ سيزى۔

كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا: يعنى دا كار ستا په رب باندے ضرورى دے، او الله ئے فيصله كړيده، او پدے كښې د الله تعالىٰ ډيرزيات حكمتونه دى، او دا د انسانانو د يرولو او د هغوى د اصلاح دپاره ډيره ښه لاره ده، چه هر انسان جهنمى دے ځان به د اُور نه خلاصوى په دوه سببونو سره چه هغه ايمان او تقوىٰ ده۔

ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا: ادنىٰ تقوىٰ دا ده چه د شرك نه بچ شى، دا به هم الله تعالىٰ د اُور د هميشوالى نه بچ كوى په يو وخت د اوقاتو كښې به د اُور نه راوځى۔ او چه اعلىٰ متقى وى نو په اُور به ورتير شى، او داسے په تيزئ به تير شى لكه د سترگے د رپ په اندازه او په اُور باندے به ور روان وى او اُور به ئے نهٔ سيزى، او بل يو تن به د هواء په اندازه، او بل به د تيز

اس په اندازه، او بعض به د خپلے مندے په اندازه ورتیریږی. لکه دا خبره په صحیح احادیثو کښې ثابته ده. صحیح مسلم: (۵۰۳)

| |
|---|
| وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ |
| او کله چه اُولوستلے شی په دوی باندے آیتونه زمونږ ښکاره، وائی هغه کسان |
| كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ |
| چه کافران دی هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړیدے کوم یو د دواړو ډلو نه غوره دے |
| مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿٧٣﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ |
| په اعتبار د ځائے او ښائسته مجلس والا دے. او ډیر هلاك کړیدی مونږ مخکښې د دوی نه |
| مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِئْيًا ﴿٧٤﴾ |
| قومونه چه هغوی ډیر ښائسته وو په اعتبار د سامان د کور او په اعتبار د شکل |
| قُلْ مَن كَانَ فِي الضَّلَالَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ |
| اُووایه څوك چه وی په گمراهئ کښې نو مهلت به ورکړی هغه ته |
| الرَّحْمَٰنُ مَدًّا حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا مَا |
| رحمٰن مهلت ورکول، تردے پورے چه کله اُووینی دوی هغه |
| يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ فَسَيَعْلَمُونَ |
| چه دوی سره ئے وعده کیدے شی یا عذاب او یا قیامت نو زر دے چه پوهه به شی دوی |
| مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضْعَفُ جُندًا ﴿٧٥﴾ |
| چه څوك دے هغه ناکاره ځائے والا او ډیر ضعیف لښکر والا. |

**تفسیر**: د قریشو کافرانو حال بیانیږی چه کله د دوی مخے ته د قرآن هغه آیتونه لوستلے کیږی چه په هغے کښې توحید او رسالت او بعث بعد الموت او حساب او جزا ښکاره بیان شوے وی، او مؤمنانو دپاره د جنت وعدے او د کافرانو دپاره د جهنم وعید ذکر وی، نو دوی د خپل درد پټولو دپاره وائی چه مونږ په دنیاوی اعتبار سره د محمد (ﷺ) د

تابعدارو نه په ښهٔ حالت کښې يو، زمونږ کورونه ښهٔ دي، زمونږ مجلسونه آباد دي، د خلقو ګڼړه لګيدلې ده، څوك راځي او څوك ځي، نو دا څنګه کيدے شي چه مونږ دے ګمراه يو او کوم خلق چه په دارِ ارقم کښې پټ شويدي هغه دے هدايت يافته وي؟!

يا د دنياوي ډول او سينګار په وجه خپل ځان حق پرست ګڼړي، او تکبر کښې راځي او دغه خبره کوي. د کاميابۍ او ناکامۍ معيار ئے د دنيا مالونه او فقيري او ښه مجلسونه او کمزوري خلك ګرځولي وو.

وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ : نو الله تعالىٰ دوی ته جواب ورکړو چه دکوم دنياوي مال او متاع په وجه چه دا خلق په غرور کښې اخته دي، او فخرونه کوي هغهٔ به باقي پاتے نهٔ شي، د دوی نه مخکښې هم ډير قومونه تير شويدي چه د مال او متاع او په ظاهري حسن او ښائست کښې د دوی نه زيات وو، ليکن د دوی د کفر په وجه سره مونږ دوی هلاك کړل.

أَثَاثًا : ۱- د کور سامانونه. ۲- يا ډير مالونه لکه اُوښان، ګډے بزے، غواګانے، غلامان او سامونه. ۳- يا لباسونه او نوے بسترے.

وَرِئْيًا : يعني حسن منظر، (ښائسته منظر) يعني ښائسته شکلونو والا وو لکه عاديان او ثموديان او فرعونيان. او حسن منظر کله په ښائسته لباس سره وي او کله په ښائسته بدن او د هغے په نعمتونو سره وي. (فتح البيان)

جوهريؒ وائي : رأيا : مَا رَأَتْهُ الْعَيْنُ مِنْ حَالٍ حَسَنَةٍ وَكِسْوَةٍ ظَاهِرَةٍ) هغه شے چه سترګه ئے ويني د ښائسته حالت او ښکاره لباس نه.

قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلَالَةِ : پدے آيت کريمه الله تعالىٰ د کافرانو د مالونو او هغوی ته د زينت ورکولو علت ذکر کړيدے چه هغه کافرانو ته مهلت ورکول دي. او دا جواب د سوال دے چه په کافرانو به عذاب کله راځي؟ نو دلته الله تعالىٰ د خپل سنت او عادت تذکره کوي چه د الله تعالىٰ طريقه دا ده چه کوم کافران چه په خپل مال متاع او جاه وجلال او غلامانو او خادمانو فخر کوي الله دوی ته رسۍ او پړے سستوي، او دوی په خپل حال باندے پريدي، ترڅو چه د دوی مهلت ختم شي، او د دوی دپاره هيڅ عذر باقي پاتے نشي، نو الله تعالىٰ ئے راونيسي، په دنيا کښې ورته د مؤمنانو په لاسونو عذاب ورکړي، يا پرے بل آفت راولي، او يا په همدے حال کښې دوی ته مرګ راولي، نو بيا د قيامت په ورځ د دوی ځاى جهنم وي، نو دوی ته به دواړو حالتونو کښې معلومېږي چه همدا خلك بد ځاى د اُوسيدو والا او نهايت ذليل او خوار خلك وو. حاصل دا شو چه کافرانو ته الله تعالىٰ ضرور

عـذاب ورکـوي یـا بـه پـه دنیا کښې عذاب ورکړي، او که دنیا کښې نهٔ وي نو آخرت کښې خو خامخا عذاب شته نو دوي ډې په خپلو مالونو دهوکه نشي۔

فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمٰنُ : ۱ - دا جـمـلـه انشائیه ده په معنیٰ د خبریه سره۔ یعني الله دوي ته مهلـت ورکـوي۔ او دا ئې په صورت د امر کښې راوړو اشاره ده چه الله تعالیٰ داسې نافرمانو ته ضرور مهلت ورکوي۔ لکه د ﴿ اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْا اِثْمًا﴾ په شان۔

۲ - ظـاهـر دا ده چـه دا جـمـلـه دعائیه ده او دا دوي ته ښیرې دي چه رحمٰن ذات ډې دوي ته مهـلـت ورکـړي دپاره د استـدراج، او دې دپاره چه د دوي ګناهونه زیات شي نو بیا ئې عذاب هم سوئ شي۔

او د (الرحمٰن) لـفـظ ئې راوړو پدې کښې اشاره ده چه دا مهلت ورکول هم د الله تعالیٰ دنیوي رحـمـت دې په دوي باندې چه دوي ئې سره د ګناهونو نه سمدست راونهٔ نیول، دې دپاره چه دوي تـه موقعه او فرصت ملاؤ شي او ښهٔ سوچ وکړي۔ او پدې کښې دوي ته دا دعوت فکر ورکـول دي چـه سـتـاسـو د ګمراهئ او کفر سزا دا ده چه الله تعالیٰ تاسو ته مهلت درکوي او پدې خپل کفر او شرك باندې مو باقي پریدي نو سوچ وکړئ او هدایت ته راواپس شئ۔

إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ : دا مـانـعـة الخلو ده، جمع والې ئې جائز دې چه دنیا کښې هم الله تعالیٰ عذاب ورکړي او آخرت کښې به ئې هم ورکوي۔

شَرٌّ مَّكَانًا: یعني څوك دې ناکاره مرتبې والا۔

وَأَضْعَفُ جُنْدًا: دوي خو په دنیا کښې (اَحْسَنُ نَدِيًّا) (ښـائسته مجلس والا) ځان ته ویل نو د عـذاب پـه وخـت بـه ورتـه پته ولګي چه زمونږ لښکر او نفري خو ډیره ضعیفه وه، او دغه مجلسیانو دوي ته هیڅ فائده ورنکړه۔

| وَيَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى |
| --- |
| او زیاتوي الله تعالیٰ هغه کسانو لره چه هدایت ئې موندلې دې نور هدایت، |
| وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ |
| او باقي پاتې کېدونکې نیك عملونه غوره دي په نیز د رب ستا په بدله کښې او غوره دي |
| مَّرَدًّا ﴿٧٦﴾ أَفَرَأَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ |
| په ځائې د ورګرځیدو کښې۔ آیا تا لیدلې دې هغه څوك چه کفر ئې کړیدې |

| بِاٰيَاتِنَا وَقَالَ لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا ﴿۷۷﴾ اَطَّلَعَ |
|---|
| په آیتونو زمونږ او وائي چه خامخا به راکړې شي ما ته مال او اولاد۔ آیا دا خبر شویدے |
| الْغَيْبَ اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا ﴿۷۸﴾ كَلَّا |
| په غیبو باندے یا اخستے دے دهٔ په نیز د رحمٰن لوظ (د نجات)۔ هیچرے داسے نهٔ ده، |
| سَنَكْتُبُ مَا يَقُوْلُ وَنَمُدُّ لَهٗ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴿۷۹﴾ |
| خامخا لیکو مونږ هغه خبرے چه وائی دے او زیات به کړو دهٔ له د عذاب نه زیاتول۔ |
| وَّنَرِثُهٗ مَا يَقُوْلُ وَيَاْتِيْنَا فَرْدًا ﴿۸۰﴾ |
| او وابه خلو ددهٔ نه هغه چه دائے وائی او رابه شی مونږ ته یواځے۔ |

**تفسیر :** اُوس د مخکښنو ضدیانو په مقابله کښې د ایمان والو حال بیانوی۔ یعنی کوم خلق چه هدایت قبول کړی کله چه د دوی مخے ته د قرآن کریم آیتونه تلاوت کیږی نو د دوی ایمان زیاتیږی، او د هدایت په لاره نور هم په تیزئ سره قدمونه اخلی۔

امام بخاریؒ ددے آیت نه استدلال کړیدے چه هدایت دلته په معنیٰ د ایمان سره دے، او پدے کښې زیادت راځی۔ یعنی څوك چه حق او ایمان قبول کړی نو الله تعالیٰ به ئے وخت په وخت هدایت زیاتوی (ولله الحمد) وخت په وخت به ئے ذهن کولاویږی، دوست او دشمن او حق او باطل به جدا جدا پیژنی، او دا د الله تعالیٰ وعده ده او دا په څه وجه ډیریږی؟ نو ددے وجه نیك اعمال دی چه د هغے په وجه او د هغے په برکت سره د دوی صفائی زیاتیږی نو خکه وریسے وائی :

وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ : یعنی په نیکو اعمالو سره د انسان په ایمان کښې زیادت راځی۔ او دارنګه پدے کښې د کافرانو په مقابله کښې ایمان والو ته تسلی ورکړے شویده چه د کافرانو دنیاوی مال او متاع خو بالکل عارضی شے دے، حقیقی متاع خو نیك اعمال دی چه د هغے په بدله کښې به الله تعالیٰ جنت ورکوی۔

خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا : د نیك عمل په دنیا کښې هم بدله شته او په آخرت کښې هم۔

مَرَدًّا: یعنی په اعتبار د واپسئ الله تعالیٰ ته۔ یعنی د مؤمنانو انجام ښه کیدو والا دے، او اے مشرکانو! په تاسو باندے عذاب راروان دے ولے فخرونه کوئ۔ راشئ هدایت قبول کړئ

او نیك اعمال وکړئ چه الله مو انجام ښهٔ کړي او جنت درکړي۔
أَفَرَأَيْتَ الَّذِىْ: پدے آیت کریمه کښې زجر دے هغه چاته چه خیر او عزت غواړي بغیر د نیك عمل کولو نه۔ او په سبب د شرك کولو سره د خیر طمع لري۔ حال دا چه دا غلط سوچ دے، د الله تعالیٰ رحمت او خیرونه او ترقی د دنیا او د آخرت خو په ایمان او نیك عمل سره حاصلیږي۔

## شان نزول

بخاريؒ او مسلمؒ ددے آیت په شان نزول کښې د خباب بن الارت رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه ما به د آهنګرئ کار کولو او د العاص بن وائل په ذمه زما قرض وو۔ ما مطالبه وکړه نو هغه ووئیل [ وَاللّٰهِ لَا أَقْضِيْكَ حَتّٰى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ (ﷺ)] چه قسم په الله! ترڅو پورے چه تهٔ د محمد (ﷺ) د نبوت نه انکار ونکړے نو ستا پیسے به نهٔ درکوم۔ نو ما ووئیل، [وَاللّٰهِ لَا أَكْفُرُ بِمُحَمَّدٍ حَتّٰى تَمُوْتَ ثُمَّ تُبْعَثُ] قسم په الله! زهٔ تر هغه ورځے پورے د محمد (ﷺ) د نبوت نه انکار نهٔ کوم ترڅو چه تهٔ مړ شے، او بیا دویم ځلي راپورته کړے شے۔ نو هغه ووئیل، (مسخرے ئے شروع کړے چه) زهٔ چه کله مړ شم او دوباره راپورته کړے شم نو ما سره به مال او اولاد وي نو هلته راشه ستا پیسے به ادا کرم۔ (یعني لږ انتظار راته وکړه ستاسو په ګمان هلته به ئے درکړم) نو هغه وخت کښې دا آیت نازل شو۔ (بخاری فی البیوع باب ۲۹، والاجارة باب ۱۵، والخصومات باب ۱۰ ومسلم فی المنافقین حدیث : ۳۶ وغیره)

او الله وفرمایل : چه آیا دهٔ سره د غیبو خبر دے چه د قیامت په ورځ به ددهٔ سره مال او اولاد وي، یا دهٔ د الله تعالیٰ نه کوم عهد او لوظ اخستے دے ؟! هیچرے نهٔ، داسے هیڅ خبره نشته دے، مونږ ددهٔ غلطه ژبه استعمالول او دروغ بیانول لیکو، او د قیامت په ورځ به ددے په سبب ددهٔ په عذاب کښې زیادت کوو، او د مرګ په ذریعه به ددهٔ نه تول دنیاوی مال او متاع او اولاد واخلو۔ او دا به د محشر میدان ته یواځے او خالي لاسونه راروان وي، هیڅ به ددهٔ سره نهٔ وي۔

او دا د ټولو مشرکانو طریقه وه چه د قیامت پورے به ئے توقے کولے نو بیا دا آیت عام دے كُلُّ مَنْ يَّطْلُبُ الرَّحْمَةَ وَالْخَيْرَ وَلَا يَعْمَلُ لِذٰلِكَ ۔ هر هغه څوك چه رحمت او خیر طلب کوي او ددے دپاره عمل نکوي۔ او تفسیر قرطبيؒ داسے طریقے سره لګولے دے چه دا د هر مشرك په باره کښې دے، مشرك وائي :[اِنْ قُمْتُ عَلٰى عِبَادَةِ الْاَوْثَانِ لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا لِاَنَّهَا تَشْفَعُ

لیٰ] کـه زهٔ د بتانو (او باباگانو) په عبادت مضبوط پاتے شم نو ما ته به مالونه او اولاد راکړے شي ځکه چه دا به زمونږ دپاره د الله تعالیٰ په دربار کښې سفارش کوی)

**اَطَّلَعَ الْغَيْبَ:** يعنی آيا دهٔ ته د غيبو خبر راغلے دے چه دے به جنت ته ځي۔

**اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا :** ۱- عَهْدًا بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَبِالْعَمَلِ الصَّالِحِ - يعنی يا به دهٔ کلمه د توحيد وئيلي وی او نيك عمل به ئے کړے وی ځکه چه د توحيد او نيك عمل والو سره الله تعالیٰ وعده د جنت کړيده۔ نو هغه هم په دهٔ کښې نشته نو څنګه د جنت دعوے کوی۔ ۲- يا دا چه د عهد نه مراد قولی عهد دے چه الله ورسره داسے وعده کړی وی چه تهٔ (اے عاص بن وائل مشرکه !) د جنت والو نه شوئے۔ نو دريے واړه کارونه درسره نشته، نهٔ علم غيب، نهٔ دِے کلمه وئيلے ده، او نهٔ درسره د الله تعالیٰ د طرفنه څه ثبوت شته، نو څنګه ځان ته نجات والا وائے۔

**كَلَّا :** دا کلمه په قرآن کريم کښې (۳۳) کرته راغلے ده، او ټول په مکی سورتونو کښې ذکر ده، دا ئے اول کرت دے چه پدے سورت کښې راغله، او د سختوالی او د عمل د بد والی دپاره ذکر شويده۔ ۱- دا حرف ردع ده۔ يعنی د رټلو او منع کولو دپاره راځي۔

۲- او کله په معنیٰ د (حَقًّا) سره راځي يعنی يقينی ده دا خبره۔

او نضر بن شُميل وائی چه دا حرف تصديق دے په معنیٰ د نَعَم (آو) سره۔ او پدے وخت کښې به ددے نه مخکښې يو شے لفظاً يا تقديرًا ذکر وی، او کله د قسم په ځای کښې استعماليږي۔ (فتح البيان)

**وَنَرِثُهٗ مَا يَقُوْلُ :** يعنی دے چه د کوم مال او اولاد دعوے اُوس کوی نو دا به هم ما ته پاتے شی، دے لا د نورو مالونو او اولادو ګمان لری۔

| وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لِّيَكُوْنُوْا لَهُمْ |
|---|
| او نيولی دی دوی سوئ د الله تعالیٰ نور مددګاران دے دپاره چه شی دوی هغوی لره |
| عِزًّا ﴿۸۱﴾ كَلَّا سَيَكْفُرُوْنَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُوْنُوْنَ |
| مددګاران۔ هيچرے داسے نهٔ ده زردے چه انکار به وکړی د بندګئ د دوی نه او شی به |
| عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿۸۲﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّآ اَرْسَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ |
| په دوی باندے دشمنان۔ آيا تهٔ نهٔ پوهيږے چه بيشکه مونږ ورخوشے کوو شيطانان |

| عَلَى الْكَافِرِيْنَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿۸۳﴾ |
|---|
| په کافرانو باندے چه خوځ کوی دوی لره په خوځ کولو سره. (تیزی ورکوی دوی لره په |
| فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ إِنَّمَا نَعُدُّ |
| تیزی ورکولو سره). نو جلتی مهٔ کوه په (عذاب) دوی باندے یقیناً مونږ شمارو (ورځے) |
| لَهُمْ عَدًّا ﴿۸۴﴾ يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ إِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا ﴿۸۵﴾ |
| دوی لره په شمارلو. او په کومه ورځ چه راجمع به کړو متقیان رحمٰن ته میلمانهٔ. |
| وَنَسُوْقُ الْمُجْرِمِيْنَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿۸۶﴾ لَا يَمْلِكُوْنَ الشَّفَاعَةَ |
| او ویه شړو مجرمان جهنم ته تږی. اختیار به نهٔ لری د سفارش کولو |
| إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا ﴿۸۷﴾ |
| مگر هغه څوک چه اخستے ئے دے په نیز د رحمٰن لوظ. |

**تفسیر** : سوال پیدا شو چه مشرکان به ووائی چه مونږ په دنیا کښې د ډیرو بتانو او باباګانو عبادتونه کړیدی هغوی به مو د الله تعالیٰ د عذابونو نه خلاص کړی او هغوی به مونږ ته عزتونه راکړی؟. نو الله په هغوی رد کوی او دا گمان ئے باطل گرځوی.

فرمائی : مشرکانو د الله تعالیٰ نه سوئ خپل ځان دپاره معبودان نیولی دی دے دپاره چه هغوی د الله په نیز سفارشیان شی او د دوی د عزت سبب جوړ شی، لیکن د قیامت د ورځے معامله به د دوی د خیال او گمان په خلاف وی، هغه دروغجن معبودان به د دوی د عبادت نه انکار کوی، او د دوی دشمنان به جوړ شی، لکه چه الله تعالیٰ په سورة الاحقاف آیت (۶) کښې فرمایلی دی : ﴿وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوْا لَهُمْ أَعْدَآءً وَّكَانُوْا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِيْنَ﴾ (کله چه خلق د محشر میدان ته راجمع شی نو د دوی شریکان به د دوی دشمنان شی او د دوی د عبادت نه به انکار وکړی).

عِزًّا: اَیْ اَعْوَانًا (الهروی) وَشُفَعَاءَ (الفراء) . دے دپاره چه دا معبودان دوی لره مددگاران او سفارشیان شی، او د هغوی په وجه عزت حاصل کړی په دنیا کښې یا په آخرت کښې.

كَلَّا : اَیْ لَا یَکُوْنُوْنَ لَهُمْ عِزًّا. یعنی د دوی دپاره مددگاران نشی جوړیدے.

أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِيْنَ: اُوس د مشرکانو د فساد وجه بیانوی چه مشرکان ولے

داسے ګډے ودے وائی؟ نو وجه دا ده چه په دوی باندے شیطانان مقرر شویدی. نبی کریم ﷺ ته خطاب کوی چه آیا ته نهٔ ګورے، دا خبره خو ډیره ښکاره ده چه مونږ پیریان او د انسانانو شیطانان په کافرانو باندے مسلط کړیدی چه دوی د شهوتونو په غلامئ او د جرمونو او ګناهونو په کولو په سختئ سره راپاروی، پدے وجه خو دا خلق شر او فساد طرف ته په تیزئ سره ورمنډے وهی، لیکن ته ددے خبرے جلتی مهٔ کوه چه دوی په جلتئ سره هلاك کړے شی دے دپاره چه زمکه د دوی نه پاکه شی، مونږ د دوی اعمال څهٔ چه د دوی ساه ګانے هم شمارو، او کله چه مقرر وخت راشی نو د دوی د اعمالو بدله به دوی ته ورکوو.

أَرۡسَلۡنَا: دا ارسال ګوِنِیُ (تقدیری) دے یعنی الله په تقدیر کښ داسے لیکلی دی چه شیطانان به په کافرانو مقرر وی.

۱- زجاج ددے یوه معنیٰ کوی: خَلَّيۡنَا بَيۡنَ الۡكَافِرِيۡنَ وَبَيۡنَ الشَّيَاطِيۡنِ فَلَمۡ نَعۡصِمۡهُمۡ مِنۡهُمۡ وَلَمۡ نُعِذۡهُمۡ. یعنی مونږ کافران او شیطانان خپل مینځ کښ پریخی دی چه مونږ کافران د شیطانانو نه نهٔ ساتو او نهٔ ورته د دوی نه پناه ورکوو، په خلاف د مؤمنانو نه چه د هغوی په باره کښ الله فرمائیلی دی: ﴿إِنَّ عِبَادِيۡ لَيۡسَ لَكَ عَلَيۡهِمۡ سُلۡطَانٌ﴾ (الحجر: ٤٢) یقیناً زما بندګان چه دی نشته ستا دپاره په هغوی باندے هیڅ غلبه او قدرت د ګمراه کولو).

۲- دویمه معنیٰ دا ده: إِنَّهُمۡ أُرۡسِلُوۡا عَلَيۡهِمۡ وَقُيِّضُوۡا لَهُمۡ بِكُفۡرِهِمۡ)

یعنی شیطانان په کافرانو باندے رالیږلے شوی او مقرر شویدی په سبب د کفر د دوی لکه الله فرمائی: ﴿وَمَنۡ يَّعۡشُ عَنۡ ذِكۡرِ الرَّحۡمٰنِ نُقَيِّضۡ لَهٗ شَيۡطَانًا﴾ (الزخرف: ٣٦)

(او څوك چه د رحمٰن د ذکر نه ړوند شو، مونږه هغه لره شیطان مقرر کړو)

نو د ارسال معنیٰ ده مسلط کول. او دا داسے دے لکه ﴿وَاسۡتَفۡزِزۡ مَنِ اسۡتَطَعۡتَ مِنۡهُمۡ بِصَوۡتِكَ﴾ (الاسراء: ٦٤)

(او وخوځوه هغه څوك چه ستا وس پرے بر شی د دوی نه په آواز خپل سره) (فتح البیان)

تَؤُزُّهُمۡ أَزًّا: أَزٌّ او أَزِيۡزٌ او هَزٌّ او هَزِيۡزٌ او إِسۡتِفۡزَازٌ ټول په یوه معنیٰ دی یعنی خوزول، راپورته کول او مجبوره کول او تنکول. أَیۡ تَحُثُّهُمۡ وَتُحَرِّضُهُمۡ عَلَى الۡمَعَاصِيۡ)

یعنی شیطانان کافرانو لره خوزوی او دوی په ګناهونو باندے راپورته کوی، او تیزی ورکوی پدے طریقه چه هغه ورته ښائسته ښکاره کوی، او شهوات ورته محبوب ګرځوی، او همدا په دوی باندے د شیطانانو تسلط دے.

او پدے کښې اشاره ده چه کافران د حق په مقابله کښې کله چه رسول الله ﷺ او د حق داعی د توحید او د سنت خبره کوی نو دوی سخت غصه کوی او جګړو ته ئے راپورته کوی او په خپل باطل باندے ئے مضبوطوی، د خپلو باباګانو په عبادت ئے نور هم کلک کړی لکه دا تجربه ده چه د داعی په مقابله کښې دا خلق ډیر په جوش کښې راځی۔

فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ : سوال پیدا شو چه هر کله مشرکان دومره فسادونه کوی او د شیطانانو ملګری دی نو بیا الله تعالیٰ دوی لره ولے نهٔ هلاکوی؟ نو الله فرمائی : د دوی په هلاکولو باندے جلتی مهٔ کوه، او د هلاکولو دعاء ورله مهٔ غواړه، د دوی وخت رانژدے دے،

إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا : (اَیْ نَعُدُّ لَهُمُ الْاَیَّامَ وَالْاَنْفَاسَ) مونږ د دوی ورځے (عمرونه) هم شمارو او د دوی ساه ګانے هم شمارو، چه د ورځے څلیریشت زره کرته ساه اخلی، نو هر کله چه د دوی ورځے او ساه اخستل دومره معدود او محصور دی نو دا خو ډیر زر ختمیدونکی دی نو په دوی باندے ډیر زر عذاب راتلونکے دے۔ مامون بادشاه ته یو عالِم (ابن السماکؒ) نصیحت کولو کښې وفرمایل : [اِذَا كَانَتِ الْاَنْفَاسُ بِالْعَدَدِ وَلَمْ يَكُنْ لَهَا مَدَدٌ فَمَا اَسْرَعَ مَا تَنْفَدُ] کله چه ساه ګانے په شمار وی او ددے مدد نهٔ وی نو دا به څومره زر ختمیږی۔

تفسیر القرطبی (۱۱/۱۵۰)(مفتاح الافکار للتأهب لدار القرار لابی محمد عبد العزیز السلمان متوفی ۱٤۲۲ هـ) رقم: (۳۷۸)

او ددے سره دا هم مراد دے چه د دوی عملونه هم شمارم، حساب به ورسره کوم۔ (قطربؒ) لیکن اوله معنیٰ د مخکښې سره زیاته مناسبه ده۔

يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ : پدے آیت کښې بشارت او تخویف دواړه جمع دی۔ او دا (يَوْمَ) متعلق دے د (سَيَكْفُرُوْنَ) پورے۔ د قیامت په ورځ به تقویٰ والا خلق الله تعالیٰ ته د وفد اومیلمنو په شکل راځی۔

په عربی ژبه کښې د ((وفد)) معنیٰ بادشاهانو او د قوم مشرانو ته د انعاماتو او بدلے حاصلولو دپاره راتلل وی۔ ګویا که پدے آیت کریمه کښې اشاره ده چه د الله سبحانه وتعالیٰ دربار ته به تقویٰ والا بندګان معزز او مکرم راځی۔ د هغه د طرف نه به انعامات او بدلے مومی، او په ښائسته او مزیدارو اُوښانو به سوارهٔ وی، او د جنت دروازو ته به روان وی۔ او کوم خلق چه مجرمان وی نو هغوی به د انتهائی ذلت نه ډک د حیواناتو په شان تږی جهنم طرف ته راخکلے شی۔

امام بخاریؒ او مسلمؒ د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت راوړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : ((د

قیامت په ورځ به خلك په درې طریقو راجمع کړے شي، راغبین (مینه کونکي) راهبین (یره کونکي)، دوه کسان به په یو اُوښ وي، او درې کسان به په یو اُوښ، او څلور کسان په یو اُوښ، او لس کسان به په یو اُوښ وي او باقي کسانو لره به اُور راجمع کوي (چه دوي سره به هر وخت وي) کوم ځاي چه دوي قیلوله کوي هلته به ورسره اُور وي او کوم ځاي چه شپه تیروي اُور به ورسره وي، او کوم ځاي چه صبا کوي نو اُور به ورسره وي- او کوم ځاي چه بیګاه کوي اُور به ورسره وي- (بخاري في الرقاق باب ٤٥، ومسلم في الجنة حدیث : ٥٩)

یا دا چه کله د قبرونو نه راوځي نو سمدست به په سورلو باندې سوارهٔ شي او همدا ظاهر د آیت دے- او بعض وائي چه کله د قیامت د میدان (موقف) نه واپس شي نو دوي به سوارهٔ وي تردې چه د جنت دروازه به تك تك کړي- (فتح البیان)

وِرۡدًا: اَیۡ مُشَاةً/ عِطَاشًا- پیاده/ یا تږي- اول قول د فرآۃ او ابن الاعرابيؒ دے-

او دویم قول د ابن عباسؓ او ابو هریرهؓ او اخفشؒ دے- او ازهريؒ وائي: دا پیاده تږي ته وائي لکه اُوښانِ چه اُوبو ته راځي- یعني په یو ځاي دواړه معاني مراد دي-

لَا یَمۡلِکُوۡنَ الشَّفَاعَةَ: د لایملکون معنیٰ ده : (لا یستطیعون) یعني طاقت به نهٔ لري ځکه چه ملك په عربي ژبه کښې په معنیٰ د قدرت او استطاعت باندې راځي- (ابن عاشور)

ابن عاشورؒ وائي : په لا یملکون کښې ضمیر مخکښې آلهه ؤ ته راجع دے، او معنیٰ دا ده چه دا معبودان به دا طاقت نهٔ لري چه دوي خپلو عابدانو ته فائده ورکړي او دوي د عذاب نه خلاص کړي-

❁ یا ضمیر راجع دے دواړو ډلو ته ❁ یا صرف مجرمانو ته راجع دے- او مطلب دا دے (لَا یَمۡلِکُوۡنَ اَنۡ یَّشۡفَعُوۡا لِغَیۡرِهِمۡ) چه دوي به اختیار نهٔ لري چه د بل دپاره سفارش وکړي یا : (لَا یَمۡلِكُ غَیۡرُهُمۡ اَنۡ یَّشۡفَعَ لَهُمۡ) بل څوك به دا اختیار نهٔ لري چه دوي لره سفارش وکړي صاحب د فتح البیانِ اول مطلب غوره ته غوره وښیلے دے-

اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنۡدَ الرَّحۡمٰنِ عَهۡدًا : دے کښې دوه تفسیره دي (۱) اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ استثناء منقطع ده یعني مجرمان (کفار) به د شفاعت اختیار نهٔ لري، یعني دا اختیار به ئے نهٔ وي چه دوي د ځان دپاره شفاعت طلب کړي، یا د دوي دپاره سفارش وکړے شي- (خپل باطل معبودان به ترې ورك شي، د سفارش به ئے هم څوك نهٔ وي)

نو سوال پیدا شو چه په آخرت کښې به بیخي شفاعت نهٔ وي نو فرمائي چه ﴿اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنۡدَ الرَّحۡمٰنِ عَهۡدًا﴾ اَیۡ یَّشۡفَعُ لَهٗ وَیَشۡفَعُ لِغَیۡرِهٖ) لیکن هغه څوك چه د رحمن ذات سره

ئے لوظ پـه تـوحید نیـولے وی نـو هغـه دپاره بـه سفارش کیدے شی۔ او هغـه بـه د نورو ګنـاهګـارو مـؤمنانو دپاره سفارش کولے شی چه هغه سفارش کونکی مؤمنان او انبیاء او ملائك علیهم السلام دی۔

حافـظ ابن کثیرؒ وائی : نو د مجرمانو (یعنی کفارو او مشرکانو) اختیار نشته چه دوی له څوك سفارش وکړی او چا ته ووائی چه مونږ له سفارش وکړئ، او موحدین به اختیار لری چه انبیاء علیهم السلام او نورو نیکانو مؤمنانو ته ووائی چه مونږ له سفارش وکړئ ځکه چه دوی سره د الله توحید موجود دے مګر په نورو جرمونو کښ راګیر دی۔ نو دا د مخکښ آیت سره متعلق شو (ابن کثیرؒ)

(۲) یا استثناء متصل ده او په لَا یَمْلِکُوْنَ کښ ضمیر تولو خلکو (مؤمنانو او کافرانو) ته راجع دے، یعنی هیڅوك به د هیچا دپاره اختیار د شفاعت نهٔ لری چه د چا دپاره سفارش وکړی، (اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ) دا استثناء د شفیع ده۔ یعنی (مګر هغه شفیع (سفارش کونکے) به اختیار لری چه هغه کښ توحید او تقویٰ وی نو هغه به د بل دپاره سفارش کولے شی) لکه انبیاء علیهم السلام بـه سفارش کوی، شهداء، علماء، حجاج او نور متقیان به د ګناهګارو دپاره سفارش کوی۔

د هر چا د تقویٰ مطابق به څوك د یو تن سفارش کوی، او څوك د دوو، او څوك د لسو، او څوك د ډیرو۔

او پـه حدیث کښ دی چه زما په امت کښ به داسے خلك هم وی چه د یوے لوی قبیلے سفارش به کوی۔ او دا دویم تفسیر غوره دے۔ (فتح البیان)

بغویؒ داسے تعبیر کوی : لَایَمْلِكُ الشَّافِعُوْنَ اِلَّا لِمَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا یَعْنِیْ الْمُؤْمِنِیْنَ) ۔ یعنی په قیامت کښ به هیڅوك سفارشیان نهٔ وی مګر چا چه کلمه د توحید وئیلی وی او مؤمن وی نو هغه دپاره به سفارش کولے شی نو دا داسے دے لکه ﴿وَلَا یَشْفَعُوْنَ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰی﴾ (انبیاء : ۲۸) په شان یعنی دوی به سفارش نهٔ کوی نو مګر د هغه چا دپاره چه الله تعالیٰ ته خوښ وی چه هغه مؤمنان دی۔ نو پدے وخت کښ (مَنْ) په محل د جر کښ وی۔

ابن عطیهؒ داسے تعبیر کوی : اَیْ لَایَمْلِكُ الْمُجْرِمُوْنَ الشَّفَاعَةَ اِلَّا الْعُصَاةُ الْمُؤْمِنُوْنَ فَاِنَّهُمْ یُشَفَّعُ فِیْهِمْ) یعنی تول مجرمان به د سفارش اختیار نهٔ لری کفار وی که ګناهګار مؤمنان مګر ګناهګار مؤمنان به ئے لری چه د هغوی په حق کښ به سفارش کیدے شی۔ او پدے

وخت کښې به (مَنْ) په محل د رفع کښې وی.

اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا: ددے بله معنیٰ دا ده چه الله ورته حکم وکړی چه ته سفارش وکړه. ځکه چه عهد کله په معنیٰ د حکم سره استعمالیږی.

| وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَٰنُ وَلَدًا ﴿۸۸﴾ لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا ﴿۸۹﴾ |
|---|
| او وائی دوی نیولے دے رحمٰن ځان لره بچے. یقیناً راتلل اُوکړو تاسو یو بے خبرے درنے ته. |
| تَكَادُ السَّمَاوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنشَقُّ الْأَرْضُ |
| (یو شی ناکاره ته) نزدے ده چه آسمانونه اُوچوی ددے وجه نه او اُوشلیږی زمکه |
| وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ﴿۹۰﴾ أَن دَعَوْا لِلرَّحْمَٰنِ |
| او راپریوزی غرونه ټوټے ټوټے (دړے وړے). ددے وجه نه چه رابللی دوی رحمٰن ذات لره |
| وَلَدًا ﴿۹۱﴾ وَمَا يَنبَغِي لِلرَّحْمَٰنِ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا ﴿۹۲﴾ إِن كُلُّ مَن |
| اولاد. او نهٔ دی مناسب رحمٰن لره چه اُونیسی (ځان له) اولاد. نهٔ دی ټول هغه څوك |
| فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ إِلَّا آتِي الرَّحْمَٰنِ عَبْدًا ﴿۹۳﴾ |
| چه په آسمانونو او زمکه کښې دی مګر راځی به رحمٰن ته په بندګئ سره (په |
| لَقَدْ أَحْصَاهُمْ وَعَدَّهُمْ |
| تابعداری). یقیناً الله راګیر کړیدی دوی (په علم او قدرت کښې) او شمارلی ئے دی |
| عَدًّا ﴿۹۴﴾ وَكُلُّهُمْ آتِيهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَرْدًا ﴿۹۵﴾ |
| په شمارلو سره. او دا ټول به راځی الله ته په ورځ د قیامت یواځے. |

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کښې د یهودو او نصاراؤ او د بعض عربو قبیلو رد شویدے او هغوی ته زجر دے کومو خلقو چه د الله دپاره اولاد ثابتولو. یهودو عزیر علیه السلام او نصاراؤ عیسیٰ علیه السلام د الله ځوی او عربو به ملائك د الله لوڼړه ګڼړلے.

الله تعالیٰ دوی مخاطب کړل ورته ئے وفرمایل چه تاسو یوه بدترینه ګناه کړیده چه د الله دپاره مو اولاد ثابت کړیدی، حقیقت دا دے چه الله تعالیٰ ته د اولادو نسبت کول داسے بده خبره ده چه د الله تعالیٰ د مرتبے دپاره د سخت غیرت په سبب نزدے ده چه آسمان وچوی،

په زمکه کښې چاودونه راشي او غرونه ذره ذره شي، ځکه چه دا خبره په هیڅ شان مناسبه نهٔ ده چه د الله تعالیٰ دپاره اولاد راشي، هغه خو د تمامو مخلوقاتو خالق او موجد دے، اولاد خو مخلوق وي.

شَيْئًا إِدًّا : اَیْ عَظِیْمًا - یعنې لوی شے. /یا منکر شے. /یا ناشنا شے. إِدَّةٌ شدت (سختئ) ته وائي.

هَدًّا: ذره ذره. مقصد دا چه که تاسو الله تعالیٰ ته د اولادو نسبت کوئ نو نزدے ده چه دا زمکه دریاندے وچوم او غرونه دریاندے درگوزار کرم.

أَنْ دَعَوْا : دے کښې لام مقدر دے اَیْ لِاَنْ دَعَوْا : پدے وجه چه دوی نسبت کوی رحمٰن ذات ته د اولادو. یا دَعَوْا په معنیٰ د رابللو سره دے، او لِلرَّحْمٰنِ کښې لام په معنیٰ د مَعَ دے. یعنې د رحمٰن ذات سره بل چا ته رامدد شه وائي. اول قول غوره دے.

بار بار د رحمن لفظ ذکر کولو کښې اشاره ده چه اے بندگانو ! پدے غلطو خبرو باندے د الله د رحمت نه ځان محروم نکړئ.

وَمَا يَنْبَغِي لِلرَّحْمٰنِ أَنْ يَتَّخِذَ وَلَدًا: د الله تعالیٰ دپاره د اولادو کیدل د عقل خلاف دی، هغه خو د خپلو مخلوقاتو نه بې حاجته دے، اولاد خو د مخلوق وی چه خپل ځان له په دنیاوي ژوند کښې د یار او مددگار محتاج وي.

إِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ: او کله چه قیامت شي نو په آسمان او زمکه کښې چه کوم حیوانات، تول انسانان او پیریان او ملائك دی هغوی به د خپلے بندگانئ اظهار کوی او په نهایت خشوع او خضوع سره به د هغهٔ په حضور کښې ولاړ وی.

عَبْدًا: دلته د عبادت نه مراد عبادت کونیٔ دے یعنې غلامي او الله ته عاجز کیدل.

لَقَدْ أَحْصَاهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا: یعنې په آسمانونو او زمکه کښې چه څومره مخلوقات موجود دی، دا تول الله تعالیٰ په خپل علم او قدرت کښې راگیر کړیدی او یو یو ئے شمارلے دے، که په دوی کښې څوك معبود وے، یا د الله څوی وے نو هغه به یقیناً ددے نه خبر وے. او د قیامت په ورځ به ددے مخلوقاتو نه یو یو فرد د الله تعالیٰ حضور ته یواځے راروان وی. د دوی به نهٔ کوم یار او مددگار وی او نهٔ به څوك سفارشی.

آتِيهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَرْدًا : پدے کښې په هغه کافرانو رد شویدے چه د خپل استکبار او تکبر په وجه به ئے وئیل چه که بالفرض قیامت راشي نو په هغه ورځ به هم زمونږ سره د غریبانو او بدحالو مسلمانانو نه زیات مال او اولاد وی. الله فرمائي : ما ته به یواځے راځي،

مال او اولاد به درسره نهٔ وي.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| يقيناً هغه كسان چه ايمان ئې راوړيدے او عملونه ئې كړيدي نيك |
| سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَٰنُ وُدًّا ﴿٩٦﴾ |
| زړدے چه وبه ګرځوي دوی لره رحمٰن مينه (په زړونو د خلقو كښې). |
| فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ |
| نو يقيناً آسان كړيدے مونږ دا قرآن په ژبه ستا دے دپاره چه ته زيرے وركړے په دے سره |
| الْمُتَّقِينَ وَتُنذِرَ بِهِ قَوْمًا لُّدًّا ﴿٩٧﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا |
| متقيانو ته او ويره وركړے پدے سره قوم جګړه مار ته. او ډير هلاك كړيدي مونږ |
| قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ﴿٩٨﴾ |
| د دوی نه مخكښې قومونه (پيړۍ) آيا وينے ته د دوی نه يو تن يا آورے ته د دوی لره كشارے. |

**تفسير**: د كفارو حال بيان شو او د هغوی دپاره عذابونه، نو مؤمنان وبريدل نو الله تعالىٰ د مؤمنانو حال بيانوي او زيرے وركوي چه كوم خلق په الله تعالىٰ او د هغهٔ په رسول باندے ايمان راوړي او نيك عمل كوي، الله تعالىٰ به د دوی محبت د خپلو بندګانو په زړونو كښې كينوي.

وُدًّا: ﴿ أَيْ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ وَيُحَبِّبُهُمْ إِلَى النَّاسِ. (ابن عباسؓ ومجاهدؒ- الطبريؒ وابن كثيرؒ)

دوی سره به الله تعالىٰ هم محبت كوي او دوی به تولو خلكو ته محبوب كړي.

امام هرم بن حيانؒ وئيلي دي: [ مَا أَقْبَلَ عَبْدٌ بِقَلْبِهٖ إِلَى اللّٰهِ إِلَّا أَقْبَلَ اللّٰهُ قُلُوبَ الْخَلَائِقِ إِلَيْهِ]

يو بنده چه په خپل زړهٔ سره الله ته متوجه شي نو خامخا به الله تعالىٰ د تمام مخلوق زړونه دهٔ طرفته راواړوي. (نهٔ د الله شه تهول مخلوق به ستا شي تردے چه كافران به هم درسره مينه كوي، او ژمكه او غرونه او تول ځيزونه به درسره مينه كوي).

(اغاثة اللهفان لابن القيم ص (١٥٤)

بخاريؒ او مسلمؒ او نورو محدثينو د ابو هريرة ﷺ نه روايت كړيدے چه رسول الله ﷺ فرمائي: ((الله تعالىٰ چه كله د يو بنده سره محبت كوي نو جبريل ته وائي چه زهٔ د فلاني

سره محبت کوم، ته هم دهٔ سره محبت کوه، نو جبریل د هغه سره محبت کوی، بیا په آسمان کښې اعلان کوی چه الله د فلانی سره محبت کوی، تاسو ټول هم د هغه سره محبت وکړئ، نو آسمان والا د هغه سره محبت شروع کړی، بیا د زمکے والو په زړونو کښې د هغه محبت واچولے شی))۔ الحدیث۔ (صحیح بخاری (۷٤۸۵) ومسلم (٦۸۷۳)

❁ دے کښې تاویلی معنیٰ دا ده چه وُد نه مراد ( مَوْضِعُ الْوُدِّ (یعنی د محبت ځای) دے چه هغه جنت دے۔

❁ صاحب د ((محاسن التنزیل)) د مفسر ابو مسلم نه نقل کړیدی چه د نیکانو بندګانو سره د الله تعالیٰ ددے وعدے تعلق د قیامت د ورځے سره دے، [أَيْ يَهَبُ لَهُمْ مَا يُحِبُّوْنَ] یعنی په جنت کښې به الله تعالیٰ خپلو نیکانو بندګانو ته د دوی محبوب شے ورکوی، یا په قیامت کښې به کله چه د دوی نیکیانے د ټولو خلکو مخامخ راپیش کړے شی نو د ټولو خلکو به ورسره مینه پیدا شی۔

او ددے توجیه ئے دا بیان کړیده چه په دنیا کښې خو نیک سړے د کافرانو او ډیرو مسلمانانو په نظر کښې مبغوض وی، دارنګه دنیاوی محبت خو ډیر کرته کفارو او فاسقانو ته زیات حاصل وی۔ نو غوره دا ده چه دلته اُخروی منافع ذکر کیږی۔ انتهیٰ۔

یا مطلب دا دے چه د عامو مؤمنانو به ورسره محبت پیدا شی۔

او ځینی مفسرین دا هم ذکر کړیدی چه عبد الرحمن بن عوف ﷛ چه کله هجرت وکړو نو په مکه کښې د بعض ملګرو (شیبه بن ربیعه، عتبه بن ربیعه او امیه بن خلف) په فِراق (جدائی) باندے خفه شو نو الله تعالیٰ دا آیت د هغه د تسلیٔ دپاره نازل کړو۔

(الدر المنثور والقرطبی)

فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ: پدے آیت کښې قرآن کریم ته ترغیب دے دپاره د حاصلولو د محبت۔ او دا متعلق دے د ابتداء د سورت سره۔ صاحب د ((کشاف)) لیکلی دی چه د سورت په آخر کښې الله تعالیٰ ګویا که داسے وئیلی دی چه اے زما نبی (ﷺ) ! تهٔ دا قرآن خلقو ته اُورسوه، یا دوی ته د قرآن آیتونه واوره، او د جنت زیرے ورکړه او د جهنم نه ئے ویروه، ځکه چه مونږ دا ستا په ژبه نازل کړے او ددے قراءت او ددے تفهیم او توضیح مو آسان کړیدے، دے دپاره چه د الله د عذاب نه ویریدونکو ته تهٔ د جنت زیرے ورکړے او د قریش کافران چه کوم خراب جګړه مار دی، د اُور د عذاب نه ئے ویروے۔

بِلِسَانِكَ: ۱ - ددے نه مراد جارحه (ژبه) ده۔

۲- یا ددے نه مراد لغتِ عربیه دے چه دا مزیداره آسانه ژبه ده چه قرآن پکښې مزه کوی.
لُدًّا: ۱- جمع د اَلَدُّ ده په معنیٰ د سخت جګړه مار سره.
۲- ابو عبیدة وائی: اَلْاَلَدُّ الَّذِیْ لَا یَقْبَلُ الْحَقَّ وَیَدَّعِی الْبَاطِلَ.
الد هغه شخص دے چه حق نهٔ قبلوی او د باطل دعوے لری.
۳- ابن عباسؓ وائی: لُدًّا نه مراد فجار (بد کاره او نافرمان) دی.
٤- هغه خلك چه په لهو او لعب کښې مصروف وی. (ابن کثیرؒ) او دا ټول احوال د مشرکانو وو.
وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ: پدے آخری آیت کښې د دنیا تخویف دے.
الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته خطاب کوی او پدے سره قریشو کافرانو ته نصیحت کوی چه مونږ د دوی نه مخکښې ډیر قومونه هلاك کړی چه هغوی به زما رسولان دروغجن کول، او زمونږ د دعوت خلاف به ئے سازشونه کول، اُوس د هغوی وجود باقی نهٔ دے، د هغوی نام ونشان داسے ختم شو چه هغوی هیر تیر شو. عادیان څومره لوی لوی وو چه د لرے نه به ښکاره کیدل، د ثمودیانو او فرعونیانو لښکرے څه شوے. نو ستا قوم د هغه خلقو د انجام نه عبرت ولے نهٔ حاصلوی او د الله تعالیٰ په دربار کښې د شرك او ګناهونو نه توبه ویستلو سره ولے ایمان نهٔ راوړی؟!. او که دوی هلاك شی نو دومره پرواه ئے مهٔ ساته. (فتح البیان)
هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِّنْ اَحَدٍ: آیا تهٔ په حواسو سره د دوی یو تن معلومولے شے.
رِكْزًا: (کشارے). دا په اصل کښې (اَلصَّوْتُ الْخَفِیُّ) ته ونیلے شی یعنی پټ آواز. مطلب دا چه هر کله چه هغوی ته زمونږ عذاب راغلو نو هیڅ یو شخص ئے پاتے نشو چه ولیدلے شی، او نهٔ یو آواز وو چه واوریدے شی یعنی ټول په ټوله هلاك شو.

## امتیازات او خصوصیات د سورت

۱- اسباب د رحمت او اسباب د غضب ذکر شویدی. د شپیتو نه زیات عملونه د رحمة ذکر شویدی.
۲- پدے کښې د پُل صراط تذکره خصوصی راغلے ده.
۳- دا خبر ورکول چه انسانان به ټول اُور ته داخلیږی.

٤– لفظ د کَلَّا اول پدے سورت کښې شروع شویدے۔

٥– او په شدید الفاظو باندے د اتخاذ الولد رد شویدے۔

٦– شپاړس کرته لفظ د رحمٰن او څلور کرته رحمة لفظ ذکر دے۔

٧– ډیر نرم او خوږو الفاظو والا سورت دے۔

ختم شو د الله په حمد او کرم او احسان او ښکلے توفیق سره اوم جلد
د تفسیر **حکمة القرآن** او دے نه روستو به اتم جلد د سورتِ طه اول نه شروع وی۔
وسبحانك اللهم وبحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك
وصلى الله على نبينا محمد وعلى آله وصحبه اجمعين۔
رجب المرجب ١/1436 هـ الموافق :2015 -4-19 ليلة الاثنين (پیر)۔ بجه : 11:30

ختمه شوه تصحیح ١٩ اکتوبر د اتوار شپه د اسلامی کال آخری شپه د ذی الحجے۔
وکتبه ابوزهیر سیف الله۔

اخراج الکتاب یوم الزلزال الشدید محرم ١٢/ ١٤٣٧ موافق 26/ 10/ 2015

# فهرست تفسير حكمة القرآن جلد (۷)

دفتر تمام گشت وپایان رسید عمر ما همچنان در اول وصف تو مانده ایم

السلام علیکم

دا تفسیر چه چا ته
ورسی نو په خپل
د واټ ساف پیج
او دفیس بک د
پیج نه دی نشر
کنی . چه فائده ئې
عامه شی جزاک الله